او قاضی بدرالدین دمامینی رحمه الله په "مصابیح الجامع" کښې ذکر کړې ده.[1]
**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه دَدې نه امام بخاری رحمه الله دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَخلاف طرف ته اشاره کړې ده. دَهغوی په نیز بغیردَ عذر نه، یعنی په قیام باندې دَ قدرت لرلو باوجود هم په کشتئ کښې په ناسته مونځ کول جائز دی.[2]
**دَ علامه عینی رائې:** علامه عینی رحمه الله لیکی چه دې سره قوی مناسبت دادې چه څنګه مصله او جائې نماز په زمکه باندې وی دغه شان کشتئ په اوبو باندې وی لهذا په دواړو باندې مونځ کول جائز دی.[3]
**په کشتئ کښې دَ مونځ کولو حکم او مسئلې:** که چرې کشتئ یا سمندری جهاز روان وی نو دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزبغیردَ عذر نه په ناسته فرض او واجب مونځ کول جائز دی لیکن دَ افضل خلاف اومکروه دی او په کشتئ کښې په ناسته باندې دَمونځ اداکولو په صورت کښې هم مونځ، دَ رکوع، سجدې سره ادا کول ضروری دی په ناسته په اشارې سره ادا کول جائز نه دی. اودَ امام ابویوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیز په کشتئ کښې بغیردَ عذر نه په ناسته مونځ کول جائز نه دی اودَ عذر په صورت کښې دَهغوی په نیز هم جائز دی. په دې اختلافی صورت کښې دَ صاحبین رحمهما الله مسلك مختار او قوی دې.
اوکه چرې کشتئ په اوبو کښې روانه نه وی بلکه غاړې ته تړلې شوې وی نو په هغې کښې دَ داسې سرې دَ پاره په ناسته مونځ کول جائز نه دی چه په قیام باندې قادر وی. ځکه چه په دې صورت کښې دا کشتئ دَ زمکې په مثل ده لهذا څه داسې عذر دَ کوم په وجه چه په زمکه ناسته مونځ کول جائز وی هم دَ هغې عذر دَ وجې نه کشتئ کښې په ناسته باندې مونځ کول هم جـنز وی اوکه چرې کشتئ په دریاب کښې دننه ولاړه وی یعنی په ژورو اوبو کښې لنګر انداز وی، تړلې شوې وی لیکن دَ هوا په وجه ډیره زیاته خوزیږی نو دغه دَ روانې کشتئ په حکم کښې ده او که لږه خوزیږی نو دَ ولاړې کشتئ په حکم کښې ده. دارنګ په کشتئ کښې دَمونځ ادا کولو په وخت قبلې ته مخ کول ضروری دی. اوکه چرې کـشتئ دَ قبلې طرف نه واوړی نو مونځ ګذار دې هم خپل مخ دَ قبلې طرف ته اوګرځوی. که سره دَ قدرته دَ قبلې طرف ته نه تاویږی نو دَهغه مونځ به جائز نه وی.[4]
**دَ حافظ بن حجر رحمه الله یو قول اودَ هغې جواب:** حافظ ابن حجر رحمه الله دَ مناسبت لاندې داخبره

---

[1] مصابیح الجامع للدمامینی: ۱۰۲/۲.
[2] فتح الباري: ۶۴۳/۱.
[3] عمدة القاری: ۱۶۳/۴.
[4] المبسوط للسرخسی، کتاب الصلاة، باب: فی الصلوات فی السفینة: ۲/۲ ردالمحتار، کتاب الصلوة، مطلب: فی الصلاة فی السفینة: ۵۷۳/۲-۵۷۲، مراقی الفلاح شرح نورالإیضاح، کتاب الصلوة، الصلاة فی السفینة، ص: ۴۰۸.

ذکر کړې ده چه امام بخاری رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله خلاف طرف ته اشاره کړې ده.[1]
نو واضحه دې وی چه په دې مسئله کښې د امام صاحب رحمه الله استدلال د حضرت انس رضی الله عنه د حدیث نه دې. دویمه خبره دا چه حضرت حسن بن زیاد رحمه الله په خپل کتاب کښې د سوید بن غفله په سند سره روایت کړې دې چه ما د حضرت ابوبکر او حضرت عمر فاروق رضی الله عنهما نه په کشتئ کښې د مونځ کولو باره کښې سوال اوکړو نو دواړو حضراتو اوفرمائیل چه د کشتئ د تلو په حالت کښې په ناسته مونځ کوه اود اودریدو په حالت کښې په ولاړه مونځ کوه.
دریمه خبره دا چه د کشتئ د تلو په حالت کښې اکثر دوران راس وی. لهذا د سبب په ځائې مسبب اوګنړلې شو اوهم داسې کیږی هم، خاص کر چه کله په مسبب باندې واقفیت ګران وی یا هغه داسې وی چه د سبب په موجودګئ کښې دهغې نه موجودیدل ډیر نادر وی. څنګه چه امام صاحب رحمه الله مباشرت فاحشه د منی د خروج قائمقام دې لهذا حکم په اکثری حالت باندې ورکړې شو.[2]
حضرت مجاهد، حضرت ابن سیرین، حضرت ابوقلابه، حضرت طاؤس اود حضرت جناده بن ابی امیه رحمهم الله هم دغه مؤقف دې.[3]

**دویم تعلیق:** «وَقَالَ الحَسَنُ: قَائِمًا مَالَمْ تَشُقَّ عَلَى أَصْحَابِكَ تَدُورُ مَعَهَا وَإِلَّا فَقَاعِدًا»
**د تعلیق ترجمه:** اوحضرت حسن بصری رحمه الله فرمائیلی دی چه په کشتئ کښې په ولاړه باندې مونځ کولې شی ترکومې پورې چه ستا ملګرو ته ګرانه نه وی. (که چرې کشتئ تاؤ شی) نوته کشتئ سره تاویږه (ترهغې پورې چه ستا مخ قبلې طرف ته شی) ګنی په ناسته باندې مونځ کوه.

**د تعلیق تخریج:** دا تعلیق ابن ابی شیبه رحمه الله موصولاً ذکر کړې دې، وئی ګورئی: «حدثنا حفص عن عاصم عن الشعبی والحسن وابن سیرین أنهم قالوا: صل فی السفینة قائما، وقال الحسن: "لا تشق علی أصحابك"».[4]

**د تعلیق راوی:** حسن رحمه الله: دا مشهور تابعی ابوسعید بن ابی الحسن یسار البصری رحمه الله دې. د دوی تفصیلی احوال کتاب الإیمان باب: وإن طائفتان من المؤمنین اقتتلوا، فأصلحوا بینهما لاندې

[1]) فتح الباری: ۱/۶۳۴.
[2]) بدائع الصنائع، کتاب الصلاة، فصل: أما أرکانها: ۱/۵۱۵.
[3]) حدثنا أبوبکر قال: حدثنا عبدالله بن إدریس، عن حصین، عن مجاهد، قال: کنا نغزو مع جنادة بن أبی أمیة البحر، فکنا نصلی فی السفینة قعودا. حدثنا هشیم، عن یونس، أن ابن سیرین، قال:خرجت مع أنس، إلی بنی سیرین فی سفینة عظیمة، قال: فأمنا فصلی بنا فیها جلوسا رکعتین، ثم صلی بنا رکعتین أخراوین. حدثنا ابن علیة، عن خالد، عن أبی قلابة، "أنه کان لا یری بأسا بالصلوة فی السفینة جالسا". حدثنا وکیع، عن أبی خزیمة، وطاوس، قال: صل فیها قاعدا. المصنف لابن أبی شیبة، کتاب الصلوة، من قال: صل فی السفینة جالسا، رقم الحدیث: ۶۵۶۰-۶۵۶۳ المصنف لابن عبدالرزاق، کتاب الصلاة، باب: الصلاة فی السفینة، رقم الحدیث: ۴۵۵۶-۴۵۵۳.
[4]) المصنف لابن أبی شیبة، کتاب الصلاة، من قال: صل فی السفینة قائما، رقم الحدیث: ۶۶۲۸.

تیر شوی دی.(۱)

**تشریح:** "قائما" حال دې دَفعل محذوف "تصلی"نه، دغه شان به دا جمله دَ سائل دَ سوال جواب جوړ شي چه سوال کونکی تپوس اوکړو چه په کشتۍ کښې مونځ په ولاړه ادا کړې شی که په ناسته؟ نوجواب ورکړې شو چه ته په کشتۍ کښې دَ اودریدو په حالت کښې مونځ ادا کوه ترکومې پورې چه ستا دَ پاره داسې کول سخت نه وی. اوکله چه دَ کشتۍ په روانیدو سره ستا دَپاره په ولاړه باندې مونځ کول گران شی اودَ پریوتلو اندیښنه وی نو په ناسته باندې مونځ کوه. ځکه چه په دې صورت کښې هم په ولاړه مونځ اداکول دَ مونځ گذارد پاره دَ حرج سبب دې اوحرج مدفوع دې.(۲)

دَ حضرت حسن بصری رحمه الله دَدې خبرې نه درې مسئلې معلومې شوې: ① په کشتۍ کښې که څه عذر نه وی نو په ناسته دې مونځ نه کوی بلکه په ولاړه دې کوی.

② په کشتۍ کښې هم دَ قبلې طرف ته مخ کول ضروری دی. که چرې دَ مونځ دوران کښې کشتۍ تاؤ شی نودَ مونځ گذار دَ پاره هم ضروری دی چه هغه دې هم تاؤ شی هم دغه حکم په ترین کښې دَ مونځ کولو دې.

③ که چرې په کشتۍ کښې مونځ کول گران وی نودَ کشتۍ نه بهروتلوسره مونځ کول افضل دی. شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه علامه قسطلانی رحمه الله دَدې جملې مطلب دا لیکی چه کشتۍ کوم خوا ځی دې هم په هغه طرف دې روانه وی. زما په نیز دَدې مطلب دادې چه که چرې کشتۍ دَ قبلې دَ طرف نه په بل طرف باندې تاؤ شی نومونځ گذار دې خپل مخ دَ قبلې طرف ته تاؤ کړی نه چه دَ کشتۍ سره تاویږی راتاویږی. زما دَ پلار رحمه الله په نیز دې دې هم دکشتۍ سره سره راتاویږی. یعنی په کوم ځائی کښې چه دغه کشتۍ دَ قبلې طرف ته اخوا شی نوهلته دې دغه مونځ گذار قبلې طرف ته راتاویږی.(۳)

حدیث باب: [حدیث نمبر ۳۷۳]

۳۸۰- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ(۴) أَنَّ جَدَّتَهُ مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ لَهُ،

---

(۱) کشف الباری: ۲۲۰/۲.

(۲) عمدة القاري: ۱۶۲/٤.

(۳) إرشاد الساري: ۵۸۲/۱، الأبواب والتراجم: ۱۹۶/۲، سراج القاري: ٤۰۹/۲.

(٤) رواه البخاري أيضا في الجماعة، باب: المرأة وحدها تكون صفا، رقم الحديث: ۷۲۷وفي صفة الصلاة، باب: وضوء الصبيان، رقم الحديث: ۸۶۰ وباب: صلاة النساء خلف الرجال رقم الحديث: ۸۷۱وفي التطوع، باب: ......

فَأَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ قَالَ «قُومُوا فَلأُصَلِّ لَكُمْ». قَالَ أَنَسٌ فَقُمْتُ إِلَى حَصِيرٍ لَنَا قَدِ اسْوَدَّ مِنْ طُولِ مَا لُبِسَ، فَنَضَحْتُهُ بِمَاءٍ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَصَفَفْتُ وَالْيَتِيمَ وَرَاءَهُ، وَالْعَجُوزُ مِنْ وَرَائِنَا، فَصَلَّى لَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ.

**ترجمه حديث:** د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي چه د هغه نيا مليكه رسول الله ﷺ ته د خوراك دعوت وركړو كوم چه هغې (خاص) د رسول الله ﷺ د پاره تيار كړي وو نو حضورپاك د هغه خوراك نه اوخوړلو بيائي اوفرمائيل: راځئ اودرېږئ چه زه (ستاسو په كوركښې د خير اوبركت دپاره) تاسو ته مونځ دركړم.
حضرت انس رضي الله عنه وائي چه زه پاسيدم يو پوزكي مې راوړو چه د ډير استعمالولو د وجې نه تور شوې وو. بيا ما په هغې باندې اوبه چنركاؤ كړې (يعنى هغه مې اووينځلو) بيا حضورپاك په هغې باندې اودريدو. ما او يو يتيم وړوكى هلك حضورپاك پسې شاته صف جوړ كړو او بوډئ نيا مونږ پسې شاته اودريده. بيا حضورپاك مونږ ته دوه ركعته مونځ راكړو بيا حضورپاك واپس تشريف يوړو.
**تراجم رجال:** په دې حديث مبارك كښې ټول څلور رجال دي:

① **عبدالله بن يوسف** رحمه الله: دا عبد الله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دې. د دوى تذكره كشف البارى، كتاب بدء الوحى په دويم حديث او تفصيلى تعارف كتاب العلم، باب: ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوې دې[1]
② **مالك** رحمه الله: دا مشهور امام مالك بن انس بن مالك الاصبحى المدنى رحمه الله دې. د دوى تذكره كشف البارى، كتاب بدء الوحى په دويم حديث او تفصيلى تعارف كتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوې دې[2]
③ **اسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه** رحمه الله: دا اسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه انصارى نجارى مدنى رحمه الله دې. د دوى د نيكه ابوطلحه نوم زيد بن سهيل دې. د دوى تذكره كشف البارى، كتاب العلم، باب: من قعد حيث ينتهى به المجلس ومن رأى فرجة فى الحلقة فجلس فيها لاندې تيره شوى ده[3]

...... ماجاء تطوع مثنى مثنى، رقم الحديث ١١٦٤. ومسلم فى صحيحه، فى المساجد، باب: جواز الجماعة فى النافلة والصلاة على حصير، رقم الحديث: ٦٥٩- ٦٦٠ وأبوداؤد فى سننه، فى الصلاة، باب: إذا كانوا ثلاثة كيف يقومون؟ رقم الحديث: ٦١٢، وفى الصلاة على الحصير، رقم الحديث: ٦٥٧، والترمذى فى جامعه، فى الصلاة، باب: ماجاء فى الرجل يصلى ومعه الرجال والنساء، رقم الحديث: ٢٣٤. والنسائى فى سننه، فى المساجد، باب: الصلاة على حصير، رقم الحديث ٧٣٨، وفى الإمامة، باب: إذا كانوا ثلاثة وامرأة، رقم الحديث: ٨٠٢ وفى جامع الاصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة القسم الأول: فى الفرائض وأحكامها، الباب الأول: فى الصلاة وأحكامها، الفصل السادس: فى شرائط الصلاة، الفرع الرابع: فى أمكنة الصلاة وما يصلى عليه، النوع الأول، فيما يصلى عليه، رقم الحديث: ٥/٤٦٥-٦٥٤

[1]) كشف البارى: ٢٨٩/١، ١١٣/٤.
[2]) كشف البارى: ١٨٠/٢/ ٢٩٠.
[3]) كشف البارى: ٢١٣/٣.

④ انس بن مالك رضي الله عنه: دامشهور او معروف صحابي رسول حضرت انس بن مالك بن نضر خزرجي انصاري رضي الله عنه دي. دَ دوى تذكره كشف الباري، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوې ده.(١)

مُلَيكه: دا لفظ دَ ميم په ضمې سره دې ليكن دَ أصيلي په نيز دا لفظ دَميم په فتحې او لام په كسرې سره دې. په دې دواړو اقوالو كښې رومبې قول صحيح دې دويم صحيح نه دې. علامه نووى رحمه الله په شرح مسلم كښې دَ دويم قول دَ ذكركولو نه پس فرمائيلي دى ((وهذا ضعيف مردود))(٢) او په مشارق الانوار كښې دى ((ولايصح))(٣)

دَ "جدته" دَ ضمير مرجع: په روايت كښې ((جدته مُليكة)) الفاظ دى يعنى دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ نيا نوم مليكه وو. بيا په دې كښې اختلاف دې چه دَ جدته دَ ضمير غائب "ه" مرجع څه څيز دې؟ دَ ابن عبدالبر، عبدالحق او قاضى عياض رحمهم الله په نيز دَدې ضمير مرجع اسحاق راوى دې. يعنى دَاسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه نيا، امام نووى رحمه الله دا قول صحيح گرځولي دې.(٤)

علامه قسطلانى رحمه الله هم دا قول اختيار كړې دې.(٥) خودَ ابن سعد ابن منده او دَ ابن الحصار رحمهم الله په نيز دَ "ه" ضمير مرجع حضرت انس رضي الله عنه دې.

علامه عينى رحمه الله نقل كړى دى چه علامه ابن حبان فوائد العراقيين كښې دَ اسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه روايت نقل كړې دې په كوم كښې چه هغه دَ حضرت انس رضي الله عنه نه نقل كوى چه هغوى اوفرمائيل زما نيا نبى كريم ﷺ ته دَ دعوت پيغام اوليږلو دَهغې نوم مُليكه وو. حضورپاك تشريف راوړو بيا دَ مونځ وخت شو نو دَ مونځ دَ پاره په يو پوزكى باندې اودريدو. الخ.(٦)

علامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه په دواړو كښې چه هر يو مرجع اوگرځولې شى په دې كښې هيڅ تضاد نشته دې. ځكه چه دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ مور نوم أم سليم وو دَهغې دَ مور نوم مُليكه وو. بله دا چه دَ ام سليم دَ رومبى خاوند نوم مالك بن النضر وو. دَ چا نه چه حضرت انس رضي الله عنه پيدا شوې وو. دَ هغه دَ وفات نه پس ام سليم دَ ابوطلحه سره واده اوكړو دَچا نه چه عبدالله پيدا شو او دَ هغه نه اسحاق.

دغه شان ام سليم نيا جوړه شوه دَاسحاق او دَ هغه مور يعنى مُليكه دَ قرنيكه بنځه جوړه شوه

---

(١) كشف الباري: ٤/٢.

(٢) شرح النووى على صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: جواز الجماعة فى النافلة، رقم الحديث ١٤٩٧، ١٦٤/٤.

(٣) مشارق الأنوار، حرف الكاف، فصل الإختلاف والوهم غيرماتقدم: ٣٩٩/١.

(٤) شرح النووى على صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: جواز الجماعة فى النافلة رقم الحديث: ١٤٩٧، ١٦٤/٥.

(٥) إرشاد السارى: ٣٣/٢.

(٦) عمدة القاري: ١٦٣/٤.

چونکه په عربی ژبه کښې د جدة لفظ نیا او د قر نیکه ښځې دواړو د پاره وئیلی شی په دې وجه دَهغوی طرف ته نسبت صحیح شو او د حضرت انس رضی الله عنه طرف ته هم نسبت صحیح شو.[1]

الدکتوراحمد الشاکر د سنن ترمذی په حاشیه کښې د دې پوره تحقیق نقل کړې دې چه په ډیرو فوائدو باندې مشتمل دې او د کتلو سره تعلق لری.[2]

**شرح حدیث: أَنَّ جَدَّتَهُ مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ لَهُ**

د حضرت انس رضی الله عنه نیا ملیکه رسول الله صلی الله علیه وسلم د خوراك د پاره راوغوښتلو کوم چه د حضورپاك د پاره تیار کړې شوې وو. "لطعام" کښې لام اجلیه دې یعنی "لأجل لطعام".[3]

**په یوشان واقعاتو کښې د حضورپاک مختلف طرزعمل:** بعضې شارحینو لیکلی دی چه دې لفظِ طعام سره دې طرف ته اشاره کول مقصود دی چه حضورپاك ته دعوت صرف د دې د

---

[1] قوله: (إن جدّته)، قيل: الضمير إلى إسحاق، وقيل: إلى أنس رضى الله عنه، وكلا هما صحيح، فإن أم سليم والدة أنس رضى الله عنه كانت تزوجت بعده أباطلحة رضى الله عنه، فصار عبدالله أخا لأنس رضى الله عنه، وصارت مُلَيْكَةُ جَدَّةً لإسحاق بن عبدالله. (فيض البارى: ٣٢/٤).

[2] "مُلَيْكَة" بضم الميم، وفتح اللام، وقد أخطأمن ضبطه بفتح الميم وكسر اللام. وقوله: جدته اختلف فى الضمير العائد، هل هو عائد على أنس، فتكون مليكة جدته هو؟ أو على إسحاق بن عبدالله بن أبى طلحة، فتكون جدة إسحاق؟ وقد ادعى ابن عبدالبر أن مليكة هى أم أنس بن مالک، وأنها هى أم سليم بنت ملحان زوج أبى طلحة الأنصارى، وأن الضمير فى جدته عائد على إسحاق بن عبدالله بن أبى طلحة، واستدل لذلک برواية عبدالرزاق لهذا الحديث عن مالک عن إسحاق عن أنس: أن جدته مليكة، يعنى: جدة إسحاق، وذكر الحديث بمعنى مافى المؤطأ. وقلد كثير من العلماء ابن عبدالبر فى ذلک، ورواية عبدالرزاق رواها أحمد فى المسند رقم: ١٢٧٠٨، ج:٣،ص:١٦٤، وليس فيها قوله: يعنى:جدة إسحاق.وما ذهب إليه ابن عبدالبر خطأ. فإن أم سليم بنت ملحان اختلف لإسمها: فقيل الغميصاء، وقيل: الرميصاء، وقيل: رميلة، وقيل: رميثة، وهذه الأسماء بضم الأول فيها كلها، ولم يقل أحد أن اسمها مليكة، وأما مليكة، فهى أمها، وهى جدة أنس لأمه، وهى جدة إسحاق بن عبدالله بن أبى طلحة، لأنها جدة أبيه عبدالله لأمه، كانت ابنتها أم سليم تحت مالک بن النضر، فولدت له أنسا فى الجاهلية، وأسلمت مع السابقين من الأنصار، فغضب مالک وخرج إلى الشام ومات بها، فتوزجها بعده أبوطلحة زيد بن سهل الأنصارى، فولدت له عبدالله وأبا عمير، وهؤلاء بنو ملحان معروفون، إخوة أشقاء: سليم وزيد وحرام وعباد وأم سليم وأم حرام، أبوهم: ملحان، بكسر الميم وإسكان اللام، واسمه: مالک بن خالد بن زيد بن حرام من بنى النجار، وأمهم: مليكة بنت مالک بن عدى بن زيد بن مناة بن عدى، من بنى النجار. (انظر الإصابة، ج:٨ ص: ١٩١-١٩٠، وطبقات ابن سعد، ج:٣، ص: ٧٢-٧١، ج:٨ ص:٣١٠). ويؤيد هذا مانقله السيوطى فى شرح المؤطأ (١٦٩:١)عن فوائدالعراقيين لأبى الشيخ من طريق القاسم بن يحيى المقدمى عن عبدالله بن عمر عن إسحاق بن أبى طلحة عن أنس قال: "أرسلنى جدتى إلى النبى صلى الله عليه وسلم، واسمها مليكة، فجاءنا فحضرت الصلاة". فهذا صريح فى أنها جدة أنس لأمه. وانظر فتح البارى (١/٤١٢-٤١١)(حاشية لأحمدالشاكر على سنن الترمذى، كتاب الصلاة، الرجل يصلى ومعه رجل، تحقيق أن مليكة جدة أنس: ١/٤٥٥-٤٥٤مطبعة مصطفى البابى الحلبى).

[3] فتح البارى: ١/٦٣٥،عمدة القارى: ٤/١٦٤. التوشيح للسيوطى: ١/٣١٣.

پاره ورکړې شوې وو چه حضورپاك خوراك اوكړى په خلاف د حضرت عتبان بن مالك د قصې.[1]

چه په هغې كښې حضورپاك ته د بركت د حاصلولو په غرض سره د مونځ وركولو د پاره دعوت وركړې شوې وو. چنانچه د هغوى په قصه كښې حضورپاك اول مونځ وركړو بيا ئې خوراك اوكړو او په دې قصه كښې ئې اول خوراك اوكړو بيائې مونځ وركړو يعنى په كوم غرض سره چه دعوت وركړې شوې ووهغه ئې مخكې كړو.

په دې باندې علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا ضرورى نه دى چه مليكه دې صرف هم د خوراك د پاره راغوښتې وى بلكه په ظاهره دا خبره ده چه د هغې مقصود هم د بركت د پاره د مونځ وركولو له راغوښتل وو. البته دا وئيلې كيدې شى چه هغوى كره خوراك تيار وو په دې وجه حضورپاك اول خوراك اوكړو او مونځ ئې ادا كړو. او د حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه په قصه كښې خوراك هغه وخت تيار نه وو په دې وجه اول ئې هلته مونځ اوكړو بيا ئې خوراك اوكړو. لهذا دا چه په دواړو واقعاتو كښې څه منافات نشته دې چه د تطبيق يا جمع كولو نوبت پيښ شى.[2]

**قوله: فَأَكَلَ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ: «قُومُوا فَلِأُصَلِّ لَكُمْ»:** چنانچه حضورپاك هغه خوراك اوخوړلو بيائى اوفرمائيل تاسو اودريږئى دې د پاره چه زه تاسو ته (د خير اوبركت) د پاره مونځ دركړم.

**د «فلأصلِّ لكم» تركيبى حيثيت:** د كشميهنى په روايت كښې دا لفظ د لام نه بغير دې يعنى "فَأُصَلِّي" او د اصيلى په روايت كښې په شروع كښې "لام امر" او په آخر كښې د "ي" په حذف

---

[1] حدثنا سعيد بن عفير، قال:حدثنى الليث، قال: حدثنى عقيل، عن ابن شهاب، قال: أخبرنى محمود بن الربيع الأنصارى، أن عتبان بن مالك وهو من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم ممن شهد بدرا من الأنصار أنه أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال: يا رسول الله قد أنكرت بصرى، وأنا أصلى لقومى، فإذا كانت الأمطار سال الوادى الذى بينى وبينهم، لم أستطع أن آتى مسجدهم فأصلى بهم، ووددت يا رسول الله! أنك تأتينى فتصلى فى بيتى، فأتخذه مصلى، قال: فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم: سأفعل إن شاء الله. قال عتبان: فغدا رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبوبكر حين ارتفع النهار، فاستأذن رسول الله صلى الله عليه وسلم، فأذنت له، فلم يجلس حتى دخل البيت، ثم قال: أين تحب أن أصلى من بيتك؟ قال: فأشرت له إلى ناحية من البيت، فقام رسول الله صلى الله عليه وسلم فكبر، فقمنا فصففنا فصلى ركعتين ثم سلم، قال وحبسناه على خزيرة صنعناها له، قال: فآب فى البيت رجال من أهل الدار ذوو عدد، فاجتمعوا، فقال قائل منهم: أين مالك بن الدخيشن أو ابن الدخشن؟فقال بعضهم: ذلك منافق لا يحب الله ورسوله، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا تقل ذلك، ألا تراه قد قال: لا إله إلا الله، يريد بذلك وجه الله، قال : الله ورسوله أعلم، قال فإنا نرى وجهه ونصيحته إلى المنافقين، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: فإن الله قد حرم على النار من قال: لا إله إلا الله، يبتغى بذلك وجه الله، قال ابن شهاب: ثم سألت الحصين بن محمد الأنصارى_ وهوأحد بنى سالم – وهو من سراتهم، عن حديث محمود بن الربيع الأنصارى: فصدقه بذلك. (صحيح البخارى، كتاب الصلاة، باب: المساجد فى البيوت، الرقم: ۴۲۵).

[2] عمدة القارى: ۱۶۴/۴فتح البارى: ۱/۶۳۴.

سره دي. امر چه كله غائب او متكلم دپاره وى نو د هغې شروع د "لام" نه كيږى او كله چه د مخاطب د پاره وى نو د "لام" د حذف او ذكر كول دواړه صحيح وى. الغرض په دې صورت كښې به دا صيغه په جواب امر كښې وى او لام به لام امر وى. او د كشميهنى د روايت والا لفظ به خبر شى د مبتداء محذوف د پاره يعنى "قوموا، فأنا أصلي".

دريم احتمال دا دې چه ابتدائى لام "لام كي" وى او "ي" مفتوح وى په دې صورت كښې به د لام نه پس ان مصدريه محذوف وى. په دې صورت كښې د "ي" نه تخفيفاً فتحه حذف كولو سره "فلأصلي" وئيل هم جائز دى.

څلورم احتمال دا دې چه دا لام مفتوح وى د تاكيد د پاره او دا جمله جواب شى د قسم محذوف يعنى "قوموا: إن قمتم فوالله لأصلي لكم" ليكن دا احتمال ضعيف دې.[1]

د "لكم" نه مراد هم "لأجلكم" دې. يعنى ستاسو د خاطره (چه تاسو بركت حاصل كړئى يا تاسو مشاهدة مونځ زده كړئى) مونځ دركوم.[2]

**قوله: قَالَ أَنَسٌ: فَقُمْتُ إِلَى حَصِيرٍ لَنَا، قَدِ اسْوَدَّ مِنْ طُولِ مَا لُبِسَ:** حضرت انس رضي الله عنه فرمائى چه ما يو پوزكې راوړو چه د ډير استعمال د وجې نه تور شوې وو. د "اسود" نه مراد رنګ بدليدل دى.[3]

**قوله: "طُولِ مَا لُبِسَ"** نه مراد اوږدې زمانې پورې د دې استعمالول دى. ليكن په دې ځائې كښې د دې نه مراد فائده اوچتول دى لكه چه تاج العروس او لسان العرب كښې مصرح دى.[4]

علامه ابن ملقن رحمه الله ليكى چه دلته يوه خبره دا هم معلومه شوه چه په افتراش باندې د لُبس اطلاق كيدې شى اوشرعاً او لغةً به د هر څيز لُبس د هغه په اعتبار سره ځان له او جدا وى. لهذا افتراش حصير ته به عرفاً لباس نه شى وئيلې. په دې سره د امام مالك رحمه الله د مسئلې رد هم اوشو چه د هغوى په نيز كه چرې يو سړې د «لايلبس ثوبًا» په الفاظو سره قسم اوخورى او بيا هم په هغه ثوب باندې كينى نو د امام مالك رحمه الله په نيز هغه به حانث شى. ځكه چه د

---

[1] (قوموا فأصلي)هي عندالكشميهني بغير لام ساكنة الياء، وهي واضحة صحيحة، ورواها غيره: "فأصلي" بلام مكسورة، وفتح الياء على أنها لام كي على زيادة الفاء، وقد رويت بفتح اللام وسكون الياء. كقوله تعالى: ﴿إِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا﴾ وقال ابن سيد: يرويه كثير من الناس بالياء، ومنهم: من يفتح اللام ويسكن الياء، ويتوهمونه قسما، وذلك غلط، لأنه لا وجه للقسم، ولوكان لقال: "فلأصلين" بالنون. وإنما الرواية الصحيحة "فلأصل" على معنى الأمر، والأمر إذا كان للمتكلم والغائب كان باللام أبدا، وإذا كان للمخاطب كان باللام بغيراللام. (التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح، كتاب الصلاة، رقم الحديث: ۳۸۰، ۱/۱۰۰)، فتح الباري: ۱/۶۳۵،عمدة القاري: ۴/۱۶۵.

[2] فتح الباري: ۱/۶۳۵.

[3] بذل المجهود، كتاب الصلوة، باب: إذا كانوا ثلاثة كيف يقومون؟ رقم الحديث: ۶۱۰، ۲/۵۲۹.

[4] تاج العروس: ۱۶/۴۶۶، لسان العرب: ۶/۲۰۲.

قسمونو دارومدار په عرف باندې وي او په عرف کښې افتراش ته لباس نه وائي اودلته قسم خوړونکی دَ نه اغوستو قسم خوړلې وو. لهذا قسم خوړونکې به حانث نه وي.[1]

امام نووي رحمه الله هم دلته هم دغه فرمائي چه «من طول لُبس» کښې دَ قرينې دَ وجې دَ لُبس نه مراد افتراش دې.[2]

**دَ حافظ صاحب په احنافو باندې رد اودَ هغې جواب:** دارنګ حافظ ابن حجر رحمه الله ...خائي کښې "لُبس" دَ افتراش په معنی اغستلې دې او دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نوم اخستو نه بغير ئې په هغه باندې رد کړې دې چه نبی کريم ﷺ دَ مطلق ريښم دَ استعمال نه منع فرمائيلې ده. په دې عمومي نهی کښې ريښم اغوستل او يا خورولو سره په هغې کيناستل او دَ ريښمو په تکيه ګانو باندې ددې لګول داخل دي. لهذا دَ امام ابوحنيفه رحمه الله قول (چه دَ ريښمو په بستره باندې کيناستلو او ددې لګولو کښې هيڅ حرج نشته دې) صحيح نه شو ځکه چه په لبس باندې افتراش کيږي.[3]

علامه عيني رحمه الله دَ دغه ټولو رد کولو سره فرمائي چه "لُبس" څنګه دَ اغوستلو په معنی کښې استعماليږي هم دغه شان دَدې استعمال دَ نفع اوچتولو په معنی کښې هم کيږي اوهم دغه دلته مراد دې نه چه صرف افتراش. په دې سره چه دَ حافظ صاحب کوم رد دې دَهغې هم جواب اوشو.[4]

**قوله: فَنَضَحْتُهُ بِمَاءٍ:** بيا ما په دغه پوزکی باندې دَ اوبو څاڅکی چنړکاؤ کړل. دَ "نضح" مطلب دَ اوبو چنړکی اچول (څاڅکی کول) دی. علامه جوهري رحمه الله ليکلي دي چه دَدې اطلاق کله په وينځلو باندې هم کيږي ليکن رومبې معنی زياته مشهوره ده.[5]

په پوزکی باندې دَ اوبو چنړکاؤلو مقصد دَ هغه کهجورو دَ پاڼړو نه جوړ شوې پوزکې نرمول وو. يا دَ هغې دوړې لرې کول وو. قاضي سليمان مالکي رحمه الله هم دغه وضاحت کړې دې.[6]

دَ قاضي عياض مالکي رحمه الله په نيز دَ اوبو چنړکاؤ دَدې دَ پاره وو چه دَنجاست شک لرې شي. دَ مالکيه دَمذهب مطابق دَمشکوک څيز دَ طهارت دَپاره دَ وينځلو ضرورت نه وي صرف دَ اوبو څاڅکی کول کافي وي.[7]

**قوله: فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَصَفَفْتُ وَالْيَتِيمَ وَرَاءَهُ، وَالْعَجُوزُ مِنْ وَرَائِنَا:** بيا رسول الله ﷺ

---

[1] التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن الملقن: ٣٧٢/٥، الإعلام بفوائد عمدة الأحكام، باب الصلاة، باب: تسوية الصفوف، الحديث الثالث: ٥٣٠/٢.

[2] شرح النووي، كتاب الصلاة، باب: جواز الجماعة فى النافلة، رقم الحديث: ١٤٩٧، ١٦٦/٥.

[3] فتح الباري: ٦٣٥/١.

[4] عمدة القاري: ١٦٤/١.

[5] مختار الصحاح للجوهري، ص: ٢٧٧.

[6] شرح النووي، كتاب الصلاة، باب: جواز الجماعة فى النافلة، رقم الحديث: ١٤٩٧، ١٦٦/٥.

[7] إكمال المعلم، كتاب الصلاة، باب: جواز الجماعة فى النافلة، رقم الحديث: ١٤٩٧، ٦٣٦/٢.

(په دغه پوزکي باندې) اودريدو او ما او يو يتيم (وړوکي ماشوم) حضور پاك پسې شاته صف جوړ کړو او بوډئ (زما نيا) زمونږ نه شاته صف کښې اودريده.

**قوله: "وَصَفَفْتُ أَنَا وَالْيَتِيمُ"**: دَ صحيح البخاري په اکثر نسخو کښې دا جمله دغه شان ده ليکن دَ مستملي او حمودي په روايت کښې دا جمله "صففت وَالْيَتِيمُ" ده ، دَ لفظ أنا نه بغير. اول ذکر شوې جملې سره دَ نحويانو نه دَ بصريينو مذهب ته تقويت ملاويږي څنګه چه دهغوی په نيز قاعده داده چه کله دَ اسم ظاهر ضمير عطف مرفوع متصل باندې کول وی نو اول دَ دغه ضمير مرفوع متصل تاکيد په ضمير منفصل سره راوړې بيا پرې عطف کوی، لکه چه قرآن کريم کښې دی: ﴿اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ (البقرة: ۳۵) اودَ کوفيينو په نيز په داسې موقعو باندې تاکيد راوړل څه ضروری نه دی ليکن په دوی دواړو کښې دَ بصريينو مذهب زيات فصيح دې.[۱]

**دَ يتيم معنی اومطلب**: هغه نابالغ ماشوم دَ چا پلار چه مړ شی هغه ته يتيم وائی. او په څناورو کښې دَ چا چه مور مړه شی هغه يتيم ياديږی. دَدې جمع أيتام، يتامیٰ، يَتَمَةٌ، يَتْمَةٌ او يتائِم راځی.[۲]

علامه ابن اثير رحمه الله ليکی چه دَ بلوغت نه پس لفظ يتيم استعمالول صحيح نه دی اوکه چرته استعمال شوې وی نو مجازاً به استعماليږی.[۳]

په دې لفظ باندې رفع او نصب دواړه وئيل جائز دی. دَ رفع په صورت کښې به دَدې عطف په "أنا" ضمير باندې وی کوم چه دَ ظرفيت په وجه مرفوع دې. او دويم احتمال دادې چه "اليتيم" مبتداء وی او "وراءنا" خبر وی او پوره جمله حال وی. او نصب به په هغه صورت کښې ممکن وی کله چه "واؤ" دَمع په معنی کښې واخلی يعنی "وصففت أنا مع اليتيم".[۴]

**په حديث مذکوره کښې دَ يتيم مصداق څوک دې؟** دَ حديث مبارك په دې جمله کښې چه دکوم يتيم ذکر راغلې دې دهغې نه مراد څوک دې؟ دَدې په تعيين کښې ډيرزيات اختلافی اقوال دی: ملاعلی قاری رحمه الله ليکی چه دا لفظ اسم عَلَم دې دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ ورور[۵]. ليکن علامه سهارنپوری رحمه الله ليکی چه دا قول سوا دَ ملاعلی قاری رحمه الله نه دَ بل چا نه دې ملاؤ شوې.[۶]

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دَ هغه نوم "ضُمَيْرَةٌ" وو.[۷]

---

[۱] فتح الباري: ۱/۶۳۶،عمدة القاري: ۴/۱۶۵،التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح،كتاب الصلاة، رقم الحديث: ۳۸۱، ۱/۱۰۱.
[۲] معجم الصحاح للجوهري، ص: ۱۱۶۷،لسان العرب: ۱۲/۶۴۵،الإعلام بفوائد عمدة الأحكام: ۲/۵۳۲.
[۳] النهاية في غريب الحديث والأثر: ۲/۹۲۵، لسان العرب: ۱۲/۶۴۵.
[۴] شرح الكرماني:۴/۴۶،التوضيح لابن ملقن:۵/۳۷۳،التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح،كتاب الصلاة، رقم الحديث:۳۸۱، ۱/۱۰۱.
[۵] مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب: الموقف، رقم الحديث: ۱۱۰۸، ۳/۷۵.
[۶] بذل المجهود، كتاب الصلاة، باب: إذا كانوا ثلاثة كيف يقومون؟ رقم الحديث: ۶۱۰، ۲/۵۲۹.
[۷] شرح الكرماني: ۴/۴۶.

علامه عینی رحمه الله نور لیکي چه دَ هغه پلار دَ نبی کریم ﷺ ازاد کړې شوې غلام وو صحابی وو اودَ قبیله حمیر نه وو، دَ هغه نوم سعد وو.[1]

**دَ العجوز مصداق:** په مذکوره عبارت کښې دَ "العجوز" نه مراد دَحضرت انس رضی الله عنه نیا ده. دَ چې ذکر چه په شروع کښې تیرشوې دې[2]

**قوله: فَصَلَّى لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ:** بیا رسول الله ﷺ مونږ ته دوه رکعته مونځ راکړو.

**قوله:** "لنا" کښې لام اجلیه دې یعنی زمونږ دَ خاطره یا زمونږ دَ زړه ساتنې دَ پاره یا زمونږ دَ خودنې دَ پاره دوه رکعته مونځ راکړو[3]

**قوله: ثُمَّ انْصَرَفَ:** بیا حضورپاك تشریف یوړو. دَدې جملې دوه مطلبونه بیان کړې شوی دی. یو دا چه "انْصَرَفَ" دَ "سلّم" په معنی کښې دې او دویم دا چه "رجع" په معنی کښې دې. یعنی "رجع إلى بيته"[4]

علامه کورانی رحمه الله دې دویم قول ته ترجیح ورکړې ده[5]

**دَ مذکوره حدیث شریف نه مستنبط شوې امور اواحکام:** شارحین حدیث دَدې حدیث مبارك نه ډیر احکام او آداب اخذ کړی دی. دَ هغې نه څه دلته لاندې ذکرکولې شی:

① دَ خوراك دعوت اگرکه هغه دَ ولیمې دَ دعوت نه علاوه وی، قبلول مستحب دی.

② دعوت قبلول دَ رسول الله ﷺ په تواضع باندې دلالت کوی.

③ نوافل کښې افضل دادی چه په کور کښې اداکړې شی.

④ دَ اکرام کونکی دَ اکرام په بدله کښې څه نا څه احسان کول پکار دی لکه چه حضورپاك دغه کور والو ته نفل مونځ ورکړو.

⑤ دَ کور صفا ستره ساتل مستحب دی.

⑥ دَ ماشومانو مونځ هم صحیح دې.

⑦ دَ ماشومانو دَ لویو په صف کښې اودریدو سره مونځ کول صحیح دی.

⑧ دَ ښځو په جمع سره مونځ کښې دَ اودریدلو مقام آخری صف دې.

⑨ په کپړو او پوزکی وغیره کښې اصل دادې چه هغه پاك وی خو که دَهغې دَ ناپاکه کیدو یقین اوشی نو بیا هغه پاکول ضروری دی.

⑩ لکه څنګه چه مونځ په زمکه باندې کیږی دغه شان په کپړه، پوزکی وغیره باندې هم

---

[1] عمدة القاري: ۱۶۵/۴.

[2] فتح الباري: ۶۳۶/۱،عمدة القاري: ۴/۱۶۵.

[3] عمدة القاري: ۱۶۵/۴، إرشاد الساري: ۳۳/۲.

[4] الإعلام بفوائد الأحکام، کتاب الصلاة، باب: تسوية الصفوف: ۵۳۸/۲.

[5] الکوثر الجاري: ۶۸/۲.

كيږي ([1])

⑤ بعضې حضراتو دا هم ذکرکړي دی چه په دې حديث کښې دلالت دې چه هغه څيزونه کوم چه په اور باندې پخ شوې وی ډهغې خوړلو سره اودس نه ماتيږی ځکه حضورپاك په دې واقعه کښې اودس نه دې کړې اوډ مونځ ډ پاره اودريدلو.

ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دې کښې نظر دې. ځکه چه امام دارقطنی رحمه الله غرائب مالك کښې "عن العطوی عن عبدالله بن عون عن مالك" په سند سره روايت ذکر کړې دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی: ((صنعت مليكة لرسول الله صلى الله عليه وسلم طعاما، فأكل منه، وأنا معه، ثم دعا بالوضوء....)) يعنی په دې طريق کښې ډ اودس کولو ذکر موجود دې ([2])

**ډ صف جوړولو ترتيب:** علامه کورانی رحمه الله هم دغه ذکرکړی دی ([3])

په مذکوره حديث کښې چه څنګه ډ صف جوړولو ذکر راغلې دې احناف هم ډ دغه طريقې قائل دی چه ډ ټولو نه مخکښې امام، ډ هغه نه شاته بالغ سړی اوډ هغوی نه شاته ماشومان. اوکه چرې ښځې هم وی نوهغوی ډ ټولو نه شاته. اوکه چرې سړې هم يو وی او ماشوم هم يو وی نو دواړه دې په يو ځائی يو صف کښې يعنی ډ امام نه شاته صف کښې او ښځه ډ ټولو نه آخری صف کښې، هم دغه مذهب ډ ډيرو زياتو فقهاؤ کرامو دې ([4])

**ډ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه مذهب:** په صحابه کرامو کښې ډ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مذهب په دې مسئله کښې دادې چه که چرې دوه مقتديان وی نو امام به ډدغه دوو په مينځ کښې اودريږی، ډ هغوی نه به په جدا صف کښې نه اودريږی ([5])

---

[1] ) أعلام الحديث للخطابي: ۳۷۳/۱، الإعلام بفوائد عمدة الأحكام، كتاب الصلاة، باب: تسوية الصفوف: ۵۶۳-۵۳۸/۲،الشرح الميسر لصحيح البخاري: ۴۳۴/۱،شرح الكرماني: ۳۶/۴،عمدة القاري:۱۶۵/۱-۱۶۴.

[2] ) فتح الباري:۶۳۶/۱.

[3] ) الكوثر الجاري: ۸۶/۲.

[4] ) الدرالمختار مع ردالمحتار، كتاب الصلاة، باب: الإمامة: ۳۱۶/۲-۳۱۴، بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل فى بيان مقام الإمام والمأموم: ۶۷۴/۱، الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة الباب الخامس فى الصلاة، الفصل الخامس فى بيان المقام الإمام والمأموم: ۸۸/۱.

[5] ) حدثنا محمدبن العلاء الهمداني أبو كريب، قال: حدثنا أبومعاوية، عن الأعمش، عن إبراهيم، عن الأسود، وعلقمة، قالا: أتينا عبدالله بن مسعود فى داره، فقال: أصلى هؤلاء خلفكم؟ فقلنا: لا، قال: فقوموا فصلوا، فلم يأمرنا بأذان ولا إقامة، قال: وذهبنا لنقوم خلفه، فأخذ بأيدينا فجعل أحدنا عن يمينه والآخر عن شماله، قال: فلما ركع وضعنا أيدينا على ركبنا، قال: فضرب أيدينا وطبق بين كفيه، ثم أدخلهما بين فخذيه، قال: فلما صلى، قال: إنه ستكون عليكم أمراء يؤخرون الصلاة عن ميقاتها، ويخنقونها إلى شرق الموتى، فإذا رأيتموهم قد فعلوا ذلك،فصلوا الصلاة لميقاتها، واجعلوا صلاتكم معهم سبحة، وإذا كنتم ثلاثة فصلوا جميعا، وإذا كنتم أكثر من ذلك،فليؤمكم أحدكم، وإذا ركع أحدكم فليفرش ذراعيه على فخذيه، وليجنأ، وليطبق بين كفيه، فلكأنى أنظر إلى اختلاف أصابع رسول الله صلى الله عليه وسلم فأراهم. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: الندب إلى وضع الأيدي على الركب فى الركوع ........

**دَ ابن الملقن رحمه الله دَ احنافو طرف ته دَ يوې مسئلې په نسبت کښې سهو:** علامه ابن الملقن رحمه الله "التوضيح لشرح الجامع الصحيح" کښې دَ احنافو مذهب هم دغه نقل کړې دې.[1]

**دَمذکوره سهو رد:** علامه عینی رحمه الله په دې باندې رد کولوسره فرمائیلی دی چه دَ علامه ابن الملقن رحمه الله دا نسبت کول صحیح نه دی. بلکه دَ احنافو مذهب په دې مسئله کښې هم هغه دې کوم چه په حدیث کښې ذکر شو چه امام کله دَ دوو مقتدیانو امامت کوی نو پخپله به وړاندې اودریږی او دواړه مقتدیان به شاته صف کښې اودریږی نه چه هم په دغه صف کښې دَ امام نه ښی او ګس طرف ته. البته دَ امام ابویوسف رحمه الله یو روایت دې چه امام به دَ دغه دواړو په مینځ کښې اودریږی.[2]

**دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ مذهب جواب:** دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دَ دې موقف درې جوابونه ورکړې شوې دی:

① هغوی ته به دَ حضرت انس رضي الله عنه دا مذکوره حدیث نه وی رسیدلې.[3]

② هغوی به داسې دَ جمات دَ تنګیدو یا بل څه عذر دَ وجې نه کړې وی نه دَ سنت ګڼرلو دَ وجې.[4]

③ امام بیهقی رحمه الله په معرفة السنن والآثار کښې ذکرکړی دی چه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم په مونځ کولو اولیدلو او حضرت ابوذر رضي الله عنه دَ حضورپاك ښی طرف ته ولاړ وو مونځ ئې کولو. په دې دواړو کښې هر یو خپل مونځ ادا کولو. (یعنی داسې نه وو چه هغه دواړه حضراتو په جمع سره مونځ کولو). نوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه هغه دواړو حضراتو پسې شاته اودریدو نو حضورپاك هغه ته اشاره اوکړه چه ګس طرف ته اودریږه. نو هغه ګمان اوکړو چه دَ اودریدو هم دغه سنت طریقه ده حالانکه حقیقت دادې چه هغه ته دَدې خبرې علم نه وو چه هغه دواړه حضرات ځان له مونځ کونکی دی یا په جمع مونځ کوی. تردې ځائې پورې چه کوم روایت دَ حضرت ابوذر رضي الله عنه نه نقل دې په هغې کښې داخبره ذکرده چه په مونځ کښې هر یوکس خپل مونځ کولو.[5]

---

........ رقم الحديث: (١٢٢١). والمذكور فى تنزهة الألباب فى قول الترمذى: وفى الباب هذا: "أما حديث ابن مسعود"، فرواه مسلم:١/٣٧٨، وأبوعوانة فى مستخرجه: ٢/١٨١-١٨٠، والنسائى فى المجتبى:٢/٦٦ والكبرى: ١/٣٧٨، وأحمد:١/٤١٨، ٤١٣، وغيرهم.(نزهة الألباب وفى قول الترمذى: "وفى الباب".كتاب الصلاة: ٢/٥٥٤)

[1]) التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن الملقن: ٥/٣٧٤.

[2]) عمدة القارى: ٤/١٦٧.

[3]) البناية، كتاب الصلاة، باب: الإمامة: ٢/٣٤١.

[4]) شرح معانى الآثار، كتاب الصلاة، باب: الرجل يصلى بالرجلين، رقم الحديث: ١٨٩٣٩، ١/٣٠٧.

[5]) "فأما ما روى فى ذلك عن ابن مسعود فقد قال محمدبن سيرين: كان المسجد ضيقا، وقد قيل إنه رأى النبى صلى الله عليه وسلم يصلى، وأبوذر عن يمينه يصلى، كل واحد منهما يصلى لنفسه، فقام ابن مسعود خلفهما، فأومأ إليه النبى صلى الله عليه وسلم بشماله فظن عبدالله أن ذلك سنة الموقف، ولم يعلم أنه لا يؤمهما، وعلمه أبوذر حتى قال فيما روى عنه: يصلى كل رجل منا لنفسه". (معرفة السنن والآثار للبيهقى، كتاب الصلاة، باب: موقف الإمام والمأموم، المسألة: ٢٨٣، كيفية الوقوف لصلاة الجامعة وموضع وقوف الإمام والمأموم: ٤/١٧٦).

**دَ نوافلو دَ جمع شرعي حکم:** هم دَدې حديث مبارک نه شوافع دَ نفل په جمع باندې استدلال کړې دې[1]

ليکن دَ احنافو مذهب مختار دا دې چه دَ نوافل جمع على سبيل التداعي مکروه تحريمي ده که په رمضان کښې وي او که په غير رمضان کښې حکم عام دې.

دَ احنافو په نيز دَ ذکرشوي حديث نه چه دَ نوافلو په جمع سره دَ کولو جواز معلوميږي هغه بغير تداعي کښې داخل دې لهذا دا حديث دَ احنافو خلاف نه دې.

**دَ تداعي مطلب اوحکم:** دَتداعي مطلب دا دې چه اعلان او اهتمام اوکړې شي لهذا که بغيردَ تداعي يعني بغيردَ اعلان اودعوت وي بيا څه حرج نشته دې.

فقهاؤ کرامو دَ تداعي په حدکښې ليکلي دي که چرې يو يا دوه مقتديان وي نو تداعي نه ده او که چرې درې مقتديان وي نوهغه وخت دَدې په تداعي کښې دکيدو يا نه کيدو کښې اختلاف دې. او که چرې څلور مقتديان وي نو دا بهرحال دَ تداعي په صورت کښې داخل دي.[2]

**دَ علامه انور شاه کشميري رحمه الله رائې:** علامه انورشاه کشميري رحمه الله فرمائي "دَ نفل جمع على سبيل التداعي مکروه ده ليکن په تداعي کښې دَ دريو يا څلورو تحديد دَ صاحب مذهب نه نقل نه دې. دا خو په عملي توګه مُتعين کړې شوې دې. په دې وجه دَ تداعي نه مراد دا اخستل چه دَ نفلو دَ جمع دَپاره راؤغوښتلې شي نو زيات بهتر دې په نسبت دَ تحديد. والله اعلم بالصواب"[3]

---

[1] شرح النووي على صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: جوازالجماعة في النافلة، رقم الحديث: ١٤٩٧، ١٦٤/٥. التوضيح لشرح الجامع الصحيح: ٣٧٣/٥.

[2] الدرالمختار، كتاب الصلاة، باب الوتر والنوافل: ٤٩/٢، الحلبي الكبير، كتاب الصلاة، فصل في النوافل، ص: ٤٨، حاشية الطحطاوي على الدر المختار، كتاب الصلاة، باب: الوتر والنوافل: ٢٤٠/١، الفتاوى التاتر خانية، كتاب الصلاة، صلاة التراويح، نوع آخر في المتفرقات: ٦٧٠/١.

[3] ولاجماعة عندنا، وكره له التداعي، وهوعلى اللغة عندي، فإن الله سبحانه لما جعلنا في مكنة من تركها وفعلها رأسا. فأين ينبغي أن تتداعى له الناس؟فالنداء من خصائص المكتوبة. وفسرالحلواني بما فوق الثلاث قلت: وإنما أراد الحلواني ضبطه ليتمشى عليه العوام لا تفسيره، فإن اللفظ منكشف في معناه بين في مراده لا يحتاج إلى تفسير. فما ذكره أنسب للفتوى، ثم تتبعت النوافل الداخلة في بنية الصلاة، فوجدتها كذلك. لا جماعة فيها أيضا. وكل فيها أمير نفسه، وهوالشاكلة في جملة الأذكار الداخلة في صلب الصلاة، فتجد كلها على المقتدي أيضا، وذلك لأن كلا منهم منفرد فيها يفعلها لنفسه. فالتضمن إنما روعي حيث كان الشيئ فرضا. وليعلم أن النيابة تجري في الأقوال دون الأفعال، فهي على الكل ثم النيابة في الأقوال، إنما اعتبرت حيث كان القول مما لا بدمنه كالقراءة. أما الأقوال التي لو تركت رأسا لم تكن عليه تبعة فإنها لا تحتاج إلى عبرة النيابة. فإن قلت: إن صلاة الكسوف والاستسقاء والتراويح سنة، فلزم أن لا تكون جماعة قلت: كأن تلك مستثناة من ذلك. (فيض الباري،كتاب الصلاة، باب: صلاة النوافل، رقم الحديث: ١١٨٦، ٥٨٦/٢)، وكذا في فيض الباري، كتاب الصلاة،إذا دخل بيتا يصلي حيث شاء، رقم الحديث: ٢٢٢، ٥٥/٢ وأيضا الباب، طول السجود في قيام الليل، رقم الحديث: ١١٢٣، ٥٥٤/٢.

**د بعضې اکابرو په رمضان کښې نوافل په جمع سره اداکول** بعضې اکابرينو به د خپل تحقيق په بنياد په رمضان المبارك کښې د تراويح نه علاوه نوافلو کښې هم توله شپه قرآن کريم وئيلو او اورولو به نې. مګر دا د احنافو اصل مذهب نه دې. په دغه اکابرينو حضراتو باندې د هغوی د تبحر او تدين د وجې نه په هغوی باندې اعتراض نه شی کولې او نه به د هغوی په اتباع کښې د اصل مذهب نه اوختې شی (١)

**د محاذاة مسئله** حضرت مولانامحمدانور شاه کشميری رحمه الله فرمائی چه د حديث الباب نه معلومه شوه چه که هلك چرته يوازې وی نو هغه د سرو په صف کښې اودرول پکاردی ليکن که ښځه يوازې وی نوبيا هم د سرو په صف کښې نه شی اودرولې هغه روستو کول ضروری دی. يعنی د هلکانو روستوالې د استحباب په درجه کښې او د ښځو د وجوب په درجه کښې دې.

په دې سره د امام صاحب رحمه الله د محاذاة د مسئلې استنباط هم واضح شو. لهذا د مولانا عبدالحئ صاحب لکهنوی رحمه الله د دې حنفی مسئلې تضعيف کول يا دا سې وئيل چه امام صاحب رحمه الله سره د دې مسئلې هيڅ دليل نشته دې غلط شو. او زه وايم چه دا مسئله قوی ده څکه چه مسئله اجتهادی ده او مجتهد ته حق دې چه د دقيق فروق په رڼرا کښې هغه تاخير بيان د سنت په مرتبه کښې اوګرځوی او د ښځو تاخير په مرتبه د شرطيت او ووجوب کښې. مثلاً د احاديثو نه په جدا صف کښې ځان له په اودريدو کراهت ثابت دې تردې چه امام احمد رحمه الله خو داسې مونځ باطل ګرځوی. نيکن د دې باوجود حضورپاك په دې واقعه کښې ښځه شاته صف کښې ځان له يوازې اودرولـه او حضورپاك کله هم څوك ښځه د سرو په صف کښې اودرولو ته پرنيخوده په خلاف د هلکانو چه د هغوی ځائې هم اګرچه د سرو د صفونو نه شاته دې مګر ځان له هلك د سرو په صف کښې د صف د پوره کولو د پاره د اودرولو ثبوت موجود دې.

د دې نه هم دغه خبره واضح کيږی چه د شارع عليه السلام په نظر کښې د هلك د پاره د سرو په صف کښې د اودريدلو تحمل په بعضې صورتونو کښې کيدې شی ليکن د ښځو د پاره د دې تحمل په هيڅ صورت کښې هم نه شی کيدې. په داسې صورت کښې د امام صاحب رحمه الله د ښځو محاذاة د مونځ د پاره مبطل ګرځول د شريعت غراء ترجمانی نه ده نو نور څه دی؟

حضرت رحمه الله نوراوفرمائيل چه مولانا عبدالحئ رحمه الله په صاحب هدايه باندې هم اعتراض کړې دې چه هغه حديث ((اخروهن من حيث اخرهن الله)) ته خبر مشهور وئيلې دې. د دې جواب دادې چه د هغوی مراد د اصوليينو اصطلاح ده يعنی دا حديث متلقی بالقبول دې. بيا حضرت رحمه الله اوفرمائيل چه دا امر هم په ذهن کښې ساتل پکار دی چه په لحاظ د نظر د شارع عليه السلام په ډيرو کارونو کښې د ښځو مرتبه د سرو نه کمه ده مثلاً د دوی د جمع مونځ نشته دې او که چرې کوی هم نو امام به د سرو په شان د صف مخې ته نه اودريږی. لکه څنګه چه د بريند وجمع کيدې شی. بيا د مونځ د امامت په شان هغوی د نبوت د شرف نه هم محروم دی (٢)

---

(١) فتاوی محمود يه، کتاب الصلاة، باب: السنن والنوافل: ٢٤٩/٧.

(٢) انوارالباری: ١٦١/١٢،فيض الباری:٣٢/٢- ٣٣.

## ٢١ – باب: الصَّلاةِ عَلَى الخُمْرَةِ

دا باب دې په پوزکې باندې دَ مونځ (جائز کیدو) په بیان کښې

**دَ ترجمة الباب مقصود:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه که چرته یوسړې دا اعتراض اوکړی چه په دې باب کښې ذکرشوې حدیث هم اوس دوه احادیثه وړاندې خو تیرشوې دې بیا دَدې دوباره ذکرکولو نه څه مقصود دې؟

نودَدې جواب دادې چه هلته دا روَایت دَمسدد په طریق سره مفصل ذکر وواو دلته دَ ابوالولید په طریق سره مختصر ذکر دې نودا دوباره کول صرف دَهغه دَ موافقت دَپاره دی.[1]

**دَ شیخ الحدیث صاحب رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه دې نه مخکښې باب منعقد فرمائیلې وو. باب الصلاة علی الحصیر، اوس دَدې ځائی نه "خمرة" باندې دَ مونځ حکم ښائی. "خمرة" دَ حصیر نه وړوکې وی.

زمونږ دَ شیخ المشائخ حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله ارشاد دې. دلته نه مقصود دَ توهم لرې کول دی ځکه چه "جعلت لی الأرض طهورا" نه معلومیږی چه صرف هم په زمکه باندې به ئې مونځ کولو. لیکن زما خیال دادې چه دا توجیه دَ راتلونکی باب سره زیاته مناسب ده او زما په نیز دَدې باب غرض دادې چه دَ حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله نه نقل دی چه هغوی به په خمره باندې مونځ نه کولو اوکه چرې ضرورت به راتلو هم نودا به ئې په خاوره کښې ککړوله.

زما والد صاحب فرمائې چه خمره چونکه دَحصیر نه وړوکې وی نو په دې باندې دَ مونځ کولو په صورت کښې دَ بدن بعضې حصه دَ وړوکې کیدو دَ وجې نه په زمکه باندې وی نودَدې ځائی نه دا خودَل مقصود دی چه که چرې بعضې حصه په حصیر باندې او بعضې حصه په زمکه باندې وی نو په مونځ کښې څه بدیت نشته دې.[2]

حدیث باب [حدیث نمبر ٣٧٤]

-٣٧٨ حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ مَيْمُونَةَ قَالَتْ[3] كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يُصَلِّي عَلَى الْخُمْرَةِ.

**ترجمه حدیث:** حضرت میمونه رضی الله عنها فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به په پوزکی باندې مونځ ادا کولو.

**تراجم رجال:** په مذکوره حدیث شریف کښې ټول پنځه رجال دی:

① **ابوالولید رحمه الله:** دا ابو الولید هشام بن عبد الملك طیالسی، باهلی بصری رحمه الله دې. دَدوی

---

[1] عمدة القاري: ١٦٧/٤.

[2] تقرير بخاري شريف: ١٢٦/٢ م ١٢٧، لامع الدراري: ١٥٢/١، الكنزالمتواري: ٧٠/٤.

[3] مرتخريجه في كشف الباري، كتاب الحيض، باب:رقم الحديث: ٣٣٣.

مختصر تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: علامة الإيمان حب الأنصار كښې او تفصيلي تذكره كتاب العلم، باب: إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم دَ دويم حديث لاندې تيره شوې ده[1]

④ شعبه رحمه الله: دا امير المؤمنين شعبه بن الحجاج بن الورد عتكى الواسطى بصرى رحمه الله دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې تيره شوې ده[2]

③ سليمان الشيبانى رحمه الله: دا مشهور محدث سليمان بن ابى سليمان ابو اسحاق شيبانى كوفى رحمه الله دې. دَدوى تفصيلي تذكره كشف البارى، كتاب الحيض، باب: مباشرة الحائض، دويم حديث لاندې تيره شوې ده[3]

④ عبدالله بن شداد رحمه الله: دا مشهور محدث عبد الله بن شداد بن الهاد ليثى رحمه الله دې. دَدوى تفصيلي تذكره كشف البارى، كتاب الحيض، باب: مباشرة الحائض، دَدويم حديث لاندې تيره شوې ده[4]

⑤ حضرت ميمونه رضي الله عنها: دا أم المؤمنين حضرت ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها ده. دَدوى تفصيلي تذكره كشف البارى، كتاب العلم، باب: السمر في العلم، لاندې تيره شوې ده[5]

شرح حديث: دَ مذكوره حديث مبارك تشريح او متعلقه مباحث كتاب الحيض، باب: مباشرة الحائض[6] او كتاب الصلاة، باب: إذا أصاب ثوب المصلى امرأته إذا سجد كښې تيرشوى دى[7]

## ٢٢- باب: الصَّلَاةِ عَلَى الْفِرَاشِ

دا باب په تورشك باندې دَ مونځ كولو په جواز كښې دې

"فراش" دَ فاء زير سره، دې نه مراد تورشك دې كه دَ كپړې وى او كه دَ ورئى وغيره وى چه دَ كيناستو يا سملاستو دپاره په زمكه باندې خور كړې شى دې ته فراش يعنى تورشك وائى دَدې جمع فُروش او أفرِشة راځى[8]

---

[1] كشف البارى: ٣٨/٢، ١٥٩/٤.
[2] كشف البارى: ٦٧٧/١.
[3] كشف البارى، كتاب الحيض، باب: مباشرة الحائض، دويم حديث ص: ٢٥٠.
[4] كشف البارى، كتاب الحيض، باب: مباشرة الحائض، دويم حديث ص: ٢٥٠.
[5] كشف البارى: ٤٢٠/٤.
[6] كشف البارى، كتاب الحيض، باب: مباشرة الحائض، ص: ٢٦٠-٢٣٩.
[7] كشف البارى، كتاب الصلاة، باب: إذا أصاب ثوب المصلى امرأته إذا سجده.
[8] لسان العرب، المادة: ف. ر. ش: ٣٣٨٢/٦، تاج العروس، المادة: ف.ر.ش: ٢٩٩/١٧.

**دترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دا باب په تورشك باندې دمونځ جائز کیدو په بیان کښې دې چه په دغه تورشك باندې دغه مونځ ګذار سره څوك بنځه اوده شوی وی.
او که غالباً امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د هغه حدیث طرف ته اشاره کوی کوم چه ابو داؤد رحمه الله وغیره د حضرت عائشه رضی الله عنها روایت د اشعث په طریق سره نقل کړې دې چه هغوی اوفرمائیل: نبی کریم ﷺ به زمونږ برستن کښې مونځ نه اداکولو.[۱]
لکه چه د امام بخاری رحمه الله په نیز دا روایت ثابت نه دې یا یو داسې رائې ده چه د قبلیدو قابل نه ده.[۲]

**د حضرت ګنګوهی رحمه الله رائې:** حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه دې باب کښې او مخکینو ابوابو کښې د مغایرت کیدو هیڅ شك نشته دې. په دې باب کښې آثار او د صحابه کرامو او افعال راوړلو سره ئې دا ثابت کړی دی چه په تورشك باندې مونځ اداکول جائز دی. برابر دی چه د مونځ ګذار ټول اندامونه په دغه تورشك باندې راځی اوکه نه راځې، یعنی هغه تورشك وړوکې وی. لکه چه راتلونکی باب "السجود علي الثوب" نه ثابتیږی.[۳]
د حضرت مونا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله په دې عبارت باندې د "لامع الدراری" په حاشیه کښې حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله لیکی: زما په نیز زیاته بهتر توجیه داده چه د دې ترجمة الباب نه مقصود هغه اعتراض ختمول دی کوم چه د نبی ﷺ د قول «جعلت لی الأرض مسجدا وطهورا» نه پیدا کیږی چه د مونځ جواز صرف د زمکې سره مخصوص نه دې بلکه په تورشك وغیره باندې هم مونځ اداکول جائز دی. نو رئې اوفرمائیل چه دا اعتراض دې هم نه کیږی چه دا مقصود خود سابقه دوؤ ابوابو نه حاصل شوې دې. بیا د دې باب نه څه مقصود دې؟ څکه چه هغه دواړه بابونه په لوئې پوزکی او وړوکی پوزکی باندې د مونځ کولو د جواز په تخصیص باندې دلالت کوی اودا باب تخصیص بعد التعمیم د قبیل نه دې.[۴]

**تعلیق اول:** وَصَلَّى أَنَسٌ «عَلَى فِرَاشِهِ»
**د تعلیق ترجمه:** او حضرت انس رضی الله عنه په خپل تورشك باندې مونځ اداکړو
**د تعلیق راوی:** دا مشهور صحابی رسول حضرت انس بن مالك رضی الله عنه مشهور او معروف د رسول الله ﷺ صحابی دې. د دوی تذکره کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه، لاندې تیره شوې ده.[۵]

---

[۱] حدثنا عبیدالله بن معاذ، حدثنا أبي، حدثنا الأشعث، عن محمد ابن سیرین، عن عبدالله بن شقیق عن عائشة، قالت: کان رسول الله صلى الله علیه وسلم لا یصلی فی شُعُرنا، أو لُحُفنا. قال عُبیدالله: شكَّ أبي. (سنن أبی داؤد، کتاب الصلاة، باب: الصلاة فی شعر النساء، رقم الحدیث: ۳۶۷).
[۲] فتح الباري: ۶۳۷/۱
[۳] لامع الدراري: ۱۵۳/۱-۱۵۲.
[۴] الکنز المتواري: ۷۲/۴-۷۱.
[۵] کشف الباري: ۴/۲.

**دَتعلیق تخریج:** مذکوره اثر موصولاً المصنف لابن ابی شیبه کښې ابن مبارك عن حمید عن انس په طریق سره ذکر دې اوهم دا طاؤس رحمه الله حکایت کړې دې.[1]

**دویم تعلیق:** وَقَالَ أَنَسٌ: «كُنَّا نُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَسْجُدُ أَحَدُنَا عَلَى ثَوْبِهِ»

**دَ تعلیق ترجمه:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه مونږ به دَ نبی کریم ﷺ سره مونځ کولو نو په مونږ کښې به بعضې کسانو په خپله کپړا باندې سجده کوله.

**دَتعلیق تخریج:** مذکوره تعلیق سندا هم دَ صحیح البخاری وړاندې باب کښې راغې.[2]

**تشریح:** دَمذکوره تعلیق مکمل تشریح خو به هم په وړاندې باب کښې بیانولې شی ان شاء الله دلته صرف دومره کافی دی چه دَ "أحدنا" نه مراد "بعضنا" دې.

او دَ "علی ثوبه" په مصداق کښې دوه احتمالات دی. یو دا چه ممکن ده چه سجده هم په هغه کپړا باندې واقع کیږی کومه چه ئې اغوستې وه. او دویم احتمال دادې چه دَ اغوستونکې کپړې نه جدا څه کپړا وی، لکه څادر، رومال وغیره. او داسې به دَ سجدې دَ ځائی دَ سخت ګرم کیدو دَ وجې نه کیدل یعنی دَ هغې دَ ګرمئ نه دَ بچ کیدو دپاره.[3]

**دَتعلیق ترجمة الباب سره مناسبت:** دَدې دواړو تعلیقاتو دَ ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه کله سجده په کپړا باندې کیدله نو دا به هم په فراش باندې شمیرلې کیږی ځکه چه فراش په هر هغه څیز باندې صادق راځی کوم چه خور کړې شی.[4]

حدیث باب «ړومبې حدیث» [حدیث نمبر ۳۷۷/۳۷۵]

-۳۸۲- حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهَا قَالَتْ[5] كُنْتُ

---

[1] حدثنا أبوبكرقال: نا ابن مبارک، عن حمید، عن أنس: "كان يصلی علی فراشه". حدثنا أبوبكر قال: نا حفص، عن ليث، عن طاوس "أنه كان يصلی علی الفراش الذی مرض عليه" (المصنف لابن أبی شيبة، كتاب الصلاة، باب: في الصلاة على الفراش، رقم الحديث: ۲۸۲۶، ۲۸۲۷، ۲/۵۱۱).

[2] صحيح البخاری، كتاب الصلاة، باب: السجود على الثوب فی شدة الحر، رقم الحديث: ۳۸۵.

[3] عمدة القاری: ۴/۱۶۸، إرشادالساری: ۲/۴۶.

[4] عمدة القاری: ۴/۱۶۸.

[5] أخرجه البخاری في الصلاة فی الثياب، باب: الصلاة على الفراش، رقم الحديث: ۳۸۲، ۳۸۳، ۳۸۴. وفی سترة المصلی، باب التطوع خلف المرأة، رقم الحديث: ۵۱۳. وفی سترة المصلی، باب: الصلاة إلى السرير، رقم الحديث: ۵۰۸. وباب: استقبال الرجل وهو يصلی، رقم الحديث: ۵۱۱. وباب: الصلاة خلف النائم، رقم الحديث: ۵۱۲. وباب: من قال: لا يقطع الصلاة شئ، رقم الحديث: ۵۱۴. وباب: هل يغمز الرجل امرأته عندالسجود لكی يسجد، رقم الحديث: ۵۱۹ وفی الوتر، باب إيقاظ النبی صلى الله عليه وسلم أهله بالوتر، رقم الحديث: ۹۹۷. وفی الاستئذان، باب السرير، رقم الحديث: ۶۲۷۶ ورواه مسلم فی صحيحه، فی الصلاة، باب: الاعتراض بين يدی المصلی، رقم الحديث: ۵۱۲ وأبوداؤد فی سننه، فی الصلاة، باب: من المرأة لا تقطع الصلاة، رقم الحديث: ۷۱۱، ۷۱۲، ۷۱۳، ۷۱۴. والنسائی فی سننه، فی الطهارة، باب: ترک الوضوء من مس الرجل امرأته من غير شهوة، رقم الحديث: ۱۶۶، ۱۶۷، ۱۶۸. وفی القبلة، باب: الرخصة فی الصلاة خلف النائم، رقم الحديث: ۷۶۰. وفی جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول فی الصلاة، القسم الأول فی الفرائض، الباب الأول فی الصلاة، الفصل السادس فی شرائط الصلاة، الفرع السابع فی قبلة المصلی، النوع الأول فی المعترض بين يدی المصلی، رقم الحديث: ۳۷۱۹، ۵/۵۰۴.

أنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللّٰهِ-صلى الله عليه وسلم- وَرِجْلَايَ فِي قِبْلَتِهِ، فَإِذَا سَجَدَ غَمَزَنِي، فَقَبَضْتُ رِجْلَي، فَإِذَا قَامَ بَسَطْتُهُمَا. قَالَتْ وَالْبُيُوتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيهَا مَصَابِيحُ.

**ترجمه**: د حضورپاك زوجه مطهره حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه (اکثروختونو کښې به حضورپاك په تورشك باندې تهجد مونځ کولو او هغه وخت به) څه د حضورپاك په مخکښې اوده ووم او زما خپې به د حضورپاك په قبلې کښې (يعنی د حضورپاك د سجدې کولو په ځائي کښې به) خورې وې. کوم وخت چه به حضورپاك سجدې ته تلو نو زور به ئې پرې کولو نو ما به خپلې خپې راغونډولې. بيا چه به حضورپاك د سجدې نه اودريدو نو ما به خپلې خپې دوباره خورولې. حضرت عائشه رضي الله عنها (دا هم) اوفرمائيل چه په هغه زمانه کښې به په کورونو کښې ډيوې نه وې.

**تراجم رجال**: د مذکوره حديث شريف ټول پنځه رجال دی:

① **اسماعيل** رحمه الله: دا ابو عبدالله اسماعيل ابی اويس عبدالله بن عبدالله بن اويس اصبحی مدنی رحمه الله دې. د دوی تفصيلی تذکره کشف البارى، كتاب الإيمان، باب: "تفاضل أهل الإيمان في الأعمال"، لاندې تيره شوې ده.[1]

② **مالك** رحمه الله: دا امام دارالهجره مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر الاصبحی المدنی رحمه الله دې. د دوی تفصيلی احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: "من الدين الفرار من الفتن"، لاندې تير شوی دی.[2]

③ **ابی نضر مولی عمر بن عبيدالله** رحمه الله: دا ابوالنضر سالم بن ابی اميه دې. د عمر بن عبيدالله آزاد کړې شوې غلام رحمه الله دې. د دوی احوال كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: "المسح على الخفين"، لاندې تير شوی دی.[3]

④ **ابی سلمه بن عبدالرحمن** رحمه الله: دا د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ځوئی دې. د دوی احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: "صوم رمضان احتسابا من الإيمان" لاندې تير شوی دی.[4]

⑤ **عائشه** رضي الله عنها: دا ام المؤمنين زوجهٔ رسول، بنت ابی بكر صديق حضرت عائشه رضي الله عنها ده. د دوی احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحي د دويم حديث لاندې تيرشوی دی.[5]

**د حديث شرح**: عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: «كُنْتُ أَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجْلَايَ فِي قِبْلَتِهِ.

---

[1]) كشف البارى: ۱۱۳/۲.
[2]) كشف البارى: ۸۰/۲.
[3]) كشف البارى كتاب الوضوء، باب: "المسح على الخفين".
[4]) كشف البارى: ۳۲۳/۲.
[5]) كشف البارى: ۲۹۱/۱.

د نبي كريم ﷺ بي بي حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه زه به د حضورپاك مخې ته اوده ووم په داسې حال كښې چه زما خپې به د قبلې په خائې كښې خورې وې.
دلته مطلقًا اوده كيدل وئيل مقصود نه دي بلكه مقصود دادې چه كله د شپې د تهجد د نوافلو د پاره حضورپاك اودريدو هغه وخت په تياره كښې به زه د حضورپاك مخې ته اوده ووم. په دې عبارت كښې «وَرِجْلَايَ فِي قِبْلَتِهِ» جمله حاليه ده. د دې مطلب "فِي مَكَانِ سُجُودِهِ" دې چه د حضورپاك د سجدې كولو په خائې كښې به اوده كيدلم[1]

"فَإِذَا سَجَدَ غَمَزَنِي" بيا چه كله به سجدې ته تللو نو زور به ئې وركولو. د "غَمَزَنِي" مطلب اشاره كول دي كه هغه په سترګه وي اوكه په لاس سره وي.[2]
دې خائې كښې "غمزباليد" مراد دې.[3]
د دې معنې طرف ته واضح اشاره د سنن ابي داؤد په روايت كښې ملاويږي چه حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه كله به حضورپاك د سجدې كولو اراده كوله نو حضورپاك به زما خپه اووهله نو ما به هغه راغونډه كړه.[4]

فَإِذَا قَامَ بَسَطْتُهُمَا: بيا چه به كله حضورپاك سجده اوكړه او اودريدلو به نو ما به خپلې خپې (دوباره) خورولې. "بَسَطْتُهُمَا" كښې "هُمَا" ضمير دتثنيه دې ليكن د مستملي په روايت كښې دلته هم د واحد ضمير دې.[5]

وَالْبُيُوتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيهَا مَصَابِيحُ: په هغه زمانه كښې به په كورونو كښې ډيوې نه وې. په دې جمله كښې "الْبُيُوتُ" مبتداء ده اوباقي جمله د دې خبر دې.[6] "يومئذ" نه مراد "وقتئذ" دې يعني كوم وخت چه نبي كريم ﷺ ژوندې وو.[7]
حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي: دلته نه حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دفع د دخل مقدر فرمائي چه په ما اعتراض اونه كړې شي چه ما به خپې ولې نه راغونډولې؟ په دې وجه چه په هغه ورځو كښې ډيوه خو وه نه چه څه ښكاريدل او دا پته نه لګيدله چه د حضورپاك

---

[1] ) فتح الباري: ٦٣٨/١، عمدة القاري: ١٦٩/٤.
[2] ) بعضهم فسّر الغمز في بعض الأحاديث بالإشارة، كالرمز بالعين أو الحاجب أو باليد. (النهاية في غريب الحديث والاثر: ٣٢١/٢، تاج العروس، المادة: غ م ز: ٢٦١/١٥).
[3] ) عمدة القاري: ١٦٩/٤.
[4] ) حدثنا مسدد، حدثنا يحيى، عن عبيدالله، قال: سمعت القاسم يحدث عن عائشة، قالت: بئما عدلتمونا بالحمار والكلب، لقد رأيت رسول الله يصلي وأنا معترضة بين يديه، فإذا أراد أن يسجد غمز رجلي، فضممتها إلي، ثم يسجد. (سنن أبي داؤد، في الصلاة، باب: من قال: المرأة لا تقطع الصلاة، رقم الحديث: ٧١٢).
[5] ) عمدة القاري: ١٦٩/٤، إرشادالساري: ٤٦/٢.
[6] ) عمدة القاري: ١٦٩/٤.
[7] ) فتح الباري: ٦٣٨/١، الكوثر الجاري: ٧٠/٢.

قیام به څومره اوږد وي؟ څلور او پنځه سپارې به حضورپاك تلاوت كولو په دې وجه به نی خپې دوباره خوږولې[1]

**دَ حدیث دَترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حدیث دَ ترجمة الباب سره مناسبت دَ "كنتُ أنام" په وجه دې هغه داسې چه اوده كیدل په عام توګه باندې هم په بستره باندې وی او ترجمة الباب هم "الصلاة على الفراش" دې. بلكه دا چه په آخری حدیث كښې دَدې تصریح هم موجود ده چه مونږ به په كومه بستره باندې اوده كیدلو زه هم په هغې باندې اوده ووم[2]

**دَمذكوره حدیث شریف نه مستنبط فوائد او احكام:** دَمذكوره حدیث شریف نه ډیر فوائد او احكام مستنبط كیږي. په هغې كښې څه لاندې ذكركولې شی:

① دَدې حدیث نه دَ ښځې طرف ته مخ كول او اودریدلو سره دَ مونځ كولو جواز معلومیږي. بعضې ائمه حضراتو دَ شارع علیه السلام نه علاوه بل چاله داسې كول منع كړې دی. په دې وجه چه په دې كښې دَ فتنې ویره ده اودَ زړه اودَ نظر دَ دغه ښځې طرف ته متوجې كیدل دی. البته حضورپاك خودَدې نه پاك وو په دې وجه په هغوی باندې څه حرف نه شی راتلې. بل دا چه دَ شپې وخت وو په هغه دور كښې ډیوه وغیره هم نه وو.

② دَدې حدیث نه دَ اوده كس دَ مونځ دَ پاره دَ پاسولو استحباب هم معلومیږي.

③ دا هم معلوم شو چه په مونځ كښې په قلیل عمل سره څه حرج نه واقع كیږي.

④ داهم معلوم شو چه په تورشك باندې مونځ كول جائز دی.

⑤ دَ ښځې دَ مونځ ګذار مخې ته كیدل مونځ نه باطلوي.[3]

**دَمونځ ګذار مخې ته كه څوك ښځه وي نودَ مونځ حكم:** دَجمهور فقهاء كرام په كومو كښې چه امام ابو حنیفه، امام مالك، امام شافعي رحمهم الله شامل دی په نیز دَ یوې ښځې طرف ته مخ كول اومونځ اداكول یا دَ ښځې دَ مونځ ګذار مخې ته تیریدل مونځ نه باطلوی البته دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز دې سره مونځ باطلیږي.[4]

علامه عینی رحمه الله فرمائی په كوم حدیث كښې چه دی چه دَ ښځې، خر او دَ سپی دَ مونځ ګذار په مخكې په تیریدو سره مونځ فاسدیږي. دَ هغې جواب دادې چه دَ دوی په تیریدو سره مونځ ناقص كیږي ځكه چه زړه دغه څیزونو سره مشغولیږي. دَدې نه مراد دا نه دې چه دَدوی په تیریدو سره مونځ باطلیږي. وجه داده چه زړه دغه څیزونو سره مشغولیږي. ځكه چه دَ ښځې طرف ته كتلوسره وسوسه پیدا كیږي او خر مكروه آوازونه اوباسی او سپې په فتنه كښې اچوی او اضطراب پیدا كوی. چونكه دا څیزونه دَ مونځ دَمنقطع كولو ذریعه جوړیږي په دې وجه په دې باندې دَ مونځ دَ منقطع كیدو اطلاق اوكړې شو.

---

[1] سراج القاري: ۱۳/۲ ٤، تقریر بخاري شریف: ۳۰۶/۲.
[2] فتح الباري: ۶۳۸/۱،عمدة القاري: ۱۶۸/٤، الكوثر الجاري: ۷۰/۲.
[3] فتح الباري: ۶۳۸/۱،عمدة القاري: ۱۶۹/٤، الكوثر الجاري: ۷۰/۲.
[4] المبسوط للسرخسي، كتاب الصلاة باب: الحدث في الصلاة: ۱۹۱/۱.

دویمه خبره دا چه دَ امام احمد رحمه الله مستدل حدیث منسوخ دې او ناسخ دَ حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه حدیث دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه مونځ هیڅ یو څیز نه ماتوی «او دَمونځ په حالت کښې خپلې مخې ته تیریدونکی» تاسو په خپل قوت سره وردیکه کړئ هغه شیطان دې.

او شارع علیه السلام مونځ اداکړو په داسې حال کښې چه دَ حضورپاك اودَ قبلې په مینځ کښې حضرت عائشه رضی الله عنها وه. بل دا چه په حدیث کښې دی چه خره دَ مونځ گذارو مخې ته څریدله او په دې باندې چا هم انکار اونه کړو.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او عطاء رحمه الله اوفرمائیل چه کومه ښځه مونځ منقطع کوی دَهغې نه مراد حائضه ښځه ده. اوکه چرې دا اعتراض اوکړې شی چه بعضې احادیثو کښې راغلی دی چه سپې، خنزیر، یهودی او نصرانی مونځ منقطع کوی نودَدې جواب دادې چه دا حدیث ضعیف دې.[١]

**دَ مس مراة دَ وجې نه دَ اودس حکم:** دَدې حدیث شریف نه یوه داخبره هم معلومیږی چه ښځې سره دَ لاس لګولو دَ وجې نه اودس نه ماتیږی. په دې باره کښې دَ مذاهبو تفصیل دادې چه دَ احنافو په نیز دَ ښځې سره دَ لاس لګولو دَ وجې نه اودس نه ماتیږی. مګر چه مباشرت فاحشه اوشی[٢]

دَ شوافع په نیز ښځې سره لاس لګول ناقضِ وضو دی. لیکن دَ هغوی په نیز په دې کښې ډیر مختلف اقوال دی مثلاً:

په یو روایت کښې دَ غیرمحرم سره په لاس لګولو سره اودس ماتیږی. په دویم کښې محرم سره لاس لګول، په یو روایت کښې بغیردَ حائل نه لاس لګولو سره اودس ماتیږی. او په یو بل روایت کښې حائل سره هم لاس لګولو سره اودس ماتیږی. په یو روایت کښې دَ خوند سره لاس لګولو دَ وجې اودس ماتیږی. او په یو بل روایت کښې بغیردَ خوند نه هم ناقض دې. اوبیا ملموس (کوم له چه لاس اوړلې شی) باره کښې هم دوه روایتونه دی دَ ماتیدو او نه ماتیدو. اکثرو ترجیح ماتیدلو ته ورکړې ده.[٣]

دَ امام مالك رحمه الله په نیز کله چه په خوند سره لاس اولګولې شی نو دَ اودس ماتونکې دی[٤]

دَامام احمدبن حنبل رحمه الله په دې مسئله کښې درې روایتونه دی: یو دَ احنافو مطابق، دویم دَ شوافع مطابق او دریم دَ مالکیو مطابق[٥]

ذکرشوې حدیث مبارك دَ احنافو دلیل دې چه نبی کریم ﷺ به دَ سجدې کولو په وخت دَ

---

[١]) عمدة القاري: ٤/١٧٠-١٦٩.

[٢]) الدرالمختار، كتاب الطهارة، أركان الوضوء، ص: ٢٥، التفاوى العالمكيرية، كتاب الطهارة، الباب الأول فى الوضوء، الفصل الخامس فى النواقض: ١/١٥، تحفة الملوك، كتاب الطهارة، نواقض الوضوء، ص: ٤٢.

[٣]) المجموع شرح المهذب، كتاب الطهارة، باب: الأحداث التى ينقض الوضوء: ٢/٢٦.

[٤]) بداية المجتهد، الطهارة، الضوء، نواقض الوضوء، المسألة الثالثة: ١/٤٤-٤٣.

[٥]) المغنى لابن قدامة، الطهارة، انتقاض الوضوء بملامسة النسآء: ١/٢١٩.

حضرت عائشه رضي الله عنها خپې سره لاس لګولو هغې به راغونډولې بيا به حضور پاك سجده کوله.
علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه ممکن ده چه د دغه لاس لګولو په وخت حائل موجود وي.[1]
د دې په جواب کښې علامه ابن بطال رحمه الله وغيره د دې ترديد کړې دې چه په خپو کښې اصل هم دا دې چه هغه بغير د حائله وي لکه چه لاس بغير د حائل وي.[2]
حافظ ابن حجر رحمه الله هم يو احتمال بيان کړې دې چه ممکن دی چه دا د نبی کريم صلى الله عليه وسلم خصوصيت وي چه بغير د حائل لاس لګولو سره د حضور پاك اودس نه ماتيږی.[3] علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د خصوصيت دا دعوی بې د دليله ده.[4]

حديث باب (دويم حديث) [حديث نمبر ۳۷۶]

-۲۸۳- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ[5] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ يُصَلِّي وَهِيَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ عَلَى فِرَاشِ أَهْلِهِ، اعْتِرَاضَ الْجَنَازَةِ.

**ترجمه**: حضرت عروه رحمه الله فرمائي چه حضرت عائشه رضي الله عنها هغه ته خبر ورکړو چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم به (د هغې په حجره کښې) د خپلې بی بی په تورشك باندې اودريدو او داسې مونځ کولو چه زه به د نبی کريم صلى الله عليه وسلم او د قبلې په مينځ کښې داسې سملاستلم لکه د جنازې کټ.

**تراجم رجال**: د مذکوره حديث شريف ټول شپږ رجال دی:

① يحيى بن بكير رحمه الله: دا ابوذکريا يحيى بن عبدالله بن بكير القرشي المخزومي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، باب: کيف کان بدء الوحی د دريم حديث لاندې تير شوی دی.[6]

② الليث رحمه الله: دا امام ابوالحارث الليث بن سعد بن عبدالرحمن رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، باب: کيف کان بدء الوحی د دريم حديث لاندې تير شوی دی.[7]

③ عقيل رحمه الله: دا عُقيل بن خالد بن عَقيل رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، باب: کيف کان بدء الوحی دريم حديث لاندې او تفصيلی احوال کتاب العلم باب: فضل العلم لاندې تير شوی دی.[8]

---

[1]) شرح الكرماني: ٤/٤٧.
[2]) شرح ابن بطال: ٢/٥١.
[3]) فتح الباري: ١/٦٣٨.
[4]) عمدة القاري: ٤/١٧٠.
[5]) مر تخريجه في كشف الباري تحت الحديث السابق، الرقم: ٢٨٢.
[6]) كشف الباري: ١/٣٢٣.
[7]) كشف الباري: ١/٣٢٤.
[8]) كشف الباري: ١/٣٢٥، ٣/٤٥٥.

④ ابن شهاب رحمه الله: دا ابوبكر محمدبن مسلم، بن عبيد الله، بن عبد الله بن شهاب الزهري المدني رحمه الله دي. دَ دوی احوال كشف الباری، كتاب بدء الوحی، باب: كيف كان بدء الوحی دَ دريم حديث لاندې تير شوی دی.[1]

⑤ عروه رحمه الله: دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دي. دَدوی مختصر احوال كشف الباری، كتاب بدء الوحی، دَ دويم حديث لاندې او تفصيلی احوال كتاب الإيمان باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تير شوی دی.[2]

⑥ حضرت عائشه رضي الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابی بكر صديق رضي الله عنهما ده. دَ دوی احوال كشف الباری، كتاب بدء الوحی، دَدويم حديث لاندې تير شوی دی.[3]

**شرح حديث:** دَ مذكوره حديث مبارك تشريح دې نه مخكښې حديث كښې تيره شوې ده. البته "اعتراض الجنازة" نه يوه مسئله معلوميږی چه دَ ښځې دَ جنازې مونځ اداكولو په وخت به امام دَښځې په مينځ كښې اودريدو سره مونځ كوی. دا دَ احنافو مختار مذهب دې او راجح مذهب دَ سينې مقابل دَ اودريدو دې.[4]

علامه انورشاه كشميری رحمه الله ليكی چه اشارة (النص) كله دَ عبارت (النص) نه هم وړاندې كيږی ځكه چه دَ عبارت (النص) نه خو صرف دَ يو جزئيه صراحت ملاويږی ليكن دَ اشاره (النص) نه زياته خبره حاصليږی. مثلاً دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَ تشبيه نه دا هم معلومه شوه چه دَ مخكښې نه په ذهنونو كښې دا خبره موجود ده چه جنازه مخامخ به مينځ كښې وی ځكه چه دَ مشبه به په توګه هم هغه څيز بيانولې شی چه دَ مخكښې نه ټولو ته معلوم وی.[5]

"اعتراض الجنازة" دا لفظ دَ حرف جر مقدر سره دې يعنی "كاعتراض الجنازة" او دا به دَ مصدر محذوف صفت جوړشی يعنی تقديری عبارت به داسې جوړشی: "وهی معترضة بينه وبين القبلة اعتراضا كاعتراض الجنازة".[6]

"جنازة" دَجيم په فتحې سره هغه تخت ته وئيلی شی په كوم چه مړې كيخودې شی.[7]

**دَ روايت دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ مذكوره روايت دَ ترجمة الباب سره مناسبت ښكاره دې چه په دواړو په كښې فراش يعنی په تورشك باندې دَ مونځ اداكولو ذكر دې.[8]

---

[1]) كشف الباری: ١/٣٢٦.

[2]) كشف الباری: ١/٢٩١، ٢/٤٣٦.

[3]) كشف الباری: ١/٢٩١.

[4]) بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل: فی كيفية الصلاة علی الجنازة: ٢/٣٤٠-٣٣٩، الفتاوی الهندية، كتاب الصلاة، الباب الحادی والعشرون فی الجنائز، الفصل الخامس فی الصلاة علی الميت: ١/١٦٤، ردالمحتار، كتاب الصلاة، باب: صلاة الجنازة، مطلب: هل يسقط فرض الكفاية بفعل الصبی: ٣/١١٨.

[5]) فيض الباری: ٢/٣٤، انوارالباری: ١٢/١٦٣.

[6]) عمدة القاری: ٤/١٧١، مصابيح الجامع للدمامينی: ١/١٠٦.

[7]) المصباح للجوهری، ص: ١٩٢، النهاية فی غريب الحديث والاثر: ١/٢٩٩.

[8]) عمدة القاری: ٤/١٧١.

حديث باب (دريم حديث) [حديث نمبر ٣٧٧]

٣٨٣ - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ عِرَاكٍ عَنْ عُرْوَةَ (١) أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يُصَلِّي وَعَائِشَةُ مُعْتَرِضَةٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ عَلَى الْفِرَاشِ الَّذِي يَنَامَانِ عَلَيْهِ.

**ترجمه حديث:** د حضرت عروه رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ به په هغه بستره باندې مونځ كولو په كوم چه به هغوى (يعنى حضورپاك) او حضرت عائشه رضي الله عنها اوده كيدل. په داسې حال كښې چه حضرت عائشه رضي الله عنها به د حضورپاك او د قبلې په مينځ كښې پرته وه.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف ټول شپږ رجال دى.

① **عبدالله بن يوسف** رحمه الله: دا عبد الله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: بدء الوحى د دريم حديث لاندې تير شوى دى(٢)

② **الليث** رحمه الله: دا امام ابوالحارث الليث بن سعد بن عبدالرحمن رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى، باب: كيف كان بدء الوحى دريم حديث لاندې تير شوى دى(٣)

③ **يزيد** رحمه الله: دا ابورالرجاء يزيد بن ابى حبيب رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: إطعام الطعام من الإسلام لاندې تير شوى دى(٤)

④ **عراك** رحمه الله: دا عراك بن مالك الغفارى الكنانى المدنى رحمه الله دې.(٥) د بنى حماس سره ئې تعلق دې. (٦) د كومو استاذانو او مشائخونه چه هغوى روايت كړې دې په هغوى كښې عروه بن زبير، طلحه بن عبيد الله بن كريز الخزاعى، عبد الله بن عمر بن خطاب، ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف، ابوهريره، عبيد بن عبد الله بن عتبه، عبد المالك بن ابوبكر بن عبدالرحمن بن حارث بن هشام، محمدبن مسلم بن شهاب الزهرى، نوفل بن معاويه الدبلى، حفصه بنت عبد الرحمن بن ابى بكر صديق، زينب بنت ابى سلمه او ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها و رضي الله عنهم وغيره شامل دى.

او د دوى نه روايت كونكو كښې يزيد بى ابى حبيب مصرى، عبد الله بن عراك بن مالك، خثيم بن عراك بن مالك، عبدالعزيز بن عمر بن عبدالعزيز، سليمان بن يسار، عبد الله بن ابى سلمه ماجشون، مكحول شامى، يحيى بن سعيد انصارى او خالد بن ابى صلت وغير رحمهم الله شامل دى(٧)

---

(١) مرتخريجه تحت رقم الحديث: ٣٨٢.
(٢) كشف البارى: ١/٢٧٩.
(٣) كشف البارى: ١/٣٢٤.
(٤) كشف البارى: ١/٦٩٤.
(٥) الكاشف: ٢/٢٥٥، التاريخ الكبير للبخارى: ٧/٨٨.
(٦) تهذيب الكمال: ١٩/٥٤٧.
(٧) تهذيب الكمال: ١٩/٥٤٦، تقريب التهذيب: ٧/١٧٢.

دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه دَدوى په سماع باندې اعتراض هم كړې شوې دې. حضرت موسى بن هارون رحمه الله فرمائي چه مونږ ته دَ عراك دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه دَ سماع هيڅ علم نشته دې.[1] او ابن حبان رحمه الله دوى په ثقاتو كښې ذكر كړى دى.[2] احمد بن عبد الله العجلي رحمه الله فرمائي چه دې ثقه وو اودَ اوچتې درجې دَ تابعينو نه وو.[3] ابوزرعه رحمه الله او ابو حاتم رحمه الله فرمائي: ثقة.[4] دَ حضرت عمر بن عبد العزيز خوئى عبد العزيز رحمه الله وائي چه زما پلار (عمربن عبد العزيز) به دَعراك بن مالك رحمه الله برابر هيڅوك نه شميرل.[5] حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله فرمائي چه ما دَ عراك بن مالك رحمه الله نه زيات څوك مونځ كونكې نه دې ليدلى. هغوى به دَ هرلسو آياتونو نه پس ركوع كوله او بيا به ئې سجده كوله. په يو بل روايت كښې داسې دى چه هغوى به په هر لس آياتونو باندې ركوع كوله.[6] معن بن عيسى به دَ ثابت بن قيس نه روايت كولو سره فرمائيل چه دوى صائم الدهر وو.[7] دَ منذر بن عبد الله نه روايت دې چه دَ حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله په ملګرو كښې عراك بن مالك رحمه الله په دې معامله كښې دَ ټولو نه سخت وو چه بنى مروان په اموال فئى اودَ خلقو په مالونو كښې بې ځايه ظالمانه قبضه كړې وه چه هغه دې دَ هغه نه واپس واخستې شى. كله چه يزيد بن عبد الملك والى جوړ شو نوهغه عبد الواحد بن عبد الله نصرى دَ مدينې والى جوړ كړو. عبد الواحد بن عبد الله نصرى به حضرت عراك رحمه الله خپل ځان ته ډير نيزدې ساتلو. هغه به ئې خپل ځان سره په تخت باندې كينولو. هيڅ يو كار به ئې دَ هغه دَ مشورې نه بغير نه كولو او فرمائيل به ئې چه عراك رحمه الله يو نيك ملګرې دې.[8]

محمد بن سعد او مفضل بن غسان الغلانى قول دې چه دې دَ يزيد بن عبد الملك دَ خلافت په زمانه كښې وفات شو[9]. ابن سعد رحمه الله په طبقات كښې داهم ليكلى دى چه دَهغوى وفات په مدينه منوره كښې شوې دې.[10] دا هم وئيلې شوى دى چه دَ حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله دَ وفات نه پس دَ يزيد بن عبد الملك خلافت په يو سل يو هجرى كښې وو اودَخلورو كالو نه لږ شان زيات قائم پاتې وو.[11]

---

[1] ) تقريب التهذيب: ١٧٤/٧، ميزان الاعتدال: ٦٣/٣.
[2] ) الثقات لابن حبان: ٢٨١/٥.
[3] ) تهذيب الكمال: ٥٤٧/١٩، تهذيب التهذيب: ١٧٢/٧.
[4] ) الجرح والتعديل: ٥٣/٧.
[5] ) تهذيب الكمال: ٥٤٧/١٩، تهذيب التهذيب: ١٧٢/٧.
[6] ) تهذيب الكمال: ٥٤٧/١٩، تهذيب التهذيب: ١٧٢/٧.
[7] ) الكاشف: ٥٥/٢، الطبقات لابن سعد: ٢٥٣/٥.
[8] ) تهذيب الكمال: ٥٤٧/١٩، تهذيب التهذيب: ١٧٢/٧.
[9] ) الكاشف: ٢٢٥/٢، الثقات لابن حبان: ٢٨١/٥.
[10] ) الطبقات لابن سعد: ٢٥٣/٥.
[11] ) سير أعلام النبلاء: ٦٤/٥، تهذيب الكمال: ٥٤٩/١٩.

⑤ عروه رحمه الله: دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، دَ دويم حديث لاندې او تفصيلی احوال کتاب الإيمان باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تير شوی دی.[1]

⑥ حضرت عائشه رضي الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابی بکر صديق رضي الله عنهما ده دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، دَ دويم حديث لاندې تير شوی دی.[2]

**شرح حديث:** دَزير بحث ترجمة الباب لاندې امام بخاری رحمه الله درې احاديث راوړی دی. دَ ترجمة الباب دَ اثبات دَ پاره هم ړومبې حديث کافی وو ځکه چه ظاهره ده چه په کومه بستره باندې حضرت عائشه رضي الله عنها ملاسته وه په هغې باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ کولو. ليکن دا امر په اول حديث کښې په صراحت سره نقل نه وو. په دې وجه ئې دويم حديث ذکرکړو چه په هغې کښې تصريح وه چه دَ خپل کور والا په بستره باندې حضورپاک مونځ کولو او حضرت عائشه رضي الله عنها مخې ته دَ جنازې په شان ملاسته وه. دې نه پس په دريم روايت کښې نور تفصيل راغلو چه دا هغه بستره وه په کومه چه به دې دواړو حضراتو آرام کولو.

الغرض دَدې درې واړو رواياتو نه دَ امام بخاری رحمه الله مقصد پوره شو چه دَ خورولو کوم يو ځيز هم وی بورئی، پوزکې، تورشك وغيره اګرکه هغه دَ اوده کيدو په کار راځی په هغې باندې مونځ اداکول صحيح دی.

دا دريم حديث اګرچه مرسل دې ليکن دا په دې خبره باندې محمول دې چه حضرت عروه رحمه الله به دا حديث هم دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه اوريدلې وی لکه څنګه چه هم دا امر دَ ماقبل حديث مسند نه مترشح کيږی. او دَدې حديث مرسل دَ راوړلو نه مقصود په دې خبره باندې تنبيه ده چه بستره به ددې دواړو حضراتوَ اوده کيدو دَ پاره استعماليدله. اودا نکته هم ده چه مذکوره حديث مرسلاً او مسنداً دواړه طريقو نقل دی.[3]

**دَ روايت دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ روايت دَترجمة الباب سره په مناسبت پوره شان سره واضح دې.

## ۲۳ - باب: السُّجُودِ عَلَى الثَّوْبِ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ

داباب دې دَمونځ ګذاردَ تيزې ګرمئ دَوجې نه په کپړاباندې دسجدې کولو(دَجواز) باره کښې

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينی رحمه الله فرمائی چه دَدې باب نه مقصود دَ مونځ ګذار دَ ګرمئ دَ سختئ نه دَ بچ کيدو په خاطر دَ خپلې کپړې په غاړه يا پَلَوْ مثلاً لمن،لستونړې وغيره باندې دَ سجدې کولو جواز بيانول دی. البته دَ "الحر" قيد دَ راتلونکی حديث دَ الفاظو دَ موافقت او محافظت دَپاره دی. ځکه چه په يخنئ کښې هم داسې کول

[1] کشف الباری: ۱/۲۹۱، ۲/۴۳۶.
[2] کشف الباری: ۱/۲۹۱.
[3] عمدة القاری: ۴/۱۷۲.

جائزدى بلكه كوم حضرات چه په كپړا باندې د سجدې كولو د جواز قائل دى هغوى دا د څه حاجت سره مقيد نه منى.[1]

حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده فرمائى چه په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله په شوافع باندې ردكوى. څكه چه دهغوى په نيز په ثوب متصل باندې سجده كول مكروه دى. بلكه منفصل كيدل پكاردى. اود جمهورو په نيز دا جائز دى. امام بخارى رحمه الله د جمهورو سره دې.[2]

علامه أنورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه په رومبى باب كښې امام بخارى رحمه الله په خپله كپړا باندې د سجدې كولو جواز مطلقًا خودلې وو اودلته د سختې گرمئ د وخت قيد لگولو سره دهغې مسئله ئې هم جدا بيان كړې ده. څكه چه د آثارو نه هم دواړه شان جواز ثابتيږى. څكه چه په علم معانى كښې دا امر فيصله شوې دې چه كله په يو مقيد باندې حكم كولې شى نوهم قيود ملاحظه وى. لكه جاءنى زيد، جاءنى زيد راكبا او جاءنى زيد راكبا أمس كښې فرق دې څكه چه قيود زياتيدو سره دهغې فائدې هم زياتيږى.[3]

تعليق: وَقَالَ الحَسَنُ: «كَانَ القَوْمُ يَسْجُدُونَ عَلَى العِمَامَةِ وَالقَلَنْسُوَةِ وَيَدَاهُ فِي كُمِّهِ»

د تعليق توجمه: حضرت حسن بصرى رحمه الله اوفرمائيل: خلقو (يعنى صحابه كرامو رضي الله عنهم) به په پټكى او ټوپئ باندې سجده كوله، په داسې حال كښې چه دهغوى لاسونه به په لستونړو كښې وو.

د تعليق تخريج: دا تعليق ابن ابى شيبه رحمه الله اوعبدالرزاق رحمه الله موصولاً نقل كړې دې. دحضرت حسن بصرى رحمه الله مذكوره قول په دواړو كتابونو كښې د هشام رحمه الله په طريق سره ذكر دې وئې گورئې:

«حدثنا أبو أسامة، عن هشام، عن الحسن قال: إن أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم يسجدون وأيديهم فى ثيابهم، ويسجد الرجل منهم على عمامته»[4]

او په مصنف عبدالرزاق كښې مذكوره اثر دا دې: «عبدالرزاق عن هشام بن حسان عن الحسن قال: أدركنا القوم وهم يسجدون على عمائمهم ويسجد أحدهم ويديه فى قميصه»[5]

د تعليق رجال:

الحسن رحمه الله: دا مشهور تابعى ابوسعيد حسن بن ابى الحسن يسار بصرى رحمه الله دې. د دوى تفصيلى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا فأصلحوا، فسماهم

---

[1]) فتح البارى: ٦٣٩/١،عمدة القارى: ١٧٣/٤.

[2]) تقرير بخارى شريف: ٣٧/٣،سراج القارى: ٤١٤/٢.

[3]) انوارالبارى: ١٦٤/١٢، فيض البارى: ٣٤/٢.

[4]) المصنف لابن أبى شيبة، كتاب الصلاة، باب: فى الرجل يسجد ويداه فى ثوبه، رقم الحديث: ٢٧٥٤، ٤٩٧/٢.

[5]) المصنف لعبدالرزاق، كتاب الصلاة، باب: السجود على العمامة، رقم الحديث: ١٥٦٦، ٤٠٠/١.

المؤمنين لاندې تیر شوی دی.[1]

**دَ تعلیق تشریح:** حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی صحابه کرامو رضی الله عنهم به په پټکی او ټوپۍ باندې سجده کوله. "القوم" نه مراد اصحاب رسول صلی الله علیه وسلم دی.[2]

دَ "القلنسوة" نه مراد ټوپۍ ده. المعجم الوسیط کښې لیکلی دی: "لباس للرأس، مختلف الأنواع والأشکال" دَ سر هغه لباس کوم چه په مختلف شکلونو کښې وی په دې لفظ کښې څو لغات دی: قُلَنْسِیَة، او جمع ئې قلانِس، قلانِیس، قَلَانِیّ راځی.[3]

"یداه فی کمه" دَ بخاری رحمه الله په اکثرنسخو کښې هم دا شان دی. البته دکشمیهنی په روایت کښې "یدیه فی کمه" دی.[4]

دَ اکثرو دَ قول مطابق "یداه" مرکب اضافی به مبتداء شی او "فی کمه" دَ خپل متعلق سره خبر او پوره جمله به حال شی. تقدیری عبارت به داسې شی: "ویدا کل واحد فی کمه" "هسې مقام تقاضا کوله چه" "وأیدیهم فی أکمامهم فی ثیابهم" "وې لکه څنګه چه دَ المصنف لابن ابی شیبه په روایت کښې "وأیدیهم فی ثیابهم" دی.[5]

او دَ کشمیهنی دَ روایت مطابق به "یدیه" به حالت دَ نصب کښې وی، دَ فعل محذوف دَ وجې نه، یعنی "یجعل کل واحد یدیه فی کمه".[6]

**دَ تعلیق دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَدې اثر دَ ترجمة الباب سره مناسبت سره ډیر کوشش کولو سره ثابتولې شی څکه چه ترجمة الباب دلالت کوی "السجود علی الثوب" باندې. او دَ ثوب اطلاق په عمامه او ټوپۍ باندې نه کیږی لیکن دا باب او دَدې نه روستو درې ابوابو کښې "مباشرة الأرض" باندې دَ سجدې کولو جواز بیان شو بلکه په هغه شی باندې دَ سجدې کولو جواز معلوم شو کوم چه په زمکه باندې خور شوې یا کیخودې شوې وی. مثلاً وړوکې پوزکې، غټ پوزکې، تورشک، پټکې او ټوپۍ وغیره.[7]

---

[1] کشف الباري: ۲۲۰/۲.

[2] عمدة القاري: ۱۷۳/۴، إرشادالساري: ۴۸/۲.

[3] المعجم الوسیط، ص: ۷۵۴، معجم الصحاح للجوهري،ص: ۸۸۰.

[4] فتح الباري: ۶۳۹/۱، عمدة القاري: ۱۷۳/۴.

[5] حدثنا أبوبکر قال: نا أبو أسامة، عن هشام، عن الحسن، قال: کان أصحاب النبي صلی الله علیه وسلم یسجدون وأیدیهم في ثیابهم، ویسجد الرجل منهم علی عمامته. (المصنف لابن أبي شیبة، کتاب الصلاة، باب: في الرجل یسجد ویداه في ثوبه، رقم الحدیث: ۲۷۵۴، ۴۹۷/۲).

[6] فتح الباري: ۶۳۹/۱، عمدة القاري: ۱۷۳/۴، إرشادالساري: ۴۸/۲.

[7] عمدة القاري: ۱۷۳/۴.

لهذا په دې اعتبار سره مناسبت ثابتيږي.

**په لستونړي باندې د سجدې کولو شرط:** په لستونړي باندې د سجدې کولو شرط دا دې چه د لستونړي يا لمن کپړا پاکه وي او هغه ځائې هم پاك وي. که چرې هغه ځائې پاك نه وي نو سجده به صحيح نه وي. دغه شان په هر هغه څيز باندې د سجدې کولو هم دغه حکم دې کوم چه د مونځ ګذار د بدن سره لګيدلې دې. کله چه د هغه لاندې ځائې پاك وي نو سجده جائز او صحيح ده، اګرچه هغه ملاؤ شوې ځائې د مونځ ګذار جزء وي ليکن لستونړې او ددې نه علاوه د متصل کپړې د سجدې د پاره بغير د عذر نه خورول مکروه دي. ځکه چه دا د کبر کار دې. لهذا که د کبر د وجې نه داسې او کړې نو مکروه تحريمي دې او که د کبر اراده ئې نه وي او بغير د ضرورت او بغير د عذر نه وي نو مکروه تنزيهي دې. که چرې عذر يعني خاوره وي، کانړې وي يا د يخنئ او ګرمئ وغيره د تکليف ويره وي نو مباح دې.(١)

**د پټکی په ول باندې د سجدې کولو حکم:** د پټکی په ول باندې بغير د عذر نه سجده کول صحيح دي ليکن مکروه تنزيهي دي. کله چه ول په ټول تندي باندې وي يا د تندي په څه حصه باندې وي لکه بعضې وخت ول سست شي او تندي له راشي.

او د پټکی په ول باندې د سجدې د جائز کيدو شرط دا دې چه د سجدې ځائې پاك وي او د ول لاندې نه د زمکې سختوالې مونځ ګذار ته داسې محسوسيږي چه که سرئې نور دباؤ کړو نو نه به دباويږي. نو که تندې ئې کلك نه شو بلکه صرف ورسره اولګيدو چه که چرې دباؤ ئې کړې نو دباؤ به شي نو په داسې حال کښې سجده اونه شوه ډير خلق ددې نه غافل دي.

که چرې ول ئې په لړه شان حصه باندې دې د تندي باقي حصه زمکې باندې لګې نو سجده جائز ده. او که د پټکی ول صرف د مونځ ګذار په سر باندې دې (تندي باندې نه دې) او صرف په ول باندې سجده او کړې په زمکه باندې د هغه تندې اونه لګې نو سجده جائز نه ده، اکثر خلق ددې نه هم غافل دي.(٢)

حديث باب [حديث نمبر ٣٧٨]

-٣٧٨- حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ قَالَ حَدَّثَنِي غَالِبُ الْقَطَّانُ عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (٣) قَالَ كُنَّا نُصَلِّي مَعَ

---

(١) عمدة الفقه، كتاب الصلاة، فرائض الصلاة: ٢/٩٤.

(٢) عمدة الفقه، كتاب الصلاة، فرائض الصلاة: ٢/٩٥.

(٣) أخرجه البخاري أيضا وفي مواقيت الصلاة، باب وقت الظهر عندالزوال، رقم الحديث: ٥٤٢ وفي كتاب العمل في الصلاة، باب: بسط الثوب في الصلاة في السجود، رقم الحديث: ١٢٠٨. ومسلم في صحيحه، كتاب المساجد، باب: استحباب تقديم الظهر في أول الوقت في غير شدة الحر، رقم الحديث: ٦٢٠ وأبوداؤد في سننه، كتاب الصلاة، في الصلاة، باب: الرجل يسجدعلى ثوبه، رقم الحديث: ٦٦٠ والترمذي في سننه، في الصلاة، باب: ما ذكر من الرخصة في السجود على الثوب في الحر والبرد، رقم الحديث: ٥٨٤. والنسائي في سننه، كتاب الصلاة، باب: السجود على الثياب في الحر والبرد، رقم الحديث: ١٠٣٣. وفي جامع الأصول، حرف الصاد، الصلاة، القسم الأول في الفرائض، الباب الأول في الصلاة وأحكامها، الفصل السادس في شرائط الصلاة، الفرع الرابع في الأمكنة، النوع الأول فيه يصلى عليه، رقم الحديث: ٣٢٦٠، ٥/٤٦٨.

النبي - صلى الله عليه وسلم - فيضع أحدنا طرف الثوب من شدة الحر في مكان السجود.

**ترجمه حديث:** حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائي چه مونږ به د نبی کریم ﷺ سره مونځ کولو نو په مونږ کښې به بعضې خلقو د ګرمئ د سختوالی د وجې نه د خپلې (اغوستې شوې) کپړو غاړه د سجدې کولو په ځائی کیخودله.

**تراجم رجال:** مذکوره حديث شريف کښې ټول پنځه رجال دی.

① ابوالوليد هشام بن عبد الملك رحمه الله: دا ابوالوليد هشام بن عبد الملك الباهلی الطيالسی المصری رحمه الله دې. د دوی مختصر تذکره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب علامة الإيمان حب الأنصار لاندې او تفصيلی تذکره كتاب العلم، باب: إثم من كذب على النبی صلى الله عليه وسلم لاندې تيره شوې ده.[1]

② بشر بن المفضل رحمه الله: دا بشر بن المفضل بن الاحق البصری رحمه الله دې. د دوی تذکره كتاب العلم، باب: قول النبی صلى الله عليه وسلم: رب مبلغ أوعى من سامع لاندې تيره شوې ده.[2]

③ غالب القطان رحمه الله: د دوی پوره نوم ابو سليمان غالب بن خُطاف دې. چاته چه ابی غيلان القطان وئيلی شی. دوی ته ابو عفان البصری هم وئيلې شی.[3]

دې د يو قول مطابق مولی عبد الله بن عامر بن كُريز دې. دويم قول د مولى بن تميم دې دريم قول د مولى بن غنم دې او د څلورم قول مطابق دا مولى بنی راسب دې.[4]

خَطاف: د خاء په فتحې سره د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل دې. او د خاء په ضمې سره د ابن معين رحمه الله او علی بن المدينی رحمه الله نه نقل دې.[5]

دې چه د کومو استاذانو او شيوخو نه روايت کوی په هغوی کښې بکر بن عبد الله المزنی، ابوالجوزاء، اوس بن عبد الله الربعی، الحسن البصری، سعيد بن جبير، سليمان بن الاعمش، عمرو بن شعيب، مالك بن دينار، محمد بن سيرين، ابوالمهزم التيمی وغيره رحمهم الله شامل دی.

او د دوی نه روايت کونکو کښې بشر بن المفضل، اسماعيل بن عليه، حزم بن ابی حزم القطعی، حماد بن معقل البصری، خالد بن عبد الرحمن السلمی، الخليل بن ذكريا الشيبانی، دويد بن مجاشع، الربيع بن صُبيح، سهيل بن ابی حزم القُطعی، سلام بن ابی مطيع، شعبه بن الحاج رحمهم الله وغيره شامل دی.[6]

---

[1] كشف البارى: ٢/٣٨، ٤/١٥٩.
[2] كشف البارى: ٤/٢٢٢.
[3] تهذيب الكمال: ٢٣/٨٤ التاريخ الكبير للبخارى: ٤/١٠٠-٩٩.
[4] الثقات لابن حبان: ٧/٣٠٨، الجرح والتعديل: ٧/٤٦.
[5] تهذيب الكمال: ٢٣/٨٤ تهذيب التهذيب: ٥/٢٤٢.
[6] تهذيب الكمال: ٢٣/٨٥ تهذيب التهذيب: ٨/٢٤٢.

دَ دوی باره کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی ثقة، ثقة.[1] يحيى بن معين رحمه الله او امام نسائی رحمه الله فرمائی: ثقة.[2] ابو حاتم رحمه الله فرمائی: صدوق صالح[3]. عمار بن عمر بن المختار دَخپل پلار نه روایت کولو سره وائی: حدثنا غالب القطان وكان والله من خيار الناس.[4] ابن حبان رحمه الله دَدوی تذکره کتاب الثقات کښې کړې ده.[5] دَ دوی روايات بخاری، مسلم او ابن ماجه کښې دَ بشر بن المفضل رحمه الله په واسطې سره نقل دی.[6]

④ بكر بن عبدالله رحمه الله: دا بكر بن عبد الله بن عمرو بن هلال المزنی رحمه الله دې. دَ دوی تفصيلی تذکره كشف الباری، كتاب الغسل، باب: عرق الجنب وأن المسلم لاينجس لاندې تيره شوې ده[7]

⑤ انس بن مالك رضی الله عنه: دا مشهور صحابی رسول حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې. دَ دوی تذکره كشف الباری، كتاب الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوې ده[8]

**شرح حدیث:** "طرف ثوبه" دا جمله دَ "يضع" فعل دَ پاره مفعول جوړيږی. مراد دا چه دَ ګرمئ دَ سختوالی دَ وجې نه دَ سجدې په ځائی کښې به هرسړی خپله کپړا کیخودله. اوس دا کپړا خپله اغوستې شوې کپړا وه یا دَ بدن نه چرته جدا پرته وه، کومه چه به ئی خورولـه او په هغې باندې به سجده کولې شوه؟

نو که دَ هغه زمانې په اعتبار سره اوکتلې شی نو ښکاره خبره ده چه دَ کپړو دَ قلت زمانه وه. لهذا هم هغه کپړا مراد کيدې شی کومه چه اغوستې شوې وه نه چه جدا کپړا، خاص کر دَ کپړې اضافت هم دا ښائی[9]

او ددې نه هم واضحه الفاظ په صحيح مسلم، سنن ابی داؤد او سنن ابن ماجه کښې دی چه "بسط ثوبه فيسجد عليه"[10]

---

[1]) سير أعلام النبلاء: ٢٠٦/٦، الجرح والتعديل: ٦٤/٧
[2]) الطبقات لابن سعد: ٢٧١/٧، تهذيب الكمال: ٨٦/٢٣
[3]) الجرح والتعديل: ٦٤/٧، تقريب التهذيب: ٣/٢.
[4]) تهذيب التهذيب: ٦٤٢/٨، تهذيب الكمال: ٨٥/٢٣
[5]) الثقات لابن حبان: ٣٠٨/٧.
[6]) ميزان الإعتدال: ٣٣١/٣، تهذيب الكمال: ٨٧/٢٣.
[7]) كشف الباری، كتاب الغسل، باب: عرق الجنب وأن المسلم لا ينجس.
[8]) كشف الباری: ٢/٤.
[9]) عمدة القاری: ١٧٤/٤.
[10]) حدثنا يحيى بن يحيى، حدثنا بشر بن المفضل، عن غالب القطان، عن بكر بن عبدالله، عن أنس بن مالك قال: كنا نصلی مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فی شدة الحر. فإذا لم يستطع أحدنا أن يمكن جبهته من الأرض، بسط ثوبه، فسجد عليه. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب السجود على الثوب فی شدة الحر، رقم الحديث: ٦٢٠). حدثنا أحمد بن حنبل، حدثنا بشر – يعنی: ابن المفضل –، حدثنا غالب القطان، عن بكر بن عبدالله عن أنس........

اوډ سنن نسائي په روايت كښې دى «كنا إذا صلينا خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم بالظهائر سجدنا على ثيابنا اتقاء الحر»[1]

اوډ المصنف په روايت كښې دى «كنا نصلى مع النبى صلى الله عليه وسلم فى شدة الحر والبرد، فيسجد على ثوبه»[2]

**ډ حديث ډ ترجمة الباب سره مناسبت:** ډمذكوره حديث شريف ډ ترجمة الباب سره مناسبت په پوره شان سره واضح دې[3]

**ډحديث شريف نه مستفاد امور او اداب:** ① ډمذكوره حديث شريف نه معلومه شوه چه په مانځه كښې په قليل عمل سره مونځ نه فاسديږى.

② كپړا ډ تندې لاندې خورول او په هغې سجده كولو سره هم په مونځ كښې څه فرق نه راځى كه هغه كپړا متصل وى اوكه غير متصل.

**په كپړا باندې ډ سجدې كولو باره كښې ډ ائمو مذاهب:** ډ ګرمۍ يا يخنۍ ډ سختوالى په وخت كله چه تندې په زمكه باندې نه لګى. په خپل بدن باندې ډ اغوستې شوې كپړې څه حصه خورول او په هغې باندې سجده كول ډ امام ابوحنيفه رحمه الله، امام مالك رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز جائز دى[4]

......بن مالک، قال:كنا نصلى مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فى شدة الحر، فإذا لم يستطع أحدنا أن يمكن وجهه من الأرض بسط ثوبه، فسجد عليه. (سنن أبى داؤد، كتاب الصلاة، باب: الرجل يسجد على ثوبه، رقم الحديث: ٦٦٠).
حدثنا إسحاق بن إبراهيم بن حبيب قال: حدثنا بشر بن المفضل، عن غالب القطان، عن بكر بن عبدالله عن أنس بن مالک، قال:كنا نصلى مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فى شدة الحر، فإذا لم يقدر أحدنا أن يمكن جبهته، بسط ثوبه، فسجد عليه. (سنن ابن ماجة، كتاب الصلاة، باب: السجود على الثياب فى الحر والبرد، رقم الحديث: ١٠٣٣).

[1] أخبرنا سويد بن نصر، قال: أنبأنا عبدالله بن المبارک، عن خالد بن عبدالرحمن هوالسلمى، قال: حدثنى غالب القطان، عن بكربن عبدالله المزنى، عن أنس قال:كنا إذا صلينا خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم بالظهائر سجدنا على ثيابنا اتقاء الحر.(سنن النسائى، كتاب الصلاة، السجود على الثياب، رقم الحديث ١١١٧).

[2] حدثنا أبوبكر قال: نابشر بن الفضل، عن غالب، عن بكر، عن أنس، قال: كنا نصلى مع النبى صلى الله عليه وسلم فى شدة الحر، فإذا لم يستطع أحدنا أن يمكن وجهه من الأرض بسط ثوبه فسجد عليه (المصنف لابن أبى شيبة، كتاب الصلاة، باب: فى الرجل يسجدعلى ثوبه من الحر والبرد، رقم الحديث ٢٧٨٥، ٣٦٩/١)

[3] عمدة القارى: ١٧٤/٤.

[4] بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل: وأما سننها فكثيرة: ١/٦٤٠، البحرالرائق، كتاب الصلاة، فصل: فى اللغة فرق ما بين الشيئين: ٢١٢٠/١، حاشية الطحطاوى على مراقى الفلاح، كتاب الصلاة، باب: شروط الصلاة: ١٥٥/١، المدونة الكبرى كتاب الصلاة، السجود على الثياب والبسط: ١٧١/١، مواهب الجليل فى الشرح الكبير، كتاب الصلاة، فى فرائض الصلاة، فرع: فرش خمرة فوق البساط وصلى عليها: ٢٥٧/٢، المغنى لابن قدامة، كتاب الصلاة، فصل: مباشرة الأعضاء والسجود للمصلى: ١٩٧/٢، الإنصاف، كتاب الصلاة، صفة الصلاة: ٦٨/٢، المبدع شرح المقنع، كتاب الصلاة، فى صفة الصلاة: ٤٠٣/١.

خو امام شافعي رحمه الله ددې قائل نه دې. دهغوی په نیز د بدن سره متصل کپړا خوروړل او په هغې سجده کول خو جائز نه دی خو چه کومه کپړا د بدن نه جدا وی نو په هغې باندې سجده کولو کښې څه حرج نشته دې. یعنی کومه کپړا چه په بدن باندې د پاسه ده دهغې څه حصه دسجدې په ځائې کیږدی او هغه حصه دمونځ گذار په حرکت سره خوزیږی نو په هغې باندې سجده کول جائز نه دی. او که هغه کپړا دومره لویه ده چه د سجدې کولو په ځائې هغه پرته وی او د هغې باقی حصه مونځ گذار اغوستې ده، که هغه رکوع ته ځی یا سجده کوی یا قیام کوی نو په دې ټولو حالتونو کښې هغه کپړا نه خوزیږی نو بیا په داسې کپړا باندې د سجدې کولو اجازت دې. یا بیا د مونځ نه خارج کپړا باندې د سجدې کولو اجازت دې. د هغوی په نیز ددې وجه داده چه د مونځ گذار په بدن باندې کومه کپړا وی هغه هم د بدن د جزء په شان کیدو د وجې د مونځ کونکی سره ده لهذا لکه څنګه چه د بدن په څه حصه باندې سجده نه شی کیدې بلکه په زمکه باندې سجده کول ضروری دی. دغه شان په دغه متصل کپړا باندې سجده کول هم صحیح نه دی.[1]

## ۲۴- باب: الصَّلَاةِ فِي النِّعَالِ

داباب دې په بیان د څپلو سره د مونځ د حکم باره کښې

"فی النعال" دا فی د ملی په معنی ده. یا د باء په معنی؟علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا د ظرفیه په معنی اخستل صحیح نه دی.[2] په دې صورت کښې به مطلب داشی چه څپلو سره یعنی څپلې اچولو سره مونځ کول څنګه دی؟

نعال جمع ده د نعل، ددې معنی ده څپلې او هرهغه څیز کوم سره چه خپه بچ کولې شی.[3]

**د مذکوره باب د ماقبل سره مناسبت:** ددې باب او د ماقبل باب مناسبت دادې چه هلته د مخ د هغه کپړې سره لګیدل وو په کوم چه سجده کولې شوه. اوس د خپې دهغه څپلې سره لګیدل دی کومه چه په خپه کښې اچولې شوې ده.[4]

حدیث باب [حدیث نمبر ۳۷۹]

| ٣٨٦- حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو مَسْلَمَةَ سَعِيدُ بْنُ يَزِيدَ الْأَزْدِيُّ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ[5] أَكَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يُصَلِّي فِي نَعْلَيْهِ قَالَ نَعَمْ. |
|---|

[1] العزيز شرح الوجيز، كتاب الصلاة، كيفية الصلاة: ٥٢١/١، الحاوی الكبير للماوردی، كتاب الصلاة، باب: صفة الصلاة: ١٦٤/٢، روضة الطالبين، كتاب الصلاة، باب: فی صفة الصلاة: ٣٦٣/١.

[2] عمدة القاری: ١٧٦/٤.

[3] معجم الصحاح للجوهری، ص: ١٠٥٣.

[4] فتح الباری: ٦٤٠/١، عمدة القاری: ١٧٤/٤.

[5] أخرجه البخاری أيضاً فی اللباس، باب: النعال السبتية، رقم الحديث: ٥٨٥ ومسلم فی صحيحه، فی المساجد، باب: جواز الصلاة فی النعلين، رقم الحديث: ٥٥٥ والترمذی فی جامعه، فی الصلاة، باب: ما جاء فی الصلاة فی النعال، رقم الحديث: ٤٠٠ والنسائی فی سننه، فی القبلة، باب الصلاة فی النعلين، رقم الحديث: ٧٧٦ وابن ماجة فی سننه، فی الصلاة، باب: الصلاة فی النعال، رقم الحديث: ١٠٣٧ وفی جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فی الصلاة، الباب الأول: فی الصلاة وأحكامها، الفصل السادس: فی شرائط الصلاة، الفرع الثانی: فی طهارة اللباس، رقم الحديث: ٣٦١٨، ٤٤٥/٥.

**ترجمه حديث:** حضرت سعيد بن يزيد رحمه الله وائي چه ما د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چه آيا نبي كريم ﷺ به په خپلو څپلو (پنړو) كښې مونځ كولو؟ نو هغوى جواب راكړو چه آو (نبي كريم ﷺ د څپلو سره مونځ كولو).

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف ټول څلور رجال دي:

① آدم بن ابى اياس رحمه الله: دا ابو الحسن آدم بن ابى اياس عبد الرحمن العسقلانى رحمه الله دي. د دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تيره شوې ده[1]

② شعبه رحمه الله: دا امير المؤمنين شعبه بن الحجاج بن الورد عتكى الواسطى بصرى رحمه الله دي. د دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې تيره شوې ده[2]

③ ابومسلمه سعيد بن يزيد الازدى رحمه الله: دَدوى پوره نوم سعيد بن يزيد بن مسلمه الازدى دي. دوى ته الطاحى هم وئيلى شى[3]. الطاحى دَ قاضى په شان دې چه دَ الا زد يوه محله الطاحيه طرف ته منسوب دې[4] دا نسبت ابن حبان رحمه الله دَ الطاحى په ځائے الطحان ذكر كړې دې[5] علامه مغلطائى رحمه الله دا نسبت ذكر كول جيد نه دى ګرځولى[6]
دَدوى كنيت ابو مسلمه البصرى القصير دې[7]
مَسلمه په ميم فتحه، دَسين سكون او دَ لام فتحې سره دې. بعضې خلق دا دَ ميم ضمې او لام كسرې سره نقل كوى هغه صحيح نه دې[8]
دوى چه د كومو استاذانو او مشائخو نه روايت كوى په هغوى كښې انس بن مالك، ابونضره، عكرمه، ابى قلابه، مطرف، يزيد بن عبد الله بن الشخير، حسن بصرى، شقيق بن نور وغيره رحمهم الله شامل دى. اودَ دوى نه روايت كونكو كښې شعبه، ابراهيم بن طهمان، حماد بن زيد، عبادبن عوام، خالد بن عبد الله، بشر بن المفضل، ابن عُليه، يزيد بن زريع وغيره رحمهم الله شامل دى[9]

---

[1]) كشف البارى: ١/٦٧٨.
[2]) كشف البارى: ١/٦٧٧.
[3]) تاريخ البخارى الكبير: ٢/٥٢٠، الكاشف: ١/٣٢٨، إكمال تهذيب الكمال: ٥/٣٧٢.
[4]) تهذيب الكمال: ٤/١٠٠، إحكام الأحكام شرح عمدة الأحكام: ١/٢٥٨.
[5]) الثقات لابن حبان: ٤/٢٧٩.
[6]) إكمال تهذيب الكمال: ٥/٣٧٢.
[7]) التاريخ الكبير للبخارى: ٢/٥٢٠ تهذيب الكمال: ١١/١١٤.
[8]) إكمال تهذيب الكمال: ٥/٣٧٣.
[9]) تهذيب الكمال: ١١/١١٥، تهذيب التهذيب: ٤/١٠٠.

ابو حاتم رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائي: صالح.[1] یحیی بن معین رحمه الله او امام نسائی رحمه الله فرمائي: ثقة[2]. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ابن سعد، العجلی او ابوبکر ابزار هم دَدوی توثیق کړې دې.[3] ابن حبان رحمه الله دوی په الثقات کښې بیان کړی دی[4]

④ انس بن مالك رضي الله عنه: دا مشهور معروف صحابی رسول حضرت انس بن مالك بن نضر خزرجی انصاری رضي الله عنه دې. دَ دوی تذکره کشف الباری، کتاب الایمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوی ده.[5]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائي چه دَ حضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې که څپلو سره څوك مونځ اوکړی نو په دې کښې څه بدیت نشته دې ځکه چه په قرآن پاك کښې دی ﴿فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ﴾ او مونځ خودَ وادی مقدس نه هم افضل دې. ځکه چه "المصلی یناجی ربه" راغلې دې. نو ابهام به راتلو چه مونځ هم په څپلو کښې نه دی جائز کیدل پکار. چنانچه امام بخاری رحمه الله په دې باب سره دَ دې جواز ثابتوی. بعضې علماء داسې فرمائي چه دَعربو په څپلو کښې خو مونځ جائز دې په هندی څپلو کښې نه دې. دَدې وجه داده چه دَ هغوی څپلئ بالکل دَ چپړو په شان وی لکه دَ نعلین شریفین دَ نقشې مبارکې نه معلومیږی[6]

**شرح حدیث:** دَ مذکوره حدیث شریف نه داخبره ثابتیږی چه څپلو سره مونځ اداکول په دې شرط سره جائز دې چه هغه پاکې وی. اودا خبره دَ رسول الله ﷺ، صحابه کرامو رضي الله عنهم او دَ تابعینو رحمهم الله دَ آثارو نه ثابته ده.

علامه سیوطی رحمه الله داخبره دَدې امت دَ خصوصیاتو نه شمیر کړې ده[7]

علامه مقرئی رحمه الله په خپل کتاب فتح المتعال في مدح النعال کښې دَ حافظ زین الدین العراقی رحمه الله یو سوال او جواب نقل کړې دې په کوم کښې چه حافظ صاحب رحمه الله لیکلی دی چه (دَ بخاری شریف دَدې حدیث نه) معلومیږی چه په څپلو کښې مونځ اداکول دَ حضور پاك عادت مستمره وو[8]

---

[1]) الجرح والتعدیل: ٤/٧٤.

[2]) خلاصة الخزرجي،ص:١٤٥. تهذیب الکمال:١١/١١٥.

[3]) تهذیب التهذیب: ٤/١٠١.

[4]) الثقات لابن حبان: ٤/٢٧٩.

[5]) کشف الباری: ٢/٤.

[6]) سراج القاری: ٢/٤١٦.

[7]) أنموذج اللبيب فى خصائص الحبيب، الباب الأول: فى خصائص التى اختص بهادون جميع الأنبياء. الفصل الثاني: فيما اختص به فى شرعه وأمته فى الدنيا، ص: ٩٠.

[8]) فتح المتعال فى مدح النعال، بحث جواز الصلاة فى النعل،ص: ٩٣. دارالقاضى للتراث.

دا دي جواب علامه عبدالحئ لکهنوي رحمه الله په خپل کتاب غاية المقال فيما يتعلق بالنعال کښې دا ورکړې دې چه د حافظ عراقي رحمه الله د دوام او استمرار والا خبره د منلو قابل نه ده ځکه چه په حديث کښې په دې خبره باندې دلالت کونکې هيڅ څيزنشته دې. آو دا ممکن ده چه په حديث کښې موجود لفظ "كان" نه استدلال کړې شوې وی چه دا د استمرار معنى پيدا کوی ليکن په دې باره کښې په دې خبره ځان پوهول پکار دی چه لفظ "كان" أصالةً په دوام او استمرار باندې دلالت نه کوی لکه چه امام نووي رحمه الله په خپله شرح مسلم کښې ليکلی دی.[1] لهذا د دې نه به هم دليل نيول صحيح نه وی.[2]

ابن دقيق العيد رحمه الله ليکی چه د دې حديث شريف نه د خپلو اچولو سره د مونځ ادا کولو د جواز علم کيږی. ليکن دا مناسب نه دی چه د دې عمل د استحباب قول اختيار کړې شی ځکه چه دا امر د مونځ مطلوب معنى کښې داخل نه دې. په دې باندې که اعتراض اوکړې شی چه خپلې اچولو سره ښائست حاصليږی. چنانچه لکه ځنګه په مانځه کښې د خو کپړو په ذريعه ښائست حاصلول مطلوب دی، دغه شان په دې معامله کښې هم کيدل پکار دی؟

نو د دې جواب دا دې چه ستاسو خبره منلې شوې ده مګر خبره دا ده چه مونږ خپلې اچولو سره په زمکه باندې ګرځو حالانکه په زمکه باندې پليتئ پرتې وی د کوم په وجه چه خپلې هم پليتيږی. د دې په وجه په مونځ کښې د خپلو د وجې نه د حاصليدونکې ښائست حکم ساقطيږی. دغه شان دلته د خپلو د ښائست او د خپل ځان نه د نجاست والا څيزونه لرې کولو کښې تعارض پيدا شو. د کوم په ذريعه چه به د نجاست ختمولو ته ترجيح ورکولې شی. لهذا په مونځ کښې به خپلې کوزولو سره مونځ کولو ته ترجيح ورکولې شی ځکه چه هغه نجاست سره ګکړ وی او د خپلو په ذريعه به ښائست حاصلول مرجوح شی.[3]

علامه شامی رحمه الله ذکر کړی دی چه تاتارخانيه کښې دې چه د يهودو د مخالفت په غرض پاکې خپلې يا موزې اچولو سره مونځ اداکول افضل دی.[4]

طبرانی رحمه الله المعجم الکبير کښې حديث نقل کړې دې ((صلوا في نعالكم ولا تشبهوا باليهود)).[5]
علامه سيوطی رحمه الله په جامع الصغير کښې دا حديث صحيح ګرځولې دې. هم په دې وجه حنابله دا فعل سنت ګرځوی اګرچه د دې په اچولو سره په لارو کوڅو کښې ګرځيدلې شی

---

[1]) شرح النووي، كتاب الحج، باب: الاشتراک في الهدي واجزاء البقرة، رقم الحديث: ٣٣٢٧،٤٦١/٤.
[2]) إحكام الأحكام شرح عمدة الأحكام، رقم الحديث: ٩٤، الصلاة في النعلين، ص: ٥٠. غاية المقال فيما يتعلق بالنعال، مسألة: يجوز الصلاة في النعلين،ص:٢١.
[3]) إحكام الأحكام شرح عمدة الأحكام، الحديث: ٩٤، الصلاة في النعلين، ص: ٢٠.
[4]) التاتر خانيه، كتاب الصلاة، الفصل الرابع: في بيان مايكره للمصلي: ٥٧١/١.
[5]) عن هلال بن ميمون، عن يعلى بن شداد، عن أبيه، أو غيره من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم، شك هلال، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: صلوا في نعالكم، ولا تشبهوا باليهود. (المعجم الكبير للطبراني، رقم الحديث: ٧١٦٤، ٢٩٠/٧).

ځکه چه نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو ﷢ به ځپلو سره دمدينې په لارو کوڅو کښې ګرځيدل اوبيا به ئې هم دغې کښې مونځ اداکولو.
علامه شامی ﷫ فرمائی زه وايم که چرې دځپلو دَ وجې نه دَ جمات ګرد اودوړې وغيره سره ککړکيدل ثابتيږی نوبيا بغيردَ ځپلونه اداکول بهتر دی اګرچه پاکې وی. مسجد نبوی خو دَ حضورپاک په زمانه کښې هم داسې وو چه ددې په فرش باندې به کانړی او باجرې وغيره خواره وو په خلاف زمونږ دَ زمانې چه نن صبا خو په مسجد نبوی او نورو جماتونوکښې قالينونه وغيره خواره دی.
او په عمدة المفتی کښې دَ ذکر شوې قول چه په جمات کښې ځپلې اچولو سره داخليدل بې ادبی ده، محمل به ئې هم دغه وی.[1]
علامه انور شاه کشميری ﷫ فرمائی زما رائې داده چه په ځپلوکښې مونځ کول زيات نه زيات دَمباح (بلاکراهت) په درجه کښې دې مستحب نه دې. لهذا په شامی کښې يو ځائی دې باره کښې مستحب ليکل اوبل ځائی مکروه تنزيهی دَ تحقيق خلاف دی. زما په نيز حقيقت امر دادې چه حضرت موسیٰ ﷺ ته په کوه طور باندې دَ رسيدو په وخت دَ نعلين دَ کوزولوَ دَ حکم نه يهودو مطلقا ممانعت ګنړلې وو. په دې وجه دهغوی په نيز په يو صورت کښې هم نعلين سره مونځ کول جائز نه دی. هم ددغه غلطۍ او سختۍ شريعت محمديه اصلاح کړې ده اومطلق جواز ئې باقی ساتلې دې. بعضې رواياتو کښې "خالفوا اليهود" هم راغلې دې. معلومه شوه چه په کومو رواياتو کښې ځپلو سره دَ مونځ حکم راغلې دې هغه هم دَ يهودو دَ مخالفت دپاره دې ددې دَ پاره نه چه هغه فی نفسه دَ شريعت مطلوب دې چه ګنی مستحب دې اوګنړلې شی.
موطا امام مالك کښې دکعب احبار ﷫ نه روايت موجود دې چه دَ حضرت موسیٰ ﷺ نعلين دَ مړ خر دَ څرمن وې په دې وجه دهغې دَ کوزولو حکم شوې وو.[2]
ما دَ قرآن پاك دَ ظاهرنه داګنړلې دی چه دَ نعلين کوزولو حکم "تأدبا" وو هم په دې وجه ددې نه مخکښې ﴿إِنِّىٓ أَنَا۠ رَبُّكَ﴾ فرمائيلې شوی دی. لکه چه سبب دَخلع طرف ته اشاره ده. لهذا دې نه به عدم جواز هم نه ثابتيږی. غرض دا چه په ادب سره دَ جواز تعليم ملاويږی که امر خلع ددې وجې نه اوګنړلې شی کوم چه کعب ذکر کړې دې يا په دې وجه وی دَ کوم طرف ته چه قرآنی الفاظ اشاره کوی. اودَ يهودو دَعدم جواز والا دَ حکم هيڅ ګنجائش نشته دې. شريعت محمديه دغه شان په نورو ډيرو مواضعو کښې هم دَ يهودو دګمانونو تغليط او اصلاح کړې ده. يعنی په کومو امورو کښې چه هغوی غلط شوی دی اوهغوی دَ حقيقت نه لرې شوی دی زمونږ شريعت حقيقت واضح کولو سره دهغوی دَ غلطيانو اصلاح کړې ده.[3]

[1] ردالمحتار، کتاب الصلاة، باب: مايفسد الصلاة وما يکره فيها، مطلب: فی أحکام المسجد: ۱۹۹/٤دارالثقافة.
[2] مؤطاامام مالک، الجامع، ماجاء فی النعال، رقم الحديث: ۳۳۹۶.
[3] انوارالباری: ۱۶۵/۱۲، فيض الباری:۲/۳۵-۳٤.

**دنعال نه څه مراد دي؟** علامه کشمیری رحمه الله فرمائي چه دهغه زماني نعال (څپلئ) زمونږ د زماني د څپلو نه مختلف وې او غالب دادی چه په دې څپلو کښې به مونځ صحيح هم نه وی ځکه چه خپې په دې کښې دننه وی په زمکه باندې نه لګی بلکه پورته زورندې وی لهذا سجده به کامل نه وی.[1]

علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله فرمائي چه دلته دا خبره په خيال کښې اوساتئ چه په عربو کښې نعل صرف څپلو ته نه شی وئيلې بلکه نعل په اصل کښې چپړو ته وئيلې شی او د عربو چپړې به داسې وې چه دهغې په اچولو سره به د خپو ګوتې بالکليه د زمکې نه جدا نه پاتې کيدې بلکه د هغې په (اچولو سره به هم) خپې زمکې سره ملصق وې. باقی دا نن صبا زمونږ چه کومې څپلئ دی مثلاً بوټ، دې ته په عربی کښې نعل نه وائی بلکه مداس ورته وائی. دا بوټ يا د دې قسم چه کومې څپلئ هم وی دکوم په اچولو سره چه سجدې ته تللو کښې خپې د زمکې نه اوچتې وی داسې څپلئ اچولو سره مونځ صحيح نه دې ځکه چه د سجدې په وخت خپې زمکې سره لګيدل پکار دی.

داخبره هم په خيال کښې ساتئ چه کومه څپلئ د عربو د نعل په شان وی (او پاکې هم وی) په هغې کښې مونځ اګرچه جائز دې مګر نن صبا د دې په اچولو سره جمات ته نه دی تلل پکار ځکه چه نن صبا په جماتونو کښې قيمتی فرش وی (هغه څپلئ په ګرد او دوړو وغيره) سره ککړې وی. په مسجد نبوی کښې خو فرش نه وو شنګير خور وو.[2]

علامه سهارنپوری رحمه الله فرمائي په څپلو کښې د مونځ اداکولو حکم د يهودو د مخالفت د وجې نه ورکړې شوې دې او زمونږ په دې زمانه کښې مناسب دادی چه برېندې خپې د مونځ ادا کولو حکم ورکړې شی ځکه چه هغوی د څپلو سره خپل عبادت کوی.[3]

**دحديث د ترجمة الباب سره مناسبت:** دمذکوره حديث د ترجمة الباب سره مناسبت په پوره شان واضح دې.[4]

## ۲۵- باب: الصَّلَاةِ فِي الخِفَافِ

داباب په موزو کښې د مونځ کولو باره کښې دې.

"خفاف" بکسر الخاء، د خف جمع ده. د دې معنی د څرمن نه جوړې شوې موزې دی.[5]

**دترجمة الباب مقصد:**

حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده فرمائي چې شراح د دې باب باره کښې هم دا فرمائي چې چونکه خفاف په لباس کښې داخل دې په دې وجه ئې د دې ذکر اوفرمائيلو. او

---

[1] فيض الباري: ۳٤/۲، العرف الشذي، كتاب الصلاة، باب: ماجاء في الصلاة في النعال، رقم الحديث ۹۳،۱۲۷/۱، انوار الباري:۱۶۵/۱۲.

[2] فضل الباري:۱۰۱/۳، فتح الملهم، كتاب الصلاة، باب: جواز الصلاة في النعلين، رقم الحديث:٦٠.

[3] بذل المجهود، كتاب الصلاة، باب: الصلاة في النعل، رقم الحديث: ٦٥٢، ٣٢١/٤-٣٢٠.

[4] عمدة القاري: ١٧٦/٤.

[5] القاموس المحيط: ۱۳۱/۳، المعجم الوسيط، ص:۲۷۷.

زما رائې دا ده چه د صلاة في الخفاف اولويت بيانوي، ځکه چه په ابوداؤد کښې دي: خالفوا اليهود، فإنهم لايصلون في نعالهم ولا خفافهم، ، نوپه دې باب کښې امام بخاري رحمه الله دې اولويت طرف ته اشاره فرمائيلې ده.[1]

حديث باب [حديث نمبر ۳۸۰]

-۳۸۷ حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ إِبْرَاهِيمَ يُحَدِّثُ عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ[2] قَالَ رَأَيْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ، وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، فَسُئِلَ فَقَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- صَنَعَ مِثْلَ هَذَا. قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَكَانَ يُعْجِبُهُمْ، لأَنَّ جَرِيرًا كَانَ مِنْ آخِرِ مَنْ أَسْلَمَ.

**ترجمه حديث:** حضرت همام بن حارث رحمه الله فرمائي چه ما حضرت جرير به عبدالله رضي الله عنه اوليدلو چه هغوی متيازې اوکړې، بيائې اودس اوکړو او په خپلو دواړو موزو باندې ئې مسح اوکړه او مونځ ئې اوکړو. د هغه نه تپوس اوکړې شو (چه دا تاسو څه اوکړه) نو هغوی جواب ورکړو چه ما رسول الله ﷺ په داسې کولو ليدلې دې.

حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي داحديث د خلقو ډير خوښ وو ځکه چه حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه په اسلام قبلولو کښې د آخرى سرو نه وو.

**تراجم رجال:** د دې حديث ټول شپږ رجال دي:

① **آدم بن ابي اياس رحمه الله:** دا ابوالحسن آدم بن ابي اياس عبدالرحمن العسقلاني رحمه الله دې. د دوی تذکره کشف الباري، کتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تيره شوې ده.[3]

② **شعبه رحمه الله:** دا امير المؤمنين شعبه بن الحجاج بن الورد عتکي الواسطي بصري رحمه الله دې. د دوی تذکره کشف الباري، کتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې تيره شوې ده.[4]

③ **اعمش رحمه الله:** دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدي کوفي الاعمش رحمه الله دې. د دوی تذکره

---

[1] تقرير بخاري شريف: ۲/ ۱۳۷.

[2] رواه مسلم في الطهارة، باب: المسح على الخفين، رقم الحديث: ۲۷۲ وأبوداؤد في سننه، في الطهارة، باب: المسح على الخفين، رقم الحديث: ۱۵٤ والترمذي في جامعه، في الطهارة، باب: في المسح على الخفين، رقم الحديث: ۹۳ والنسائي في سننه، في الطهارة، باب: المسح على الخفين، رقم الحديث: ۱۱۸ وابن ماجة في سننه، في الطهارة، باب: ماجاء في المسح على الخفين، رقم الحديث: ٥٤۳ وفي جامع الأصول، حرف الطاء، الكتاب الأول: في الطهارة، الباب الرابع: في الوضوء، الفصل الثالث: في المسح على الخفين، الفرع الأول: في جواز المسح، رقم الحديث: ٥۲۷٤، ۷/ ۲۳۷.

[3] كشف الباري: ۱/۶۷۸.

[4] كشف الباري: ۱/۶۷۸.

کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: ظلم دون ظلم، لاندې تیره شوې ده[1]

④ ابراهیم رحمه الله: دا ابوعمران ابراهیم بن یزید بن قیس بن اسود نخعی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: ظلم دون ظلم، لاندې تیر شوې دی[2]

⑤ همام بن حارث رحمه الله: دَدوی پوره نوم همام بن الحارث النخعی الکوفی رحمه الله دې.[3] دې دَ اهل شام دَ طبقه اولی تابعی وو[4]. دَدوی په استاذانو اومشائخوکښې حضرت جریر بن عبدالله البجلی، حذیفه بن الیمان، عبدالله بن مسعود، عدی بن حاتم، عمار بن یاسر، عمر بن الخطاب، مقداد بن الاسود، ابو مسعود الانصاری او ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها و رضی الله عنهم وغیره شامل دی.

اودَدوی نه روایت کونکوکښې ابراهیم نخعی، سلیمان بن یسار او وبره بن عبدالرحمن وغیره رحمهم الله شامل دی.[5]

ابن حبان رحمه الله دې په ثقاتو کښې ذکرکړې دې.[6] یحیی بن معین رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی: ثقة.[7] ابوالحسن المدائنی رحمه الله دوی دَ اهل کوفه په عبادوکښې ذکرکوی.[8]

دې به دَ شپې لړشان وخت اوده کیدو اکثر به ئې شپه په وینښه په عبادت کښې تیرولے.

اواکثر به ئې دا دعا کوله "اللهم اشفنی من نومی بیسیر، واجعل سهری فی طاعتك"[9] کله چه به دوی اوده شو اوپاسیدل به نودَ هغوی مخ ته په کتو به پته لګیدله چه دې تولـه شپه نه دې اوده شوې[10]. دَ دوی دَ وفات باره کښې ابن حبان رحمه الله لیکلی دی چه دې دَ یزید بن معاویه په زمانه کښې په ۶۳هجری کښې وفات شو. او "قیل" سره یو قول داهم ذکرکړې شوې دې چه دې دَ عبدالله بن یزید په امارت کښې ۶۵هجری کښې وفات شوې دې[11]. خو په تاریخ دَ ابن قانع کښې دی چه په ۶۱هجری کښې وفات شوې دې. او تاریخ خلیفه کښې دی چه ۶۴هجری کښې وفات شوې دې[12]

---

[1] کشف الباری: ۲۵۱/۲.

[2] کشف الباری: ۲۵۳/۲.

[3] التاریخ الکبیر للبخاری: ۲۳۶/٤.خلاصة الخزرجی، ص: ٤١١.

[4] الطبقات الکبری لابن سعد: ۱۱۸/۶.

[5] تهذیب الکمال: ۲۹۷/۳۰، تهذیب التهذیب: ۶۶/۱۱.

[6] کتاب الثقات لابن حبان: ۵۱۰/۵.

[7] الجرح والتعدیل: ۱۳۱/۹، سیرأعلام النبلاء: ۲۸٤/٤.

[8] حلیة الأولیاء: ۱۷۸/٤.

[9] الطبقات الکبری لابن سعد: ۱۱۶/۶، سیرأعلام النبلاء: ۲۸٤/٤.

[10] إکمال تهذیب الکمال: ۱۶٤/۱۲.

[11] الثقات لابن حبان: ۵۱۰/۵. تهذیب التهذیب: ۶۶/۱۱.

[12] إکمال تهذیب الکمال: ۱۶٤/۱۲، تهذیب التهذیب: ۶۶/۱۱

⑥ جرير بن عبدالله رضي الله عنه: دا مشهور صحابي حضرت جرير بن عبد الله بجلي كوفي رضي الله عنه دې. دَ دوی تذکره کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: قول النبی صلی الله علیه وسلم الدین النصیحة، لاندې تیره شوې ده.[1]

شرح حديث: عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ، قَالَ: رَأَيْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ «بَالَ، ثُمَّ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى»: حضرت همام بن حارث رحمه الله روایت کوی چه ما حضرت جریر بن عبد الله رضي الله عنه اولیدلو چه هغوی متیازې اوکړې بیائې اودس اوکړو او په خپلو موزو باندې ئې مسح اوکړه، بیا دَ مانځه دَ پاره اودریدو او مونځ ئې اداکړو.

دَ دومره خبرې ظاهر هم دادې چه هغوی هم په موزو کښې مونځ اداکړو. ځکه چه که چرې هغوی موزې کوزې کړې وې نو په هغوی باندې به خپې وینځل ضروری کیدل دَ کوم په وجه چه به هغوی خپې وینځلې. چنانچه که چرې دا قول هرڅه کیدل نو دا به نقل کولې هم شو اودلته دا قول هرڅه ذکر نه دی. دکوم نتیجه چه دا شوه چه داسې هیڅ نه دی شوی.[2]

قوله: فَسُئِلَ: نو حضرت جریر بن عبد الله رضي الله عنه نه دَهغوی په موزو باندې دَ مسح کولو او هم په موزو کښې دَ مونځ اداکولو باره کښې پوښتنه اوکړې شوه چه دا تاسو څه اوکړل؟[3]

سائل څوک وو؟: طبرانی رحمه الله یو روایت ذکر کړې دې دکوم نه چه معلومیږی چه دَ حضرت جریر بن عبد الله رضي الله عنه نه تپوس کونکې حضرت همام بن الحارث رحمه الله وو.[4]

او هم په معجم الکبیر کښې امام طبرانی رحمه الله یو روایت نقل کړې دې په کوم کښې چه دی.

«فعاب ذلك عليه رجل من القوم»[5]

قوله: فَقَالَ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ مِثْلَ هَذَا»: نو حضرت جریر بن عبد الله رضي الله عنه اوفرمائیل چه ما نبی کریم صلی الله علیه وسلم په داسې کولو لیدلې دې. یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم داسې په

---

[1]) کشف الباري: ٢/٧٦٤.

[2]) فتح الباري: ٦٤١/١،عمدة القاري: ١٧٨/٤.

[3]) فتح الباري: ٦٤١/١،عمدة القاري: ١٧٨/٤.

[4]) حدثنا أسلم بن سهل الواسطي، لنا محمد بن حسان البرجاني، لنا محمد بن يزيد الواسطي، عن جعفر بن الحارث، عن سليمان، عن إبراهيم، عن همام بن الحارث، قال: بال جرير ثم توضأ ومسح على خفيه، فقلت له: أتفعل هذا وقد بلت؟ قال: فإني رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم بال ثم توضأ، ومسح على خفيه. (المعجم الكبير للطبراني، باب الجيم،جرير بن عبدالله البجلي، رقم الحديث: ٢٤٢٨، ٣٤٣/٢).

[5]) حدثنامحمد بن النضر الأزدي، لنا معاوية بن عمرو، لنا زائدة: عن الأعمش، عن إبراهيم، عن همام بن الحارث، قال: بال جرير، فتوضأ ومسح على الخفين، فعاب ذلک علیه رجل من القوم، فقال جرير: إن أفعل فقد رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم فعل هذا. (المعجم الكبير للطبراني، باب الهمام بن الحارث، رقم الحديث ٢٤٢٣،٢/٧٤١).

نوټ: فتح الباری اوعمدة القاری کښې "فعاب علیه ذلک" دی، خو په اصل کتاب کښې "فعاب ذلک علیه" دی یعنی دَ ذلک او علیه تقدیم اوتاخیردی. اوګورئی: فتح الباری: ٦٤١/١، عمدة القاری: ١٧٨/٤.

موزو باندې مسح اوکړه اوبیانئ هم په هغه موزو کښې مونځ اداکړو[1].

**قوله: قَالَ إبْرَاهِيمُ: «فَكَانَ يُعْجِبُهُمْ لِأَنَّ جَرِيرًا كَانَ مِنْ آخِرِ مَنْ أَسْلَمَ»** حضرت ابراهیم رحمه الله فرمائی چه دا حدیث دَخلقو ډیر خوښ وو ځکه چه دَحضرت جریر رضی الله عنه اسلام قبلول په آخره زمانه کښې وو. دَ ابراهیم نه مراد هم ابراهیم نخعی رحمه الله دې کوم چه په سند کښې ذکر دې[2].

دَ "فکان" ضمیر مرجع به "حدیثِ جریر" وی کوم چه دَ سیاق اوسباق نه په پوهه کښې راځی. او "یعجبهم" کښې "هم" ضمیر دَ قوم طرف ته راګرځی.[3]

دَ حضرت جریربن عبدالله رضی الله عنه داحدیث خلقوته ځکه ډیر خوښ وو چه کوم خلق دَ نبی کریم ﷺ دَ حیات طیبه په آخره کښې مسلمانان شوی وو په هغوی کښې حضرت جریر رضی الله عنه هم وو. لهذا دَهغوی په اودس کښې په موزو باندې مسح کول اوبیا دا وئیل چه ما دغه شان په موزو باندې مسح کولو سره نبی کریم ﷺ هم لیدلې دې. دادې خبرې دلیل دې چه دَ رسول الله ﷺ په موزو باندې ږ مسح کولو عمل تر آخره پورې وو.

دَ صحیح مسلم په روایت کښې دَ حضرت جریر رضی الله عنه باره کښې دا الفاظ دی «لأن إسلام جرير كان بعد نزول المائدة»[4]

اوسنن ابی داؤد کښې دَ شهربن حوشب په روایت کښې دا الفاظ دی: «إنما كان ذلك قبل نزول المائدة، قال: ما أسلمت إلا بعد نزول المائدة»[5]

او سنن الترمذی کښې دَ شهربن حوشب په روایت کښې دی چه هغوی تپوس اوکړو چه تاسو نبی کریم ﷺ دَ سورة مائده دَ نزول نه مخکښې په داسې کولو لیدلې دې که روستو؟ نوهغوی جواب ورکړو چه زه خو مسلمان شوې دَ سورة المائدة دَ نزول نه پس يم يعنی هم دَ نزول مائده نه پس ما نبی کریم ﷺ په داسې کولو لیدلې دې.

---

[1]) إرشادالساري: ۲/ ۵۰.

[2]) عمدة القاري: ۴/ ۱۷۸، إرشادالساري: ۲/ ۵۰.

[3]) عمدة القاري: ۴/ ۱۷۸، إرشادالساري: ۲/ ۵۰.

[4]) حدثنا يحيى بن التميمي، وإسحاق بن إبراهيم، وأبو كريب، جميعا عن أبي معاوية،ح، وحدثناأبوبكر بن أبي شيبة، حدثنا أبومعاوية ووكيع واللفظ ليحيى، قال أخبرنا أبومعاوية، عن الأعمش، عن إبراهيم، عن همام، قال: بال جرير، ثم توضأ، ومسح على خفيه، فقيل: تفعل هذا؟ فقال: نعم، رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم بال، ثم توضأ ومسح على خفيه. قال الأعمش: قال إبراهيم: كان يعجبهم هذا الحديث لأن إسلام جرير، كان بعد نزول المائدة. (صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب: المسح على الخفين، رقم الحديث: ۲۷۲).

[5]) حدثنا علي بن الحسين الدرهمي، حدثنا ابن داؤد، عن بكير بن عامر، عن أبي زرعة بن عمرو بن جرير أن جريرا بال ثم توضأ فمسح على الخفين، وقال: ما يمنعني أن أمسح وقد رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسح، قالوا: إنما كان ذلك قبل نزول المائدة، قال: ما أسلمت إلا بعد نزول المائدة. (سنن أبي داؤد، كتاب الطهارة، باب: المسح على الخفين، رقم الحديث: ۱۵۴).

امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث مفسر دې ځکه چه بعضې منکرین په موزو باندې د مسح باره کښې دا خبره ذکرکوی چه په موزو باندې مسح نبی کریم ﷺ د سورت مائده د نزول نه مخکښې کړې وه خو حضرت جریر رضی الله عنه په دې حدیث کښې دا خبره ذکرکوی چه هغه د سورت مائده د نزول نه پس نبی کریم ﷺ په موزو باندې په مسح کولو لیدلې دې[1]

**د علامه کشمیری رحمه الله قول:** علامه کشمیری رحمه الله فرمائی چه د سورت مائده آیت: ﴿ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ نه حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم په اودس کښې د خپو د وینځلو فرضیت ګڼړلې وو. په دې وجه د حضرت جریر رضی الله عنه په فعل او روایت مذکوره باندې ډیر زیات خوشحاله شوې وو ځکه چه په دې آیت سره په موزو باندې د مسح خفین د منسوخ کیدو وهم کیدې شو. اوهغه د هغه فعل او د روایت د وجې نه ختم شوې وو. اودا خبره واضحه شوې وه چه په موزو باندې د مسح حکم د مائده د مذکوره آیت نه پس هم هغه شان باقی دې. لیکن د صحابه کرامو رضی الله عنهم د علم اوفهم خلاف روافضو دا ګڼړلی چه د مائده د مذکوره آیت مطابق په اودس کښې دننه په هرحالت کښې او بغیرد موزو هم په خپو باندې مسح کول پکار دی. وینځل ئې فرض نه دی. اود خوارجو او امامیؤ په نیز په موزو باندې مسح صحیح نه ده. هغوی هم د دې سورت مائده د آیت نه دا ګڼړلی ده چه د مسح حکم صرف د خپو د پاره دې لهذا د موزو اچولو په حالت کښې به په دې باندې مسح کول جائز نه وی. د دې دواړو فرقونو نه علاوه ټولو ائمه مجتهدینو اود ټولو علماء کرامو سلف اوخلف هم دغه مذهب دې چه بغیرد موزو نه په اودس کښې د خپو وینځل فرض دی اود موزو په حالت کښې په دې باندې مسح کول جائز دی.

او په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې صرف د حضرت عائشه رضی الله عنها، ابن عباس، اود حضرت ابوهریره رضی الله عنه طرف ته د عدم جوازمسح علي الخفين قول منسوب کړې شوې دې. اول خودا نسبت ضعیف دې. بل دا چه هم د دې حضراتو نه د جواز د ثبوت د پاره قوی روایات موجود دی. او داهم ممکن دی چه اول ئې هغه خیال وو او بیا ئې د هغې نه رجوع کړې وی. والله تعالی اعلم.

په ائمه کښې د امام مالك رحمه الله طرف ته هم انکار منسوب شوې دې لیکن علامه ابن عبدالبر مالکی رحمه الله فرمائیلی دی ماته معلومه نه ده چه د فقهاء سلف نه چاهم په موزو د مسح نه انکار کړې وی. البته د امام مالك رحمه الله طرف ته د دې نسبت کړې شوې دې مګر په

---

[1] ويروى عن شهربن حوشب، قال: رأيت جرير بن عبدالله توضا، ومسح على خفيه، فقلت له في ذلک، فقال: رأيت النبي صلى الله عليه وسلم توضأ، ومسح على خفيه، فقلت له: أقبل المائدة، أم بعد المائدة؟ فقال: ما أسلمت إلا بعد المائدة، حدثنا بذلک قتيبة، قال: حدثنا خالد بن زياد الترمذي، عن مقاتل بن حيان، عن شهر بن حوشب، عن جرير. وروى بقية، عن إبراهيم بن أدهم، عن مقاتل بن حيان، عن شهربن حوشب، عن جرير.وهذا حديث مفسر لأن بعض من أنكر المسح على الخفين تأول أن مسح النبي صلى الله عليه وسلم على الخفين كان قبل نزول المائدة، وذكر جرير في حديثه أنه رأى النبي صلى الله عليه وسلم مسح على الخفين بعد نزول المائدة. (سنن الترمذي، كتاب الطهارة، باب:المسح على الخفين، رقم الحديث: ٩٤).

هغې کښې چه کوم صحیح روایات دی هغه دَ ثبوت صراحت کوی[۱]

**په موزو باندې مسح یو اجماعی مسئله ده:** صاحب بدائع الصنائع فرمائی چه دَ صحابه کرامو په موزو باندې مسح باره کښې قولاً او فعلاً اجماع ده. تردې چه حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه ما اویا بدری صحابه رضی الله عنهم لیدلی دی چه هغوی ټولو به په موزو دَ مسح روایت کولو.

هم په دې وجه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په موزو باندې دَ مسح دَ جواز عقیده ساتل دَ اهل سنت والجماعت دَ شرطونو نه یو شرط دې. هغوی اوفرمائیل چه دَاهل سنت علامت دا دې چه تاسو شیخین (حضرت ابوبکر او حضرت عمرفاروق رضی الله عنهما) ته فضیلت ورکړئی او دوو خومانو (حضرت عثمان او حضرت علی رضی الله عنهما) سره محبت اوساتئ، په موزو باندې مسح جائز اوګڼرئی او دَ کهجورو نبیذ حرام مه ګرځوئی.

دَامام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې چه ما ترهغه وخته پورې په موزو باندې مسح جائز اونه ګرځوله ترکومې پورې چه دَدې جواز په ما باندې دَ رڼرا ورځې په شان واضح نه شو. اودَدې نه انکار کول په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې رد کول دی او هغوی په خطا باندې ګرځول دی. په دې وجه علامه کرخی رحمه الله فرمائیلی دی څوك چه په موزو باندې دَ مسح نه انکار اوکړی ماته په هغه باندې دَ کفر ویره ده. دَ حضرت عائشه رضی الله عنها او براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دې چه حضورپاك دَ سورت مائده دَ نازلیدو نه پس مسح کړې ده. اودَ حضرت جریر بن عبدالله البجلی رضی الله عنه نه روایت دې چه هغوی نبی کریم ﷺ اولیدلو چه حضورپاك اودس اوکړو او په موزو باندې ئی مسح اوکړه. دَ هغه نه پښتنه اوکړې شوه چه دَ سورت مائده دَ نازلیدلو نه پس حضورپاك داسې اوکړه؟ نوهغوی جواب ورکړو چه ما خو هم دَ سورت مائده دَ نازلیدلو نه پس اسلام قبول کړې دې.[۲]

**دَمذکوره حدیث دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَترجمة الباب سره مناسبت دَ حدیث شریف دَدې جملې ((ومسح علی خفیه، ثم قام، فصلی)) نه پوره واضح دې[۳]

**دَ حدیث شریف نه مستنبط فوائد اواحکام:** دَ مذکوره حدیث شریف نه ډیر فوائد مستنبط کیږی، مثلاً:

① دَخلقو په موجودګئ کښې متیازې کول جائز دی، اګرچه سنت دا دی چه دَخلقو نه دې لرې لاړشی او دې کړی[۴]

② په موزو باندې مسح کول جائز دی.[۵]

---

[۱] انوار الباری: ۱۲/ ۱۶۷، فیض الباری: ۲/ ۳۶.
[۲] بدائع الصنائع، کتاب الطهارة، باب: المسح علی الخفین: ۱/ ۱۳۰دارالکتب العلمیه.
[۳] عمدة القاری: ٤/ ۱۷۷.
[٤] عمدة القاری: ٤/ ۱۷۹.الشرح المیسر: ۱/ ٤۳۹.
[٥] عمدة القاری: ٤/ ۱۷۹.الشرح المیسر: ۱/ ٤۳۹.

③ په احكام كښې دَ يو حكم به باقي پاتې كيدو يعنى نه منسوخ كيدو باندې دَ خوشحالئ اظهاركول خوښ كړې شوې امر دې.[۱]

④ موزې اچولو سره مونځ كول جائز دې.[۲]

حديث باب: دويم حديث [حديث نمبر ۳۸۱]

-۳۸۸ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ[۳] وَضَّأْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ وَصَلَّى.

**ترجمه حديث:** حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه فرمائى ما په حضورپاك باندې اودس اوكړو نو حضورپاك په خپلو موزو باندې مسح اوكړه او مونځ ئې اوكړو.

**تراجم رجال:** په مذكوره حديث مبارك كښې ټول شپږ رجال دي:

① اسحاق بن نصر رحمه الله: دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر البخارى السعدى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الغسل، باب: من اغتسل عريانا وحده فى الخلوة و من تستر فالستر أفضل، لاندې تير شوې دى.[۴]

② ابواسامه رحمه الله: دا ابو اسامه حماد بن اسامه بن زيد قرشى كوفى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: فضل من علم وعلّم، لاندې تير شوې دى.[۵]

③ اعمش رحمه الله: دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى الاعمش رحمه الله دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم، لاندې تيره شوې ده.[۶]

④ مسلم رحمه الله: دا مسلم بن صبيح رحمه الله دې يا مسلم بن عمران رحمه الله، دَدې باره كښې دوه قسم احتمالات دى ځكه چه دا دواړه حضرات دَ اعمش رحمه الله نه روايت كوى. علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا مسلم يا خو ابن عمران دې كوم چه په ابطين سره مشهوردې يا بيا ابن صبيح دې كوم چه په ابوالضحى سره مشهوردې. ليكن ظاهر دادى چه دلته مراد رومبې دې.[۷] علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَعلامه كرمانى رحمه الله دغه مذكوره دعوىٰ كول صحيح نه دى ځكه چه دلته دويم مراد اخستل زيات ظاهر دى لكه چه امام مزى رحمه الله په "اطراف" كښې تصريح كړې ده.[۸]

---

۱) عمدة القارى: ۱۷۹/٤.
۲) التوضيح لابن الملقن: ۳۶۸/٤، الشرح الميسر: ٤۳۹/۱.
۳) مرتخريجه تحت كتاب الوضوء، باب: الرجل يوضئ صاحبه.
٤) كشف البارى، كتاب الغسل، باب: من اغتسل عريانا وحده فى الخلوة و من تستر، فالستر أفضل.
۵) كشف البارى: ٤۱٤/۳.
۶) كشف البارى: ۲۵۱/۲.
۷) شرح الكرمانى: ۵۰/٤.
۸) عمدة القارى: ۱۸۰/٤.

حافظ ابن حجر رحمه الله هم د حفاظو قول ذکر کولو سره هم مسلم بن صبیح ته ترجیح ورکړې ده[1]
کوم صورت هم چه وی په دې کښې هیڅ حرج نشته دې ځکه چه دواړه هم د صحیح بخاری راویان دی او دواړه ثقه دی.[2]

که چرې مسلم بن صبیح مراد وی نود دوی ذکر کتاب الصلاة، باب: الصلاة فی الجبة الشامیة، ص:۳۵۸ کښې تیر شوې دې او که چرې مسلم بن عمران مراد وی نود دوی ذکر وړاندې کتاب العیدین، باب: فضل العمل فی أیام التشریق کښې راځی.

⑤ **مسروق رحمه الله**: دا مسروق بن الاجدع بن مالک بن امیه وداعی همدانی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: علامة المنافق، لاندې تیر شوې دی[3]

⑥ **مغیرة بن شعبه رضی الله عنه**: دا مغیره بن شعبه رضی الله عنه دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: الرجل الذی یوضئ صاحبه، لاندې تیر شوې دی[4]

**شرح حدیث**: د مذکوره حدیث مکمل تشریح کتاب الوضوء کښې تیره شوې ده.

**د مذکوره حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت**: د دې حدیث شریف مناسبت د ترجمة الباب سره واضح دې ځکه چه په دواړو کښې په موزو سره د مونځ د اداکولو ذکر دې[5]

## ۲۶ – باب: إِذَا لَمْ يُتِمَّ السُّجُودَ

داباب دې چه کله مونځ گذار سجده پوره نه کړی (نود هغه مونځ باطل دې)

**د ترجمة الباب مقصد**: داباب او د دې نه پس راتلونکې باب "یبدی ضبعیه ویجافی فی السجود" د اشکال سبب جوړ شوی دی. ځکه چه امام بخاری رحمه الله د ستر مسائل او د مصلی د طهارت مسائل بیانوی. خو دلته "إذا لم یتم السجود" ترجمه نه ستر سره متعلق ده او نه د طهارت مصلی سره متعلق ده. بلکه د دې تعلق خو د صفت صلاة سره دې او د صفت صلوة ابواب وړاندې راځی او هلته هم دا دواړه ترجمې راروانې دی چنانچه د دې ذکر بې محله دې.

د تکرار اشکال خو به هلته وی کله چه دا دوباره راشی. دلته خو په اول ځل راځی لیکن د بې محل کیدو اشکال بهرحال موجود دې. د اصیلی په نسخه کښې دا دواړه ابواب موجود دی او د مستملی په نسخه کښې دا دواړه ابواب نشته دی، نودا د نساخو غلطی ده[6]

**د حضرت شاه ولی الله رحمه الله رائې**: حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی د فربری نه دا نقل دی چه د

---

[1] فتح الباری: ۶۴۲/۱.
[2] عمدة القاری: ۱۸۰/۴.
[3] کشف الباری: ۲۸۱/۲.
[4] کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: الرجل الذی یوضئ صاحبه.
[5] عمدة القاری: ۱۷۹/۴.
[6] فتح الباری: ۶۴۲/۱.

بخاری بعضې پاڼړي جدا جدا وي. بعضې کاتبانو او ناسخينو ته دا مغالطه مخې ته شوه. هغوی دَدې پاڼړو ابواب بې محله دلته ذکر کړل. دا دَدې ابوابو مقام او محل نه دې. خبره هم يوه ده چه دا دَ ناسخينو غلطی ده[1]

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ صاحب رحمه الله فرمائی دَمستملی نسخه زياته معتبره ده. بل ځکه چه دَ هرباب په خپل مقام باندې راتلل زيات مناسب دی او بيا مصنف يعنی دَ امام بخاری رحمه الله عادت هم دا نه دې چه هغه دې ابواب مکرر راوړي. اوکه چرې دَ مناسبت لټون کول غواړی نو دا هم ممکن دی مثلاً دَدې ړومبی باب مناسبت دا جوړيدې شی چه چا په شرائطو دَ مونځ کښې څه شرط موقوف کړو نودا هم داسې دی لکه چه هغه دَ مونځ يو رکن ترک کړو. يعنی دَ دواړو مونځ به نه کيږی. نو دلته ئې دَ سجدې نه پوره کولو سره دَ مونځ عدم تماميت بيان کړې دې. او راتلونکی دَ دويم باب ماقبل سره مناسبت داسې جوړيدې شی چه په سجده کښې مجافات (يعنی متې دَخيټې نه لرې ساتل) دَستر منافی نه دی، لهذا په دې سره به مونځ نه باطليږی. ليکن فی الجمله اصل خبره هم هغه ده چه دَ دې ابوابو دلته ذکر کيدل دَ کاتبانو غلطی ده. دې سره به مونځ نه باطليږی[2]

**دَعلامه عينی رحمه الله رائې:** علامه عينی رحمه الله دَ حافظ صاحب رحمه الله ذکرکړې شوې آخری خبره (چه زما په نيز راجح هم دا دی چه دا دَ کاتبانو دَ غلطئ دَ وجې نه دی) ذکرکولو نه پس ليکی چه دَامام بخاری رحمه الله ددې دواړو ابوابو اعاده کول بغيردَ څه وجې نه دی بلکه دَدې وجه شته ځکه چه دَ امام بخاری رحمه الله عادت دې چه دَ څه فائدې دَ وجې نه تکرار کوی اوهغه دلته موجود ده. مثلاً ترجمة الباب دې: "إذالم يتم السجود" او وړاندې راتلونکی باب کښې عنوان "باب: إذالم يتم الركوع" دې.

او په دې ځائی کښې دَ امام بخاری رحمه الله استاذ الصلت ابن محمد دې چه دَعن مهدی عن واصل عن أبي وائل عن حذيفة أنه رأى رجلا........إلخ په سند سره روايت کوی. او وړاندې راتلونکی باب کښې دَ امام بخاری رحمه الله استاذ حفص بن عمر رحمه الله دې چه دَ عن شعبة عن سليمان قال: سمعت زيد بن وهب قال: رأى حذيفة رجلا.....إلخ په سند سره روايت کوی. دې نه علاوه په متن کښې هم څه قدرې تغاير شته. البته دَ دويم باب دې ځائی کښې ذکر بې محله دې. ځکه چه بالکليه دا باب هم ددې ترجمې، متن او رواتو سره وړاندې راغې.

او که چرې دا سوال اوکړې شي چه دَ اصيلی په روايت کښې خودا دواړه ابواب موجود دی. نو بيا په دې صورت کښې به ددې ابوابو دَ ماقبل ابوابو سره څه مناسبت وی؟ نودَدې جواب دادې چه مناسبت ښکاره دې چه ماقبل ابواب هم او دا دواړه ابواب هم دَ سجدو دَ حکم سره

[1]) تراجم أبواب صحيح البخاري للدهلوي، ص: ۳۱.
[2]) فتح الباري: ۱/۶۴۲.

متعلق دی[1]

**دَعلامه کشمیری رحمه الله رائې:** علامه محمد انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دا خبره ممکن ده چه دا اووئیلې شی چه فقهاؤ کرامو دَ سجدې دَ پاره شرطونه ذکرکړی دی لکه دَ سجدې په حالت کښې دزمکې سختوالې محسوسول وغیره، نو په اعتدال سره سجده کول هم دې جهت سره دَمانځه اودَ سجدې دَ شرطونو نه دې، نو په دې مناسبت ئې دا ذکرکړل[2]

علامه بدر عالم صاحب میرټهی رحمه الله هم دلته فرمائی چه په دې سره دَ سجدې تمامیت دَ مانځه دَ شرطونو نه کیدل مراد دی[3]

**دَحضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث مولانامحمد ذکریا کاندهلوی رحمه الله فرمائی دا دواړه ابواب په صفحه ۱۱۲ باندې راغی او باب: "لايكف ثوبه في الصلاة" په صفحه ۱۱۳ باندې دې. اوس شراح دا وائی چه دلته خو ابواب الثیاب روان وو په مینځ کښې دا دوه ابواب څنګه راغله؟ که وی او که نه وی خودا دَ یوکاتب تصرف دې چه په غلط ځائی باندې راغلی دی. اودَ لباس دوه ابواب کوم چه په صفحه ۱۱۳ باندې راروان دی هغه په ابواب السجود کښې لاړل، داهم دَ کاتب تصرف دې.

دَحضرت شاه ولی الله صاحب محدث دهلوی رحمه الله وغیره هم دا رائې ده اوهغوی دَ فربری نه دَدې تائید نقل کړې دې چه هغوی فرمائی چه دَ بخاری شریف په نقل کښې بعضې بعضې غلطیانې واقع شوی دی. حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چونکه دَ بخاری شریف په نسخو کښې دا باب دلته موجود دې. په دې وجه دَدې توجیه دا کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله په قیاس او نظر سره دَستر عورت اهمیت ثابتوی چه "من ترك شرطا لا تصح صلوته كمن ترك ركنا".

مګر زما رائې دا ده چه هرباب په خپل ځائې باندې دې هغه داسې چه امام بخاری رحمه الله ابواب الثیاب ذکرکول نو امام صاحب رحمه الله باب: یبدي ضبعیه لګولو سره دا اوخودل که چرې کپړې ورې ورې وی نو په سجده کښې دې اخفاء نه کوی بلکه ابداء دې اوکړی. ځکه چه پخپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ کپړې ورې کیدو باوجود ابداء اوکړه. که چرې کپړا وړه نه وې نودَ ترخ مبارك سپینوالې به ئې څنګه ښکاریدو. اودَدې دَ اثبات دَ پاره ئې باب: إذا لم يتم السجود قائم کړو چه که چرې تجافی نه کوی نو اتمام سجود به نه وی او هلته په حیثیت دَ سجدو کیفیت راځی په کوم چه به مستقل کلام وی.[4]

---

[1]) عمدة القاري: ١٨٠/٤.
[2]) فيض الباري: ٣٧/٢ أنوار الباري: ١٧١/١٢.
[3]) البدر الساري إلى فيض الباري: ٣٧/٢.
[4]) تقرير بخاري شريف: ١٣٨/٢، الكنزالمتواري: ٧٦/٤، سراج القاري: ٤١٩/٢.

حديث باب [حديث نمبر ۳۸۲]

-۳۸۹ أَخْبَرَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا مَهْدِيٌّ عَنْ وَاصِلٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ[1] رَأَى رَجُلاً لاَ يُتِمُّ رُكُوعَهُ وَلاَ سُجُودَهُ، فَلَمَّا قَضَى صَلاَتَهُ قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ مَا صَلَّيْتَ- قَالَ وَأَحْسِبُهُ قَالَ- لَوْ مُتَّ مُتَّ عَلَى غَيْرِ سُنَّةِ مُحَمَّدٍ- صلى الله عليه وسلم-.

**ترجمه حديث:** د حضرت حذيفه بن يمان رضي الله عنه نه روايت دې چه هغوى يو سړې (په مونځ كولو) اوليدلو چه هغه خپله ركوع او سجده پوره شان سره نه اداكوله. بيا چه كله هغه خپل مونځ پوره كړو نوحضرت حذيفه رضي الله عنه هغه سړي ته اووئيل چه تا مونځ (په كامل طريقه سره) ادا نه كړو (يعني په تا باندې دَدې مونځ واپس راګرځول واجب دى) حضرت ابو وائل رضي الله عنه وائى چه زما خيال دې چه حضرت حذيفه رضي الله عنه دا هم فرمائيلي وو چه كه چرې ته (په دې حالت كښې) مړ شوې نو ته به دَ حضرت محمد صلى الله عليه وسلم په طريقه باندې نه مرې.

**تراجم رجال:** دَدې حديث په سند كښې ټول پنځه راويان دى:

① صلت بن محمد رحمه الله: دَ دوى پوره نوم ابو همام الصلت بن محمد بن عبدالرحمن بن أبي مغيرة البصري رحمه الله دې[2]

دې چه دَ كومو مشائخو نه روايت كوى په هغوى كښې مهدى بن ميمون، ابراهيم بن حميد بن عبدالرحمن الرؤاسى، ابو اسامه حماد بن اسامه، حماد بن زيد، سفيان بن ريينه، عبدالله بن عبدالعزيز الليثى، عبدالواحد بن زياد وغيره رحمهم الله شامل دى.

اودَ ده نه روايت كونكو كښې امام بخارى، ابراهيم بن المستمر العروفى، احمدبن محمدبن ابى بكرالمقدمى، روح بن حاتم ابو غسان البصرى، عباس بن عبد العظيم العنبرى، عبدالرحمن بن محمد بن حبيب وغيره رحمهم الله شامل دى.[3]

ابن حبان رحمه الله دې په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې.[4] دَ ده تعلق دَ طبقه عاشره سره وو[5]

ابوحاتم رحمه الله دَدوى باره كښې وئيلى دى: صالح الحديث.[6] دارقطنى رحمه الله فرمائيلى دى: ثقة.[7]

---

[1]) أخرجه البخاري أيضا في صحيحه، كتاب الأذان، باب: إذا لم يتم الركوع، رقم الحديث: ۷۹۱، وباب: إذا لم يتم السجود، رقم الحديث: ۸۰۸ والنسائى فى سننه، كتاب السهو، باب: تطفيف الصلاة، رقم الحديث: ۱۳۱۳. وفى جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة، القسم الأول: فى الفرائض، الباب الأول: فى الصلاة، الفصل الخامس: فى كيفية الصلاة، الفرع الرابع: فى الركوع والسجود النوع الأول: مقدار الركوع والسجود، رقم الحديث:۳۴۹۵، ۳۶۷/۵. وفى تحفة الأشراف، حديث: حذيفة بن اليمان، رواه عنه زيد بن وهب الجهنى، رقم الحديث:۳۳۲۹، ۳۲/۳، ورواه عنه شقيق بن سلمة أبو وائل الأسدى، رقم الحديث: ۳۳۴٤، ۳۹/۳.

[2]) التاريخ الكبير للبخارى: ۳۰٤/٤،سير أعلام النبلاء: ٤۲٦/۱۰.

[3]) تهذيب الكمال:۲۲۸/۱۳، تهذيب التهذيب: ٤۳۵/٤.

[4]) الثقات لابن حبان: ۳۲٤/۸.

[5]) تقريب التهذيب: ٤٤۰/۱.

[6]) الجرح والتعديل: ٤۰۸/٤، الكاشف: ۳۲/۲.

[7]) تهذيب التهذيب: ٤۳٦/٤.

ابوبکر البزار رحمه الله فرمائیلي دي: کان ثقة.([1]) ابن حجر رحمه الله په تقریب کښې د دوی د پاره د صدوق لفظ استعمال کړې دې.([2])

⑥ مهدي رحمه الله: د دوی پوره نوم مهدي بن میمون الأزدي المِعوَلي رحمه الله دې.([3]) معولي د میم په کسرې او عین سکون سره اود واؤ فتحې سره دې.([4]) د دوی کنیت ابویحیی دې.([5]) د کومو مشائخو نه چه دوی روایت کړې دې په هغوی کښې واصل مولی ابي عیینه، ابوالوازع جابر بن عمرو الراسبي، حسن بصري، سعید الجریري، شعیب بن الحجاب، عبدالله بن صبیح البصري، عبیدالله بن ابي بکر، انس بن مالك، عثمان ابن عبیدالراسبي، عمرو بن مالك النکري، عمران القصیر، غیلان بن جریر او محمدبن سیرین وغیره رحمهم الله شامل دی.
او د چانه چه دوی روایت کوی په هغوی کښې ابو همام الصلت بن محمد الخارکي، اسد بن موسی، جُبارة بن مُغَلس، حبان بن هلال، حجاج بن منهال، حسن بن ربیع البجلي، خالد بن خداش او سریع بن النعمان وغیره رحمهم الله شامل دی.([6])
عبدالله بن ادریس رحمه الله وائي ما شعبه رحمه الله ته اووئیل چه تاسو د مهدي بن میمون باره کښې څه وایئ؟ هغوی په جواب کښې اوفرمائیل ثقة.([7]) د امام احمدبن حنبل رحمه الله د ځوی عبدالله بیان دې چه ما د خپل پلار احمدبن حنبل رحمه الله نه اوریدلی دی هغوی به فرمائیل مهدي بن میمون ثقة، وهو أحب إلي من سلام بن مسكين وأبي الأشهب، وحوشب بن عقيل.([8]) ابن سعد رحمه الله وائي كان كُردیا، وكان ثقة.([9]) ابن حبان رحمه الله د هغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.([10]) ابن معین رحمه الله، النسائي رحمه الله او ابن خراش رحمه الله فرمائي ثقة.([11]) دوی د طبقة سادسه سره تعلق لرلو.([12]) ابوحاتم رحمه الله بیان کړې دې چه دې د مهدي په زمانه کښې وفات شوې دې.([13]) د ابن حبان

[1]) إكمال تهذيب الكمال: ۳۹۵/۶، تهذيب التهذيب: ۴۳۶/۴.
[2]) تقريب التهذيب: ۴۴۰/۱.
[3]) تهذيب الكمال: ۵۹۳/۲۸، تقريب التهذيب: ۲۱۸/۲.
[4]) تقريب التهذيب: ۲۱۸/۲، حاشية تهذيب التهذيب: ۳۲۶/۱۰.
[5]) التاريخ الكبير للبخاري: ۴۲۵/۴، الطبقات الكبرى لابن سعد: ۲۸۰/۷.
[6]) تهذيب الكمال: ۵۹۳/۲۸، تهذيب التهذيب: ۳۲۶/۱۰.
[7]) تهذيب الكمال: ۵۹۳/۲۸، الجرح والتعديل: ۳۸۵/۸.
[8]) الجرح والتعديل: ۳۸۶/۸، تهذيب التهذيب: ۳۲۶/۱۰.
[9]) الطبقات الكبرى لابن سعد: ۲۸۰/۷.
[10]) الثقات لابن حبان: ۵۰۱/۷.
[11]) تهذيب الكمال: ۵۹۵/۲۸، تهذيب التهذيب: ۳۲۷/۱۰.
[12]) تقريب التهذيب: ۲۱۸/۲.
[13]) الجرح والتعديل: ۳۸۵/۸.

رحمه الله د بيان مطابق د دوی وفات ۱۷۱ یا ۱۷۲ هجری کښې شوې دې.(۱) او د محمد بن محبوب رحمه الله او د امام ترمذی رحمه الله د بيان مطابق ۱۷۲ هجری کښې وفات شوې دې.(۲)

④ واصل رحمه الله: دا واصل بن حيان احدب اسدی کوفی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا، فأصلحوا بينهما، لاندې تير شوې دی.(۳)

⑤ ابي وائل رحمه الله: دا مشهور تابعی ابووائل شقيق بن سلمه اسدی کوفی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهولايشعر، لاندې تير شوې دی.(۴)

⑥ حذيفه رضي الله عنه: دا مشهور صحابی رسول حضرت حذيفه بن اليمان رضي الله عنه دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: قول المحدث: حدثنا وأخبرنا وأنبأنا، لاندې تير شوې دی.(۵)

**شرح حديث:** عَنْ حُذَيْفَةَ، رَأَى رَجُلًا لَا يُتِمُّ رُكُوعَهُ وَلَا سُجُودَهُ

**ترجمه:** حضرت حذيفه رضي الله عنه يو داسې سړې اوليدلو چا (چه خپل مونځ ادا کولو په وخت) خپلې رکوع او سجدې په ښه شان سره نه اداکولې.

"رجلا" دا رجل څوك وو؟ په دې باره کښې چرته تصريح نشته دې(۶). لفظ "رجلا" موصوف دې او وراندې جمله "لا يتم رکوعه ولا سجوده" د دې صفت دې.(۷)

**قوله:** فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ:

**ترجمه:** بيا چه کله هغه مونځ پوره کړو.

"قضى" د ادا په معنى کښې دې او هم داسې کيږي لکه چه قرآن پاك کښې دی ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ ﴾(۸) "صلاته" نه مراد ناقص مونځ دې يعنى په کوم کښې چه رکوع او سجده په کاملې طريقې سره نه وه ادا کړې شوې.(۹)

**قوله:** قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ: «مَا صَلَّيْتَ؟»:

**ترجمه:** حضرت حذيفه رضي الله عنه هغه سړی ته اووئيل چه تا مونځ نه دې کړې.

---

(۱) الثقات لابن حبان: ۵۰۱/۷.
(۲) التاريخ الكبير للبخاري: ۴۲۵/۴، تهذيب الكمال: ۵۹۵/۲۸.
(۳) كشف الباري: ۲۳۷/۲.
(۴) كشف الباري: ۵۵۹/۲.
(۵) كشف الباري: ۱۰۹/۳.
(۶) إرشادالساري: ۵۱/۲.
(۷) عمدة القاري: ۱۸۱/۳، إرشادالساري: ۵۱/۲.
(۸) عمدة القاري: ۱۸۱/۳، إرشادالساري: ۵۱/۲.
(۹) إرشادالساري: ۵۱/۲.

دلته سوال دا پيدا كيږي چه هغه خو مونځ كړي وو، البته ركوع اوسجده ئې په كاملې طريقې سره نه وه كړې، بيا حضرت حذيفه رضي الله عنه د هغه د مكمل مونځ نفى ولې اوكړه؟
نودې جواب دادې چه دلته چونكه جزء مفقود وو نودهغې په نه كيدو سره لكه چه هم كل مفقود شو. چنانچه د ركوع نه پوره كيدل د ركوع نه كيدو لره مستلزم دى اود ركوع نه كيدل دمونځ نه كيدو لره مستلزم دى. هم دغه شان د سجدو حكم هم دې.(۱)

وَأَحْسِبُهُ قَالَ: «لَوْمُتَّ مُتَّ عَلَى غَيْرِسُنَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»: "واحسبه" كښې د "احسب" فاعل "ابووائل دې" او د "ه" ضمير مرجع حضرت حذيفه رضي الله عنه دې.(۲)

"لومتّ" دا د مخاطب صيغه ده. د "ميم" په ضمې سره د "مات يموت" د باب نه دې. دا د ميم په كسرې سره هم لوستلې شوې دې په دې صورت كښې به د "مات يمات" نه وى.(۳)

"على غيرسنة" كښې د "سنة" نه مراد طريقه ده كوم چه فرض او نفل دواړو ته شامل ده.(۴)

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى: "ماصليت" كښې نفى د كمال ده اود پوره عمل د تماميت نفى ئې څكه اوكړه چه هلته د تجويد قلت وو. دا خبره مشهوره ده چه كله يو عمل ناقص اوكړې شى نوداسې وئيلې كيږى چه تا خودا عمل هډو كړې نه دې. مراد دغه ځائې كښې د كمال نفى وى چه تا په پوره اهتمام او كامل طريقه دا عمل اونه كړو. چنانچه د صحابى رسول حضرت حذيفه رضي الله عنه دا قول "على غيرسنة" په دې خبره باندې دلالت كوى چه طمانينت په مونځ كښې مسنون دې.(۵)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د ابن بطال رحمه الله مذكوره تاويل د هغه كسانود پاره خو صحيح دې چه په ركوع او سجدو كښې د طمانينت مسنون كيدو قائل دى. د دوى نه علاوه د امام ابويوسف رحمه الله او امام شافعى رحمه الله په نيز خو طمانينت فرض دې نه چه مسنون، ددې تفصيلى د وضاحت وړاندې راروان دې(۶)

يو بل روايت كوم چه د صحيح بخارى كتاب الاذان كښې راځى په هغې كښې دا الفاظ دى «مت على غيرالفطرة التى فطر عليها محمد».(۷)

---

(۱) عمدة القاري:۱۸۱/۳، إرشادالساري: ۵۱/۲.
(۲) عمدة القاري:۱۸۱/۳، إرشادالساري: ۵۱/۲ الكوثر الجاري: ۷۵/۲.
(۳) عمدة القاري:۱۸۱/۳، إرشادالساري: ۵۱/۲.
(۴) عمدة القاري:۱۸۱/۳، إرشادالساري: ۵۱/۲ الكوثرالجاري:۷۵/۲.
(۵) شرح ابن بطال: ۵٤/٦.
(۶) عمدة القاري:٤/۱۸۱.
(۷) حدثنا حفص بن عمر، قال: حدثنا شعبة وعن سليمان، قال: سمعت زيد بن وهب، قال: رأى حذيفة رجلا لا يتم الركوع والسجود، قال: ما صليت ولومت مت على غير الفطرة التى فطرالله محمدا صلى الله عليه وسلم عليها. (صحيح البخاري، كتاب الصلاة، أبواب الأذان، باب: إذا لم يتم الركوع، رقم الحديث: ۸۰۸).

دا روايت دلالت کوي چه حضرت حذيفه رضي الله عنه په دغه ارکانو کښې د طمانينت د وجوب قائل وو او هم په دې باندې اکثر ائمه دي.(۱)

**د فطرت نه څه مراد دي؟** دَدې روايت مطابق تشريح کولو سره علامه عثماني فرمائي فطرت ئې د سنت په معنی کښې اخستې دې اوکه چرې د فطرت لغوی معنی مراد واخستې شي نوهغه هم ممکن ده. دَ فطرت معنی ده چه په کومو خصلتونو باندې انسان پيدا شوې وي کوم ته چه جبلي خصلت وئيلي شي. هر سړې دې خپل وجدان طرف ته اوګوری که چرې هغه دَ يو بادشاه يا حاکم دربار کښې حاضر وي نودَ هغه ځائی تعظيمی آداب به څنګه په ځائی راوړی؟ سکون، تسلی، سنجيدګئ او متانت سره يا هسې په منډو ترړو لکه چه څوك دَ هغه په سر باندې خپلئ نيولې ولاړ دې؟ ښکاره خبره ده چه په اولنی صورت کښې به وی لهذا په مانځه کښې دننه کوم چه په اصل کښې د احکم الحاکمين په دربار کښې دحاضرئی کولو نه عبارت دې. تادی کونکې په جبلی خصلت باندې قائم نه دې.(۲)

**په مانځه کښې دَتعديل ارکان حکم:** دَدې حديث شريف نه دَ تعديل ارکان مسئله هم راوځی. دَ صحيح قول مطابق رکوع، سجده، قومه او جلسه په تسلئ سره په ښه شان سره اداکول واجب دي. تعديل دَ ارکان ، دَ اندامونو داسې سکون ته وائی چه دَ مونځ ګذار ټول جوړونه کم نه کم دَ يو ځل تسبيح (سبحان الله) په اندازه باندې اودريږی يعنی خپل حرکت ختم کړی او په سکون کښې راشي.(۳)

دَ طرفينو په نيز رکوع او سجدو کښې اطمينان او قرار واجب دې اودَ امام ابو يوسف رحمه الله په نيز فرض دې. هم دَدې قائل امام شافعی رحمه الله هم دې. تردې چه که يو مونځ ګذار اعتدال پريږدی نود طرفينو په نيز به ئې مونځ اوشی البته واجب الاعاده به وی. اودَ امام ابو يوسف رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نيز هډو مونځ ئې نه کيږی.(۴)

**دَعلامه انورشاه کشميری رحمه الله رائې:** علامه محمد انورشاه صاحب کشميری رحمه الله فرمائی په څومره اندازه سره چه تاکيد دَمونځ دَ ارکانو تعديل دی بل دَ يو څه څيز نشته. تقريبًا په دې کښې ۵۰ احاديث راغلی دی او دې ته ئې فطرة نبی وئيلې دې کوم چه دَ اهميت دَ اظهار دَپاره کافی دې.

تعديل ارکان دادې چه بدن خپل طبعی شکل ته اورسی او حرکت انتقال مبدل به سکون شی. حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلی دی چه مطلوبه طمانينت په مونځ کښې دا دې چه حرکت دې لاړشي څنګه تفسير چه دَ ابی حميد رضي الله عنه په حديث کښې راځی. ((باب: اطمانينة حين يرفع رأسه من الركوع)) کښې ابو حميد رضي الله عنه وئيلی دی چه حضورپاك عليه السلام به خپل سر مبارك اوچتولو او

---

(۱) الكوثر الجاري: ۷۵/۲.
(۲) فضل الباري، كتاب الصلاة، كتاب الاذان، باب: إذا لم يتم الركوع: ۶۶۱/۳.
(۳) عمدة الفقه، كتاب الصلاة، فصل دوم: واجبات نماز: ۹۹/۲.
(۴) بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، باب: صفة الصلاة، الواجبات: ۱۵۷/۲.

برابر به شو، تردې چه هر يو اندام به په خپل ځائې قرار نيولو[1]

دَعلامه عثمانى رحمه الله رائې: علامه عثمانى رحمه الله په خپل تقرير بخارى[2] كښې فرمائيلى دى چه امام طحاوى رحمه الله په دې مسئله كښې زمونږ دَ ائمه ثلاثه رحمهم الله مسلك دا نقل كړې چه دَ هغوى ټولو په نيز تعديل دَ اركان فرض دې، دَ طرفينو خلاف ئې بيان نه كړو[3]

زمونږ بعضې فقهاؤ هم دا اختيار كړې دى چه په دې مسئله كښې زمونږ ائمه ثلاثه په فرضيت متفق دى. او (امام ابويوسف رحمه الله په شان) طرفين هم دَ جمهورو سره دى. دَ علامه عينى رحمه الله ميلان هم دې طرف ته معلوميږى[4].

چنانچه هغوى دَ امام طحاوى رحمه الله نقل پيش كولو سره دا شعراوليكلو:

إذا قالت حزام فصدقوها     فإن القول ما قالت حذام

مګر عام توګه باندې فقهاء په دې مسئله كښې دَ طرفينو رحمهما الله خلاف نقل كوى. علامه عثمانى رحمه الله نور فرمائى دلته په يوه كوتاهۍ باندې خبردارې كوم، هغه دا چه اكثر حنفى خلق عملاً دَ تعديلِ اركان بالكل اهتمام نه كوى حالانكه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز فرض نه سهى واجب خو ضرور دى. اودَ امام طحاوى رحمه الله دَ نقل په وجه خو ورته فرض وئيل پكار دى.

يو حنفي عالم (علامه محى الدين محمد پير علي رومى معروف به بركلى رحمه الله، متوفى: ۹۸۱ھ) دَدې مسئلې متعلق يوه رساله په نوم دَ معدّل الصلاة ليكلې ده. په هغې كښې دوى شمير كړې دې چه دَ تعديلِ اركان پرواه نه كولو باندې ۳۰ آفتونه او ۳۵۰ نه زيات مكروهات متفرع كيږى.

اوس پاتې شوه مسئله دَتعديل اركان په كوم كښې چه اختلاف كيږى. دَدې متعلق زما په زړه كښې داخيال تيريږى چه كله كله دَ يو څيز مختلف او متفاوت مرتبې وى. بيا دَ نظر كونكو نظر چه په كومه مرتبه باندې وى هغه هم دَ هغې متعلق حكم لګوى. په واقع كښې څه حقيقى اختلاف نه وى صرف لفظى شان جګړه وى.

دلته هم دا كيفيت معلوميږى په طمانينت او تعديل كښې مختلف مرتبې دى. دَ ركوع لغوى

[1]) انوار البارى، كتاب الصلاة، باب: إذا لم يتم الركوع: ۱۶/۴۵۴.

[2]) فضل البارى، كتاب الصلاة، كتاب الأذان، باب: أمر الذى لا يتم ركوعه بالإعادة: ۳/۶۶۳.

[3]) وعبارة الطحاوى....... وخالفهم فى ذلك آخرون فقالوا: مقدار الركوع أن يركع حتى يستوى راكعا. ومقدار السجود أن يسجد حتى يطمئن ساجدا، فهذا مقدار الركوع والسجود الذى لا بن منه......... وهذا قول أبى حنيفة وأبى يوسف ومحمد رحمهم الله تعالى. (شرح معانى الآثار. كتاب الصلاة باب: مقدار الركوع والسجود الذى لا يجزئى أقل منه: ۱/۲۳۲دارعالم الكتب ).

[4]) علامه عينى رحمه الله په عمدة القارى كښې په دې مقام باندې يعنى كتاب الاذان كښې هم اختلاف نقل كړې دې دَ امام طحاوى نقل ئې نه دې پيش كړې. البته يو بل ځائې كښې (باب: وجوب القراءة للإمام والمأمون ۶/۴۵)، كښې په دې مسئله باندې كلام كولو سره فرمائى: (أما الطحاوى الذى هوالعمدة فى بيان اختلاف العلماء فى الفقه، فإنه لم ينصب الخلاف بين أصحابنا الثلاثة على هذا الوجه) بيائې وړاندې مذكوره شعر هم نقل كړې دې.

معنى "انحناء" اود سجود معنى "وضع الجبهة على الأرض" ده. دکومې یوه درجه خودا ده چه بس لغةً مفهوم انحناء او مفهوم وضع الجبهة صادق راشي. او یوه دا ده چه په دغه انحناء او وضع الجبهة باندې قرار او مکث یعنی په دغه حالت باندې لږ شان ایسار شی. بیا په دغه مکث اوقرار کښې هم مختلف مراتب دی. یو دا چه فی الجمله ادنٰی مکث وی په کوم سره چه دا رکوع او سجود په غرض د تعظیم او تعبد اوګنړلې شی صرف لوبې توقې اود خندا په شان نه وی.

قرآن پاك چه ﴿ وَارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا ﴾ سره د کومې رکوع او سجود حکم ورکړې دې هغه صرف لغوی انحناء او وضع الجبهة نه ده، لکه څنګه چه ظاهره بلکه د الله تعالی د طرف نه هغه انحناء او وضع الجبهة مطلوب ده چه په طریقه د تعظیم او تعبد وی. کما نبه علیه الشیخ ولی الله الدهلوی رحمه الله. نو فی الجمله مکث اوقرار کوم سره چه د تعبد اود تعظیم استشعار او تحقق وی او د لوبو توقو د صورت یا د مسخرو نه جدا شی، نو دومره مکث اوقرار خو فرض کیدل پکار دی لکه څنګه چه جمهور وائی څکه چه که بالکل مکث نه وی بلکه صرف ټیټیدل او پاسیدل وی کوم ته چه په اردو کښې "ٹک ٹک" وائی نو په دې کښې تعظیم او اجلال چرته دې؟ دا خو یو قسم د لوبو توقو اود مسخرو صورت جوړیږی.

باقی دا مکث کم نه کم خومره کیدل پکاردی؟ ددې تحدید مشکل دې. بیا اګرچه مونږ ددې پوره تحدید اونه کړې شو خوبیا به هم دامنل وی چه ددې یوه مرتبه داسې ضرور ده کومه چه فرض کیدل پکاردی. او یوه درجه ددې نه څه د زیات مکث ده هغه به فرض نه وی. نو زما وینا داده چه دتعدیل او طمانینت مرتبې مختلف دی. هیڅ لرې نه ده چه د مجتهدینو أنظار چونکه په مختلف مرتبو باندې پریوتې وی وجه دا اختلاف پیدا شوې دې.

بیا ددې متعلق دا خیز هم د غور قابل دې چه دطمانینت او تعدیل په ترك کولو باندې سخت وعید راغلې دې. او په قرآن کریم کښې چه کوم کوم ځائې د مونځ د فرضیت بیان دې هلته عموماً ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ﴾ لفظ راغلې دې. لفظ "صلوا" نه دې راغلې. اود اقامت صلاة معنی داده چه ددې د حقوقو او شروطو سره ادا کړې شی صرف سرسری پاسیدو کیناستو ته اقامت صلاة نه شی وئیلې. د مونځ د فرضیت د بیان په موقع په کثرت سره ﴿أَقِيمُوا الصَّلَاةَ ﴾ راغلې دې. البته په موقع د ذم او تقبیح کښې "مصلی" په لفظ سره تعبیر کړې شوې دې لکه چه ﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ۝ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ۝﴾ (الماعون: ۴، ۵) او لکه ﴿قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ ۝﴾ (المدثر: ۴۳) دلته ئې "ویل للمقیمین الصلاة" نه دې فرمائیلې.

اود "صلوا" او "اقیموا الصلاة" په مینځ کښې دا فرق په پوره طریقې سره د صلاة الخوف د آیت نه واضیح کیږی. چنانچه الله تعالی فرمائی: ﴿وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ ﴾ (النساء: ۱۰۲) چونکه حضورپاك ته په هرحال کښې طمانینت حاصل وو یو وخت به هم په مونځ کښې

خشوع او حضور د زړه او طمانینت بالکلیه مفقود نه وو. په دې وجه د ویرې د حالت مونځ ئې هم د حضورپاك په حق په کښې "اقامتِ الصلاة" سره تعبیر کړو. لیکن نور خلق که هغه په هره درجه کښې وی د رسول الله ﷺ مرتبې ته نه شی رسیدلې. او د دښمن د مقابلې د وخت خارجي تکلیفونه او پریشانئ هغوی داسې ګډوډ کولې شی چه د زړه طمانینت ورته نه شی حاصلیدې. په دې وجه ئې د هغوی په حق کښې "فلیصلوا" اوونیلې. (چنانچه ارشاد دې. ﴿وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ﴾ (النساء: ۱۰۲) "فلیقیموا الصلاة" ئې اونه فرمائیلو یعنی که چرې ته طمانینت معتد بها حاصل نه کړې شې او په مامور بها اقامت صلاة باندې پوره قابو حاصله نه کړې شې نو چه څنګه هم ممکن وی هغه وخت مونځ ادا کړه. اوس چونکه د طمانینت د نه حاصلیدلو د وجې په اقامت صلاة کښې نقصان راغلو نو لکه چه دا هم اضطراری وو په دې وجه دَدې د تلافی د پاره وراندې فرمائی: ﴿فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَوٰةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ﴾ (النساء: ۱۰۳) څکه چه په ذکر الله سره طمانینت قلب حاصلیږی. فرمائی: ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكْرِ اللَّهِ ۗ أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾ (الرعد: ۲۸) دې نه پس چه کله دا د ویرې حالت ختم شی نو هغه وخت چونکه د اقامت صلاة د پاره طمانینت ضروری دې مونځ څنګه چه دَدې حق دې هغه شان ادا کول پکاردی. په دې وجه وراندې فرمائی: ﴿فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ (النساء: ۱۰۳). اوس چونکه د ټولو حقوقو خیال ساتل ضروری او مطلوب دی څنګه ئې "فصلوا" اونه وئیل، بلکه ﴿فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ ئې اوفرمائیل.

الغرض د "اقیموا الصلاة" تقاضا دا ده چه مونځ په طمانینت سره ادا شی، لهذا د طمانینت او تعدیل ارکان ښه خیال ساتل پکار دی.(۱)

**د ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب وو "إذا لم يتم السجود" اوهم دغه څیز پوره توګه باندې په حدیث کښې موجود دې.(۲)

**دحدیث شریف نه مستفاد امور:** د پورته ذکر شوی حدیث شریف نه ډیر امور مستفاد کیږی مثلاً:

① په مونځ کښې تعدیل د ارکانو واجب دې.
② د سنت په اهمیت باندې متعینه ژوند کښې ښکاره کیږی.
③ د ښه خاتمې د حاصلولو د پاره دنیاوی ژوندون د سنت مطابق برابرول پکاردی.
④ د نورو سره د خیر خواهئ جذبه ساتل هم معلومیږی چه یو صحابی رسول ﷺ په کوم فکر مندئی سره بل کس خبردار کړو وغیره وغیره.(۳)

---

(۱) فضل الباری، کتاب الصلاة، کتاب الأذان، باب: أمر الذی لا یتم رکوعه بالإعادة: ۳/۶۶۸-۶۶۵
(۲) عمدة القاری: ۴/۱۸۱.
(۳) عمدة القاری: ۳/۱۸۱.

## ۲۷ـ باب: يُبْدِي ضَبْعَيْهِ وَيُجَافِي فِي السُّجُودِ

دا باب په سجده كښې د دواړو متو كولاؤ ساتلو اود
(دواړو اړخونونه) د جدا ساتلو په بيان كښې دې.

**د ترجمة الباب مقصد:** د سابقه باب د ترجمة الباب د مقصد لاندې چه كوم بحث تيرشوې دې هم هغه بحث د دې باب د ترجمة الباب مقصد هم دې، هلته ئې اوګورئې.

**د ترجمة الباب د ماقبل سره مناسبت:** په وړاندې باب كښې د اتمام السجود بيان وو چه د سجدو په پوره كولو كښې څنګه چه دا ضروري دى چه تمكن وجهه على الأرض كيدل پكاردى. هم دغه شان د سجدو په پوره كولو كښې داهم ضروري دى چه سرې دې خپلې متې د خپلو ترخونو او تشو نه جدا اوساتى. لكه چه دا باب د مخكينى باب تتمه ده.

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په دې ځائى كښې كله صحيح بخارى كښې ذكرشوې باب كه صحيح اومنلې شى نو په دواړو ابوابو كښې به مناسبت داسې شى چه ماقبل باب كښې په سجدو كښې د طمانينت حكم وو او په دې باب كښې د دواړه متو اود دواړو اړخونو د يوځائى حكم دې اودا دواړې خبرې د احكام سجود سره متعلق دى.(۱)

**قوله:** "يبدى" د باب افعال نه د "إبداء" مصدر فعل مضارع واحد مذكر غائب صيغه ده. مطلب د دې "ښكاره كول" دى. "ضبعيه" دا د ضبع تثنيه ده دې نه مراد مټ دې.(۲) د پورته طرف نه د ترخ نه واخله تر نيم مټ پورې حصې ته ضبع وئيلى شى(۳). "يجافى" دا د باب مفاعله نه د مضارع معروف واحد مذكر صيغه ده. د دې معنى ده لرې كول، جدا ساتل، مطلب به ئې دا جوړيږى چه كله سجدې ته لاړشى نوخپل لاسونه دې ښه كولاؤكړى اود اړخونونه دې جدا اوساتى(۴). د "يجافى" مفعول به محذوف وى اوهغه دادې "جنبيه" جنب اړخ يعنى تشى ته وائى(۵).

حديث باب [حديث نمبر ۳۸۳]

> ۳۹۰- أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ جَعْفَرٍ عَنِ ابْنِ هُرْمُزَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ(۶) أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا صَلَّى فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى

(۱) عمدة القاري: ۱۸۲/٤.
(۲) معجم الصحاح للجوهري،ص: ٦١٣، سراج القاري: ٤٢١/٢.
(۳) المعجم الوسيط،ص: ٥٣٣، سراج القاري: ٣٢١/٢.
(٤) المعجم الصحاح للجوهري، ص: ١٢٨.
(٥) عمدة القاري: ١٨٢/٤.
(٦) أخرجه البخاري أيضا في صفة الصلاة، باب: يبدى ضبعيه ويجافى السجود، رقم الحديث:٨٠٧ وفى كتاب الأنبياء، باب: صفة النبى صلى الله عليه وسلم، رقم الحديث: ٣٥٦٤، ومسلم فى صحيحه، فى الصلاة، باب: ما يجمع صفة الصلاة، وما يفتتح به ويختم به، رقم الحديث: ٤٩٥. والنسائى فى سننه، فى الافتتاح، باب: صفة السجود، رقم الحديث: ١١٠٦. وفى جامع الأصول، حرف الصاد، كتاب الصلاة، القسم الأول: فى الفرائض، الباب الأول: فى الصلاة، الفصل الخامس: فى كيفية الصلاة، الفرع الرابع: فى الركوع والسجود، النوع الأول: هيئة الركوع والسجود، رقم الحديث: ٣٥٠٧، ٣٧٤/٥.

بَدَا وَبَيَاضُ إِبْطَيْهِ.

**ترجمه حدیث:** حضرت عبدالله بن مالك ابن بحینه ﷺفرمائی چه نبی کریم ﷺ چه به کله مونځ کولو نو د خپلو دواړو متو په مینځ کښې به ئې دومره فاصله ساتله چه د حضورپاك د ترخونو مبارکو سپینوالې به ښکاریدلو.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف رجال تول پنځه دی.

① **یحیی بن بکیر** رحمه الله: دا ابوذکریا یحیی بن عبدالله بن بکیر القرشی المخزومی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی د دریم حدیث لاندې تیر شوې دی[1]

② **بکر بن مُضر** رحمه الله: د دوی پوره نوم بکر بن مُضر بن محمد بن حکیم بن سلمان المصری رحمه الله دې د دوی د کنیت باره کښې دوه اقوال دی، ابو محمد او ابو عبدالملك. دې د ربیعه بن شرحبیل آزاد کړې شوې غلام وو.

د دوی په استاذانو کښې حضرت جعفر بن ربیعه بن شرحبیل بن حسنه، ابراهیم بن ابی عبله، حمزه النصیبی، خالد بن یزید مصري، ربیعه بن سیف، سعید بن بشیر، صخر بن عبدالله بن هرمله مُدلجی وغیره رحمهم الله اود یو لوئی جماعت نوم ملاویږی.

اود دوی نه فیضیاب کیدونکو کښې یحیی بن عبدالله بکیر، خلف ابن عبدالله، عبدالرحمن بن قاسم، عثمان بن صالح سهمی، عمرو بن خالد حرانی، قتیبه بن سعید ثقفی وغیره رحمهم الله شامل دی.

ددوی د پیدائش باره کښې یو قول د یوسل دوه هجری او دویم قول د سلمې هجرئ دې. امام احمدبن حنبل رحمه الله د دوی باره کښې فرمائی: ثقة لیس به بأس. یو بل ځائی کښې فرمائیلی دی: إنه کان رجلا صالحا. ابن معین، نسائی او ابو حاتم وغیره رحمهم الله ددوی د توثیق اقوال ذکرکړی دی. د دوئ د وفات باره کښې د ۱۷۳ او ۱۷۴ اقوال ملاویږی. په نهم د ذی الحجه او د نهې په ورځ وفات شوې دې. په ائمه سته کښې د ابن ماجه نه علاوه ټولو د دوی روایات په خپلو کتابونو کښې نقل کړی دی. رحمه الله رحمة واسعة[2]

③ **جعفر** رحمه الله: دا ابو بشر جعفر بن ایاس یشکری واسطی بصری رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: من رفعه صوته بالعلم، لاندې تیر شوې دی[3]

④ **ابن هُرمُز** رحمه الله: دا ابو داؤد عبدالرحمن بن هُرمُز مدنی قرشی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: حب الرسول من الإیمان، لاندې تیر شوې دی[4]

---

[1] کشف الباري: ۳۲۳/۱.

[2] التاریخ الکبیر للبخاري: ۹۵/۲، الجرح والتعدیل: ۵۹۲/۱، الثقات لابن حبان: ۱۰۴/۶، الطبقات الکبری لابن سعد: ۵۱۷/۷، تهذیب الکمال: ۲۲۹/۴-۲۲۷.

[3] کشف الباري: ۷۱/۳.

[4] کشف الباري: ۱۱/۲.

⑤ عبدالله بن مالك ابن بُحينه رضي الله عنه: دا صحابي رسول حضرت عبد الله بن مالك بن القشب رضي الله عنه دي. دَ دوی نوم جندب بن نضله بن عبد الله بن رافع بن محصن دي. دَ دوی كنيت ابو محمد دي. دَ بنو المطلب حليف وو. دَ دوی شهرت په ابن بحينه سره شوې دې. بحينه ددوی دَ مور نوم وو كومه چه دَ الأرت لور وه.
واضحه دې وی چه بُحَينه دَ عبدالله مور ده دَمالك نه ده. هم په دې وجه ابن بحينه په الف سره به ليكلې شي څكه چه دَ مالك صفت نه دې بلكه دَ عبد الله صفت دې. دَ محمد بن سعد رحمه الله بيان دې چه ددوی پلار ابو مالك بن القشب دَ مطلب بن عبدمناف حليف وو. هغوی بحينه بنت حارث بن مطلب سره واده اوكړو، دَ دوی نه عبد الله پيدا شو دَ چا كنيت چه ابو محمد وو. هغه اسلام قبول كړو اودَ نبی كريم ﷺ صحبت ئې اختيار كړو. دې ډير فاضل او صائم الدهر وو. دَ مدينې نه ديرش ميله فاصله باندې بطن ريم كښې اوسيدلو. دهغوی وفات په مدينه كښې اوشو. هغه وخت په مدينه كښې دَمروان بن حكم حكومت وو، اودَ ولايت اوحكومت موده ئې دَ ۵۴ هجری نه واخله تر ذی قعده ۵۸ هجری پورې وو.
دې دَ نبی كريم ﷺ نه روايت كوی او دَده نه روايت كونكو كښې عبد الرحمن بن هرمز مزالأعرج، حفص بن عاصم بن عمر بن خطاب، ابو جعفر محمد بن علی بن حسين، محمد بن يحيى بن حبان اوپخپله دَ دې صحابي څوئې علي بن عبد الله بن بحينه رحمهم الله شامل دی. امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله دَ دوی دَ روايت تخريج كړې دې. سنن ابی داوٗد او سنن ترمذی كښې ددوی روايت نشته دې[1]

شرح حديث: «كَانَ إِذَا صَلَّى فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى يَبْدُوَ بَيَاضُ إِبْطَيْهِ»

ترجمه: كله چه به حضورپاك مونځ فرمائيلو نو (سجده كښې) به ئې دَخپلو دواړو متو په مينځ كښې دومره فاصله ساتله چه دَ حضورپاك دَ ترخ مبارك سپينوالې به ښكاريدلو.

"فرّج" دَ باب تفعيل نه دَماضی معروف واحد مذكر غائب صيغه ده. دادَ سجدې كولو دَحالت بيان دې چه دَ رسول الله ﷺ متې به دَ حضورپاك دَ اړخو يعنی تشو نه جدا وې. په داسې كولو كښې داحكمت كيدې شی چه په دې كښې دَ تواضع اوعاجزئې يو ښكلې نمونه وه. اوداسې كولو كښې تندې په زمكه باندې په پوره قوت سره او په سختئ سره كيخودل ممكن وی كوم چه په هغې سره سجده په كامل طريقه اداكيږی. اوداسې كولو كښې مونځ گذار دَ سستو بنديگانو دَ مشابهت نه په پوره شان سره اوځي.

"بين يديه" دا لفظ په خپل حقيقت باندې محمول دې يعنی دَ حضورپاك په سجده كښې كولاو والې اختيارول به دَ خپلې مخې طرف ته وو[2]

دَ نبی كريم ﷺ دَ سجدې شكل: دَ حضورپاك دَ سجدې دَ هيئت باره كښې په احاديثو

---

[1] تهذيب الكمال: ۵۰۸/۱۵، تهذيب التهذيب: ۳۸۲/۵-۳۸۱، أسد الغابة: ۳۵۰/۳، الطبقات الكبرى: ۳۴۲/۴، الجرح والتعديل: ۱۸۴/۵، التاريخ الكبير للبخاري: ۱۰/۵، الثقات لابن حبان: ۲۱۶/۳.
[2] عمدة القاري: ۱۸۳/۴.

مبارکو کښې مختلف الفاظ راغلي دي چه ټول هم په دې کيفيت باندې پوره وضاحت سره دلالت کوي. مثلاً صحيح مسلم کښې دي: «إذا سجد يجنح في سجوده حتى يرىٰ وضح إبطيه» (۱)

يعنې چه کله به حضورپاك سجدې ته تلو نو خپل مروندونه به ئې د زمکې نه داسې اوچتول لکه چه مرغۍ خپلې وزرې اوچتوي. او د حضورپاك داسې سجدې کولو سره به د حضورپاك د ترخونو مبارکو سپينوالې ښکاريدو.

"يُجنِّح" د باب تفعيل نه فعل مضارع معروف دې. د دې مطلب د مرغۍ د وزر اوچتولو په شان متې د زمکې نه اوچتول دي. "وضح إبطيه" نه مراد د ترخونو سپينوالې دې. (۲)

هم د صحيح مسلم په يو روايت کښې دي: «كان صلى الله عليه وسلم إذا سجد لو شاءت بهمة أن تمرّ بين يديه، لمرت» (۳)

يعنې چه کله به حضورپاك سجده کوله نو د هغوی د ترخونو د مينځ په مينځ کښې که چرې د چيلۍ وروکی بچی تيريدل غوښتل نو تيريدې شو «مطلب دا چه د حضورپاك بدن مبارك به د سجدې په حالت کښې دومره کولاؤ وو».

قوله: "بهمة" د چيلۍ وروکی بچي ته وائي که هغه مذکر وي او که مؤنث وي. (۴)

هم د صحيح مسلم په يو بل روايت کښې دي: «كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا سجد خوّى بيديه، يعني: جنّح، حتى يُرىٰ وضح إبطيه من ورائه» (۵)

يعنې نبی کريم ﷺ چه به کله سجده کوله نو د مرغئی د وزرو اوچتولو په شان خپلې متې اوچتولو سره به ئې سجده کوله تردې چه که چا د حضورپاك د شا د طرف نه کتلې نو هغه ته به د حضورپاك د ترخونو مبارکو سپينوالې ښکاريدو.

---

(۱) حدثنا عمرو بن سواد، أخبرنا عبدالله بن وهب، أخبرنا عمرو بن الحارث، والليث بن سعد، كلاهما عن جعفر بن ربيعة، بهذا الإسناد، وفي رواية عمرو بن الحارث، كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا سجد يجنح في سجوده حتى يُرى وضح إبطيه، وفي رواية الليث، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان إذا سجد فرج يديه عن إبطيه حتى إني لأرى بياض إبطيه. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: مايجمع صفة الصلاة، رقم الحديث: ۱۱۳۴).

(۲) عمدة القاري: ۱۸۳/۴.

(۳) حدثنا يحيى بن يحيى، وابن أبي عمر، جميعا عن سفيان، قال يحيى: أخبرنا، سفيان بن عيينة، عن عبيدالله بن عبدالله بن الأصم، عن عمه يزيد بن الأصم، عن ميمونة، قالت: كان النبي صلى الله عليه وسلم إذا سجد لوشاءت بهمة أن تمر بين يديه لمرت. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: ما يجمع صفة الصلاة، رقم الحديث: ۱۱۳۵).

(۴) عمدة القاري: ۱۸۳/۴.

(۵) حدثنا إسحاق بن إبراهيم الحنظلي، أخبرنا مروان بن معاوية الفزاري، قال: حدثنا عبيدالله بن عبدالله بن الأصم، عن يزيد بن الأصم، أنه أخبره عن ميمونة زوج النبي صلى الله عليه وسلم قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا سجد خوّى بيديه، يعني: جنح، حتى يُرى وضح إبطيه من ورائه. وإذا قعد اطمأن على فخذه اليسرى. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: ما يجمع صفة الصلاة، رقم الحديث: ۱۱۳۵).

خوړي" مطلب دادې چه خپله خيټه مباركه به ئې د زمكې نه لرې ساتله او پورته به ئې ساتله او خپلې څنګلې به ئې د خپلو اړخونو يعنې تشو نه جدا ساتلې.[۱]

المستدرك علي الصحيحين كښې دي: «عن ابن عباس، قال: أتيت النبي صلى الله عليه وسلم من خلفه فرأيت بياض إبطيه وهو مُجخٍّ، وفرّج يديه»[۲]

يعنې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه زه به د نبي كريم ﷺ شاته راتلم او كتل به مې نو د حضورپاك د ترخونو مباركو سپينوالې به ښكاريدو. او حضورپاك به خپلې متې د خپلو تشو نه لرې ساتلې.

**قوله: "مجخ"** هغه هيئت ته وائي چه يو سړې خپلې متې د خپلو تشو نه لرې كړي[۳]

او په صحيح ابن خزيمه كښې دي: «أن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا سجد جافى حتى يُرى بياض إبطيه»[۴]

يعنې كله چه به نبي كريم ﷺ سجده كوله نو په كولاؤ انداز سره به ئې سجده كوله تردې چه د حضورپاك د ترخونو مباركو سپينوالې به ښكاريدلو.

او سنن ابي داؤد كښې دي: «ثم كبر وسجد ووضع كفيه على الأرض، ثم جافى بين مرفقيه حتى استقر كل شئ منه»[۵]

---

[۱]) عمدة القاري: ۱۸۳/٤.

[۲]) أخبرناه أبوبكر محمد بن المؤمل، ثنا الفضل بن محمد الشعراني، ثنا النفيلي، ثنا زهير، ثنا أبوإسحاق، عن التميمي الذي قد يحدث بالتفسير، عن ابن عباس، قال: أتيت النبي صلى الله عليه وسلم من خلفه فرأيت بياض إبطيه وهو مجخٍ، وفرّج يديه. (المستدرک علی الصحیحین، کتاب الصلاة، باب: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا سجد روئ وضح إبطيه، رقم الحديث: ۸۲۹، ۲۲۸/۱).

[۳]) عمدة القاري: ۱۸۳/٤.

[۴]) نامحمد بن يحيى، ومحمدبن رافع، وعبدالرحمن بن بشر قالوا: حدثنا عبدالرزاق، أخبرنا معمر، عن منصور، عن سالم بن أبي الجعد، عن جابر بن عبدالله، أن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا سجد جافى حتى يُرى بياض إبطيه. قال الأعظمي: إسناده صحيح. (صحيح ابن خزيمة، كتاب الصلاة، باب: التجافي في السجود، رقم الحديث: ٦٤٩، ۳۲٦/۱).

[۵]) حدثنازهير بن حرب، حدثنا جرير، عن عطاء بن السائب، عن سالم البراد قال: أتينا عقبة بن عمرو الأنصاري أبامسعود فقلنا له: حدثنا عن صلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم فقام بين أيدينا في المسجد. فكبر، فلما ركع وضع يديه على ركبتيه، وجعل أصابعه أسفل من ذلك، وجافى بين مرفقيه، حتى استقر كل شيئ منه. ثم قال: سمع الله لمن حمده، فقام حتى استقر كل شيئ منه، ثم كبروسجد ووضع كفيه على الأرض، ثم جافى بين مرفقيه حتى استقركل شيئ منه، ثم رفع رأسه فجلس حتى استقر كل شيئ منه، ففعل مثل ذلك أيضا، ثم صلى أربع ركعات مثل هذه الركعة، فصلى صلاته، ثم قال: هكذا رأينا رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي. (سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، باب: صلاة من لا يقيم صُلبه في الركوع، رقم الحديث: ۸٦۲).

يعنی (په حالت دَ سجدې کښې به) حضورپاك په خپلو دواړو څنګلو کښې کولاؤ والی پیدا کولو تردې چه هر یو اندام به په سکون سره په قرار اونیولو.

**دَ سجدې دَ مذکوره هیئت حکمتونه:** امام بخاری رحمه الله دَدې ترجمة الباب لاندې چه کوم حدیث ذکر کړی دې دَهغې نه دَ سجدې مذکوره هیئت استحباب معلومیږی. ددې هیئت دَ استحباب حکمتونه بیانولو سره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

① یو حکمت دادې چه په دې سره په مخ باندې بوج کمیږی او پوزه او تندې په زمکه باندې کیخودو کښې هیڅ تکلیف نه وی.

② دویم خیال دادې چه په دې هیئت کښې تواضع ده سستی نشته دې.

③ دریمه خبره داده چه په دې هیئت کښې دَ یو اندام په بل اندام باندې اعتماد نه پاتې کیږی بلکه هر یو اندام لکه چه په مستقل توګه باندې سجدې له ځی. داحکمت دَ یو حدیث شریف نه ماخوذ دې چه حضورپاك فرمائیلی دی چه دَ ځناور په شان په زمکه باندې لاسونه مه خوروئی، صرف دَ لاس په تلو باندې اعتماد مه کوئی، متې جدا اوساتئ، کله چه تاسو داسې سجده کوئی نو لکه چه ستاسو هریو اندام به سجدې ته لاړشی.

حافظ صاحب رحمه الله فرمائی دَ دې احادیثو ظاهر خودادې چه په سجده کښې دَ کولاؤ والی دا هیئت واجب اوګرځولې شی. مګر چونکه په ابوداؤد کښې دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې په کوم کښې چه فرمائیلې شوی دی چه صحابه کرامو دَ سجدې دَ اوږیدو دَ مشقت شکایت اوکړو. نو حضورپاك اوفرمائیل: ((استعینوا بالرکب)) اودَدې دا مطلب اخستې شوې دې چه کله چرې په سجده کښې تکلیف وی نو څنګلې په زنګونونو باندې کیخودل هم جائز دی مکروه نه دی. په دې وجه دا هیئت دَ واجب ګرځولو په ځائې مستحب یا مسنون ګرځولې شوې دې.([1])

**دَعلامه کشمیری رحمه الله په حافظ صاحب رحمه الله باندې رد:** علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه حافظ صاحب رحمه الله لیکلی دی چه دَ حدیث الباب نه متې جدا ساتلو سره دَ سجدې وجوب معلومیږی او حدیث ابی داؤد نه دَدې استحباب فهم ته راځی. په کوم کښې چه دی چه صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ سجدې دَ اوږدوالی په صورت کښې دَ سجدې دَ مشقت شکایت اوکړو نو حضورپاك اوفرمائیل چه دَ زنګونونو نه امداد واخلئ، یعنی په دې باندې څنګلې لګولو سره. حالانکه دا صورت دَدې نه جدا دې او متې دَ سجدې په حالت کښې په عام حالاتو کښې دَ جدا ساتلو حکم ورکړې شوې دې اودا خاص صورت دې چه دَ سجدې دَ اوږدوالی په حالت کښې ستومانتیا لرې کولو دپاره دَ زنګونونو نه امداد واخستې شی. دا لکه چه خاص صورت حالت دَ عذر دې.

امام ترمذی رحمه الله دَ استعانت بالرکب حکم نه دَ سجدې نه دَ قیام دَ پاره دَ پاسیدو وخت مراد اخستې دې. او امام طحاوی رحمه الله دَ قومې نه پس سجدې ته دتلو په وخت استعانت بالرکب

[1] فتح الباری، کتاب الصلاة، باب: یبدی ضبعیه ویجافی فی سجوده، رقم الحدیث: ۸۰۷، ۳۸۱/۲-۳۸۰.

مراد اخستې دي. غرض دا چه څلور صورتونه جدا جدا دی او امام بخاری رحمه الله دلته د سجدې صحيح او مشروع او مسنون صورت د عام حالت د پاره بيان کړې دې.[1]

**د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عينی رحمه الله فرمائی چه د مذکوره حديث شريف د ترجمة الباب سره مناسبت د "كان إذا صلى" په وجه دې. ځکه چه مذکوره حديث شريف کښې په لفظ "صلى" نه "سجد" مراد اخستې شی نودا به اطلاق الكل على الجزء د قبيل نه وی. مراب به داشی چه کوم وخت په سجده کښې حضورپاك خپل دواړه لاسونه کولاؤ ساتل نودې لا زمی نتيجه داده چه د حضورپاك متې د هغوی د اړخونو يعنی تشو نه جدا وی. او هم دغه ترجمة الباب نه ثابتيږی.[2]

**دحديث شريف نه مستنبط فوائد اواحكام:** دمذکوره حديث شريف نه چه کوم امور مستنبط کيږی د هغې نه دلته څه ذکر کولې شی:

① په مونځ کښې سنت دادې چه د سجدې په حالت کښې د دواړو لاسونو په مينځ کښې کولاؤوالې وی، په متو او تشو کښې فاصله وی. دا طريقه د سړو د پاره مسنون ده د ښځو د پاره نه ده بلکه دهغوی په حق کښې خود سجدې په حالت کښې خپل بدن راغونډول او يوځائی ساتل دی. يعنی چه څومره ممکن وی هغوی دې هم دومره زمکې پورې لګيدو سره سجده کوی. ځکه چه په ښځو کښې مطلوب او محمود ستر دې او هغه هم دغه شان حاصليدې شی.[3]

د ښځو او سړو په مونځ کښې په ډيرو مقاماتو کښې فرق دې کوم چه د احاديث نبوی نه ثابت دی. او هغه به ان شاء الله په خپل مقام باندې په تفصيل سره راشی.

② په مونځ کښې د اطمينان او اعتدال د وجوب هم معلومات اوشو.[4]

③ په مونځ کښې د سجدې مذکوره هيئت په اظهار د خضوع او د الله تعالى د پاره په بندګئی باندې هم دلالت کوی.[5]

**تعليق:** وَقَالَ اللَّيْثُ: حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ نَحْوَهُ [۷۷۴، ۳۳۷۱]

**د تعليق ترجمه:** او ليث رحمه الله اوئيل چه ماته جعفر بن ربيعه رحمه الله د دې په شان بيان اوکړو

**د تعليق تخريج:** دا تعليق امام مسلم رحمه الله صحيح مسلم کښې موصولاً نقل کړې دې. وئی کورئی: ((حدثنا عمرو بن سواد، أخبرنا عبدالله بن وهب، أخبرنا عمرو بن الحارث، والليث بن سعد، كلاهما

---

[1] ) انوار البارى، كتاب الصلاة، باب: يبدى ضبعيه ويجافى فى السجود، رقم الحديث: ۸۰۷ ۱۶/ ۴۷۳.

[2] ) عمدة القارى: ۴/ ۱۸۲، شرح الكرمانى: ۴/ ۵۳.

[3] ) التوضيح لابن الملقن: ۴/ ۳۹۹، عمدة القارى: ۴/ ۱۸۳ الشرح الميسر: ۱/ ۴۴۱.

[4] ) التوضيح لابن الملقن: ۴/ ۳۹۹.

[5] ) الشرح الميسر: ۱/ ۴۴۱.

من جعفر بن ربیعة» دَدې سند مطابق دَ جعفر بن ربیعه رحمه الله نه روایت کونکي دَ هغوی دوه شاګردان دي. يو عمرو بن سواد رحمه الله او دويم الليث بن سعد رحمه الله دواړو رواياتو کښې لږ شان فرق دې وئې ګورئی:

«وفي رواية عمرو بن الحارث: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا سجد يجنح في سجوده، حتى يُرى وضح إبطيه. وفي رواية الليث: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان إذا سجد فرج يديه عن إبطيه حتى إني لأرى بياض إبطيه»[1]

**دَتعليق رجال:** دَمذکوره تعليق دوه رجال دي.

**① الليث رحمه الله:** دا امام ابوالحارث الليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دريم حديث لاندې تير شوی دی[2].

**② جعفر بن ربيعه رحمه الله:** دا ابوشرحبيل جعفر بن ربيعه بن شرحبيل بن حسنه القرشي الکندی المصری الازدی الحسنی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب التيمم، باب: التيمم في الحضر إذا لم يجد الماء، رقم الحديث: ۳۳۷ لاندې تير شوی دی[3].

**دَتعليق مقصد:** علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه په دې تعليق کښې دَ راوی دَ طرف نه تحديث دې يعنی ليث بن سعد رحمه الله دَ حدثني په صيغې سره روايت کړې دې او په ماقبل حديث کښې عنعنه ده يعنی هلته راوی دَعن صيغه استعمالولو سره روايت کړې دې. يعنی صرف دَ سند فرق خودل مقصود دی.[4]

---

[1] صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: ما يجمع صفة الصلاة، رقم الحديث: ١١٣٤، تغليق التعليق: ٢٢٠/٢.

[2] كشف البارى: ٣٢٤/١. دَدوی باره کښې ډير ښه تفصيل اومفيد کلام انوارالباري: ١٧٤-١٧٧/١٢ کښې اوګورئی.

[3] كشف البارى، كتاب التيمم، باب التيمم في الحضر إذا لم يجد الماء، رقم الحديث: ٣٣٧ص: ١٦٠.

[4] شرح الكرمانى: ٥٣/٤.

بسم الله الرحمن الرحيم

# ۱۰ – ابواب القبلة[1]

## ۱ – باب: فَضْلِ اسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ

دا باب (مونږ کښې) قبلې ته د مخ کولو د فضیلت په بیان کښې دې

**قوله:** "بسم الله الرحمن الرحيم" علامه رشید احمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله بسم الله سره د یو باب یا کتاب شروع هغه وخت کوی کوم وخت چه د سابقه باب او د موجوده باب په لیکلو کښې څه موده او وقفه تیره شوې وی، چنانچه دلته هم دغه شان اوشو.[2]

په دې باندې شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی د بخاری شریف هندوستانی نسخه او د علامه کرمانی رحمه الله شرح المسمٰی الکوکب الدراری کښې باب فضل استقبال القبلة نه مخکښې بسم الله موجود ده. خو اکثر په مصری نسخو کښې، دارنګ فتح الباری، عمدة القاری او ارشاد الساری کښې دې ځائی کښې بسم الله موجود نه ده. او نه دې دریواړو شارحینو د دې متعلق څه کلام کړی دی. البته زمونږ مشائخ فرمائی چه کله امام بخاری رحمه الله ته د خپل کتاب په لیکلو کښې وقفه واقع کیږی نو د نوی مجلس شروع د بسم الله نه کوی.[3]

**د مذکوره باب د ماقبل باب سره مناسبت:** په ماقبل کښې د سترعورت باره کښې ابواب روان وو. کله چه امام بخاری رحمه الله د سترعورت د بیان نه فارغ شو نو د استقبال قبله بیان ئې شروع کړو ځکه چه مونځ ګذار اول د ستر عورت محتاج وی. کله چه هغه خپل ستر پټ کړی نو بیا به د قبلې طرف ته د مخ کولو محتاج کیږی په دې وجه ئې د دې بیان شروع کړو. لهذا د سابقه ابوابو سره مناسبت ښکاره دې.[4]

**قوله:** يَسْتَقْبِلُ بِأَطْرَافِ رِجْلَيْهِ قَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۷۹۴]

**ترجمه:** (مونځ ګذار دې په مانځه کښې د سجدې په حالت کښې) د خپلو خپو ګوتې هم د قبلې طرف ته او ساتي، دا ابوحمید رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ نه نقل کړی دی.

**د دې جملې متعلق د شیخ الحدیث صاحب رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله

---

[1] کشف الباری کښې چه د الدکتور مصطفى ديب البغا کومه نسخه د متن په توګه بنیاد جوړ کړې شوې دې د هغه نسخې مطابق دې ځائی کښې د "ابواب القبلة" لوئې عنوان دې. د کوم لاندې چه د باب نمبر ۱ نه سلسله شروع شوې ده. خو په نورو نسخو کښې مثلاً: فتح الباری، عمدة القاری، ارشاد الساری وغیره مطابق د دې باب نمبر ۲۸ دې.

[2] لامع الدراری: ۲/۳۶۰، الکنز المتواری: ۴/۷۷.

[3] الکنز المتواری: ۴/۷۷، تقریر بخاری شریف: ۲/۲۵۴، سراج القاری: ۲/۴۲۳.

[4] عمدة القاری: ۴/۱۸۴، سراج القاری: ۲/۴۲۳.

فرمانی چونکه دَ مانځه شرطونه بیانیدل په دې وجه ئی اول دا اودس ذکر اوکړو ځکه چه دا دَ ټولو نه اهم دې اوبیا ئی دَ لباس او بیائی دَ قبلې طرف ته دَ مخ کولو ذکر اوکړو. او شروع ئی ددې دَ فضیلت نه اوکړه. مګر دلته دوه اشکالات دی بلکه درې اشکال دی.

① اول دا چه اوس خو دَ قبلې طرف ته دَ مخ کولو دَ فضیلت ذکر شروع شو نو دَ هم دَ اوس نه ځنګه چه "استقبال اطراف رجلین الی القبلة" ته اورسیدو؟ حالانکه دَ اطراف رجلین استقبال په سجده کښې کیږی نو پکار دا وه چه اول ئی دَ استقبال، قیام وغیره ذکرکړې وې او بیاځی وار په وار دَ استقبال اطراف رجلین ذکرکړې وې.

② دویم اشکال دادې چه صفحه ۱۱۲ باندې "باب: یستقبل القبلة باطراف رجلین" راځی نو دا باب مکرر شو؟

③ اودریم اشکال دادې چه په ترجمه کښې ئی "اطراف رجلین" که چرته ذکر کړې دې نو ددې روایت ئی نه دې ذکرکړې. په دې وجه که چرې "قال ابوحمید عن النبی صلی الله علیه وسلم" اوو ئیل (کوم کښې چه دَ اطراف رجلین دَ استقبال ذکر دې) نو هغه روایت خو تراوسه پورې رانغلو چه هم دَهغې نه اشاره شوې وې، ولې چه دا روایت به په "صفة الصلوة" کښې راځی؟

اوس جوابونه واورئی: امام بخاری رحمه الله "یستقبل القبلة باطراف رجلیه القبلة" دَ ترجمې جزء جوړ نه کړو او "مُثْبَتُ" په فتحې دَ باء ئی اونه ګرځولو بلکه "مُثْبِت" په کسرې سره ئی اوګرځولو او غرض ئی په دې ذکر سره دَ استقبال تاکید او فضل دَ استقبال واضح کول دې چه استقبال په دې درجه مؤکد دې چه په حالت دَ سجدې کښې هم نه شی پریخودې او دَ خپو دَ ګوتو پورې کولې شی.

او قال ابوحمید سره ئی دَ هغه روایت طرف ته اشاره اوکړه کوم چه وړاندې راځی. اوس هیڅ اشکال باقی پاتې نه شو ځکه چه دَ ټولو اشکالو مدار هم دا وو چه دائی دَ ترجمې جزء ګرځولې وې. هم په دې وجه تکرار هم لا زمیدو، دَ روایت هم ضرورت پیښیدو او څه بې ترتیبی هم معلومیدله. پاتې شو دا اشکال چه ترجمه مکرر ده نو ددې شارحینو دا جواب ورکړې دې چه دلته دا باب بالتبع دې او هلته په صفحه ۱۱۲ باندې بالقصد راځی (۱)

دَتعلیق تخریج: دَ ابو حمید رضی الله عنه روایت کړې شوې حدیث په مکمل سند سره صفة الصلاة کښې باب: سنة الجلوس فی التشهد کښې راځی. بیا دې نه پس امام بخاری رحمه الله دا ټکړه ترجمة الباب جوړولو سره هم ذکرکړې ده. یعنی باب: یستقبل القبلة باطراف رجلیه (۲)

---

(۱) تقریر بخاری شریف: ۱۳۹/۲، الکنز المتواری: ۴۸/۴، سراج القاری: ۴۲۴/۲.

(۲) عمدة القاری: ۱۸۴/۴. حدثنا یحیی بن بکیر، قال: حدثنا اللیث، عن خالد، عن سعید، عن محمد بن عمرو بن حلحلة، عن محمد بن عمرو بن عطاء، وحدثنا اللیث، عن یزید بن أبی حبیب، ویزید بن محمد، عن محمد.......

**دَتعليق رجال:**

**قوله: ابوحميد رضي الله عنه:** دا صحابی رسول حضرت ابو حميد الساعدی الانصاری المدنی رضي الله عنه دې. دَدوی دَ نوم باره کښې ډير اقوال دی. رومبې قول دَ عبدالرحمن دی. دويم قول دَ المنذر بن سعد ابن المنذر دې. دريم قول دَ المنذر بن سعد بن مالك دې. او څلورم قول المنذر بن شعد بن عمرو بن سعد بن المنذر بن سعد بن خالد بن ثعلبه ابن عمرو بن الخزرج دې.

دَدوی باره کښې وئيلې شی چه دې دَ حضرت سهل بن سعد الانصاری رضي الله عنه تره دې. دې صرف دَ نبی کريم ﷺ نه احاديث نقل کوی. اودَ دوی نه روايت کونکو کښې اسحاق بن عبدالله بن عمر بن الحکم، جابر بن عبدالله، دَ دوی نمسې سعدبن المنذر بن ابی حميد الساعدی، عباس بن سهل بن سعد الساعدی، عبدالرحمن بن ابی سعيد الخدری وغيره رحمهم الله شامل دی.

دَ واقدی رحمه الله بيان دې چه دَدوی وفات دَحضرت امير معاويه رضي الله عنه دَ خلافت په آخری زمانه کښې شوې دې او دويم قول دادې چه دَ دوی وفات دَ يزيد بن معاويه دَ شروع په زمانه کښې شوې دې.[1]

**دَتعليق مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي چه دَ امام بخاری رحمه الله دا مذکوره تعليق په دې ځائې کښې دَ ذکرکولو مقصود دادې چه دَ مونځ گذار دَ پاره په څومره اندازه باندې هم خپل اندامونه دَ قبلې طرف ته کول ممکن وی هغه هومره دې اوکړی.[2] ليکن علامه عينی رحمه الله دَ حافظ صاحب رحمه الله دا خبره ردکولو سره فرمائی چه معامله داسې نه ده ځکه چه ترجمة الباب دَ استقبال قبله دَ فضيلت خودلو دَ پاره قائم کړې شوې دې دَ مشروعيت دَ پاره نه دې. اودَ حافظ صاحب رحمه الله دَ خبرې نه دَمشروعيت علم کيږی دَ فضيلت نه.[3]

---

...... بن عمرو بن حلحلة، عن محمد بن عمرو بن عطاء، أنه كان جالسا مع نفر من أصحاب النبی صلی الله عليه وسلم فذكرنا صلاة النبي صلى الله عليه وسلم، فقال أبوحميد الساعدي: أنا كنت أحفظكم لصلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم، رأيته إذا كبر جعل يديه حذاء منكبيه، وإذا ركع أمكن يديه من ركبتيه، ثم هصر ظهره، فإذا رفع رأسه استوى حتى يعود كل فقار مكانه، فإذا سجد وضع يديه غير مفترش ولا قابضهما، واستقبل بأطراف أصابع رجليه القبلة، فإذا جلس في الركعتين جلس على رجله اليسرى، ونصب اليمنى، وإذا جلس في الركعة الآخرة قدم رجله اليسرى، ونصب الأخرى وقعد على مقعدته. وسمع الليث يزيد بن أبي حبيب، ويزيد من محمد بن حلحلة، وابن حلحلة من ابن عطاء، قال أبوصالح، عن الليث: كل فقار، وقال ابن المبارك: عن يحيى بن أيوب، قال: حدثني يزيد بن أبي حبيب، أن محمد بن عمرو حدثه، كل فقار. (صحيح البخاري، كتاب صفة الصلاة، باب: سنة الجلوس في التشهد، رقم الحديث: ۸۲۸)(وكتاب الأذان، باب: يستقبل القبلة بأطراف رجليه، رقم الحديث: ۱۳۱).

[1]) تهذيب الكمال:۲۶۵/۳۳-۲۶۴، تهذيب التهذيب: ۱۲/ ۸۰-۷۹، الكاشف: ۳۱۱/۳، الإصابة في تمييزالصحابة: ۴۶/۴، الجرح والتعديل: ۲۴۲/۵، التاريخ الكبير للبخاري: ۳۵۴/۷، إسعاف المؤطا برجال المؤطاللسيوطي: ۳۶۶/۲، أسدالغابة في معرفة الصحابة: ۳۴۹/۲، ۳۹۱/۴، ۷۸/۵، معرفة الصحابة لأبي نعيم، ص: ۲۵۱۵، الإستيعاب في معرفة الأصحاب، ص: ۴۴۹.

[2]) فتح الباري: ۶۴۳/۱.

[3]) عمدة القاري: ۱۸۵/۴.

**دَتعليق دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عينى رحمه الله فرمائى كله چه دَ استقبال قبله فرضيت اودَ دې استقبال فضيلت اوپيژندلې شي نو بيا به دَ تعليق اوترجمة الباب مناسبت هم واضح شي. اودا دواړه امور بديهى دى چه دَ مونځ كدار نه دَخپل بدن اندامونه څومره دَ قبلې طرف ته كول ممكن وى هم هغه هومره قبلې ته كول فرض دى اودا عمل مسنون دې چه دَ خپو دَ گوتو پورې دې قبلې طرف ته كړى. چنانچه په تعليق كښې هم دَ رسول الله ﷺ دَ سجدې په حالت كښې دَ خپو دَ گوتو دَ قبلې طرف ته كول ذكر دى او هم په دې كښې دَ ترجمة الباب سره مطابقت دې.[1]

حديث باب «رومبى حديث»[حديث نمبر ٣٨٥/٣٨٤]

-٣٩ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمَهْدِيِّ قَالَ حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ مَيْمُونِ بْنِ سِيَاهٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ[2] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - مَنْ صَلَّى صَلاَتَنَا، وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا، وَأَكَلَ ذَبِيحَتَنَا، فَذَلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِي لَهُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ، فَلاَ تُخْفِرُوا اللَّهَ فِي ذِمَّتِهِ».

**ترجمه حديث:** د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو كوم سړې چه زمونږ دَ مونځ په شان مونځ اوكړى او هم زمونږ په شان استقبال قبله اوكړى. او زمونږ ذبح كړې شوې خاروې اوخورى نو هغه به داسې مسلمان شميرلې شى دَ چا دَ پاره چه دَ الله اودَ هغه دَ رسول دَ طرف نه دَ امان وعده ده نو تاسو دَ الله تعالى په دغه وعده كښې خيانت مه كوئى.

**تراجم رجال:** په مذكوره حديث شريف كښې پنځه رجال دى:

① عمرو بن عباس رحمه الله: دا عمرو بن العباس الباهلى البصرى الاهوازى الرزى رحمه الله دې دَدوى كنيت ابو عثمان دې. دې چه دَ كومو مشائخونه روايت كوى په هغوى كښې عبدالرحمن بن مهدى، ابراهيم بن صدقه، ابراهيم بن ناصح، سفيان بن عيينه، محمد بن جعفر المنذر، محمد بن مروان العجلى او يزيد بن هارون وغيرهم رحمهم الله شامل دى.

اودَ دوئى نه روايت كونكو كښې امام بخارى، حرب بن اسماعيل الكرمانى، عباس بن عبدالعظيم العنبرى، عبدان بن احمد الاهوازى، عيسى بن شاذان، محمد بن ابراهيم بن جناد، محمد بن عمرو ابن عباد بن جبله بن ابى رواد او ابوبكر بن سليمان البزار وغيرهم رحمهم الله شامل دى.

ابن حبان رحمه الله دوى په الثقات كښې شمير كړى دى. دَ دوى وفات ذوالحجه ٢٣٥هجرى كښې شوې دې.

---

[1]) عمدة القارى: ١٨٤/٤.

[2]) أخرجه البخارى أيضا تحت رقم الحديث: ٣٩٣-٣٩٢ والنسائى فى الأيمان، باب: صفة المسلم، رقم الحديث: ٤٩٩٧ وفى جامع الأصول، حرف الهمزه، الكتاب الأول: فى الإيمان والإسلام، الباب الأول: فى تعريفها، الفصل الأول: فى حقيقتها، رقم الحديث: ١٨، ٢٣٥/١.

② ابن مهدي رحمه الله: دا عبدالرحمن بن مهدی بن حسان بن عبدالرحمن العنبری الا زدی رحمه الله دي. علامه مزی رحمه الله دَدوی دَمشائخو او شاګردانو يو ډير اوږد فهرست ذکر کړې دې. دَدوی نه يو څو دلته ذکرکولې شی:
مشائخو کښې منصور بن سعد، ابان بن يزيد العطار، ابراهيم بن سعد الزهری، ابراهيم بن نافع المکی، اسرائيل بن يونس، الاسود بن شيبان، حماد بن سلمه، سلام بن ابی مطيع وغيره رحمهم الله شامل دی. او په شاګردانو کښې عمرو بن عباس الباهلی الرزی، عبدالله بن المسندی، علی بن المدينی، عمرو بن علی الفلاس، محمد بن المثنی، اسحاق بن راهويه وغيره رحمهم الله شامل دی.
دَدوی پيدائش په ۱۳۵هجری کښې شوې دې. ابوعبدالله رحمه الله وائی چه ما بصره کښې دَ يحيى بن سعيد او عبدالرحمن غوندې بنده نه دې ليدلې او په دواړو کښې هم زيات فقيه عبدالرحمن وو. علی بن المدينی رحمه الله به ډير کرتې وئيل "عبدالرحمن اعلم الناس" علی بن احمد الازدی رحمه الله دَ علی بن المدينی رحمه الله نه روايت کوی چه يحيى بن سعيد أعلم بالرجال وو او عبدالرحمن رحمه الله أعلم بالحديث وو. اوفرمائيل به ئی چه دَعبدالرحمن دَ علم بالحديث باره کښې به زمادا شبهه پيدا کيدله چه دَ هغوی علم جادوئی علم دې. ده به هره شپه نيم قرآن لوستلو او دوو شپو کښې به ئی قرآن پاك ختمولو. ابو بکر الا ثرم رحمه الله وائی چه ما احمد بن حنبل رحمه الله نه داسې اوريدلی دی چه کله عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله دَ يو سړی نه روايت اوکړی نو هغه سړې به هم حجت وی. دَ دوی وفات ۱۹۸هجری کښې شوې دې.(۱)
③ منصور بن سعد رحمه الله: دا منصور بن سعد البصری رحمه الله دې. دې دَ صاحب اللؤلؤ په نوم باندې مشهور دې. دَدوی په مشائخو کښې ميمون بن سياه، بديل بن ميسری العقيلی، ثابت البنانی، حماد بن ابی سليمان، عباد بن کثير، فرزدق شاعر او عمار بن ابی عمار وغيرهم رحمهم الله شامل دی. او په شاګردانو کښې ئی عبدالرحمن بن مهدی، جارود بن يزيد، حسان بن ابراهيم او ابو سلمه موسیٰ بن اسماعيل وغيرهم رحمهم الله شامل دی.
دَدوی باره کښې يحيى بن معين فرمائی: ثقة. علی بن المدينی رحمه الله فرمائی: لم يکن به بأس. امام نسائی رحمه الله فرمائی: ثقة. ابن حبان کتاب الثقات کښې دَ دوی ذکر کړې دې.(۲)
④ ميمون بن سياه رحمه الله: دا ميمون بن سياه البصری رحمه الله دې. دَ دوی کنيت ابوبحر دې. دې دَ حضرت انس بن مالك رضی الله عنه، جندب بن عبدالله البجلی، حسن بصری او حوشب وغيره رحمهم الله نه روايت کوی. اودَ دوی نه روايت کونکو کښې منصور بن سعد اللؤلؤی، حزم القطعی،

---

(۱) تهذيب الكمال:۱۷/۴۳۲-۴۳۰، الطبقات الكبرى لابن سعد: ۲۹۷/۷، الثقات لابن حبان: ۳۷۳/۸، سير أعلام النبلاء: ۱۹۲/۹، تهذيب التهذيب: ۲۷۹/۶، خلاصة الخزرجي:۲/رقم الترجمة:۴۲۵۹.
(۲) تهذيب الكمال:۵۲۷/۱۸، الجرح والتعديل:۸/رقم الترجمة: ۷۶۰، الطبقات لابن حبان:۴۷۵/۷، تهذيب التهذيب: ۳۰۷/۱۰، الكاشف:۳/رقم الترجمة: ۵۷۳۴.

حماد بن جعفر، حميد الطويل وغيرهم رحمهم الله شامل دي.
په دوی باندې بعضې ائمهٔ رجال کلام کړې دې لیکن هغه کلام داسې نه دې دَ کوم په وجه چه دَ هغه راوی حدیث په ضعف شدید کښې داخل شي ځکه چه ډیرو زیاتو ائمه حضراتو دَدوی تعدیل هم کړې دې مثلاً یحیی بن معین رحمه الله دَ دوی باره کښې وئیلی دي: ضعیف.
ابوداؤد رحمه الله دَدوی باره کښې وئیلی دي: "لیس بذاك". ابن حبان رحمه الله دَدوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې. او وئیلی ئې دي: یخطئ، دې نه پس ابن حبان رحمه الله المجروحين کښې هم دَدوی ذکر کړې دې او فرمائیلی ئې دي چه دې دَ مشاهیر نه منکر روایت بیانولو کښې منفرد وې اوکله چه دې منفرد وی نو هغه وخت دَ دوی دَ روایت نه حجت نیول زما خوښ نه دي.
ابوحاتم رحمه الله دې ثقه گرځولې دې. امام دارقطنی رحمه الله هم فرمائیلی دي: یحتج به. حسن بن سفیان رحمه الله فرمائي: دا سید القرآء وو او حزم القعطی رحمه الله فرمائي چه ده به نه دَ چاغیبت کولو او نه به ئې اوریدلو. دَده په مجلس کښې چه به غیبت شروع کیدو نو رتلو به ئې ګنی دَ مجلس نه به پاسیدو.
حافظ ابن حجر رحمه الله اول دَ جرح کلمات نقل کړی دی بیانی دَ تعدیل کلمات ذکر کړی او فرمائیلی ئې دي چه امام بخاری رحمه الله او امام نسائی رحمه الله دَدوی روایت نقل کړې دې.
الدکتور بشار عواد اول دَ ضعیف اقوال اوبیا دَ تعدیل کلمات ذکر کړی دی. اوبیائې دَ ابن عدی رحمه الله قول نقل کړې دې چه دې دَ بصرې دَ لویو زاهدانو او عابدانو نه یو وو. او زاهد خلق احادیث داسې نه ضبط کوی لکه څنګه چه ضروری دی. زما امید دې چه دَ دوی په احادیثو کښې به څهٔ جرج نه وی. امام بخاری رحمه الله دَ دوی صرف هم یو روایت نقل کړې دې.[1]
⑤ انس بن مالك رضي الله عنه: دامشهور او معروف صحابی رسول حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې.
دَ دوی په احوالو باندې تفصیلی کلام کشف الباری، کتاب الایمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیر شوی دې.[2]
**شرح حدیث:** «مَنْ صَلَّى صَلَاتَنَا وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا، وَأَكَلَ ذَبِيحَتَنَا
حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائیلو کوم سړې چه زمونږ دَ مونځ کولو په شان مونځ اوکړی، او زمونږ دَ قبلې طرف ته مخ کړی او زمونږ ذبح کړې شوې څناور اوخوری.
**قوله:** "من صلى صلاتنا"، أي: صلى كما نصلي، یعنی چه څنګه قیام، قراءت رکوع سجود وغیره

---

[1] تهذيب الكمال: ٢٠٤/٢٩، الثقات لابن حبان: ٤١٢/٥، تهذيب التهذيب: ٣٨٩/١٠-٣٨٨، الطبقات الكبرى لابن سعد: ١٥٢/٧، خلاصة الخزرجي:١٣رقم الترجمة: ٧٣٥٠، تقريب التهذيب:٢٣٣/٢، تحرير تقريب التهذيب: ٤٤٥/٣، هدى الساري.لابن حجر، ص:٦٢٩.
[2] كشف الباري: ٤/٢.

سره مونځ کوو هغه شان هغوی مونځ اوکړی. لفظ "صلاتنا" منصوب بنزع الخافض دی. نفس الامرکښې دا لفظ دَ محذوف مصدر صفت دې. پوره جمله به داسې شی: "صلی صلاة کصلاتنا" بیا تخفیفا مصدر او خافض یعنی "ك" تشبیه حذف کړې شو او "صلی صلاتنا" باقی پاتې شو.[1]

**دَ مسلمانیدودپاره ضروری امور:** په مذکوره حدیث شریف کښې درې کارونه کونکې کس مسلمان ګرځولې شوی دی. په دې کښې ئی اولنئ خبره "من صلی صلاتنا" په دې وجه ذکرکړه چه زمونږ په شان مونځ کونکې هغه سړې کیدې شی چه دَ توحید او رسالت اقرار کونکې وی. او کوم سړې چه دَ توحید او رسالت اقرار کونکې وی هغه به یقینًا "جمیع ماجآء به رسول الله صلی الله علیه وسلم من الله تبارك وتعالیٰ" هم اقرار کونکې وی. او دَدې معنی داده چه هغه مسلمان شو. ځکه چه هم هغه خو مسلمان وی څوك چه تصدیق کوی دَ هغه پوره دین او شریعت کوم چه رسول الله ﷺ راوړې دې. نو داسې مونځ کول به دَ هغه دَ اسلام علامت شی لهذا هغه به مسلمان ګرځولې شی.[2]

**قوله:** "واستقبل قبلتنا" اوزمونږ دَ قبلې طرف ته مخ کولو سره مونځ اداکړی.

**استقبال قبله مستقلاً ذکرکولو حکمت:** په دې جمله باندې اشکال راځی چه دَاستقبال قبله ذکر خو په صلاة کښې موجود وو نوبیا دا ځان له ولې ذکرکړې شو؟

نودَدې جواب دادې چه قبله په مقابله دَ مونځ کښې زیاته مشهوره ده. بې شمیره کسان وی چه دَ مونځ دَ کولو دَ آدابو، شرطونو او اصولو وغیره نه ناخبره او جاهل وی لیکن هغوی هم قبله پیژنی او هغوی ته معلومه وی چه زمونږ قبله کومه ده او کوم طرف ته ده.

دې نه علاوه بله خبره هم ده چه دَ مونځ ډیر ارکان داسې دی چه زمونږ مونځ او دَ نورو په مونځونو کښې مشترك دی مثلاً قیام: زمونږ په مونځ کښې هم دې اودَ یهودو په مونځ کښې هم دې. قراءت زمونږ په مونځ کښې هم دې اودَ یهودیانو په مونځ کښې هم دې. لیکن قبله کښې زمونږ اودَ هغوی فرق دې. په دې وجه ئی دَ "من صلی صلاتنا" نه پس "واستقبل قبلتنا" ذکر اوفرمائیلو.[3]

علامه عینی رحمه الله فرمائی[4] کله چه دَهغه عبادتونو ذکر اوکړې شو دَ کوم په ذریعه چه به په مسلم اوغیرمسلم کښې فرق کیدلو نودَ هغې نه پس ئی هغه څیز ذکرکړو چه عبادت او

---

[1] عمدة القاری: ٤/١٨٦، ذخیرة العقبی شرح سنن النسائی، کتاب المحاربة، باب: تحریم الدم، رقم الحدیث: ٣٩٦٧، ٣١/٢٢٦.

[2] عمدة القاری: ٤/١٨٦، تحفة الأبرار شرح مصابیح السنة، کتاب الإیمان، رقم الحدیث: ٨٠، ١/٤٧.

[3] فتح الباری: ١/٤٤٦، عمدة القاری: ٤/١٨٦، إرشادالساری: ٢/٥٣، ذخیرة العقبی شرح سنن النسائی، کتاب المحاربة، باب: تحریم الدم، رقم الحدیث: ٣٩٦٧، ٣١/٢٢٦.

[4] عمدة القاری: ١/٤٤٦.

عادت د دوارو په اعتبارو سره مسلم او غير مسلم کښې فرق ښکاره کوی. او هغه دې زمونږ د ذبيحې استعمالول، د دې طرف ته ئې اشاره کولو سره اوفرمائيل:

**د "أكل ذبيحة" د شرط اهميت:** "أكلوا ذبيحتنا" دا جمله په اصل کښې په دې خبره باندې ذلالت کوی چه څنګه من حيث العبادة زمونږ او د نورو په مينځ کښې په ډيرو کارونو کښې فرق دې. دغه شان ډير څيزونه داسې هم دی چه من حيث العبادة او من حيث العادة زمونږ او د هغوی په مينځ کښې فرق دې. "اكل ذبيحه" مسئله هم داسې ده چه عادت هم دغه دې چه د يو ملت خلق د بل ملت ذبيحه نه استعمالوی او د عبادت په نقطه نظر سره هم د يو ذبيحه د بل د پاره صحيح او ټيك نه شی ګرځولې کيدې. په دې وجه ئې په حديث کښې "واستقبل قبلتنا" نه پس "وأكل ذبيحتنا" ذکر کړو.[۱]

**د علامه ګنګوهی رحمه الله رائې:** علامه رشيد احمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د "أكلوا ذبيحتنا" قيد د هغه کافرانو (د اسلام نه جدا ساتلو يا) د ويستلو د پاره دې کوم چه د مسلمانانو ذبيحه نه خوری ګنی مشرکان او يهوديان او نصاری خو د مسلمانانو ذبيحه خوری. د دې نه احتراز مقصود نه دې.[۲]

**د حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله رائې:** د دې په شرح کښې حضرت شيخ الحديث رحمه الله ليکی چه د دې عبارت په ذريعه حضرت شيخ رحمه الله د دې اعتراض جواب ورکړې دې چه مشرکان او اهل کتاب خو د مسلمانانو ذبيحه خوری نو بيا د هغوی ذکرولې اوکړې شو؟
نو حضرت ګنګوهی رحمه الله چه کوم جواب ورکړو د هغې حاصل دا دې چه بعضې مشرکانو او بعضې اهل کتابو به د مسلمانانو ذبيحه نه خوړله او بعضې هغه وو چه د غير الله د پاره به ئې ذبح کوله. نو د اول الذکر په رد کښې "أكل ذبيحتنا" اوفرمائيل او د ثانی الذکر د رد د پاره د رواياتو نه په يو روايت کښې "ذبحوا مثل ذبيحتنا" الفاظ هم ملاويږی.[۳]

**د علامه طيبی رحمه الله رائې:** که په حديث شريف کښې مذکوره کلام د يهودو په مقابله کښې شمير کړې شی نو معامله آسانه ده چه د استقبال عطف په صلاة باندې کول او بيا د ذبيحې ځان له په خاص توګه باندې ذکرکولو سره ټول کارونه آسانيږی. ځکه چه يهودو به د مسلمانانو ذبيحه نه خوړله. دا خو هغه خلق وو چا چه مسلمانانو ته هغه وخت پيغورونه ورکړی وو کوم وخت چه مسلمانانو ته د کعبې طرف ته مخ ګرځولو حکم شوې وو. د کوم طرف ته چه قرآن پاك اشاره اوکړه: ﴿مَا وَلَّاهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا﴾ چنانچه په حديث شريف

---

[۱] عمدة القاری: ۱۸۶/٤ الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبی، كتاب الإيمان ، رقم الحديث:۱۳، ۱۳۱/۱.
[۲] لامع الدراری: ۲۶۲/۲.
[۳] الكنز المتواری: ۸۰/٤.

كښې هغوی د مسلمانانو نه د جدا کولو دپاره اوفرمائيلې شو چه هغوی دې زمونږ په شان مونځ اوکړی او قبلې طرف ته مخ کولو باره کښې او زمونږ د ذبيحې د خوړلو نه د منع کيدلو باره کښې دې مونږ سره جګړه پريږدی نو هغوی به مسلمانان شميرلې شی.[١]

"ذبيحة" د فعيلة په وزن بانديې د مفعولة په معنی دې او "التاء" د جنس د پاره ده لکه "الشاة" کښې نو معنی به ئې ذبح کړې شوې ځناور وی.[٢]

**قوله:** فَذَلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِي لَهُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ، فَلاَ تُخْفِرُوا اللَّهَ فِي ذِمَّتِهِ»

نو هغه به داسې مسلمان شميرلې شی د چا د پاره چه د الله او د هغه د رسول د طرف نه د امان وعده ده. نو تاسو د الله تعالی په دغه وعده کښې خيانت مه کوئی.

**قوله:** "فذلك" اسم اشاره ده د دې مشار اليه به "من جمع هذه الأوصاف الثلاثة" شی. مطلب به داشی چه هغه سړې څوک چه دا دريواړه صفات په خپل ځان کښې راجمع کړی هغه به مسلمان وی. نو "ذلك" به د خپل مشار اليه سره مبتداء شي اود دې خبر به وړاندې پوره جمله شی.[٣] بيا به جمله اسميه د شرط د پاره جزاء جوړه شی.[٤]

"ذمة الله" د ذمة نه مراد امان، وعده او کفالت دې. يعنی داسې سړې د الله په امان کښې، د الله په حفاظت کښې اود الله په کفالت کښې دې[٥]

د دې پوره جملې مطلب به داشی چه کوم سړې دغه مذکوره دريواړه کارونه اوکړی هغه به د الله اود هغه د رسول ﷺ په حفاظت کښې راشی د کافرانو د وبال نه يعنی کافرانو سره چه کوم قتل وغيره مشروع دی د دغه سړی نه به دغه حکم اوچت کړې شی. د "ذمة" لفظ مکرر ذکر کړې شوې دې د الله سره هم او د رسول سره هم، په دې سره دا خودل مقصود دی چه د دواړو ذمه، امان اوحفاظت د دنيا مقصود دې اګرچه اصل ذمه خو هم د الله ده اوداهم مقصود دی چه دواړه يو بل سره لازم دی. هم په دې وجه وړاندې جملې "فلا تخفروا الله فی ذمته" کښې صرف د "ذمة الله" په ذکر باندې اقتصار اوکړې شو.[٦]

"فلا تخفروا" دا د باب افعال نه د نهی صيغه ده. "خَفَرَ" د نصر ينصر او ضرب يضرب نه د امان او حفاظت په معنی کښې استعماليږی اوکله چه دا په باب افعال کښې مستعمل وی نو همزه د افعال به د سلب او ازالې په معنی کښې استعماليږی. مطلب به داشی چه امان مات کړې

---

[١] الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبي، كتاب الإيمان، رقم الحديث: ١٣، ١٣١/١.
[٢] مرقاة المفاتيح، كتاب الإيمان، رقم الحديث: ١٣، ١٥٢/١ضياء الساری فی مسالک أبواب البخاری: ٢٥٧/٥.
[٣] مرقاة المفاتيح، كتاب الإيمان، رقم الحديث: ١٣، ١٥٢/١ .
[٤] عمدة القاری: ١٨٦/٤، إرشادالساری:٥٣/٢.
[٥] الصحاح للجوهری، ص: ٣٧٥، النهاية لابن اثير: ٦١٢/١، مصابيح الجامع للدمامينی: ١٠٨/٢.
[٦] فتح الباری: ٦٤٤/١، عمدة القاری: ١٨٢/١، مرقاة المفاتيح، كتاب الإيمان، رقم الحديث: ١٣، ١٥٢/١.

شو، دَ حفاظت نه اوویستلې شو، په وعده کښې خیانت اوکړې شو. چنانچه "فلاتخفروالله" معنی به دا شی تاسو الله سره خیانت مه کوئی اوذ هغه ورکړې شوې امان مه ماتوئی.[1]

"فی ذمته" کښې دَ "ه" ضمیر مرجع کښې دوه احتمالات دی یو دا چه دَدې مرجع الله وی او دویم دا چه دَدې مرجع مسلم وی. په اول الذکر کښې به مطلب داشی چه دَدې مسلمان دَ ځان، مال، عزت او ناموس پسې کیدو سره دَ الله تعالی په ورکړې شوی امان کښې دَ خیانت مرتکب مه جوړیږئی. او په ثانی الذکر کښې به مطلب داشی چه دَدې مسلمان باره کښې دَ الله تعالی وعده مه ماتوئی.[2]

علامه خطابی رحمه الله دَدې جملې مطلب دا بیان کړې دې: "معناه: لاتخونوا الله فی تضییع حق من هذا سبیله" چه څوك دغه دریواړه اعمال اختیار کړی دَ دې په لار روان شوی وی نو تاسو دَ هغوی حقوق ختمولو سره دَ الله تعالی سره خیانت مه کوئی.[3]

**دَ حدیث دَ ترجمة الباب سره مناسبت** دَمذکوره حدیث شریف دَترجمة الباب سره مناسبت دَ "واستقبل قبلتنا" دَ لفظ دَ وجې. دَدې جملې ذکر دَ قبلې په شان باندې دَ تنبیه په توګه ذکر دې ځکه چه استقبال قبله خو من جمله دَ نورو شرائطو "من صلی صلاتنا" کښې شامل وو.[4]

**دَ حدیث مبارك نه مستفاد امور او احکام:** دَمذکوره حدیث شریف نه ډیر امور او احکام مستنبط کیږی په کوم کښې چه یو څو دلته لاندې نقل کولې شی:

① دَ مذکوره حدیث نه دَ قبلې شان او عظمت معلومیږی چه دَ دې طرف ته مخ کول په مونځ کښې افضل ترین عبادت ګرځولې شوې دې. کوم سړې چه عمداً قبلې طرف ته مخ نه کړی دَ هغه مونځ قبول نه دې.[5]

② په مانځه کښې قبلې ته مخ کول مطلقًا شرط دې سواؤ ویرې دَ حالت نه، چه په داسې حالت کښې دَمونځ ګذار نه دا شرط مرتفع کیږی بیا په دې کښې نور تفصیل دادې چه کوم سړې په مسجد حرام کښې وی دَ هغه دَ پاره دَ عین قبلې استقبال شرط دې او کوم سړې چه دَ مسجد حرام نه بهروی دَ هغه دَ پاره دَ قبلې طرف کافی دې.[6]

③ دَمسلمانانو په علامت کښې دَ ذبیحې خوړل هم معلوم شو ځکه چه دَ اهل کتابو یو

---

[1] الصحاح للجوهری، ص: ۳۰۶، النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ۵۱۰/۱، عمدة القاری: ۱۸۶/٤، فتح الباری: ٦٤٤/۱، إرشادالساری: ۵۳/۲.

[2] مرقاة المفاتیح، کتاب الإیمان، رقم الحدیث: ۱۳، ۱۵۲/۱، عمدة القاری: ۱۸٦/٤، إرشادالساری: ۵۳/۲.

[3] أعلام الحدیث فی شرح صحیح البخاری: ۳۷۵/۱.

[4] عمدة القاری: ۱۸۷/۱،منار القاری: ٤/۲.

[5] عمدة القاری: ۱۸۵/٤ إرشادالساری: ۵٤/۲، مصابیح الجامع للدمامینی: ۱۰۸/۲.

[6] عمدة القاری: ۱۸۵/٤ إرشادالساری: ۵٤/۲، مصابیح الجامع للدمامینی: ۱۰۸/۲، اللامع الصبیح للبرماوی: ۱۳۲/۳.

جماعت او بت پرست دَ مسلمانانو ذبیحه نه خوري.[1]

④ دَمسلمان دَ عزت، ناموس، مال او ځان حفاظت زمونږ دَ ټولو ذمه واري ده.[2]

⑤ دا حدیث په دې خبره باندې هم دلالت کوي چه یو سړې صرف دَ شهادتین دَ وجې معصوم الدم نه ګرځي نه بلکه په هغه باندې لازم دي چه دَ شهادتینو حقوق هم اداکړي او په حقوقو کښې دَ ټولو نه مؤکدحکم دَ مونځ دې. هم په دې وجه ئې دا په خاص توګه ذکرکړو.[3]

⑥ یو اهم خبره دا معلومه شوه چه خلقو کښې دَ بعضو امور دَ نورو بعضو دَپاره دَهغوی په ظاهر باندې محمول وي نه چه دَهغوی په باطن باندې. او دا خبره چه کوم سړې دَ دین شعائر اودَ دین والو طور طریقې خپلوي نو په هغوی باندې هم دَ دین اودَ دین والو احکام جاري کولې شي کله چه دَهغوی باطن معلوم نه وي. لکه چه یو مسافر سړې راشي اودَ هغه ظاهري شکل او صورت دَمسلمانانو په شان وي نوهغه به هم مسلمان شمیرلې شي یعني هغه سره به هم دَمسلمانانو سلوك کولې شي ترکومې پورې چه دَهغه نه دَ اسلام خلاف څه خبره ښکاره نه شي.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله هم داسې لیکي چه دَ حدیث نه معلومه شوه چه دَخلقو احوال او معاملات دَهغوی په ظاهر باندې محمول کول پکاردي. لهذا چه کوم سړي دَ دین شعائر ښکاره کړي په هغه باندې به هم دَ مسلمانانو احکام جاري کولې شي ترکومې پورې چه دَهغه نه دَدین خلاف څه خبره ښکاره نه شي.[5]

**دَ اسلام دَپاره هم دَ دغه دریو امورو دَانتخاب حکمت:** علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه که چرې څوك اعتراض اوکړي چه دَ دین دَ ټولو ارکانو او واجباتو نه ئې هم دا درې ولې په خصوصیت سره ذکرکړل؟

نودَدې جواب دادې چه دا دریواړه څیزونه په دین اسلام کښې دَ ډیرې لوئې درجې دي. په دې باندې عمل کونکې ډیر زر په نورو خلقو کښې ممتاز کیږي ځکه چه په ابتدائي ملاقات کښې اکثر وختونو کښې ملاویدونکې دَخپل کوربه په باره کښې دَ هغه په مونځ باندې پابندي کول پیژني په خلاف دَ روژې یا حج. اول ذکر شوې (روژه) خودَ امر باطن نوم دې اودَ فرض روژې په ذریعه امتیاز خو په پوره کمال کښې یوه میاشت کښې کیدې شي اودَ دویم ذکر شوي (حج) معامله هم دغه شان ده. په څه کسانو باندې خو دا دَ سر نه واجب نه وي او چه په چا باندې واجب وي دَهغوی نه دَدې کار پیژندګلو کښې میاشتې او کلونه لګیدې شي.[6]

**اهلِ قبله سره متعلق یو تحقیق:** علامه انورشاه صاحب کشمیري رحمه الله فرمائي چه هم دَدې

---

[1] عمدة القاري: ۱۸۷/٤، الشرح المیسر لصحیح البخاري: ٤٤۳/۲.
[2] الشرح المیسر لصحیح البخاري: ٤٤۳/۲، منار القاري: ٤/۲.
[3] فتح الباري لابن رجب حنبلي: ۱۰۸/۲، منار القاري: ٤/۲.
[4] للامع الصبیح للبرماوي: ۱۳۲/۳، کوثر معاني الدراري في کشف خبایا صحیح البخاري: ۱۱/۷.
[5] فتح الباري: ٦٤٤/۱.
[6] شرح الکرماني: ٥٥/٤.

احادیثو نه دَ اهلِ قبله لقب دَ اهلِ اسلام دپاره اخذ کړې شوې دې. وجه دا ده چه دا دَ اهلِ اسلام ډیر لوئې اَوښکاره علامات دی. په کوم سره چه ډیر په آسانئ سره دَ اسلام دَ دین والا دَ نورو مذاهبودَ خلقو نه ممتاز کیږی. ځکه چه هغه خلق زمونږ دَ ذبیحې نه پرهیز کوی. زمونږ په شان مونځ نه کوی او په خپلو عبادتونو کښې زمونږ دَ قبلې طرف ته هم نه مخ کوی. لهذا دا دریواړه څیزونه دَ اسلام دَپاره دَ شعار په درجه کښې دی. لیکن دا مطلب نه دې چه په کومو خلقو کښې دا درې څیزونه وی هغه به خامخا مسلمان ګڼړلې شی اومسلمان به ورته وئیلې شی که هغوی دَ دین دَ (ضروری) څیزونو نه انکار هم اوکړی. او که هغوی دَ حضورپاک ﷺ دَ ارشاد مطابق دَ دینِ اسلام نه خارج هم شی. څنګه چه غشې دَ لندې نه لرې کیږی. او ښکاره خبره ده که یو سړې پوره دین منی او په هغې باندې عمل هم کوی خو که دَ قرآن پاك دَ یو وړوکی نه وړوکی سورت نه هم انکار اوکړی یا دَهغې حکم اونه منی یا ښه پوهیدو سره دَ هغې غلطه معنې اوکړی نودَ هغه په کفر کښې شك نه شی کیدې. څه چه یو سړې دَ نبوت دعویٰ اوکړی، دَ انبیاء علیهم السلام سپکاوې اوکړی، دَ هغوی دَ شان خلاف سخت نامناسب الفاظ استعمال کړی. دَ دین تحریف اوکړی. دَ رسول الله ﷺ دَ احادیثو، اخبارو، واقعاتو اودَ معجزاتو انکار او مسخرې اوکړی وغیره نودغه خلق څنګه په اسلام کښې داخل ګرځولې کیدې شی؟

چنانچه زمونږ په زمانه کښې مرزا غلام احمد قادیانی دَدې ټولو موجبات کفر ارتکاب اوکړو. حالانکه دَدې نه دَ یو کار ارتکاب هم دکفر دَ ثبوت دَپاره کافی وو. مګر افسوس چه زمونږ په دې دَ جهالت دور کښې بعضې اهلِ علم هم چا ته چه دَ فقهې په کتابونو، دَ عقیدو او کلام په کتابونو باندې پوهه نه وه حاصله. دَ مرزا په تکفیر کښې ئې تردد اوکړو او وئې وئیل چه مونږ احتیاط کوو او په دې باندې ئې ځان پوهه نه کړو لکه څنګه چه اکفارِ مسلم باندې بهادری کول ګناه ده بالکل هم دغه شان عدم اکفار کفار هم ګناه ده. او هم په دې وجه خلیفهٔ اول حضرت ابوبکر صدیق ﷺ دَ زکوة نه ورکونکو دَ جنګ باره کښې دَ حضرت عمر ﷺ تردد ته کتلو سره فرمائیلې وو: «أجبار في الجاهلية وخوار في الإسلام؟» یعنی دَ جاهلیت په زمانه کښې خو ډیر لوئ بهادر اوتکره وې، اوس دَ اسلام په زمانه کښې بزدلی او کمزوری ښکه؟ دې نه پس بیا زر حضرت عمر ﷺ خپله رائې بدله کړه او وئې فرمائیل چه زما زړه هم دَهغه خبرې دَ پاره کولاؤ شو دَ کومې دَ پاره چه دَ حضرت ابوبکر ﷺ زړه کولاؤ شوې وو. او هغه پوهه شو چه دَ احتیاط تقاضا هم هغه وه کومه چه حضرت ابوبکر ﷺ اختیارکړې وه.[1]

**دَ اهلِ قبله تعریف:** ملاعلی قاری ﷫ دَ اهلِ قبله تکفیر کولو او نه کولو بحث په مقام باندې دَ ټولو نه مخکښې دَ اهلِ قبله تعریف کولو سره فرمائی: "إعلم أن المراد بأهل القبلة، الذين اتفقوا على ما هو من ضروريات الدين كحدوث العالم، وحشر الأجساد، وعلم الله بالكليات والجزئيات، وما أشبه ذلك من المسائل، فمن واظب طول عمره على الطاعات والعبادات مع اعتقاد قدم العالم، أو نفي الحشر، أو نفي علمه

[1] انوارالباري:١٢/١٧٩.

سبحانه بالجزئيات لايكون من أهل القبلة»[1]

**ترجمه**: دا خبره پېژندل پکار دی چه دَ اهل قبله نه مراد هغه خلق دی چه په ټولو ضروریاتو دینیه باندې اتفاق لري، مثلاً: عالم حادث دې (یعني الله تعالی دا پیدا کړی دی) اوخلق به دَ خپلو بدنونو سره په قیامت کښې یوځائې کیږي. او الله تعالی دَ ټولو کلیاتو او جزئیاتو علم لري. اودې په شان نور مسائل هم هغه سرې مني. نو چه کوم سړې ټول عمر دَ طاعاتو او عباداتو پابندی کوی لیکن دَ هغه عقیده دا وی چه عالم قدیم دې (یعني دَ همیشه نه دې) او په قیامت کښې به خلق دَ خپلو بدنونو سره نه رایوځائې کیږي یا الله تعالی ته دَ جزئیاتو (یعني دَ هرڅیز) علم نشته دې نو داسې سړې دَ اهل قبله نه نه دې.

بیا نور فرمائي: «وإن المراد بعدم تكفير أحد من أهل القبلة عند أهل السنة أنه لايكفر مالم يوجد شيئ من أمارات الكفر وعلاماته ولم يصدر عنه شيئ من موجباته»[2]

**ترجمه**: اودَ اهل سنت په نیز دَ اهل قبله تکفیر نه کولو مراد دادې چه دَ هغوی به ترهغه وخته پورې تکفیر نه شی کولې ترکومې پورې چه په هغوی کښې دَ کفر نښې اوعلامې نه څه څیز موجود نه شی اوترکومې پورې چه دَ هغوی نه دَ موجبات کفر نه څه خبره صادرنه شی

دَملاعلی قاری رحمه الله مذکوره بحث ته کتلو سره دَحدیث الباب وضاحت کیږي چه هلته دَ دریوکارونو کونکو دَ پاره دَ الله اودَ هغه دَ رسول ﷺ دَ ضمان اعلان کړې شوې دې نو هلته په ظاهری توګه باندې دَ دغه دریواړو کارونو کونکی به صرف ترهغه وخته پورې مسلمان ګنړلې شی ترکومې پورې چه دَهغوی نه دَ دین دَ نورو ضروریاتو نه انکار مخې ته رانه شی اوکله چه دَهغوی نه دَ نورو ضروریات دینیه خلاف څه خبره صادرشی نوبیا دَهغوی دَپاره دَ الله اودَ هغه دَ رسول ﷺ ضمان نشته دې. بلکه دَهغوی تکفیر به کیږي. یعني هغوی سره به دَ مسلمانانو والا سلوك نه شی کولې. کتب علم الکلام والعقائد کښې دَدې امر پوره تصریح موجود ده.

**دَ ابن امیرا لحاج رحمه الله تشریح**: محقق ابن امیر الحاج رحمه الله فرمائي: «أهل القبلة، هو الموافق على ماهو من ضروريات الإسلام كحدوث العالم وحشر الأجساد من غير أن يصدر عنه شيئ من موجبات الكفر قطعا من اعتقاد راجع إلى وجود إله غير الله تعالى، أو إلى حلوله في بعض أشخاص الناس، أو إنكار نبوة محمد صلى الله عليه وسلم أو ذمه، أو استخفافه، ونحو ذلك المخالف في أصول سواها مما لا نزاع أن الحق فيه واحد كمسألة الصفات وخلق الأعمال وعموم الإرادة، وقدم الكلام ولعل إلى هذا أشار المصنف ماضيا بقوله إذ تمسكه بالقرآن، أو الحديث، أو العقل إذ لا خلاف في تكفير المخالف في ضروريات الإسلام من حدوث العالم وحشر الأجساد ونفي العلم بالجزئيات، وإن كان من أهل القبلة المواظب طول العمر على الطاعات، وكذا المتلبس

---

[1] شرح الفقه الأكبر للملاعلي القاري، مسئلة: استحلال المعصية ولو صغيرة كفر، ص: ۲۵۸.

[2] شرح الفقة الأكبر للملاعلي القاري: مسئلة: استحلال المعصية ولو صغيرة كفر، ص: ۲۸۵.

بشيئ من موجبات الكفر ينبغي أن يكون كافرا بلا خلاف، وحينئذ ينبغي تكفير الخطابية لما قدمناه عنهم في فصل شرائط الراوي، وقد ظهر من هذا أن عدم تكفير أهل القبلة بذنب ليس على عمومه إلا أن يحمل الذنب على ما ليس بكفر، فيخرج المكفر به كما أشار إليه السبكي»[١]

**ترجمه**: اهل قبله هغه دي څوك چه موافق وي دَ دين دَ ټولو ضرورياتو لكه دَ عالم حدوث او حشر اجساد، په داسې توګه چه دَدوئ نه څه څيز دَ موجبات كفر نه اونه شي مثلاً، داسې عقيده چه دَ الله تعالى سره چرته بل يو خدائي اله منلو طرف ته بونه څي يا دَ الله تعالى په يو سري كښې دَ حلول كيدلو طرف ته يا دَ نبي اكرم دَ نبوت نه دَانكار طرف ته، يا دَ رسول الله ﷺ دَ مذمت او استخفاف طرف ته بونه څي، يا دَدې په شان نورو خبرو طرف ته بونه څي (تردي چه مصنف رحمه الله فرمائي چه) دې نه معلومه شوه چه دَاهل قبله دَڅه ګناه دَ وجې دَ تكفير نه كولو حديث په خپل عموم باندې نه دې. البته كه دَ ګناه نه مراد دَ كفر نه علاوه څه بله معنى واخستې شي لكه چه دَهغې طرف ته ملا سبكي رحمه الله اشاره كړې ده نوعموم مراد اخستې شي.

**دَعلامه تفتازاني رحمه الله تشريح**: په شرح المقاصد كښې علامه تفتازاني رحمه الله فرمائي: «ومعناه أن الذين اتفقوا على ما هو من ضروريات إسلام كحدوث العالم وحشر الأجساد، وما أشبه ذلك، واختلفوا في أصول سواها كمسألة الصفات، وخلق الأعمال، وعموم الإرادة، وقدم الكلام، وجواز الرؤية، ونحو ذلك مما لا نزاع أن الحق فيها واحد، هل يكفر المخالف للحق بذلك الاعتقاد والقول به أم لا؟ فلا نزاع في كفر أهل القبلة المواظب طول العمر على الطاعات باعتقاد قدم العالم ونفي الحشر، ونفي العلم بالجزئيات، ونحو ذلك، وكذا بصدور شيئ من موجبات الكفر عنه»[٢]

**ترجمه**: كوم خلق چه په ضروريات اسلام باندې خو متفق دى مثلاً حدوث عالم او حشر وغيره مني، اودَ دې نه علاوه په نورو اصولو كښې اختلاف كوى لكه مسئلهٔ صفات او خلق افعال اوعموم اراده اودَ كلام الله قديم كيدل اودَ رؤيت دَ الله جواز وغيره، په كوم كښې چه هيڅ څه جګړه نشته دې چه په دې كښې حق هم يو دې نو آيا دَدې عقيدې او دَدې دَ قائل كيدو دَ وجې نه دَ دغه حق مخالفت كونكى تكفير به كولې شي كه نه؟ نودَ داسې اهل قبله په تكفير كښې هيڅ اختلاف نشته دې چه ټول عمر په هميشه والى سره دَ قديم عالم او نفى دحشر او نفى دَعلم بالجزئيات وغيره قائل وى او هم دغه شان دَ موجبات كفر نه دَ يو څيز په صادر كيدو سره دَهغه په كفر كښې هيڅ اختلاف نشته دې.

**دَ صاحب غاية التحقيق علامه عبدالعزيز البخاري رحمه الله تشريح**: علامه عبدالعزيز بن احمد ابن

---

[١] التقرير والتحبير لابن أمير الحاج على التحرير في أصول الفقه، المقالة الثالثة: في الاجتهاد وما يتبعه من التقليد والافتاء: ٤٠٢/٣.

[٢] شرح المقاصد للتفتازاني، المبحث السابع: في حكم مخالف الحق في أهل القبلة: ٢٢٨/٥.

محمد البخاري رحمه الله دَ اصول فقه كتاب دَ حسامي په شرح غاية التحقيق كښې فرمائي: «إن غلا فيه (أي: في هواه) حتى وجب الكفارة به لايعتبر خلافه ووفاقه أيضا لعدم دخوله في مسمى الأمة المشهود لها بالعصمة وإن صلى إلى القبلة واعتقد نفسه مسلما، لأن الأمة ليست عبارة عن المصلين إلى القبلة بل، عن المؤمنين، وهو كافر، وإن كان لايدري أنه كافر»[1]

**ترجمه:** كه چرې يو سړی په خپلو نفساني خواهشاتو كښې غلو اوكړه ترديې چه دَهغه تكفير واجب شو نو ددې (تكفير) دَخلاف به اعتبار نه شي كولې. ځكه چه دا سړې دَامت په هغه طبقه كښې شامل نه دې دَچا دَ پاره چه دَ حفاظت اوعصمت وعده كړې شوې ده. اګر كه دا سړې دَ قبلې طرف ته مخ كولو سره مونځ هم كوی او خپل ځان مسلمان هم ګڼړی. ځكه چه امت دَ قبلې طرف ته مخ كولو سره دَ مونځ كونكو نوم نه دې بلكه امت خود مؤمنانو نوم دې او داسې سړې (چه غلو كونكې وی) كافر دې اګرچه هغه ته دَ خپل كفر علم نه وی.

**دَعلامه عبدالعزيز الفرهاوی رحمه الله تشريح:** علامه عبدالعزيز الفرهاوی رحمه الله دَ شرح العقائد شرح النبراس كښې فرمائي: «"ومن قواعد أهل السنة أن لايكفر" مجهول من التكفير، وهو النسبة إلى الكفر "أحد من أهل القبلة" معناه اللغوی: من يصلي إلى القبلة، أو يعتقدها قبلة، وفي اصطلاح المتكلمين: من يصدق بضروريات الدين، أي: الأمور التي علم ثبوتها في الشرع واشتهر، فمن أنكر شيئا من الضروريات كحدوث العالم وحشر الأجساد وعلم الله سبحانه بالجزئيات وفرضية الصلاة والصوم، لم يكن من أهل القبلة، ولوكان مجاهدا في الطاعات وكذلك من باشر شيئا من أمارات التكذيب كسجود الصنم والإهانة بأمر شرعي والاستهزاء عليه، فليس من أهل القبلة، ومعنى عدم تكفير أهل القبلة أن لايكفر بارتكاب المعاصي ولا بإنكار الأمور الخفية غير المشهورة، هذا ماحققه المحققون، فاحفظه»[2]

**ترجمه:** دَ اهل سنت دَ قواعدو نه يوه قاعده داده چه دَ اهل قبله تكفيربه نه شي كولې. اهل قبله دَمعنى لغوی مطابق هغه سړی ته وئيلې شي چه دَ قبلې طرف ته مخ كولوسره مونځ اداكونكې وی. يا دَ قبلې دَ قبله كيدو عقيده لرونكې وی. او دَ متكلمينو په اصطلاح كښې هغه سړې دې چه ددين دَ ټولو ضرورياتو تصديق كوی. يعنى دَ هغه امورو دَكوم ثبوت چه په شريعت كښې معلوم اومشهور وی. نو چه څوك انكار اوكړی دَ يو دَ دين دَ ضرورياتو نه، لكه حدوث عالَم، حشر، علم الله بالجزئيات او فرضيت دَمونځ او روژې نو هغه به دَ اهل قبله نه نه وی. سره ددې چه هغه دَ طاعاتو پابند وی. او دغه شان هغه سړې به هم دَ اهل قبله نه نه وی چه څه داسې كار اوكړی كوم چه دَتكذيب ښكاره علامت وی لكه بت ته سجده كول، يا يو داسې كار اوكړی چه په هغې سره دَ شريعت دَ يو امر سپكاوې كيږی نوهغه دَ

---

[1] غاية التحقيق، ص: ۲۰۸، مير محمد كتب خانه، كراتشي.

[2] النبراس على شرح العقائد، الاستهزاء على الشريعة كفر، ص: ۵۷۲-۵۷۱.

اهل قبله نه نه دي. او د اهل قبله د تکفیر نه کولو مطلب دادي چه د ګناه د کولو د وجې دې د هغه تکفیر اونه کړې شي یا د یو داسې پټ غیر مشهور څیز د انکار د وجې دې د هغه تکفیر اونه کړې شي. دا هغه تحقیق دې کوم چه محققینو صحیح ګرځولې دې، دا محفوظ کړئی.

**دعلامه شمس الدین محمدبن عبدالرحمن السخاوي رحمه الله تشریح:** علامه شمس الدین محمدبن عبدالرحمن السخاوي رحمه الله "فتح المغیث شرح الفیة الحدیث" کښې فرمائي: «إذ لا یکفر أحد من أهل القبلة إلا بإنکار قطعی من الشریعة»[1] یعنی مونږ د اهل قبله نه د چا تکفیر نه کوو مګر د شریعت د یو قعطي امر نه د انکار د وجې.

دغه شان شارح هدایه المسمی ب العنایة علامه بابرتی رحمه الله [2]

او علامه الغنیمی المیدانی رحمه الله [3]

وغیره هم په شرح العقیدة الطحاویه کښې په دې باره کښې ښه بحث کړې دې.

**دعلامه انورشاه کشمیری رحمه الله تشریح:**

**داهل قبله دتکفیر مسئله:** دعلامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمودات بیانولو سره علامه بجنوری رحمه الله انوار الباري کښې فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دلته د باب: فضل استقبال القبلة لاندې چه کوم احادیث د حضرت انس رضي الله عنه نه نقل کړي دي د هغې نه واضحه کیږي چه څوک هم د توحید شهادت ورکړي او زمونږ د قبلې طرف ته مخ کړي، زمونږ په شان مونځ اوکړي او زمونږ ذبیحه خوري هغه مسلمان دې، هغه د الله تعالی پناه او ذمه وارئ کښې راغلو.

---

[1]) فتح المغیث شرح ألفیة الحدیث، تنبیهات: ۳۱۰/۱.

[2]) (ونسمی أهل قبلتنا مسلمین مؤمنین ما داموا بما جاء به النبی صلی الله علیه وسلم معترفین، وله بکل ما قال وأخبر مصدقین)، لقوله علیه السلام: "من صلی إلی قبلتنا، وأکل ذبیحتنا فهومنا". فإذا کانوا معترفین بما جاء به النبی صلی الله علیه وسلم من الشرع والدین، ومعتقدین التوحید، ومتمسکین بالشریعة، نسمیهم مؤمنین ونحکم علیهم بجمیع أحکام المؤمنین، ونراعی ظواهر هم ونکل ضمائر هم إلی الله، یقوله علیه السلام: "بعثت أتولی الظواهر، والله یتولی السرائر". وإنما قال: "ما داموا بما جاء به النبی صلی الله علیه وسلم معترفین"، لأن مجرد التوجه إلی قبلتنا لا یدل علی الإیمان مالم یصدق النبی صلی الله علیه وسلم. فیما جاء به من الشریعة، فإن الغلاة من الرافضة الذین یدعون أن جبر بل غلط فی الوحی لمحمد، فإن الله أرسله إلی علیّ. وبعضهم قالوا: بأنه إله، فهؤلاء وإن صلوا إلی القبلة لیسوا بمؤمنین. (شرح عقیدة الطحاویة للبابرتی، بیان شرط تسمیة أهل القبلة مؤمنین، ص:۸۹)

[3]) (ونسمی أهل قبلتنا) وهم الذین شهدوا شهادتنا، واستقبلوا قبلتنا، وصلوا صلاتنا، وأکلوا ذبیحتنا (مسلمین) و (مؤمنین) وإن وصفوا بإرتکاب الکبائر فاسقین (ماداموا) أی: مدة دوامهم (بما) أی: بالذی (جاء به النبی صلی الله علیه وسلم معترفین، وله) صلی الله علیه وسلم (بکل ما قال وأخبر) به (مصدقین) جازمین به (غیرمکذبین). ففی صحیح البخاری عن، أنس بن مالک رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: "من صلی صلاتنا، واستقبل قبلتنا، وأکل ذبیحتنا، فذلک المسلم الذی له ذمة الله وذمة رسوله، فلا تخفروالله فی ذمته". وفیه : عن أنس رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: أمرت أن أقاتل الناس حتی یقولوا: لا إله إلا الله، فإذا قالوها وصلوا صلاتنا، واستقبلوا قبلتنا، وذبحوا ذبیحتنا، فقد حرمت علینا دماؤهم وأموالهم إلا بحقها، وحسابهم علی الله. (شرح عقیدة الطحاویة للغنیمی المیدانی، إیمان من صدق بکل ما جاء به النبی، ص: ۱۰۳)

لهذا د الله تعالى په پناه کښې دې ځواک خلل انداز نه کوي د ټولو فرض دي چه د هغه د ځان او مال حرمت کنټرول سره د هغې حفاظت او کړي بغير د دې نه چه هغه پخپله خپل ځان په قصاص وغيره يا په څه مواخذه کښې اخته نه کړي وغيره

د دې احاديثو نه يوه اصولي مسئله په پوهه کښې راځي چه د يو اهل قبله تکفير دې او نه کړې شي. ليکن د دې دا مطلب هيڅ کله نه شي کيدې چه د دې دريواړو خبرو سره د هغه عقيده او اعمال څنګه د حق خلاف او د قرآن او حديث خلاف وي نو هغه به اهل قبله پاتې شي؟ ځکه چه په دې احاديثو کښې هم د توحيد شهادت وغيره سره اشاره دې طرف ته موجود ده چه د عقيدې په لحاظ د توحيد د شهادت د تقاضو خلاف هيڅ يو کار د ده نه اونه شي او په لحاظ د عمل د قبلې او د ذبيحې باره کښې هغه د عام مسلمانانو نه جدا څه طريقه نه وي اختيار کړې.

ټولو ته معلومه ده چه ډير زيات احاديثو کښې صرف توحيد نه ټول ايمانيات او عقيدې مراد اخستې شوې دي. لکه «من قال لا إله إلا الله دخل الجنة» او د مسلم وغيره نه دلته هم مونږ ذکر کړې دي چه حضور پاک په هغه ټولو څيزونو باندې ايمان راوړل ضروري ګرځولي دي کوم چه هغوي راوړې دي. او دا هم ښکاره خبره ده چه څوک زمونږ د ذبيحې نه پرهيز کوي هغه به خامخا زمونږ د عقيدې نه مختلف عقيده لري. يا کوم سړې چه مونږ سره يا زمونږ امام پسې خپل مونځ جائز نه ګڼړي هغه به زمونږ نه د مخالف عقيدې والا وي.

**د يوې مغالطې ازاله:** بعضې خلق د کم علمۍ او کم نظر په سبب په دې مغالطه کښې راګير دي چه اهل قبله او د اهل تاويل تکفير صحيح نه دې. حضرت شاه صاحب رحمه الله په خپله رساله اکفار الملحدين کښې په دې مسئله باندې ډير بحث کړې دې د کوم نه پس چه د يو اهل چه علم او نظر د پاره د مذکوره مسئلې صحيح په صورت باندې پوهيدو کښې هيڅ مشکل نه شي راتلې. حضرت رحمه الله او فرمائيل د اهل قبله د تکفير ممانعت اصل ماخذ د سنن ابی داؤد دا حديث دې چه درې څيزونه اصل ايمان دې. ① د لا اله الا الله د اقرار کونکي ځان او مال نه تعرض نه کول. ② د يو ګناه د ارتکاب په وجه چاته کافر نه وئيل. ③ د يو عمل په وجه څوک د اسلام نه خارج نه ګڼړل. (ابوداؤد، كتاب الجهاد، باب: في الغزو مع ائمة الجور: ٣٤٢/١)

د دې حديث شريف نه دوه خبرې په خاص توګه معلومې شوې. يوه دا چه د يوې ګناه د کولو د وجې يو مسلمان کافر يا د اسلام نه خارج نه دې ګڼړل پکار. بل دا چه د مذکوره ارشاد زيات تعلق د ائمه جور سره دې هم په دې وجه د مذکوره دريو خبرو د ذکر کولو نه پس حضور پاک او فرمائيل چه د جهاد دا حکم به زما د بعثت نه د دجال پورې خامخا جاري وي که ائمه عدل سره اوکړي شي يا د ائمه جور په ملګرتيا کيدو کښې کول وي. په دې وجه امام ابو داؤد رحمه الله دا حديث د مذکوره عنوان لاندې راوړې دې او زمونږ د حضرت شاه صاحب رحمه الله رائې هم دغه ده چه د عدم تکفير اهل قبله تعلق په اصل کښې امراء او حکمرانانو سره دې چه د هغوي پوره تابعداري ضروري ده او ترکومې پورې چه د هغه نه څه ښکاره کفر داسې اونه وينې چه د هغې په کفر کيدو باندې د قرآن او حديث په رڼا کښې دليل او ثبوت موجود

وي دَ هغې خلاف بغاوت کول جائز نه دي. لکه چه د بخاري شريف او مسلم شريف احاديثو کښې نقل دي. دَدې نه دا هم معلومه شوه چه داسې ښکاره کفر که چرې په چا کښې اوليدلې شي نو بيا دَدې ضرورت باقي نه پاتې کيږي چه هغه قائل کولو سره بې جوابه هم کړې شي يا دَ هغه دَ ښکاره قولي يا فعلي کفر او شرك باره کښې دَ هغه نه تاويل معلوم کړې شي (ځکه چه دَ هغه معامله دَ دغه کتونکو اهل علم اونظر په فيصله او رائې باندې محمول کړې شوې ده دَ چا نظر چه دَ قرآن او حديث په دلائلو او براهينو باندې حاوي وي. دَ يوګناه دَ وجې دَ عدم تکفير خبره امام ترمذي رحمه الله ابواب الإيمان کښې باب: ماجاء لايزني الزاني وهو مؤمن لاندې اختيار کړې ده دکوم حواله چه حضرت شاه صاحب رحمه الله دَ اکفار الملحدين په حاشيه کښې ورکړې ده.

حضرت رحمه الله دا مغالطه هم لرې کړه چه ډيرو جاهلانو دَ امام اعظم رحمه الله طرف ته هم دَ عدم تکفير اهلِ قبله خبره مطلقاً منسوب کړې ده حالانکه محقق ابن امير الحاج رحمه الله په شرح تحرير کښې دَ امام صاحب رحمه الله قول هم "ولانكفر أهل القبلة بذنب" نقل کړې دې. او دَ هغوي دا ارشاد دَعلامه نوح آفندي رحمه الله دَ تحقيق مطابق صرف دَ معتزلو او خوارجو دَترديد دَ پاره دې (چه خوارج دَ کبيره ګناه دَ وجې نه مسلمان ته کافر وائي او معتزله هغوي دَ ايمان نه خارج او مخلد في النار ګرځوي. ليکن مونږ اهل سنت والجماعت نه هغه ته دَ کبيره ګناه دَ وجې کافر وايو او نه ئې دَ اسلام نه خارج اومخلد في النار ګڼړو بلکه مسلمان او دَ مغفرت لائق ئې منو). دَ امام صاحب رحمه الله طرف ته غلطه خبره ځکه هم منسوب شوه چه تولو دَ امام صاحب رحمه الله قول دَ "منتقٰى" په حواله بغير دَ "بذنب" نه نقل کړې دې. مثلاً په شرح مقاصد او مسايره وغيره کښې بغيردَ بذنب دَ قيد موجود وو او هم په دې وجه حافظ ابن تيميه رحمه الله هم په خپل کتاب الايمان کښې ليکلي دي چه کله مونږ دا وايو چه اهل سنت په دې خبره باندې متفق دي چه دَ ګناه دَ وجې يو مسلمان ته کافر اونه وائيلې شي نودَ دغه ګناه نه مراد زنا، شراب څکل وغيره ګناهونه دي. علامه نووي رحمه الله هم په شرح عقيدة الطحاويه کښې دَدې پوره وضاحت کړې دې او ليکلي ئې دي چه دَ بذنب قيد ښائي چه دَ عقيدې دَ فساد دَ وجې به ورته خامخا کافر وئيلې شي. (نقله الملاعلي قاري في شرح الفقه الاكبر، ص: ۱۹۶)

خلاصه داده چه : ① دَعدم تکفير اهلِ قبله حکم دَ غير ضروريات دين او غير قطعي الثبوت امورو سره متعلق دي.

② دَحکم عدم تکفير اهلِ قبله تعلق دَ امراؤ او حکمرانانو سره دې.

③ دَمذکوره حکم تعلق دَ ذنوب سره دې نه چه دَعقائدو او ايمانياتو سره.

مونږ دَ اکفار الملحدين دَ مضامينو خلاصه پورته پيش کړې ده. باقي علماؤ او اهل تحقيق او نظرله دَ پوره کتاب مطالعه کول پکاردي. ګنې دَ لرې نه به هغوي هم دا خيال کوي چه "دارالتكفير" والو به هسې بې تحقيقه څه ليکلي لوستلي وي. "والناس أعداء لما جهلوا"

**دَايمان، اسلام او ضروريات دين تشريح:** دَ قرآن، حديث او اجماع نه ثابت شوې تول امور

غيبيه او دَ طاعت اعمال مثل ايمان دي او دَ اعمالو اداكول اسلام دې. بيا دې ټول ثابت شوى امورو ته دَ دين ضروريات وائى او دَدې نه انكار يا تاويل باطل كفر دې.
حضرت مجاهد رحمه الله او قتاده رحمه الله دَ آيت: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً﴾ (بقره) په تفسير كښې فرمائيلى دى چه دا آيت مبارك مسلمانانو ته دَ شريعت محمديه دَهر يو جز دَ طاعت دَالتزام دعوت وركوى كه هغه فرائض وى يا مستحبات، واجب على الأعيان وى يا واجب على الكفايه. كه چرې فرض عين وى نو دَ فرضيت په اعتقاد سره به دَهغې اداكول هم فرض وى او كه چرې مستحبات وى نو دَ هغې دَ استحباب عقيده به لازم وى او عمل به ئى صرف دَ مستحب په درجه كښې وى.
غرض دا چه دَ كومو څيزونو هم په دين كښې داخليدل ټولو ته معلوم شوى دى هغه ټول په ايمانيات كښې داخل دى ځكه چه ايمان دَ رسول الله ﷺ كاملې او مكملې تابعدارئ كولو نوم دې. حضرت شاه صاحب رحمه الله دَ دين دَ ضرورياتو دَتشريح نه پس فرمائى: مثلاً -
① مونځ كول فرض دى او دَدې دَ فرض كيدو عقيده هم فرض ده او مونځ زده كول هم فرض دى او دَ فرض نه ځان نا واقفيت يا دَ دې نه انكار كفر دې.
② مسواك كول سنت دى مگر دَدې دَ سنت كيدو عقيده فرض ده او دَدې دَ مسنون كيدو نه انكار كفر دې. دَدې علم حاصلول سنت دى ناخبرى دَمحرومتيا سبب دې او په دې باندې عمل نه كول دَعتاب نبوى او دَ ترك سنت دَدرجې دَعذاب سبب دې.
دَدې دَمسنون كيدو انكار ځكه كفر دې چه دَدې په معمولات نبوى كښې كيدل ټولو عامو او خاصو ته معلوم دى او كوم څيزهم چه دَدې درجې وى هغه دَدين په ضرورياتو كښې داخل دې.
حضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله هم په خپله فتاوى كښې پوره تفصيل سره دَايمان او كفر بحث ذكر كړې دې. هغوى فرمائى كوم سړې هم چه دَ دين دَ ضرورياتو نه انكار كوى هغه اهل قبله (او مسلمان) پاتې كيږى نه ځكه چه دَدين ضروريات هم هغې ته وئيلى شى چه دَ كتاب الله او احاديث متواتره او دَ اجماع امت نه ثابت شوى دى. دَدې دريواړو په ذريعه چه څومره هم عقائد او اعمال، فرض نفل وغيره ثابت دى هغه ټول مثل ضرورى دى. بيا عقائد پيژندل مستحب او عمل به هم صرف دَ مستحب په درجه كښې وى. ليكن دَ دين دَ ضرورياتو نه دَ يو څيز انكار به هم كفر وى.
**دَدين دَ ضرورياتو تفصيل:** په دې لاندې حقيقتونو باندې ايمان او يقين ساتل دَ يو مؤمن دَپاره ضرورى دى:
① دَ الله تعالى وجود سره دَ ټولو صفاتو دَ كمال په داسې شان چه هغه دَ خپل ذات او صفاتو عاليؤ په لحاظ سره يو، بې مثال او ازلى، ابدى دې. او دَ صفات عيوب او نقصان، دَ مخلوق دَ صفاتو نه دَهغه ذات سبحانه وتعالى منزه او مبرا دې.
② **حدوث عالَم:** چه دَالله تعالى نه سوا مخكښې هيڅ نه وو. دَ هغه نه سوا ټول موجودات عالَم (علوى او سفلى) دَهغه دَ قدرت او ارادې لاندې موجود او پيدا شوى دى.

③ په قضاء اوقدر باندې ايمان: چه تراوسه پورې څه په دنياکښې شوى دى يا اوس كيږى او يا به راتلونكى وخت كښې كيږى هغه ټول د الله تعالىٰ د ازلى علم مطابق دى. او هم دَهغه په اراده او قدرت كامله سره ظهور او وجود حاصلوى. او بنديګان چه دكومو اعمالو مكلف جوړكړې شوىَ دى دَهغې دَ پاره بنديګانو ته هم په اندازه دَ ضرورت اختيار او اراده وركړې شوې ده. يعنى بنده نه صرف مجبور دې او نه مختار مطلق او په كومه درجه كښې چه هم هغه ته اختيار او اراده وركړې شوې هم دَهغې اندازې دَاعمالو جزا او سزا ورله مقرر كړې شوې ده. كوم چه سراسر انصاف دې. په دې وجه دَدې خلاف عقيده لرل چه بنده ته هيڅ هم اختيار نشته يا هغه په مكمل توګه سره مختار مطلق دې دواړه خبرې دَ ايمان خلاف او كفر كښې داخل دى.

④ فرښتې، پيريان او انسانان دَهغه دَ ټولو نه اهم مخلوقات دى.

⑤ بنيادم ته ئې په خپلو ټولو مخلوقاتو باندې عزت وركړې دې او دې ئې په دنياكښې خپل خليفه جوړكړې دې او دَ زمكې او آسمان ټول خيزونه ئې دَ ده دَ پاره مسخر كړل.

⑥ دَ بنيادمونه ئې انبياء عليهم السلام منتخب كړل او هغوى ئې دَ نبوت په شرف او رسالت وركولو سره ئې دَ جناتو او انسانانو دَ هدايت دَپاره راؤليږل.

⑦ دَهدايت او نيغې لار خودنې دَ پاره ئې دَ وحى سلسله قائمه كړه او كتابونه ئې نازل كړل مثلاً تورات، زبور، انجيل او قرآن مجيد.

⑧ دَ انبياؤ عليهم السلام شمير الله تعالى ته معلوم دې. دا سلسله په آخرى پيغمبر سرورِدوعالم افضل الرسل حضرت محمد ﷺ باندې ختمه شوه. دَ حضورپاك نه پس به دنيا ته يو نوې نبى نه راځى.

⑨ په آخره زمانه كښې به حضرت عيسىٰ عليه السلام دَ آسمان نه راكوزيدو سره دَدين محمدى تائيد او تقويت كوى. هغه آسمان ته ژوندې اوچت كړې شوې وو او دې وخت كښې هم هلته ژوندې موجود دې او دنيا ته په راتلو سره به خپل مفوضه يعنى وركړې شوى كارونو دَ پوره كولو نه پس وفات كيدو سره دَ رسول الله ﷺ په روضه مطهره مقدسه كښې دفن كيږى. (دَ قرآن مجيد او صحيح متواتر احاديثو نه دا ټولې خبرې ثابتې دى).

⑩ دَ انبياؤ عليهم السلام نه پس مرتبه دَ حضورپاك دَ صحابه كرامو ده. دَ هغوى نه پس دَ تابعينو، تبع تابعينو، علماؤ او دَ امت دَ اولياؤ درجې دى.

⑪ دَ انبياؤ عليهم السلام دَ كومو معجزاتو ثبوت چه دَ قرآن اوحديث نه شوې دې هغه ټولې صحيح بغيرِدَ څه تاويل نه منل ضرورى دى.

⑫ دَ شريعت محمدى ټول احكام كوم چه دَ قرآن مجيد ، حديث، اجماع او قياس نه ثابت دى دَهغې ټول منل او درجه په درجه په هغې باندې عمل كول ضرورى دى. يعنى فرائض، واجبات، سنن او مستحبات دَ دين ټول هم دَ دين جزمنل او يقين كول خو ضرورى دى. باقى دَ عمل په لحاظ فرض باندې عمل كول فرض (په واجب باندې عمل كول واجب، په سنت باندې عمل كول سنت او په مستحب باندې عمل كول) به مستحب وى وغيره. دغه شان دَ

نواهي او دَ منكراتو دَ دين حكم دې.
⑬ دَ مرګ نه پس به هر سړي دَ آخرت په رومبي منزل كښې مقيم وى كوم ته چه برزخ وائي.
⑭ دَ قيامت دَ ورځې يقين، چه يوه ورځ به دَ الله تعالى په حكم سره ټوله دنيا ، دَ زمكې او آسمان څيزونه فناه كيږي.
⑮ ورځ دَ جزاء يعنى دَ حساب كتاب ورځ چه دَ هرمكلف ټولو اعمالو جائزه اخستو سره به دَ جزاء او سزا حكم كولې شي.
⑯ دَ جنت او دوزخ وجود حق دې. په جنت كښې به دَ ابدى نعمتونو مستحق هميشه اوسيږى او په دوزخ كښې به دَ ابدى عذاب مستحق هميشه اوسيږي او دَ چا دَ پاره به مرګ نه وى.
⑰ دَ الله تعالى دَمقربو او بزرګانو بنديګانو شفاعت به دَ ګناهګارانو بنديګانو دَپاره به دَ الله په اذن او اجازت كيږي.
⑱ په جنت كښې به دَ الله تعالى دَ هميشه خوشحالئ اودَ الله تعالى دَ ديدار دولت هم حاصليږي چه دَ ټولو نعمتونو نه به اوچت او غوره وى.

**دَكفر خبرې:** پورته ذكر شوى ټول دَ دين ضروريات او كوم چه په نورو كتابونو دَعقائدو او كلام كښې په تفصيل سره درج دى په ټولو باندې ايمان اويقين ساتل دَمؤمن دَ پاره ضرورى دى اودَ يو څيز انكار هم دَ كفر په پوله كښې دَ داخلولو دَپاره كافى دى. مثلاً دَ الله تعالى دَتوحيد يا يو صفت، يا دَ حدوث عالم نه انكار، اودَ جناتو او ملائكو دَ وجود، جنت، جهنم اومعجزات وغيره يا دَ اسلام دَ احكامونه دَ يو نه انكار يا تاويل هم كفر دې. دغه شان دَ يو نبى دَ نبوت نه انكار يا دَ يو قرآنى آيت نه انكار اوتحريف، يا دَ خاتم النبيين نه پس دَ يو نبى دَ نبوت اقرار، يا عالم قديم ګڼړل، يا دَ الله تعالى ، انبياؤ او ملا ئكو باره كښې دَ سپكاوى الفاظ استعمالول، او په چا كښې دَ كفر خبرې موجوديدو باوجود هغه كافر نه ګڼړل، يا هغه ته كافر وئيلو كښې تامل اوتردد كول هم كفر دې. ځكه چه دَدې نه ثابتيږى چه هغه دَ كفر او ايمان په خبرو كښې فرق نه كوى. والله اعلم. دَنور تفصيل او دلا ئلو دَ پاره اكفار الملحدين او دَ كتب عقائدو كلام مطالعه دې اوكړې شي. والله الموفق.[1]

حديث باب (دويم حديث)[حديث نمبر ۳۸۵]

- ۳۹۲ حَدَّثَنَا نُعَيْمٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسِ[2] بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. فَإِذَا قَالُوهَا وَصَلَّوْا صَلاَتَنَا، وَاسْتَقْبَلُوا قِبْلَتَنَا، وَذَبَحُوا ذَبِيحَتَنَا، فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْنَا دِمَاؤُهُمْ وَأَمْوَالُهُمْ إِلاَّ بِحَقِّهَا، وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ».

**ترجمه:** دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه ماته

[1] انوارالبارى: ۱۲/۱۹۳-۱۷۹.
[2] مرتخريجه تحت الحديث السابق رقمه: ۳۹۱.

دَخلقو سره دَ هغه وخته پورې دَ جنګ کولو حکم راکړې شوې دې ترکومې پورې چه هغوی لا اله الا الله اونه وائی. بیا چه کله هغوی دا اووائی او زمونږ په شان مونځ اوکړی او زمونږ دَ قبلې طرف ته مخ کړی او زمونږ ذبیحه اوخوری نو په مونږ باندې دَ هغوی ځان اومال حرام شو، مګر په حق باندې اودَ هغوی حساب به الله تعالی ته حواله وی.

**تراجم رجال:** په مذکوره حدیث شریف کښې ټول څلور رجال دی:

① **نعیم رحمه الله:** دا ابوعبدالله نعیم بن حماد بن معاویه بن الحرث المروزی رحمه الله دې. دَ دوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: دفع السواك إلى الأكبر کښې تیر شوی دی.[1]

② **ابن المبارك رحمه الله:** دا مشهور امام عبدالله بن مبارك رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی پنځم حدیث لاندې تیر شوی دی.[2]

③ **حمید الطویل رحمه الله:** دا ابوعبیده حمید بن ابی حمید الطویل الخزاعی البصری رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لا یشعر دَ دویم حدیث لاندې تیر شوی دی.[3]

④ **انس بن مالك رضی الله عنه:** دا مشهوراو معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې. دَ دوی په احوالو باندې تفصیلی کلام کشف الباری، کتاب الایمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوی ده.[4]

**شرح حدیث:** «أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ» یعنی ماته حکم راکړې شوې دې چه زه دَخلقو سره جنګ اوکړم ترهغې پورې چه هغوی (دَتوحید کلمه) لا اله الا الله اونه وائی.

"أُمِرْتُ" صیغه دَمجهول ده، مراد دَدې نه دا دې چه الله تعالی ماته حکم راکړې دې. دَمعروف په ځائی دَ مجهول صیغه ځکه استعمال کړې شوه چه فاعل مشهور اومعروف دې او په دې کښې فاعل (دَالله تعالی) تعظیم هم دې[5]. "النَّاسَ" نه مراد مشرکین دی.[6]

**دَ توحید اقرار سره دَ رسالت اقرار دَ نه ذکرکولو حکمت:** "حتی یقولوا" تردې چه هغوی دَ توحید دَکلمې اقرار اوکړی. دلته دَ توحید اقرار سره دَ رسالت دَ اقرار ذکر اونه کړې شو. دَدې وجه داده چه دلته کنایةً دَ رسالت اقرار ذکردې. هغه داشان چه مونځ په محمدی طریقې اداکول، دَ قبلې طرف ته مخ کول، په محمدی طریقه باندې ځناور ذبح کول، ټول امور دَ رسالت دَ

---

[1] کشف الباری: کتاب الوضوء، باب: دفع السواک إلی الأکبر.
[2] کشف الباری: ۴۶۲/۱.
[3] کشف الباری: ۵۷۱/۲.
[4] کشف الباری: ۴/۲.
[5] عمدة القاری: ۱۸۸/۴، الکوثر الجاری: ۷۸/۲، إرشادالساری: ۵٤/۲.
[6] عمدة القاری: ۱۸۸/۴، الکوثر الجاری: ۷۸/۲، إرشادالساری: ۵٤/۲.

اقرار طرف ته اشاره کونکی دی. ځکه چه دا دریواړه امور د شریعت محمدی ﷺ خواص دی. دا ځکه چه صرف لا اله الا الله ویونکی د یهودو مونځ د رکوع نه خالی وو او د هغوی قبله د کعبې نه علاوه بله وه او د هغوی ذبیحه به هم زموږ د ذبیحې په شان نه وه. نو صرف د لا اله الا الله اقرار هم د رسالت اقرار هم دې.

لکه چه څوك اووائي چه ما د ﴿الٓمّٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ﴾ قراءت اوکړو نو د دې نه مراد صرف هم دا الفاظ نه وی بلکه د پوره سورت قراءت مراد وی. چنانچه اوس به وئیلې شی چه د یو کس دې زبانې وینا سره د هغه فعل ملاؤ شو یعنی کله چه خلق په ژبه باندې دا کلمه اووائی او فعل سره د دې کلمې معنی ثابته کړی نو د هغه د ځان او مال حرمت به د نورو مسلمانانو په شان شی.[1]

**قوله:** "صلوا صلاتنا" نه مراد د رکوع او سجدې والا مونځ دې.[2]

**قوله:** "ذبحوا ذبیحتنا" په مصری نسخو کښې په دې ځائی کښې هم داسې دی یعنی "ذبحوا" لیکن په هندی نسخو کښې د "ذبحوا" په ځائی "أكلوا" دې.[3] هم دغه وجه ده چه په لامع الدراري کښې په دې مقام باندې "قوله : ذبیحتنا" وئیلو سره تشریح کړې شوې ده.[4]

علامه برماوی رحمه الله لیکی چه تقاضا خو دا ده چه دې ځائی کښې "أكلوا" وې نه چه "ذبحوا". چنانچه دې نه مراد دادې چه "ذبحوا مثل ذبیحتنا".[5]

**قوله:** "ذبیحتنا" نه مراد "مذبوحتنا" دې یعنی ذبح کړې شوې ښناور، دغه شان "ذبیحة" د فعیلة په وزن باندې "مذبوح" په معنی کښې دې نو عبارت به داسې شی: "ذبحوا المذبوح مثل مذبوحنا".[6]

**یو لغوی اشکال او د هغې جواب:** په دې مقام باندې علامه کرمانی رحمه الله یو اعتراض او د هغې جواب لیکی چه که څوك اعتراض اوکړی چه "فعیل" کله د مفعول په معنی کښې وی نو په هغې کښې مذکر او مؤنث دواړه برابر وی نو په دې ځائی کښې چه (فعیل د مفعول په معنی کښې دې نو) دې سره "التاء" ولې یو ځائی کړې شوې ده؟ (کومه چه صرف په مؤنث باندې دلالت کوی).

نو د دې جواب دادې چه داسې په دې لفظ باندې د اسمیت د غلبې د وجې نه کړې شوی دی

---

[1] عمدة القاري: ۱۸۸/٤، إرشاد الساري: ۵٤/۲.
[2] لامع الصبيح شرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱۳۳/۳، إرشاد الساري: ۵٤/۲.
[3] صحيح البخاري: ۵٦/۱، قديمي: ۱۱۷/۱، الطاف سنز كراتشي.
[4] لامع الدراري: ۲٦۱/۲.
[5] لامع الصبيح شرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱۳۳/۳.
[6] لامع الصبيح شرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱۳۳/۳، عمدة القاري: ۱۸۸/٤، تحفة الباري: ۹٦/۲.

(دويمه خبره داچه) د فعيل په وزن كښې مذكر اومؤنث هغه وخت برابر وي كله چه دا د موصوف سره ذكر وي، اوچه كله دا لفظ د موصوف نه بغير ذكر وي نو هغه وخت په دې كښې مذكر اومؤنث برابر نه وي.[1]

**قوله:** فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْنَا دِمَاؤُهُمْ وَأَمْوَالُهُمْ: يعنى د دوی وينې او د دوی مالونه به په مونږ باندې حرام شي. "حرمت"، د حاء زبر او راء پيش سره دې يعنى كَرُمَ يَكْرُمُ د باب نه، په دې كښې دويم لغت داهم دې چه دا د باب تفعيل نه د فعل ماضى مجهول صيغه "حُرِّمَتْ" وي. علامه سيوطى رحمه الله او ابن حجر رحمه الله اول ذكر شوى ته ترجيح وركړې ده.(2) اوعلامه برماوى رحمه الله دويم ته.(3) ليكن په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله رد كړې دې او هم اول رائې ئې راجح كرځولې ده.(4)

**قوله:** إِلَّا بِحَقِّهَا: مگر په حق باندې. علامه عينى رحمه الله ليكى: أى: إلا بحق الدماء والأحوال.(5) يعنى كه چرې په داسې كس باندې د مال يا ځان تاوان اوقصاص واجب شو نو هغه به د هغه نه خامخا وصول كولې شى او دا وصول كول به زمونږ هغه سره د كړې شوې وعدې او ذمې خلاف نه متصور كيږى.

---

[1] شرح الكرماني: ٥٥/٤. د دې اعتراض جواب كوم تفصيل چه په عمدة القاري كښې نقل كړې شوې دې هغه دا شان دې: "فإن قلت: "فعيل" إذا كان بمعنى المفعول يستوى فيه المذكر والمؤنث، فلاتدخله التاء. قلت: لما زال عنه معنى الوصفية وغلبت الاسمية عليه، واستوى فيه المذكر والمؤنث، فدخله التاء. وقد يقال: إن الاستواء فيه عند ذكر الموصوف معه وأما إذا انفرد عنه منه فلا".(عمدة القاري: ١٨٨/٤) په دې عبارت كښې يوه جمله "واستوى فيه المذكر والمؤنث" (كومه چه د عمدة القاري په نورو نسخو كښې هم دغه شان ده) محل نظر ده، ځكه چه په دې مقام باندې علامه عينى رحمه الله د معترض جواب وركوی چه معترض صاحب ستا بيان كړې شوې قاعده ټيك ده ليكن دا هغه وخت دى كله چه "فعيل" سره د دې موصوف هم ذكر كړې شوې وى چنانچه په داسې صورت كښې په دې باندې تاء نه داخليږى. ليكن چه كله "فعيل" نه معنى د وصفيت زائل شى او په دې باندې اسميت غالب راشى (لكه ځنكه چه زمونږ مبحوث عنها عبارت كښې دې) نو په دې باندې تاء داخليږى. چنانچه "غلبت الاسمية عليه" نه پس عبارت "واستوى فيه المذكر والمؤنث" د جواب او د قاعدې مطابق نه جوړيږى. په دې وجه چه دلته خود استوى نفى كول غوارى نو بيانى دلته دا ځنګه ذكركړو؟ نو يا خو به داسې وئيلى شى چه دا د علامه عينى رحمه الله يا د ناقلينو او كاتبينو وغيره د طرف نه تسامح شوې ده يا يو د لرې تاويل كولوسره به داسې وئيلى شى چه د دې جملې نه مراد دادې چه كله د "فعيل" په وزن كښې اسميت غالب راشى نو هغه وخت په دې كښې مذكر اومؤنث دواړه د حكم په اعتبارسره برابر دى چه په دې كښې به هر يو مستقل حكم لرى په دواړو كښې به يو د بل تابع نه وى. بلكه د حكم په اعتبار سره هريو به مستقل كيدو كښې برابردې. بله دا چه دې نه پس جمله "فدخله التاء" باندې هم فاء نه دى داخلول پكار ځكه چه دا جمله د لما جواب دې او د لما په جواب باندې فاء نه داخليږى.

[2] التوضيح للسيوطى: ٤٨٤/٣، فتح البارى: ٦٤٤/١.

[3] اللامع الصبيح شرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٣٤/٣.

[4] فتح البارى: ٦٤٤/١.

[5] عمدة القارى: ١٨٨/٤.

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله لیکي: "أي: بحق الکلمة والإسلام" او دَ حق اسلام مطلب دادې چه که چرې څوك داسې کار اوکړی په کوم باندې چه په اسلام کښې حفظ دم وغیره نه وی مثلاً څوك هغه قتل کړی یا محصن سره زنا اوکړی نو ړومبې سړې به قصاصاً قتلولې شی او دویم به رجم کولې شی.([1])

**قوله:** وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ: او دَ هغوی حساب الله تعالی ته حواله دې.

دَ حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله په نیز دَ دې جملې تعلق دَ منافقانو سره دې چه دَ هغوی حساب الله تعالی ته حواله دې یعنی دَ روایت نه صفا معلومیږی چه کوم سړې په ظاهری توګه دَ اسلامی کلمې اقرار اوکړی، اسلامی شعائر ښکاره کړی مثلاً صرف په خلې اووائی چه زه مسلمان شوم یا ایمانی کلمه اووائی نو اوس ده ته تعرض جائز نه دې البته دَ ده معامله الله تعالی سره ده چه دَ هغه په زړه کښې منافقت دې که اسلام. ځکه چه دَ زړه حالت خو هم هغه پیژنی.([2])

**قوله:** "على الله" على لفظ په دې مقام باندې صرف دَتشبیه دَ پاره دې چه دَ یو امر دَ وقوع په تحقق کښې دا داسې دې لکه چه دَ الله په ذمه څه څیز لازم وی ګنی په حقیقت کښې خو په الله باندې هیڅ څیز لازم نه دې. یا بیا په دې ځائی کښې "على" دَ لام په معنی دې یا "إلى" په معنی دې. چنانچه معنی به دا شی چه "حسابهم موکول أو مفوض إلى الله" چه دَ دوی حساب الله تعالی ته حواله دې.([3])

علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دَدې باب ړومبې حدیث په دې باره کښې وو چه کوم کس شعائر اسلام ښکاره کونکې وی نو هغه ته څه تعرض مه کوئی نه دَ هغه په ځان کښې او نه دَ هغه په مال کښې. تردې چه دَ دغه کس نه دَ دین دَ شعائرو خلاف څه کار اونه شی. او دویم حدیث په دې باره کښې دې چه کوم کس دَ شعائرِ دین منونکې نه وی نو هغه پسې شئ تردې چه هغه دغه شرائط اومنی.([4])

> **تعلیق:** -۳۹۳- قَالَ ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ حَدَّثَنَا أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -.

**دَتعلیق تخریج:** ددې تعلیق په تخریج کښې حافظ ابن حجر رحمه الله هدي الساري کښې لیکي: «ورواية ابن أبي مريم عن يحيى هو ابن أيوب وصلها محمد بن نصر المروزي في كتاب "تعظيم الصلاة"، والبيهقي

---

[1]) تقریر بخاری شریف: ۱۳۹/۲.

[2]) سراج القاری: ۴۲۷/۲-۴۲۶.

[3]) عمدة القاری: ۱۸۸/۴، إرشادالساری: ۵٤/۲، مرقاة المفاتیح، کتاب الإیمان، رقم الحدیث: ۱۱، ۱/۱۵۱.

**نوټ:** دَمذکوره حدیث دَ تشریح سره متعلقه ډیر اهم مباحث کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: فإن تابوا وأقاموا الصلاة...... کښې تیر شوی دی. اوګورئی: کشف الباری: ۱۵۲/۲-۱۳۶.

[4]) أعلام الحدیث للخطابی: ۳۷۷/۲.

وابن منده في الإيمان»[1]

يعنى دا تعليق موصولاً المروزى، البيهقى او ابن منده رحمهم الله بيان كړې دي. محمد بن نصر بن الحجاج المروزى رحمه الله په خپل كتاب "تعظيم قدر الصلاة" كښې په دې سند سره مذكوره تعليق موصولاً نقل كړې دې: «حدثنا محمد بن يحيى ثنا ابن أبي مريم أنا يحيى يعني: ابن أيوب، قال: أخبرني حميد أنه سمع أنس بن مالك، يقول: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله، وأن محمداً رسول الله، فإذ شهدوا أن لا إله إلا الله، وأن محمدا رسول الله، وصلوا صلاتنا، واستقبلوا قبلتنا، وأكلوا ذبيحتنا، حرمت علينا أموالهم ودماؤهم إلا بحقها، له ما للمسلمين وعليه ما عليهم»[2]

او امام بيهقى رحمه الله په دې لاندينى سند سره مذكوره تعليق موصولاً نقل كړې دې: «أخبرنا على بن محمد بن عبد الله بن بشران العدل ببغداد، أنبأ أبو الحسن على بن محمد المصرى، ثنا يحيى بن أيوب، ثنا سعيد بن أبي مريم، ثنا يحيى بن أيوب، حدثنى حميد أنه سمع أنس بن مالك رضى الله عنه يقول: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "أمرت أن أقاتل المشركين حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله، فإذا شهدوا أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله، وصلوا صلاتنا، واستقبلوا قبلتنا، وأكلوا ذبيحتنا، حرمت علينا أموالهم ودماؤهم إلا بحقها، له ما للمسلم، وعليه ما على المسلم"»[3]

او ابن منده رحمه الله په خپل كتاب الايمان كښې دَ مذكوره تعليق موصولا چه كوم تخريج كړې دې هغه دا دې: «أخبرنا محمد بن الربيع بن سليمان، ثنا يحيى بن أيوب المصرى، حدثنى حميد الطويل أنه سمع أنس بن مالك يقول: "إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "أمرت أن أقاتل المشركين حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله، وصلوا صلاتنا، واستقبلوا قبلتنا، وأكلوا ذبيحتنا، حرمت علينا أموالهم ودماؤهم إلا بحقها، لهم ما للمسلمين، وعليهم ما على المسلمين"»[4]

دَ تعليق رجال: په مذكوره تعليق كښې څلور رجال دى:

① ابن أبي مريم رحمه الله: دا ابو محمد سعيد بن الحكم بن محمد بن سالم جمحى المصرى رحمه الله دې. دَ دوى تفصيلى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: من سمع شيئا فراجع حتى يعرفه كښې تير شوى دى.[5]

---

[1] هدى السارى، الفصل الرابع في بيان السبب في إيراده للأحاديث المعلقة، ص: ٣٠.

[2] تعظيم قدر الصلوة للمروزى، أول فريضة بعد الإخلاص بعبادة الله، رقم الحديث: ١٠، ٩٣/١.

[3] سنن الكبرى للبيهقى، كتاب الصلاة، باب: لا يأثم مسلم بكافر لقول، رقم الحديث: ٥٣٤٧، ٩٢/٣.

[4] الإيمان لابن منده، ذكر الأخبار التى جاءت عن النبى صلى الله عليه وسلم الدالة على أساس الإيمان وشعبه، رقم الحديث: ١٩١، ٣٥٥/١.

[5] كشف البارى: ١٠٦/٤.

② يحيى رحمه الله: دا يحيى بن ايوب الغافقي المصري رحمه الله دي. دَ دوی تفصيلي احوال كشف الباری، كتاب الوضوء، باب: البزاق والمخاط ونحوه في الثوب كښې تير شوی دی.[1]

③ حميد رحمه الله: دا ابوعبيده حميد بن ابي حميد الطويل الخزاعي البصري رحمه الله دي. دَ دوی احوال كشف الباری، كتاب الإيمان، باب: خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهولا يشعر دَ دويم حديث لاندې تير شوی دی.[2]

④ انس بن مالك رضي الله عنه: دا مشهوراو معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك بن نضر خزرجي انصاری رضي الله عنه دي. دَ دوی تذكره كشف الباری، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه لاندې تيره شوی ده.[3]

**دَ تعليق مقصد:** امام بخاری رحمه الله په دې باب كښې دَخالد بن حارث روايت ذكر كړې وو كوم چه دَ حميد الطويل رحمه الله نه نقل كونكې وو. اوس په دې تعليق كښې ئې دَ يحيى بن ايوب رحمه الله روايت دَحميد الطويل رحمه الله نه ذكركولو سره متابعت كړې دې او په دې كښې ئې دَ حميد رحمه الله دَ حضرت انس رضي الله عنه نه دَ سماع تصريح كړې ده.[4]

امام بخاری رحمه الله دا تعليق ځكه ذكر كړې دې چه دَحميد الطويل رحمه الله متعلق دَتدليس قول نقل دې. او هغوی دَ ترجمة الباب په دويم روايت كښې دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه په صيغه دَ عن نقل كړې دې او دَ مدلس په عنعنه كښې دَ تدليس احتمال وی. په دې وجه دَ تحديث ثابتولو دَپاره ئې دا روايت ذكر كړو.[5]

**دويم تعليق:** وَقَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ قَالَ سَأَلَ مَيْمُونُ بْنُ سِيَاهٍ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ يَا أَبَا حَمْزَةَ، مَا يُحَرِّمُ دَمَ الْعَبْدِ وَمَالَهُ فَقَالَ مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ، وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا، وَصَلَّى صَلَاتَنَا، وَأَكَلَ ذَبِيحَتَنَا، فَهُوَ الْمُسْلِمُ، لَهُ مَا لِلْمُسْلِمِ، وَعَلَيْهِ مَا عَلَى الْمُسْلِمِ.

**دتعليق ترجمه:** حميد رحمه الله اووئيل چه ميمون بن سياه رحمه الله دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چه اې ابوحمزه! كوم يو څيز دَ سړی ځان او مال حراموی؟ نو هغه جواب وركړو چه كوم سړې ددې خبرې ګواهی وركړی چه دَ الله نه سوا بل څوك معبود نشته، اوزمونږ دَ قبلې طرف ته مخ كړی، زمونږ په شان مونځ اوكړی، او زمونږ دَ ذبح كړې شوې ځناور غوښه اوخوری نو هغه مسلمان دې كوم چه دَمسلمانانو حق وی هم هغه دده دَ پاره دې او كوم چه په مسلمانانو باندې لازم دې هم هغه په ده باندې لازم دې.

---

[1] كشف الباری، كتاب الوضوء، باب: البزاق والمخاط ونحوه في الثوب..

[2] كشف الباری: ۵۷۱/۲.

[3] كشف الباری: ۴/۲.

[4] عمدة القاری: ۱۸۸/۴.

[5] تقرير بخاری شريف: ۱۴۰/۲، الكنز المتواری: ۷۹/۴.

دَ تعليق رجال: دَ ذكرشوى تعليق ټول څلور رجال دى:

① علي بن عبدالله رحمه الله: دا ابوالحسن على بن عبدالله بن جعفر بن نجيح سعدى بصرى رحمه الله دې. دَ ابن المدينى په نوم سره مشهور دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: الفهم في العلم كښې تير شوى دى.[1]

② خالد بن الحارث رحمه الله: دَدوى پوره نوم خالد بن الحارث بن عبيد بن سليمان بن عبيد بن سفيان بن مسعود رحمه الله دې. دَدوى كنيت ابوعثمان البصرى دې. دَ سليمان بن حارث رور دې. دَ تميم قبيلې شاخ بنوالعنبر دَ شاخ بنوالهجيم سره تعلق لرى.

دَ دوى دَ استاذانو او مشائخو يو اوږد فهرست دې. دَهغوى نه حميد الطويل، حاتم بن ابى مغيره، سعيد بن ابى عروبه، سفيان الثورى، شعبه بن الحجاج، عبدالله بن عون، عبدالحميد بن جعفر وغيره رحمهم الله هم دى. اودَ دوى نه روايت كونكو كښې على بن عبدالله ابن المدينى، ابو الشعث احمد بن مقدام عجلى، اسحاق بن راهويه، عبدالله بن وهاب الحجبى او عمرو بن على وغيره رحمهم الله او يو لوئې جماعت دى.

يحيى بن سعيد رحمه الله وائى چه ما دَ سفيان او خالدبن الحارث نه بهتر بل څوك نه دې ليدلې.

ابوزرعه رحمه الله فرمائى چه دَ هغوى باره كښې وئيلې شى: خالد الصدوق. ابوحاتم رحمه الله فرمائى: إمام ثقة. امام نسائى رحمه الله فرمائى: ثقة ثبت. په ۱۲۰هجرى كښې پيدا شوې دې او ۱۸۶هجرى كښې وفات شوې دې[2]

③ ميمون بن سياه رحمه الله: دَ دوى پيژندګلو دَ كشف البارى هم دې جلد كښې، باب: فضل استقبال القبلة لاندې تيره شوې ده.[3]

④ انس بن مالك رضي الله عنه: دامشهور او معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك بن نضر خزرجى انصارى رضي الله عنه دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوى ده.[4]

دَ تعليق شرح: "ياأباحمزه" دا دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه كنيت دې.[5]

قوله: "وما يحرم؟" دَ اصيلى په روايت كښې دَدې جملې په شروع كښې "و" نشته دې. دَ اثبات په صورت كښې په دې "واؤ" كښې دوه احتمالات دى. يو دا چه استينافيه وى او دَ "مايحرم"

---

[1] كشف البارى: ۲۹۷/۳.

[2] تهذيب الكمال: ۳۸/۸-۳۵، الطبقات الكبرى لابن سعد: ۲۹۱/۷، سيرأعلام النبلاء: ۱۲۶/۶،تهذيب التهذيب ۸۲/۳،إكمال تهذيب الكمال للمغلطائى: ۳۰۹/۱.

[3] كشف البارى، كتاب الصلاة، باب: فضل استقبال القبلة، ص:۱۸۰.

[4] كشف البارى: ۴/۲.

[5] عمدة القارى: ۱۸۹/۴، إرشادالسارى: ۵۵/۲.

نه كلام مستانفه وى. او دويم احتمال د "واؤ د عاطفه" كيدو دې. په دې صورت كښې به دَدې معطوف عليه "شيئ" محذوف وى. يعنى عبارت به داسې وى: "سأل عن شيئ ثم قال: وما يحرم؟" (۱)

**يواشكال اودَ هغې جواب:** دلته دا اشكال دې چه جواب دَ سوال مطابق نه دې ځكه چه دَ حضرت انس رضي الله عنه نه دَ تحريم دَ سبب (يعنى كوم يو څيز دَ سړى ځان اومال حراموى) متعلق سوال كړې شوې وو. دَدې په جواب هغوى "من شهد أن لا إله إلا الله" اوفرمائيل نو ښكاره خبره ده چه جواب دَ سوال مطابق نه شو؟

نودَدې جواب دادې چه حضرت انس بن مالك رضي الله عنه په اصولى توګه جواب وركړو په دې معنى چه كوم سړې دَ شهادت دَ كلمې اقرار اوكړى، زمونږ په طريقه باندې مونځ اوكړى، زمونږ دَ قبلې طرف ته مخ كړى، او زمونږ ذبيحه استعمال كړى نو داسې سړې مسلمان دې او دَ مسلمان وينه بهيول اودَ هغه مال پسې لګيدل حرام دى. يعنى هغوى چه په كومه اندازه باندې جواب وركړو دَهغې نه پخپله پته اولګيدله چه كوم څيز دَمسلمانانو ځان اومال حراموى. (۲)

**قوله: ماللمسلم:** مراد چه كومه منافع او فوائد مسلمانانو ته رسيږى هم هغه به دې مسلم ته ملاويږى.

**قوله: ماعلى المسلم:** مراد چه كوم تكليف دَمسلمانانو دَ پاره وى هم هغه به دَدې مسلم دَ پاره وى. (۳)

**دَتعليق مقصد:** امام بخارى رحمه الله دا يو بل استاذ پيش كوى. وړاندې دَهغوى استاذ په اول حديث كښې عمرو بن عباس رحمه الله وو په دويم حديث كښې نعيم رحمه الله وو او دلته دَ على بن المدينى رحمه الله روايت بيانوى. هم دَدې باب په ړومبى حديث كښې نى دَ ميمون بن سياه رحمه الله روايت پيش كړې وو. دلته دَ هغه تقويت بيانول مقصود دې. هلته دَميمون نه نقل كونكې منصور بن سعد رحمه الله وو او دلته حميد الطويل رحمه الله دې. په دې وجه دا دَ حميد روايت دَمنصور دَ روايت متابع دې. او دا دواړه دَ ميمون رحمه الله نه روايت كوى دغه شان تائيد اوشو اودَ سماع تصريح هم اوشوه. په ړومبى روايت كښې عن انس بن مالك رضي الله عنه وو او دلته "سأل" دې نودا سماع شوه (۴)

---

(۱) فتح البارى: ۶۴۵/۱، عمدة القارى: ۱۸۹/٤،إرشادالسارى: ۵۵/۲.

(۲) فتح البارى: ۶۴۵/۱، عمدة القارى: ۱۸۹/٤.

(۳) عمدة القارى: ۱۸۹/٤،إرشادالسارى:۵۵/۲.

(۴) عمدة القارى: ۱۸۹/٤، إرشادالسارى:۵۵/۲.

# ۲ - [1] بَابُ قِبْلَةِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ وَأَهْلِ الشَّامِ وَالْمَشْرِقِ

«لَيْسَ فِي الْمَشْرِقِ وَلَا فِي الْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ» لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا»

**د ترجمة الباب مقصد:**

**د حضرت شيخ الحديث** رحمه الله **رائې:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه ما بيان کړي دي چه د امام بخاری رحمه الله تولو کتبه دعوی تراجم دی او ما دا هم بيان کړي وو چه چونکه د امام بخاری رحمه الله وظيفه د استنباط طريقه ده په دې وجه د تعليم په لحاظ سره بخاری شريف په دريمه درجه کښې دې. اګرچه د فضيلت په لحاظ سره د ټولو نه مقدم دې او د بخاری ټول روايات صحيح دی. که چرته چا کلام کړې دې نو غلط ئې کړی دی. نو دعوی د تراجمو اثبات پخپله يو معرکة الآراء څيز دې او بيا ما باب: "من بدأ بالحلاب والطيب" کښې دا وئيلی وو چه څه تراجم داسې هم دی په کوم کښې چه شراحو او مشائخو د خپلې طبع مطابق کوشش کړې دې. او بيا داهم نه ده معلومه چه د امام بخاری رحمه الله غرض د دې ابوابو نه څه دې؟ اګرچه توجيه هرڅائې کوی نو دلته به هم توجيه بيانوم ځکه چه دا باب هم د هغه ابواب نه دې کوم چه معرکة الآراء دی.

حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائي: "باب قبلة أهل المدينة وأهل الشام" د اهل مدينه قبله خو په جنوب کښې ده ځکه چه مکه د مدينې نه د جنوب طرف ته واقع ده او د اهل شام قبله هم جنوب کښې ده. ځکه چه شام د مدينې نه په شمال کښې واقع دې تر دې پورې خو هيڅ اشکال نشته مګر وړاندې چه کوم "والمشرق" امام بخاری رحمه الله اضافه کړې دې دا په هيڅ شان سره نه صحيح کيږی. ځکه چه د بعضې شارحينو رائې خو دا ده چه دا د کاتب غلطی ده. او د بعضې شارحينو رائې داده چه دا اشکال هغه وخت کيږی چه کله "والمشرق" په جر سره اولوستلې شی او که چرې دا "والمشرق" چه رفع سره اولوستلې شی او خبر شی محذوف اومنلې شی نو بيا هيڅ اشکال نشته. په دې صورت کښې به تقديری عبارت داسې شی: "والمشرقُ بخلافهما" يعنی "قبلةُ أهلِ المشرقِ قبلةُ أهلِ مدينة والشام" مګر په دې توجيه باندې دا اشکال دې چه بيا په دې مخالفت کښې د مشرق څه تخصيص دې؟ د مغرب قبله هم د دې دواړو خلاف ده. علامه عينی رحمه الله د دې جواب ورکوی چه دلته "والمغرب" محذوف دې، علی طريقة قوله تعالى: ﴿سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ﴾ أی: والبرد يعنی د: أحد المتقابلين په ذکر ئې اکتفاء اوکړه. ځکه چه دويم به په خپله په پوهه کښې راشی مګر په دې مجموعه باندې دوه اشکالات

---

[1] کشف الباری کښې د الدکتور مصطفی ديب البغا چه کومه نسخه د متن په توګه بنياد جوړ کړی شوې دې د هغه نسخې مطابق د دې باب نمبر د "ابواب القبلة" لاندې دويم دې. خو په نورو نسخو کښې کوم چه فتح الباری، عمدة القاری او ارشاد الساری وغيره کښې د هغې مطابق د دې باب نمبر ۲۹ دې.

راځي. يو خودا چه بيا دا ترجمه د بخاري رحمه الله د شان موافق نه پاتي كيږي ځكه چه دا خبره خو بالكل ښكاره ده چه كومه د يو طرف والو قبله وي د بل طرف والو به نه وي. دويم اشكال دادې چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: "والمشرق" چه په كوم روايت كښې ذكر دې هغه په جر سره دې.

اوس تاسو دا واورئي چه "والمشرق" نه په جر سره دې اونه په رفع سره. اوس چه دلته كوم اشكال راځي دهغې وجه داده چه "والمشرق" نه عام مراد مراد اخستې شوې دې. حالانكه د امام بخاري غرض ددې نه عام نه دې بلكه خاص دې. اود خاص كيدو مطلب دادې چه ددې نه د خاص خطې خلق مراد دي كوم چه دبخارا او مرو وغيره دي. دا علاقې په هغه زمانه كښې مشرق يادېدلې او شام چونكه ددې نه مغرب كښې واقع دې په دې وجه به ئې هغې ته مغرب وئيلو. نو دلته د مشرق نه مراد خاص بخارا او مرو وغيره دي كوم چه د شام په مقابل كښې مراد دي او اهل شام دهغې په مقابل كښې په مغرب كښې دي. اود بخارا، مرو وغيره نه قبله د جنوب په طرف كښې ده لهذا كومه چه د اهل مدينه او شام قبله ده هم هغه د اهل مشرق خاص يعني د اهل بخارا او مرو وغيره قبله شوه. مگر مرو وغيره لږ شان مشرق طرف كښې واقع دي په دې وجه د حضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله نه امام ترمذي رحمه الله په ترمذي شريف كښې "واختار ابن المبارك لأهل مرو التياسر" نقل كړې دې چه لږ شان گس طرف ته مائل كيدو سره دې مونځ وغيره كوي. اوس اشكال پاتي نه شو او د كوكب الدرى صفحه ۱۴۲ جلد اول په حاشيه كښې دي چه كوم ځائې د حضرت ابن المبارك رحمه الله دا مقوله ترمذي كښې ذكر ده هلته د بخارا، مرو، مكه، مدينه او د شام صورت جوړولو سره ما دا واضحه كړې ده چه مطلق د اهل مشرق قبله مغرب ده لكه چه مونږ بالكل په مشرق كښې واقع يو لهذا قبله مغرب ده[1]

**د حضرت كشميري رحمه الله رائې:** دامام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه د اهل مدينه اود كعبې په لحاظ سره هم ددې په طرف كښې واقع د شام ملك او مدينه طيبه نه د مشرق والا ښارونو قبله د هغوى مشرقي اومغربي طرف كښې نه ده او هم ددې د پاره حضور پاك عليه السلام ارشاد اوفرمائيلو چه د اودس ماتي په وخت د مشرق اومغرب طرف كښې ستاسو د پاره د مخ كولو اجازت دې چه داد كعبې معظمې په تعظيم كښې مخل نه دې. د امام بخاري رحمه الله دا مطلب نه دې چه د دنيا د هرې حصې د خلقو د پاره هم د مشرق اومغرب په طرف كښې قبله نشته دې ځكه چه د امام بخاري رحمه الله په شان جليل القدر د زمانې علامه نه ددې څه توقع نه شى كيدې.

بيا هم علامه ابن بطال رحمه الله د امام رحمه الله هم دغه مراد گرځولو سره ددې د صحيح كولو توجيه كړې چه د كعبې په مشرق او مغرب كښې هم چه كومو ښارونه د هغه خط لاندې واقع دى چه د مشرق اومغرب پورې د كعبې د پاسه تيريږي، صرف هغه پريخودو سره باقي د هغه

---

[1] تقرير بخاري شريف: ۲/۱۴۴-۱۴۳.

ټولو د پاره چه دغه خطي ښی او ګس طرف ته اباد دی د انحراف د وجې نه د جواز ګنجائش دی. لکه څنګه چه حضرت ابو ایوب رضي الله عنه اوکړه چه شام ته تلو سره د عیسایانو د زمانې د قبلې طرف ته جوړو شوو بیت الخلاګانو استعمال ئې په انحراف سره اوکړو اوچونکه دا دې معمولي انحراف هغوی عادت نه وو نو هغه ئې طبعًا او عادةً مکروه ګڼړلو سره استغفار هم اختیارکړو.

محقق عینی رحمه الله د علامه موصوف رحمه الله دا توجیه ذکرکولوسره په دې باندې نه صرف دا چه څه نقد اونه کړو بلکه دائې نوره زیاته سنبالولو سره وړاندې کړې ده. کوم سره چه دواړه توجیهات په خپل خپل ځائې صحیح کیږی. یعنی د امام بخاری رحمه الله مراد صرف اهل مدینه، اهل شام او د مدینې نه د مشرق طرف ته پراته د عربو ښارونه وی نو بیا خو خبره صفا ده لیکن که چرې د ابن بطال رحمه الله والا توجیه مراد وی نو بیا هم څه حرج نشته دې چه د مشرق اومغرب نه مراد د مشرق او .. رب طرف ته ټول طرفونه کیدې شی. ټیک د مینځ خط مشرق او مغرب پریخودو سره د جنوب او شمال طرف ته لږ شان انحراف هم د اودس ماتی وخت کښې کافی دې او هم دغه تشریق اوتغریب دې. په کوم کښې چه د کعبې معظمې د تعظیم خلاف څه خبره نشته دې او چونکه ټیک د مینځمی خط والا به په نسبت د نورو طرفونو ډیر کم خلق وی. دهغوی طرف ته لکه چه په دې عام حکم کښې څه تعرض نه دې کړې شوې. محقق عینی رحمه الله په دې توجیه کښې په خاص توګه د مذکوره انحراف سره د اودس ماتی هم قید ښکاره کړې دې دې د پاره چه معلومه شی لکه څنګه چه دلته د امت نه د تنګئ لرې کولو د پاره د عند الغائط په وخت لږ شان انحراف په طرف د شمال او جنوب شریعت کافی ګرځولی دی. دغه شان بل طرف ته هم د تنګئ د لرې کولو د پاره په مونځ کښې د قبلې طرف ته مخ کولو په واسطه د دائرې د څلورمې حصې پورې توسع جائز کړې شوې ده. په دواړو ځایونو کښې توسع ملحوظ ده، ولله در المحقق العینی رحمه الله اوکیدې شی چه هم دا دې د پاره عینی دا دې بحث په شروع کښې دا الفاظ ادا کړی دی چه دلته مونږ له قلم ته زور ورکولو سره لږ شان زور دار لیکل پکار دی ځکه چه بعضې نورو خلقو خامخا د دوه مخیزو بحثونو لار اختیار کړې ده.

دلته د ترمذی د دویم حدیث وغیره مراد هم واضح شو په کوم کښې چه "مابین المشرق والمغرب قبلة" راغلې دې. محقق عینی رحمه الله لیکلی دی چه هغه هم صرف مدینې او دا دې په طرف کښې واقع ښارونو اوملکونو د پاره دې اولکه څنګه چه د هغوی د پاره وسعت دې هم دغه شان وسعت به د مشرق اومغرب طرف ته اوسیدونکو د پاره هم د جنوب اوشمال په لحاظ سره وی اودې سره د قبلې په طرف کښې د دائرې د څلورمې حصې پورې د وسعت جواز هم ملاویږی. یعنی لکه څنګه چه د مدینې والو د کعبې معظمې نه په شمال کښې د نورو اوسیدونکو د پاره د قبلې طرف مابین المشرق والمغرب وسیع دې. دغه شان به د اهل مشرق د پاره مابین الشمال والجنوب وسعت وی.(۱)

---

(۱) انوار الباری: ۱۲/۱۹۴-۱۹۳.

**دَعلامه شبير احمدعثماني صاحب رحمه الله رائې:** حضرت عثماني رحمه الله فرمائي دلته دَ "والمشرق" څه مطلب دې؟ په دې كښې شارحينو ډير ګړبړ كړې دې. په حقيقت كښې دَ امام بخاري رحمه الله مطلب دادې چه دَمدينې او دَ شام والو قبله كوم طرف ته ده. (هغه به په دې باب كښې بيانوم)

"والمشرق" يعني دَ اهل مشرق قبله كومه ده؟ هغه به هم معلومه شي. (امام بخاري رحمه الله دلته صرف دَمشرق ذكركړې دې، دَ مغرب ذكر ئې نه دې كړې لكه چه مراد هغه هم دې مګر مشرق او مغرب (دَدې دوؤ) ضدين نه ئې صرف دَ يو ذكر كول كافي اوګڼل، مراد دواړه دي. لكه چه ﴿وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ﴾ (النحل: ٨١) (كښې ضدين يعني حروبرد نه صرف دَ يو ذكر كړې شوې دې اګرچه دواړه مراد دي). الغرض مطلب دادې چه دَمدينې او شام والو قبله خو به په خاص توګه ذكركوم. دا دواړه په حديث كښې منصوص دي، هم په دې سره به دَ اهل مشرق او اهل مغرب قبله معلومه شي. ([1])

**دَ حضرت كاندهلوي رحمه الله رائې:** حضرت مولانا محمد ادريس كاندهلوي رحمه الله فرمائي چه دَدې ترجمې نه مراد دادې چه دَ اهل مدينه او اهل شام قبله دَمشرق او مغرب طرف ته نه ده بلكه دَ جنوب اوشمال طرف ته ده. دليل دادې چه نبي كريم ﷺ دَ اهل مدينه اودَ اهل شام دَ پاره دَمشرق او مغرب طرف ته مخ كولوسره اودس ماتي مباح ګرځولي دي. اودَ مشرق نه مراد دَ عربو دَ ښارونو مشرق طرف دې نه چه دَ ټولې دنيا مشرق. خلاصه دَ كلام داده چه دَ امام بخاري رحمه الله مقصود دَدې ترجمې نه صرف دَ اهل مدينه او اهل شام دَ قبلې ذكر كول دي نه چه دَ ټولې دنيا والو دَ قبلې طرف ذكر. ([2])

**دَعلامه ابن بطال رحمه الله او علامه كوراني رحمه الله رائې:** په دې باره كښې دَ صحيح بخاري ډير پخواني شارح علامه ابن بطال رحمه الله يوه داسې توجيه بيان كړې ده كومه چه روستونو دَ حديث شارحينو نه يو شارح هم نه ده قبوله كړې. هغه دا چه ترجمة الباب كښې دَ ذكر شوې لفظ مشرق نه صرف دَ اهل مدينه يا اهل شام مشرق مراد نه دې بلكه دَدې نه مراد دَ ټولې دنيا مشرق والا خلق دي او په ظاهره هم دَدې په تائيد كښې علامه كوراني رحمه الله هم خپله دَ بخاري شريف په شرح الكوثرالجاري كښې هم دا قول ذكر كړې دې ([3])

چنانچه دَدې په ترديد كښې دَټولو نه تفصيلي كلام علامه انور شاه كشميري رحمه الله كړې دې. هغوي دَدې قول خرابياني بيان كړې دي. دَدې نه علاوه اكثر شراحو (حافظ ابن حجر رحمه الله، علامه عيني رحمه الله، علامه قسطلاني رحمه الله، شيخ الحديث محمدزكريا كاندهلوي رحمه الله او مولانا محمد ادريس كاندهلوي رحمه الله) دا توجيه نه ده اختياركړې بلكه دَ مشرق نه مراد هم دَاهل مدينه مشرق مراد دې ([4])

---

[1]) فضل الباري: ١٠٥/٣-١٠٤.

[2]) تحفة القاري: ٤٦٢/٣.

[3]) شرح ابن بطال: ٦٢/٢-٦١ الكوثر الجاري: ٨٠/٢-٧٩.

[4]) فيض الباري: ٤١/٢-٤٠، فتح الباري: ٦٤٦/١، عمدة القاري: ١٩١/٤-١٩٠، إرشادالساري: ٥٦/٢، الكنزالمتواري: ٨٢/٤، تحفة القاري: ٤٦٢/٢.

دكلام خلاصه: دا ترجمه په مشكل تراجمو كښې شميرلې شى ليكن مشكل نه ده. دا سې اوګڼړئى چه بعضې نسخې خو هغه دى په كوم كښې چه "ليس فى المشرق ولا فى المغرب قبلة" راغلې دي. يعنى د "ليس فى المشرق ولا فى المغرب" نه پس لفظ "قبلة" ذكر دي. كومه نسخه چه زمونږ مخې ته ده په دې كښې هم دغه شان دي. په دې صورت كښې به دا ونيلې شى چه لفظ "باب" مضاف دې او "قبلة أهل المدينة" كښې لفظ "قبلةُ" مضاف اليه مضاف دې او "أهل المدينة، وأهل الشام، والمشرق" دا دريواړه د عطف په ذريعه د لفظ "قبلة" مضاف اليه دي او معنى داده چه دا باب د اهلِ مدينه او اهلِ شام او د اهلِ مشرق د قبلې د بيانولو د پاره دې. په دې دريواړو كښې اهلِ مدينه او اهلِ شام خو مشهور ښارونه دى او په آخره كښې چه كوم مشرق دې د دې نه مراد مشرق مدينه دې. د مدينې په مشرق كښې چه كوم خلق آباد دى لكه د نجد او عراق والا، د هغوى قبله بيانول غواړى. سوال اوشو چه د هغوى قبله كومه ده؟ جواب وركړې شو چه "ليس فى المشرق ولا فى المغرب" د هغوى قبله نه په مشرق كښې ده او نه په مغرب كښې بلكه د جنوب طرف ته ده. مطلب دا چه دا يوه جمله د سوال د جواب وركولو د پاره راوړلې شوې ده او "ليس فى المشرق ولا فى المغرب" كښې د "المشرق" نه مراد عام مشرق نه دې بلكه مشرق د اهلِ مدينه او مغرب د اهلِ مدينه مراد دې. داخو يو حل شو د عبارت چه بالكل واضح دې. دلته يو وړوكې شان اشكال پيدا كيږى چه امام بخارى رحمه الله "قبلة أهل المدينة وأهل الشام والمشرق" كښې صرف د مشرق ذكر كړې دې د مغرب ذكر ئى نه دې كړې. د دې وجه داده چه د اهلِ مدينه په مشرق كښې خود مسلمانانو يوه لويه آبادى وه په دې وجه ئى د هغوى ذكر اوكړو او مغربِ مدينه كښې خو آبادى نه وه په دې وجه ئى د هغې ذكر اونه كړو.

رومبې لفظ "المشرق" كوم چه د اهلِ مدينه او اهلِ شام نه پس ذكر شو، د دې نه مراد د اهلِ مدينه مشرق دې. په دې كښې د نجد او عراق علاقه داخل ده او دويمه جمله كومه چه "ليس فى المشرق ولا فى المغرب" ده. دا جمله مستانفه ده په دې وجه بغيرد واؤ راوړلې شوې ده. دا جمله به په حقيقت كښې د يو سوال جواب جوړيږى چه تاسو د دې دريواړو قبله بيانول غواړئ. نو اوښايئ جواب وركړې شو چه د دې دريواړو قبله نه په مشرق مدينه كښې ده او نه په مغرب مدينه كښې ده. لهذا اوس دوه طرفونه پاتې شو يا جنوب مدينه يا شمال مدينه. ښكاره خبره ده چه شمال مدينه كښې خو بيت المقدس راځى نو په جنوب مدينه كښې كعبه واقع شوه لهذا معلومه شوه چه د هغوى قبله د مدينې په جنوب كښې ده.

دويم صورت: چرته چه "ليس فى المشرق ولا فى المغرب" نه پس لفظ "قبلة" نشته دې. بعضې نسخو كښې داسې هم دى نو په دې صورت كښې به لفظ "بابٌ" باندې تنوين لوستلې شى او "قبلةُ" به مرفوع وى او "أهل المدينة، وأهل الشام، والمشرق" خپلو معطوفاتو سره "قبلةُ" د مضاف

دَ پاره به مضاف اليه کيدو سره مبتداء شي اودَدي دَ پاره "ليس لى المشرق ولالى المغرب" خبر شي. مطلب به دا شي چه دَاهلِ مدينه، اهلِ شام او اهلِ مشرق قبله نه خو مشرق کښې ده او نه په مغرب کښې.

په دې توجيه باندې يو اشکال پيدا کيږي چه "ليس لى المشرق ولالى المغرب" کښې "ليس" نه بلکه، "ليست" راتلل پکار وو ځکه چه دَ "ليس" مذکر ضمير دَ "قبلة" طرف ته راګرځي حالانکه مرجع مؤنث ده. نودَدې جواب دادې چه "قبلة" به دَ مستقبل په معنی واخستې شي اودَ "ليس" مذکر ضمير به دَهغې طرف ته راوګرځولې شي.

دَ مذکوره تفصيل نه پس دا اشکال کول چه امام بخاري رحمه الله وئيلي دي چه "ليس لى المشرق ولا لى المغرب" په مشرق او مغرب کښې خو هډو قبله نشته دې حالانکه دَ اهلِ هند او اهلِ بخارا او اهل چين ، غيره دَ ټولو قبله دَمغرب طرف ته ده. نودَدې جواب هم ورکړې شو چه دلته دَ مشرق نه مشرق مدينه او دَ مغرب نه مغربِ مدينه مراد دى. مطلقاً عام دَ مشرق طرف او عام دَ مغرب طرف مراد نه دى.

دويمه خبره داده چه دلته مذکوره حديث يا باب کښې صرف دَ اهلِ مدينه، اهلِ شام او دَ اهلِ مشرق قبله خودل مقصود دى. دَ ټولې دنيا قبله بيانول مقصود نه دي. ځکه چه که دَ اهل هند قبله په مغرب کښې وى او کوم خلق چه دَ مغرب په آخره کښې آباد دى نو دَهغوى قبله دَ مشرق طرف کښې وى نو بالکل کيدې شي. دې نه دلته هډو تعرض مقصود نه دې[1]

**تعليق**: لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ أَوْبَوْلٍ، وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْغَرِّبُوا»

**دَ تعليق ترجمه**: (دَ اهلِ مدينه، اهلِ شام او اهلِ مشرق قبله نه مشرق کښې ده او نه مغرب کښې) دَدې دليل دَ وجې چه نبى کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې: (قضائى حاجت) غټې متيازې يا وړې متيازې کولو وخت کښې دَ قبلې طرف ته مه مخ کوئى، ليکن دَمشرق يا مغرب طرف ته مخ کوئى.

**دَتعليق تخريج**: مذکوره تعليق هم په دغه الفاظو سره امام نسائى رحمه الله په خپل سنن کښې موصولاً نقل کړې دې ونى ګورئى: «أخبرنا محمد بن منصور قال: حدثنا سفيان، عن الزهري، عن عطاء بن يزيد، عن أبي أيوب رضي الله عنه، أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: لا تستقبلوا القبلة ولا تستدبروها لغائط أو بول، ولكن شرقوا أو غربوا»[2]

---

[1] ملخص از فتح البارى: ٦٤٥/١ ،عمدة القارى: ١٩١/٤-١٩٠، إرشادالسارى: ٥٦/١، فيض البارى: ٤١/٢-٣٩، لامع المتوارى: ٣٦٤-٣٦٢.

[2] عمدة القارى: ١٩١/٤.

(نوټ) په دې موضوع باندې (يعنى مذاهب ائمه باندې) تفصيلى کلام کشف البارى، کتاب الوضوء، باب: لا تستقبلوا القبلة بغائط أو بول إلا عند البناء: جدار أو نحوه کښې تيرشوې دې.

**دتعليق مقصد:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله ددې حديث د عموم نه دليل نيولې دې چه صحرا او آبادئى په دې حكم كښې برابر دى چه په دغه دواړو ځايونو كښې د اودس ماتى په وخت نه قبلې ته مخ كول جائز دى او نه قبلې ته شاه كول. او مذكوره حديث ئې د ترجمة الباب د اثبات دپاره دليل جوړ كړې دې.

د احنافو فقهاؤ كثرالله سوداهم هم دغه مذهب دې اود امام احمد رحمه الله هم يو روايت هم د دې مطابق دې. خو امام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله دې خبرې طرف ته تلى دى چه د اودس ماتى په وخت قبلې ته مخ كول په صحرا كښې خو ناجائز دى ليكن په آبادئى كښې جائز دى.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه حضرت امام بخارى رحمه الله لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ، بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا» ذكر كولو سره يو خودا ثابته كړه چه په مشرق اومغرب كښې د اهلِ مدينه "ومن على سمتهم" قبله نه ده. هم دې سره ئې د هغه خلقو په قول باندې هم رد او كړو څوك چه وائى چه د "ولكن شرقوا أو غربوا" خطاب عام دې. اهلِ مدينه اود هغوى نه علاوه ټول د مشرق اومغرب طرف ته په حالت د استنجاء كښې قبلې ته مخ كولې شى كه قبله مخې ته وى يا شاته ولې نه وى.[1]

حديث باب [حديث نمبر ٣٨٤]

-٣٨٤- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ[2] أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا، وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا». قَالَ أَبُو أَيُّوبَ فَقَدِمْنَا الشَّأْمَ فَوَجَدْنَا مَرَاحِيضَ بُنِيَتْ قِبَلَ الْقِبْلَةِ، فَنَنْحَرِفُ وَنَسْتَغْفِرُ اللَّهَ تَعَالَى.

**ترجمه حديث:** د حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو كله چه تاسو د اودس ماتى دپاره ځئ نو د قبلې طرف ته مه مخ كوئى او مه شاه كوئى. البته د مشرق يا مغرب طرف ته مخ كوئى.

د حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه بيان دې چه بيا مونږ د شام ملك ته اورسيدو نو مونږ هلته بيت الخلاء د قبلې په طرف باندې جوړې شوې اوليدلې نو (د اودس ماتى په وخت) مونږ خپل مخ د قبلې طرف نه لږ شان اړولو اود الله تعالى نه به مو مغفرت غوښتلو.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه رجال دى:

① على بن عبدالله رحمه الله: دا حضرت ابوالحسن على بن عبدالله بن جعفر بن نجيح سعدى البصرى رحمه الله دې. د ابن المدينى رحمه الله په نوم مشهور دې. د دوى تفصيلى احوال كشف البارى،

---

[1] تقرير بخارى شريف: ١٤٤/٢، الكنزالمتوارى: ٨٢/٤، سراج القارى: ٤٣٠/٢.

[2] مرتخريجه رقم الحديث: ١٤٤، كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: "لاتستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عند البناء: جدار أو نحوه".

كتاب العلم، باب: الفهم في العلم كښې تير شوى دى.(١)

② سفيان رحمه الله: دا مشهور امام حديث، تبع تابعى حضرت ابوعبد الله سفيان بن سعيد بن مسروق ثورى كوفى رحمه الله دي. دَ دوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان، باب: علامة المنافق دَ دويم حديث لاندې تير شوى دى.(٢)

③ زهرى رحمه الله: دا امام محمد بن مسلم، بن عبيد الله، بن شهاب الزهرى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر حالات كشف البارى، كتاب بدء الوحى دَ دريم حديث لاندې تير شوى دى(٣)

④ عطاء بن يزيد الليثي رحمه الله: دا ابومحمد يا ابو يزيد عطاء بن يزيد الليثى، ثم الجندعى المدنى، ثم الشامى رحمه الله دي. دَ دوى تفصيلى احوال كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عند البناء، جدار أو نحوه لاندې تير شوى دى.(٤)

⑤ حضرت ابوايوب انصاري رضي الله عنه: دا دَ رسول الله ميزبان، حضرت ابو ايوب خالد بن زيد بن كلب بن ثعلبه بن عبد عوف بن غنم الانصارى النجاري الخزرجى رضي الله عنه دي. دَ دوى هم تفصيلى احوال كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عند البناء، جدار أو نحوه لاندې تير شوى دى.(٥)

**شرح حديث:** «إِذَا أَتَيْتُمُ الغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا القِبْلَةَ، وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا»

حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلي دي چه كله تاسو دَ اودس ماتى دَ پاره لاړشئ نو دَ قبلې طرف ته مه مخ كوئى اومه شاه كوئى البته دَ مشرق يا مغرب طرف ته مخ كوئى.

دَ دې جملې تشريح، متعلقه مسئله، دَ علماؤ اختلاف او دَ احنافو دَ ترجيح وجه په پوره تفصيل سره كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عند البناء، جدار أو نحوه رقم الحديث: ١٤٤ كښې تيره شوې ده.

**قوله:** قَالَ أَبُو أَيُّوبَ: «فَقَدِمْنَا الشَّامَ فَوَجَدْنَا مَرَاحِيضَ بُنِيَتْ قِبَلَ القِبْلَةِ فَنَنْحَرِفُ، وَنَسْتَغْفِرُ اللَّهَ تَعَالَى»

يعنى دَ حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه بيان دي چه بيا مونږ دَ شام ملك ته اورسيدو نو مونږ هلته بيت الخلاء دَ قبلې په طرف جوړې شوې اوليدلې نو «دَ اودس ماتى په وخت» به مونږ خپل مخ دَ قبلې نه لږ شان كږ خولو او دَ الله تعالى نه به مو مغفرت غوښتلو.

---

(١) كشف البارى: ٢٩٧/٣.

(٢) كشف البارى: ٢٧٨/٢.

(٣) كشف البارى: ١/٣٢٦.

(٤) كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بو إلا عندالبناء، جدار أو نحوه رقم الحديث: ١٤٤.

(٥) كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بو إلا عندالبناء، جدار أو نحوه رقم الحديث: ١٤٤.

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائي چه اوس تاسو دا واورئ چه امام بخاري رحمه الله دا ټکړه هلته ذکر نه کړه چرته چه د استقبال او استدبار ذکر دي. صرف د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت ئې نقل کړو ځکه چه هغه د هغوی موافق وو[1]

**قوله:** "فقدمنا الشام": د حضرت ابوایوب انصاري رضي الله عنه بیان دې چه بیا مونږ د شام ملک ته اورسیدو.

**د حضرت ابوایوب انصاري رضي الله عنه دا مذکوره کلام په شام کښې اوشو که په مصر کښې؟:** د صحیح بخاري په مذکوره حدیث شریف کښې دی چه حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه خبره د شام د ملك نقل کړې ده خو د سنن نسائي په روایت کښې دی چه د حدیث راوی حضرت رافع بن اسحاق رحمه الله د حضرت ابوایوب انصاري رضي الله عنه نه اوریدلی دی په داسې حال کښې چه هغه په مصر کښې وو...... الخ[2]

نو په دې باره کښې علامه سیوطي رحمه الله د شیخ ولي الدین العراقي رحمه الله په حواله او علامه سندهي رحمه الله فرمائي چه اګرچه د صحیحین په روایت کښې دا دی چه دا معامله د شام په ملك کښې پیښه شوې ده لیکن په دې دواړو روایتونو کښې هیڅ تعارض نشته دی او نه دا دواړه د یو بل معارض دی. ځکه چه د دې خبرې امکان موجود دې چه د ابوایوب انصاري رضي الله عنه دا کلام په مصر کښې هم شوې وي او په شام کښې هم.[3]

اوشیخ مختار بن محمد الشنقیطي رحمه الله خپله شرح سنن النسائي "شروق أنوار المنن الکبری الإلهیه" کښې د دې خبرې متعلق نور فرمائي چه (د علامه عراقي رحمه الله او علامه سندهي رحمه الله) دا خبره ډیره قرین قیاس ده په خاص توګه چه کله د دواړو احادیثو مخرج هم مختلف دې ځکه چه د امام نسائي رحمه الله د تخریج کړې شوی حدیث سند د نورو تخریج کړې شوې ائمو د سند نه مختلف دې. هغه داسې چه د اکثر ائمه ذکر کړې شوې روایت د امام زهري رحمه الله دې. کوم چه هغوی د عطاء بن یزید اللیثي رحمه الله نه روایت کوی او د امام نسائي رحمه الله روایت د اسحاق بن عبدالله رحمه الله دې کوم چه هغه د رافع بن اسحاق رحمه الله نه روایت کوی[4]

---

[1] تقریر بخاری شریف: ۱٤۲/۲.

[2] أخبرنا محمد بن سلمة والحارث بن مسكين قراءة عليه وأنا أسمع واللفظ له عن ابن قاسم قال حدثني مالك عن إسحاق بن عبدالله بن أبي طلحة عن رافع بن إسحاق أنه سمع أبا أيوب الأنصاري وهو بمصر يقول: والله ما أدري كيف أصنع بهذه الكرابيس وقدقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إذا ذهب أحدكم إلى الغائط أو البول فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها". (سنن النسائي، كتاب الطهارة، النهي عن استدبار القبلة عند الحاجة، رقم الحديث: ۲۰).

[3] حاشية السيوطي، والسندهي على سنن النسائي، كتاب الطهارة، باب: النهي عن استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم الحديث: ۲۰، ۲٥/۱. ذخيرة العقبى شرح سنن النسائي، كتاب الطهارة، باب: النهي عن استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم الحديث: ۲۰، ٤٤۳/۱.

[4] شرح سنن النسائي المسمى ب شروق أنوار المنن الكبرى الإلهيه، كتاب الطهارة، باب: النهي عن استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم الحديث: ۲۰/۱٤۷/۱.

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائیلي دي چه علماؤ د نسائي رحمه الله دا روایت غلط ګرځولي دي او علماء موجهين فرمائي چه قدوم ئي په شام کښې وو او روایت ئي په مصر کښې بیان کړې وو[1]

**قوله:** "الشام": دا مشهور ښار دې. دَدې استعمال دَ مذکر او مؤنث دواړو شان سره کیږي. دَدې همزه تسهیلاً په الف سره هم لوستلې کیږي. دَدې ملك نوم دَ حضرت نوح عليه السلام دَ خوی سام بن نوح په نوم باندې کیخودې شوې وو. بیا عجمی لفظ کیدو دَ وجې نه سین په شین سره بدل کړې شو[2]

**قوله:** "مَراحِيض": بفتح الميم، وبالحاء المهملة والضاد المعجمة، جمع ده دَ "مِرحاض" په کسرې دَ میم دادَ یو داسې مکان نوم دې کوم چه دَ اودس ماتی دَ پاره تیاروليې شی[3]

**قوله:** "فننحرف": دادَ انحراف نه دې یعنی مونږ به دَ قبلې دَ طرف نه تاویدو. دَ یوې نسخې مطابق دا لفظ "فنتحرّف" دَ التحرف نه دې. دَ دواړو مراد هم یو دې[4]

**قوله:** "ونستغفر الله تعالٰی" اودَ الله تعالی نه به مو په خپلو ګناهونو باندې مغفرت غوښتلو.

**دَانحراف عن القبله مطلب:** دَانحراف عن القبله دوه معنې کیدې شی. یودا چه مونږ به دَ شام ملك کښې دَ بیت الخلا ګانو مخ دَقبلې طرف ته اولیدلو نو مونږ به واپس کیدلو، هغه به مو نه استعمالولې اودَ الله تعالی نه به مو استغفار کولو.

**انحراف عن القبله باندې دَ استغفار وجه:** په دې معنی باندې اشکال کیدې شی چه کله هغوی استعمالولې نه نو بیائي استغفار په کومه خبره کولو؟ دَدې اشکال اولنې جواب خودادې چه دا استغفار دَ جوړونکو دَپاره وو چه هغوی دا څنګه خراب کار اوکړو[5]

دَدې جواب باره کښې حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائي چه کومو خلقو چه وئیلي دي چه دائي دَ هغې دَجوړونکو دَ پاره استغفار کولو نودا غلط دی. ځکه چه دَدې جوړونکي خو کافران وو دَهغوی دَپاره دَ استغفار څه مطلب؟[6]

دَدې جواب داکیدې شی چه دَدوې استغفار به په هغه جوړونکودَدې دَ پاره وو چه دَ شام په

---

[1]) تقریر بخاري شریف: ۱٤۱/۲.

[2]) تخب الأفكار فی تنقیح مبانی الأخبار فی شرح معانی الآثار، کتاب الكراهة، باب: استقبال القبلة بالفروج للغائط والبول: ۱۸۹/۱۳، عمدة القاري: ۱۹۲.

[3]) تهذیب اللغة، المادة: رحض: ۲۰۳/٤، لسان العرب، المادة: رح ض: ۱۵۳/۷، تخب الأفكار فی تنقیح مبانی الأخبار فی شرح معانی الآثار، کتاب الكراهة، باب: استقبال القبلة بالفروج للغائط والبول: ۱۸۹/۱۳.

[4]) عمدة القاري: ۱۹۲/۴.

[5]) عمدة القاري: ۱۹۲/٤، الكوثر الجاري: ۸۰/۲، إرشاد الساري: ۵۷/۲، نخت الأفكار فی تنقیح مبانی الأخبار فی شرح معانی الآثار، کتاب الكراهة، باب: استقبال القبلة بالفروج للغائط والبول: ۱۸۹/۱۳، کوثر المعاني الدراري في كشف خبايا صحيح البخاري الحديث الثالث: ۱۸/۷.

[6]) تقریر بخاري شریف: ۱٤۲/۲، الكنز المتواري: ۸٤/٤-۸۳.

ملك كښې د حضرت عيسى علیه السلام شريعت موجود وو دهغې باوجود هغه خلقو د قبلې طرف ته بيت الخلاء جوړې كړې يعنى په هغوى باندې انكار كولو سره ئې استغفار كولو [1]

دويم جواب دادې چه مونږ به استغفار كولو د قبلې طرف ته مخ كولو نه چه اې الله مونږ د اودس ماتى وخت كښې د قبلې طرف ته د مخ كولو نه هميشه محفوظ اوساتې. مونږ تا نه په دې خبره باندې معافى غواړو چه د اودس ماتى په وخت د قبلې طرف ته مخ كولو سره كينو يا شاه كولو سره كينو [2]

دريم جواب داهم كيدې شى چه كله به هم مونږ ته داخبره ښكاريدله چه خلقو په داسې طريقه باندې بيت الخلاګانې جوړې كړې دى نو مونږ ته به خپله ګناه يادېدله لكه چه څنګه هغوى دا غلطى كړې ده او د ګناه كار ئې كړې دې دغه شان مونږ هم د ګناه ډيرزيات كارونه كړې دى. په دې وجه به مونږ په خپلو ګناهونو باندې استغفار كولو. د تقوىٰ دارو خلقو دا شان وى چه د ... د چا غلطى او ګورى نو د خپلو غلطونه استغفار كوى. [3]

څلورم جواب داكيدې شى چه ډير ځل انسان څه منكر يا خرابه خبره ليدو سره استغفرالله وائى اګرچه هغه ګناه د هغه نه صادر شوې نه وى، فلا اشكال. [4]

د انحراف عن القبله دويمه معنى دا كيدې شى چه مونږ به دغه بيت الخلاګانې استعمالولې ليكن د خپل وس مطابق به په كګيدو سره كيناستو ليكن بيا به هم لږه ډيره غلطى كيدله او كوتاهى به واقع كيدله. په دې وجه د دغه كوتاهئ كيدو باندې به مونږ استغفار كولو [5]

په دې باره كښې حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه قاعده داده چه مشغول خلق اودس ماتى له هغه وخت ځى كله چه سخته تقاضا وى. د صحابه كرامو رضي الله عنهم هم دغه حال وو چه ډير مشغول وو او كله چه به په سختئ سره په طبيعت باندې تقاضا كيدله نوبيابه د بيت الخلاء طرف ته تلل او په تادئ كښې به د دې خيال نه پاتې كيدو او په دغه مراحيض كښې كوم چه د قبلې طرف ته جوړكړې شوې وو كيناستل به، خو چه كله به يادېدل نو خپل مخ به ئې اړولو او په خپله غلطئ باندې لكه چه په هيره باندې به كيدله خپيمانه كيدل او استغفار به ئې كولو. بهرحال دې حضراتو به په خپل فعل باندې استغفار كولو [6].

---

[1] ) الكوثر الجارى: ۸۰/۲.

[2] ) عمدة القارى: ۱۹۲/٤، إرشادالسارى: ۵۷/۲،نخب الأفكار فى تنقيح مبانى الأخبار فى شرح معانى الآثار، كتاب الكراهة، باب: استقبال القبلة بالفروج للغائط والبول: ۱۸۹/۱۳، كوثرالمعانى الدرارى فى كشف خبايا صحيح البخارى، الحديث الثالث: ۱۸/۷.

[3] ) عمدة القارى: ۱۹۲/٤، ،نخب الأفكار فى تنقيح مبانى الأخبار فى شرح معانى الآثار، كتاب الكراهة، باب: استقبال القبلة بالفروج للغائط والبول: ۱۸۹/۱۳، كوثرالمعانى الدرارى فى كشف خبايا صحيح البخارى، الحديث الثالث: ۱۸/۷.

[4] ) الكوثرالجارى: ۸۰/۲.

[5] ) الكوثرالجارى: ۸۰/۲.

[6] ) تقرير بخارى شريف: ۴۲/۲؛ الكنزالمتوارى: ۸۴/٤-۸۳، سراج القارى: ۴۳۱/۲.

**د حديث شريف نه مستنبط شوې فوائد:** د مذكوره حديث شريف نه ډيرې فائدې مستنبط كيږي په كوم كښې چه څه لاندې نقل كولې شي:

① د اودس ماتى وخت كښې قبلې ته مخ كول او شاه كول دواړه ناجائز دى.[1]

② قبلې ته د مخ كولو او شاه كولو كراهت په صحرا او آبادئى دواړو ځايونو كښې دې.[2]

③ د شعائر الله تعظيم او احترام باندې تنبيه معلوميږي.[3]

④ اهل مدينه او اهل شام د پاره د قبلې طرف په مشرق او مغرب كښې كيدل معلوميږي.[4]

**تعليق:** وَعَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ [ر: ١٤٤]

**د تعليق تخريج:** امام بخارى رحمه الله د سابقه حديث متابعت د پاره يو بل سند پيش كړې دې. چنانچه د "وعن الزهرى" عطف سابقه سند كښې "حدثنا سفيان عن الزهرى" باندې دې يعنى سابقه سند "حدثنا على بن عبدالله قال: حدثنا سفيان قال: حدثنا زهرى، عن عطاء بن يزيد، عن أبى أيوب الأنصارى رضى الله عنه" وو او موجوده سند "وعن الزهرى عن عطاء قال سمعت أبا أيوب عن النبى صلى الله عليه وسلم وسلم مثله" دې. د دې طريق فائده داده چه په دې طريق كښې د دې خبرې تصريح ده چه عطاء د حضرت ابو ايوب رضى الله عنه نه سماع كړې ده او په مخكينى طريق كښې سماع ثابته نه وه.[5]

او علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه سماع د عنعنې نه قوى وى ليكن په دې كښې ضعف دې "عن الزهرى" د تعليق په جهت سره.[6]

---

[1] عمدة القارى: كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٤٢٢/٢. الشرح الميسر للصابونى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٢٣٥/١.

[2] التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن ملقن، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ١٠٦/٤. الشرح الميسر للصابونى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٢٣٥/١.

[3] عمدة القارى: كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٤٢٤/٢. الشرح الميسر للصابونى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٢٣٥/١.

[4] أعلام الحديث للخطابى، كتاب الوضوء باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٢٣٩/١. الشرح الميسر للصابونى، كتاب الوضوء، باب: لا تستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عندالبناء، جدار أو نحوه، رقم الحديث: ١٤٤، ٢٣٥/١.

[5] فتح البارى: ٦٤٦/١، عمدة القارى: ١٩٣/٤-١٩٢، الكوثر الجارى: ٨٠/٢، اللامع الصبيح شرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١١٨/٣.

[6] شرح الكرمانى: ٥٨/٤.

نو حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله ددې جواب ورکړې دې چه په ظاهره خود علامه کرمانی رحمه الله خبره صحیح ده لیکن هم دغه حدیث په مسند اسحاق بن راهویه کښې مسنداً موجود دې لهذا اوس څه اشکال باقی نه پاتې کیږی[1]

## ۳-باب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَىٰ: {وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى} [البقرة:۱۲۵]

دَ الله تعالى ارشاد مبارك دې چه دَ ابراهيم عليه السلام دَ قيام ځائې دَمونځ ځائې جوړ کړئې

**دَترجمة الباب غرض:**

**دَ حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله رائې:** دَ حضرت امام بخاری رحمه الله ددې باب نه څه غرض دې؟ دَبعضې علماؤ رائې داده چه "اتخذوا" دَ امر صیغه ده، ددې نه په ظاهره وجوب په پوهه کښې راځی. نوحضرت امام بخاری رحمه الله داباب قائمولو سره اوخودل چه امر ایجابی نه دې او هم دغه زما دَ والد صاحب قدس سره رائې ده. اودَ بعضې علماؤ رائې داده چه "اتخذوا" دَ خپل اطلاق دَ وجې مطلقاً په اتخاذ صلوة باندې دلالت کوی. نو امام بخاری رحمه الله دا ترجمه گردان کولوسره او روایتونه ذکرکولو سره اوخودل چه دې نه خاص رکعتی الطواف مراد دی. او دَ بعضې علماؤ رائې داده چه دَ من مقام ابراهیم دَ لفظ نه په ظاهره دَدغه مقام تخصیص معلومیدلو. نو امام بخاری رحمه الله روایات ذکرکولوسره اشاره اوفرمائیله چه هیڅ تخصیص نشته بلکه ددې سره خواوشا حصه هم په مقام ابراهیم کښې داخله ده. خاص مقام مراد نه دې[2]

او په سراج القاري کښې دَ حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله په نسبت سره دَ لامع الدراری اوالكنزالمتواری دَ تحریرونو خلاصه داسې پیش کړې شوې ده چه "اتخذوا" دَ امر صیغه ده اودَ امر اصل وجوب دې اومقام ابراهیم هغه کانړې دې په کوم باندې چه اودرید وسره حضرت ابراهیم عليه السلام دَ بیت الله تعمیر کړې وو. او په دغه کانړی باندې دَ حضرت ابراهیم عليه السلام دَ دواړو خپو مبارکو نښې موجود دی. دا کانړې دَ بیت الله مخامخ نصب دې. او دَ "مصلًّى" مطلب قبله ده. اوس لکه چه دَ آیت مفهوم دا شو چه مقام ابراهیم طرف ته دې مونځ اوکړې شی. حالانکه دَمقام ابراهیم طرف ته مونځ کول څوك ضروری نه گڼری. په دې وجه لامحاله یاخودې "اتخذوا" کښې دَ وجوب نه علاوه څه بله معنی اختیار کړې شی یادې په مقام ابراهیم کښې توسع اختیار کړې شی. چنانچه اکثرو حضراتو "اتخذوا" کښې دَ وجوب په ځائې استحباب مراد اخستې دې اومقام ابراهیم نه مراد ئی هم هغه کانړې اخستې دې په

[1]) فتح البارى: ۶۴۶/۱ عمدة القارى: ۱۹۳/٤.
[2]) تقريربخاری شريف: ۱۲۵/۲.

كوم چه د ابراهيم عليه السلام د خپو نښې موجود دي. په دې صورت کښې چه کوم مونځ په مقام ابراهيم کښې د کولو حکم ورکړې شوې دې هغه صرف د تحية الطواف دوه رکعته دي يعنې هغه دوه رکعته کوم چه د طواف نه پس ادا کيږي. دهغې د پاره د ټولو مقاماتو نه اوچت مقام مقام ابراهيم دې. يعنې هغه ځائې چرته چه دا کاڼړې کيخودلې شوې دې. اوکه چرې "اتخذوا" په خپل اصل معنى يعنى وجوب باندې محمول کړې شي نو په داسې صورت کښې به مقام ابراهيم کښې توسع کولو سره د دې نه مراد کعبة الله اخستې شي. ځکه چه کعبه حضرت ابراهيم عليه السلام جوړه کړې ده او ښکاره خبره ده چه کعبه چونکه د مونځ قبله ده. په دې وجه هرسړې مکلف دې چه د دې طرف ته مخ کولو سره مونځ اوکړي. په دې صورت کښې به صيغه د امر په خپل اصل يعنى د وجوب په معنى وی او د مقام ابراهيم نه مراد به کعبه وي.[1]

**دعلامه فخرالدين احمد صاحب رحمه الله رائې:** صدر المدرسين دارالعلوم ديوبند ليکی چه "اتخذوا" صيغه د امر د وجوب د پاره نه ده بلکه د استحباب د پاره ده. ليکن په دې صورت کښې مشکلات دادي چه امام بخاري رحمه الله چه د ترجمة الباب لاندې کوم درې روايتونه ذکر کړي دي په دې تقدير باندې به د دغه دريواړو روايتونو نه ږومبې روايت خو د ترجمې سره بغير د څه تکلف نه منطبق شي ليکن دباقی دوو روايتونو د منطبق کولو د پاره به د تکلفاتو نه کار اخستلې کيږي. ځکه چه د امام بخاري رحمه الله د ذکر کړې شوی رواياتو په رڼړا کښې بهتر دا معلوميږي چه "اتخذوا" خو په خپل اصل معنى يعنى وجوب باندې محمول کړې شي او په مقام ابراهيم کښې توسع کولو سره د دې نه مراد بيت الله شريف واخستې شي، ځکه چه بيت الله هم حضرت ابراهيم عليه السلام جوړ کړې دې او ښکاره خبره ده چه بيت الله د مونځ قبله ده په دې وجه هر سړې مکلف دې چه بيت الله طرف ته دې مخ کولو سره مونځ کوی. په دې صورت کښې صيغه د امر په خپل اصل يعنى د وجوب په معنى پاتې شو او د مقام ابراهيم معنى بيت الله شوه په دې صورت کښې به د دريواړو رواياتو انطباق کښې هيڅ مشکل نه وي.[2]

**دمقام ابراهيم په مراد کښې يو څو اقوال:** په دې سلسله کښې د امت د علماؤ مختلف اقوال دي. ① هغه مقام چرته چه هغه کاڼړې کيخودې شوې دې په کوم چه د ابراهيم عليه السلام د خپو نښې دی. ② بيت الله شريف. ③ مسجد حرام. ④ پوره حرم شريف.

د دې څلورو مشهورو اقوالو نه مونږ د ويمه معنى مراد اخستې ده. په دريمه او څلورمه معنى کښې ډير زيات توسع ده او د آيت مبارك مراد دادې. "د بيت الله شريف د هرې يوې حصې استقبال په مونځ کښې فرض دې، چونکه بيت الله هغه مقام دې کوم چه حضرت ابراهيم عليه السلام قائم کړو او جوړ کړې وو او ستاسو ملت، ملت ابراهيمی دې په دې وجه بيت الله ستاسو قبله مقرر کړې شوه."

---

[1] سراج القاري: ٤٣٢/٢، لامع الدراري: ١٥٥/١-١٥٤، الكنز المتواري: ٨٥/٤-٨٤.
[2] إيضاح البخاري: ١١٨/٣-١١٧.

دامعنى مراد اخستلو يوه فائده خو داده چه د امام بخارى رحمه الله ذكر كړې شوې روايت د بې تكلفه ترجمې سره منطبق كيږى. بله دا چه امام بخارى رحمه الله دا باب، ابواب قبله كښې ذكر كړې دې. كه چرې "اتخذوا" په استحباب باندې محمول كړې شى او د مقام ابراهيم نه مراد هغه خاص كانړې واخستې شى نوابواب قبله سره به د دې ربط كمزورې شى. والله اعلم.[1]

**دعلامه عثمانى رحمه الله رائې:** حضرت مولانا شبيراحمد عثمانى صاحب رحمه الله صرف دومره خبره كوى چه د قبلې په ابوابو كښې دا باب راوړلو سره (امام بخارى رحمه الله) د مذكوره آيت: ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ د تفسير طرف ته اشاره كړې ده خكه چه مقام ابراهيم لره د مصلې جوړولو ظاهرى مطلب به دا ګڼړلې شى چه په دې باندې اوردېدو سره مونځ اوكړى. امام بخارى رحمه الله (دا باب قائمولو سره) اوخودل چه دا مطلب نه دې بلكه مراد دادې چه مقام ابراهيم د قبلې په شان مخې ته كولو سره مونځ كونى.[2]

حديث باب (رومبې حديث) [حديث نمبر ٣٨٧]

-٣٩٥ حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَأَلْنَا ابْنَ عُمَرَ عَنْ رَجُلٍ طَافَ بِالْبَيْتِ الْعُمْرَةَ، وَلَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، أَيَأْتِي امْرَأَتَهُ فَقَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا، وَصَلَّى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ، وَطَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.[3]

**ترجمه حديث:** د حضرت عمرو بن دينار رحمه الله نه روايت دې چه مونږ د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه د هغه سړى باره كښې تپوس اوكړو چاچه د عمرې د پاره د بيت الله طواف اوكړو او صفا مروه كښې ئې سعى اونه كړه، آيا هغه خپلې بى بى سره كوروالې كولې شى؟ نو حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په جواب كښې ارشاد اوفرمائيلو چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم د (حجة الوداع په موقع باندې مكې) ته تشريف راوړو، (نو) حضور پاك اووه ځل د بيت الله طواف اوكړو او د مقام ابراهيم شاته ئې دوه ركعته مونځ اوكړو او بيائى د صفا مروه په مينځ كښې سعى اوكړه. او بيشكه ستاسو د پاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ذات اقدس كښې بهترينه نمونه موجود

---

[1] إيضاح البخاري: ١١٨/٣-١١٧، للامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٣٩/٣.

[2] فضل الباري: ١٠٦/٣.

[3] أخرجه البخاري أيضاً في الحج، في باب: صلى النبي صلى الله عليه وسلم لسبوعه ركعتين رقم الحديث: ١٦٢٣، وفي باب: من صلى ركعتي الطواف خلف المقام، رقم الحديث: ١٦٢٧. وفي باب: ماجاء في السعي بين الصفاء والمروة، رقم الحديث: ١٦٤٥، ١٦٤٧، وفي باب: متى يحل المعتمر، رقم الحديث: ١٧٩٣. ومسلم في صحيحه، في الحج، باب: بيان أن المحرم بعمرة لا يتحلل بالطواب قبل السعي وأن المحرم بحج لا يتحلل بطواف القدوم وكذلك القارن، رقم الحديث: ١٢٣٤. والنسائي في سننه، في الحج، باب: طواف من أهل بعمرة، رقم الحديث: ٢٩٣٣. وابن ماجة في سننه، في الحج، باب: الركعتين بعدالطواف، رقم الحديث: ٢٩٥٩. وفي جامع الأصول، حرف الحاء، الكتاب الأول: في الحج والعمرة، الباب الثامن: في التحلل وأحكامه، الفصل الثاني: في وقت التحلل وجوازه، رقم الحديث: ١٦١٢، ٣٠٧/٣.

ده. (لهذا د عمرې د پاره په صفا مروه کښې سعی ضرور کول پکار دی).
حضرت عمرو بن دينار رحمه الله وائی چه هم دغه سوال مونږ د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه اوکړو. هغوی صراحةً اوفرمائيل دا سې سړې دې هيڅ کله خپلې بی بی سره کوروالې نه کوی ترهغې پورې چه د صفامروه په مينځ کښې سعی اوکړی.

**تراجم رجال:** په دی حديث شريف کښې ټول څلور رجال دی:

① الحميدی رحمه الله: دا ابوبکرعبدالله بن زبير بن عيسیٰ قريشی، اسدی، حميدی، مکی، رحمه الله دی. دوی مختصر احوال کشف البارى، كتاب بدء الوحى، رومبی حديث لاندې او تفصيلی احوال كتاب العلم، باب: قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا لاندې تير شوی دی.[1]

② سفيان رحمه الله: دا مشهور محدث، سفيان بن عيينه بن ابی عمران هلالی کوفی رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال کشف الباری، كتاب بدء الوحی رومبی حديث لاندې او تفصيلی احوال كتاب العلم، باب: قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا لاندې تير شوی دی.[2]

③ عمرو بن دينار رحمه الله: دا ابومحمد عمرو بن دينار مکی جُحمی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، كتاب العلم، باب: كتابة العلم د دريم حديث لاندې تير شوی دی.[3]

④ ابن عمر رضی الله عنهما: دا مشهور صحابئ رسول حضرت عبدالله بن عمر بن خطاب رضی الله عنهما دې. د دوی احوال کشف الباری، كتاب الإيمان، باب: بنی الإسلام علی خمس کښې تير شوی دی.[4]

**شرح حديث:** طاف بالبيت العمرة. (د حضرت عمرو بن دينار رحمه الله نه روايت دې چه مونږ د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه د هغه سړی باره کښې تپوس اوکړو چه) چا د عمرې د پاره د بيت الله طواف اوکړو.

په دې جمله کښې لفظ "العمرة" د حرف جر لام په حذف سره دې. دا د مستملی اوحموی روايت دې. دې خائې کښې حرف جر محذوف منلو نه بغير معنی نه صحيح کيږی په دې وجه تقدير منل ضروری دی. او په نورو ډيرو نسخو کښې دا لفظ د "العمرة" په خائې "للعمرة" دې.[5] علامه برماوی رحمه الله ليکلی دی چه د لام نه بغير هم صحيح دې په دې صورت کښې به دا مفعول له وی او "العمرة" به د اعتمار په معنی کښې واخستلې شی.[6]

---

[1] كشف البارى: ۲۳۷/۱، ۹۹/۳.
[2] كشف البارى: ۲۳۸/۱، ۱۰۲/۳.
[3] كشف البارى: ۳۰۹/٤ .
[4] كشف البارى: ۶۳۷/۱.
[5] الكوكب الدرارى: ۵۹/٤، مصابيح الجامع: ۱۱۲/۲، عمدة القارى: ۱۹٤/٤.
[6] للامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۳۹/۳.

داهم ممكن دى چه "العمرة" نه مخكښې لفظ دَ طواف په توګه دَ مضاف محذوف اومنلې شى بيا مضاف حذف كولو سره دَدې په ځائې مضاف اليه قائم مقام كړې شى.[1]

**قوله:** "ولم يطف بين الصفا والمروة" اودَ صفا مروه په مينځ كښې ئې سعى اونه كړه.

**قوله:** "لم يطف" دا لفظ دَ "لم يسع" په معنى دې يعنى "ولم يسع بين الصفا والمروة" چه هغه دَ صفا مروه په مينځ كښې سعى اونه كړه. سعى له په طواف سره دَ تعبير كولو وجه داكيدې شى چه سعى هم دَ طواف يو قسم دې. يا دَمشاكلت او بيت الله دَ طواف مصاحب كيدو دَ وجې نه ئې سعى په طواف سره تعبير كړې ده.[2]

**قوله:** "أيأتى امرأته" آيا هغه خپلې بى بى سره كوروالې كولې شى؟

همزه دَ استفهام دَپاره ده يعنى سوال ئې اوكړو چه عمره كښې دَ صفامروه په مينځ كښې دَسعى كولو نه مخكښې عمره كونكې به حلال وى كه نه؟ او هم په دې وجه دداسې سړى دَ پاره به خپلې ښځې سره صحبت كول جائز وى كه نه؟ په دې مقام باندې سوال صرف دَ ښځې سره دَ مجامعت دَ حلال كيدو يا نه كيدو باره كښې په دې وجه كړې شوې دې چه بى بى له راتلل دَ احرام په حالت كښې دَ كړې شوو حرامو كارونو كښې دَ ټولو نه لوئى حرام كار دې ګنى دَ احرام نه حلاليدونه مخكښې دَټولو محرماتو حكم هم داده دې چه دَ هغې ارتكاب جائز نه دې.[3]

**قوله:** فَقَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نو حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په جواب كښې ارشاد اوفرمائيلو (نبى كريم ﷺ دَ حجة الوداع په موقع باندې مكې ته، تشريف راوړو.

**قوله:** "فقال" نه مراد "فأجاب" دې يعنى حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دَدې سوال جواب وركړو په دې جواب كښې اهم خبره داده چه هغوى نيغ په نيغه سخت جواب وركولو په ځائې دَ نبى كريم ﷺ فعل پيش كولو سره اوفرمائيل چه دَخپل فعل دَ پاره دَ نبى كريم ﷺ دَ عمل نه دليل حاصل كړه ځكه چه الله تعالى دَ ژوند تيرولو دَپاره بهترينه نمونه دَ خپل حبيب محمد رسول الله ﷺ په ذات اقدس كښې كيخودې ده. خاص كر دَ حج په معاملاتو كښې خو دَ حضور پاك ﷺ صريح قول ((لتأخذوا مناسككم)).[4]

---

[1] مصابيح الجامع: ١١٢/٢، كوثر المعاني الدراري في كشف خبايا صحيح البخاري: ٢٢/٧.

[2] الكواكب الدراري: ٥٩/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٣٩/٣، عمدة القاري: ١٩٥/٤، فتح الملهم، كتاب الحج، باب: بيان أن المحرم بعمرة لا يتحلل بالطواف قبل سعي: ١٠٣/٦.

[3] الكواكب الدراري: ٥٩/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٣٩/٣، عمدة القاري: ١٩٥/٤، كوثر المعاني الدراري في كشف خبايا صحيح البخاري: ٢٢/٧، فتح الملهم، كتاب الحج، باب: بيان أن المحرم بعمرة لا يتحلل بالطواف قبل سعي: ١٠٤/٦.

[4] عن جابر رضي الله عنه يقول: رأيت النبي صلى الله عليه وسلم يرمي على راحلته يوم النحر، ويقول: "لتأخذوا مناسككم، فإني لا أدري لعلي لا أحج بعد حجتي هذه". (صحيح مسلم، كتاب الحج، باب: استحباب رمي الجمرة العقبة يوم النحر راكباً، وبيان قوله صلى الله عليه وسلم: "لتأخذوا مناسككم"، رقم الحديث: ١٢٩٧......

تفسير ابن كثير كښې دَدې آيت: ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾ تشريح كښې (چه كوم دليل حضرت ابن عمر رضي الله عنهما پيش كړې دې) علامه ابن كثير رحمه الله ليكي: "هذه الآية الكريمة أصل كبير في التأسي برسول الله صلى الله عليه وسلم في أقواله، وأفعاله، وأحواله"[1].

يعنى دا آيت دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ اقوالو، افعالو او احوالو اتباع كولو كښې ډيرلوئى بنيادى حيثيت لرى. او په دې مسئله كښې چونكه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ سعى كولو نه پس حلال شوې وو په دې وجه دَ سعى كولو نه مخكښې بى بى سره كوروالي كول جائز نه دى[2].

**دَعمرې نه حلاليدو باره كښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذهب:** دَعمرې نه دَحلاليدو باره كښې دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذهب په مذكوره حديث كښې دَ بيان شوى مذهب نه خلاف دې اوهغه دا چه كله دَچا نظر په بيت الله باندې پريوځى نو دَ هغه احرام به كولاشى. لهذا داسې سړى دَ پاره خپلې ښځې سره صحبت كول جائز وى يعنى دَ طواف نه پس دَسعى نه مخكښې به هغه حلال شى. هم په دې وجه يو صحابى دَ حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه سوال كړې وو نو هغوى اشارةً جواب وركړې وو چه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم اتباع اوكړه. قاضى عياض رحمه الله، علامه نووى رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره دَدې خبرې تصريح كړې ده چه په دې باره كښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذهب دَجمهورو صحابه كرامو سره نه وو[3].

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حديث دَ ترجمة الباب سره مناسبت "وصلى خلف المقام ركعتين" كښې دې.[4] دَ امام بخارى رحمه الله مقصد صرف "وصلى خلف المقام ركعتين" سره دې. اوس كه چرې ﴿ وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ﴾ كښې "اتخذوا" په استحباب باندې محمول كړې شى نو بياهم مطابقت ښكاره دې چه دَتحية الطواف دَ پاره دَ ټولو نه اوچت او اعلى مقام مقام ابراهيم دې، ضرورى دَ چا په نيز هم نه دې. اوكه چرې "اتخذوا" په وجوب باندې حمل كړې شى نو دَ مقام ابراهيم نه مراد به بيت الله وى. په دې صورت كښې دَ روايت دَ ترجمة الباب سره انطباق ښكاره دې چه په مونځ كښې دې كعبه قبله جوړه كړې

....... بيت الأفكار) هم موجود دې ) الكواكب الدرارى: ٥٩/٤. كوثر المعانى الدرارى فى كشف خبايا صحيح البخارى: ٢٢/٧، فتح الملهم، كتاب الحج، باب: بيان أن المحرم بعمرة لا يتحلل بالطواف قبل السعى: ١٠٤/٦.

[1] ) تفسيرابن كثير، سورة الأحزاب: ٣١، ٣٩١/٦

[2] )كمال المعلم بفوائدمسلم، كتاب الحج، باب: مايلزم من أحرم بالحج، ثم قدم مكة، من الطواف والسعى: ٣١٢/٤، المنهاج شرح صحيح مسلم، كتاب الحج، باب: بيان أن المحرم بعمرة لا يتحلل بالطواف قبل السعى: ٢١٩/٨.

[3] ) شرح ابن بطال، كتاب الحج، باب: متى يحل المعتمر، رقم الحديث: ١٥٦٧: ٢٩٨/٤. دارالكتب العلمية. إكمال المعلم بفوائد مسلم، كتاب الحج، باب: ما يلزم من أحرم بالحج، ثم قدم مكة، من الطواف والسعى: ٣١٢/٤. المنهاج شرح صحيح مسلم، كتاب الحج، باب: بيان أن المحرم بعمرة لا يتحلل بالطواف قبل السعى: ٢١٩/٨. فتح البارى: ٦٤٧/١. كوثرالمعانى الدرارى فى كشف خبايا صحيح البخارى: ٢٢/٧.

[4] ) فتح البارى: ٦٤٧/١. عمدة القارى: ١٩٤/٤. كوثرالمعانى الدرارى فى كشف خبايا صحيح البخارى: ٢٢/٧.

شي لكه چه په روايت كښې د حضورپاك د عمل نه هم دغه ثابت دى(۱)

حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه د ترجمې مطابقت "وصلى خلف المقام" نه حاصل شو كوم چه په اول حديث الباب كښې ذكردې او محقق عينى رحمه الله هم د دې صراحت كړې دى. بيا نه ده معلومه چه للامع الدرارى: ۱۵۴/۱ كښې دا سې ولې اوليكل چه په ترجمة الباب باندې دا اشكال دې چه امام بخارى رحمه الله په دې كښې قرآنى آيت ذكر كړې دې په كوم كښې چه په مقام ابراهيم باندې د مونځ كولو امر دې. بيا هغه چه كوم روايتونه د دې ترجمې لاندې راوړى دى په هغې كښې مقام ابراهيم لره په مصلى جوړولو باندې هيڅ دلالت نشته دې. بيائى ليكلى دى چه حضرت اقدس مولانا گنگوهى رحمه الله هم د دې اشكال دوه جوابونه وركړى دى الخ. حيرانتيا ده چه حضرت شيخ الحديث دامت بركاتهم عدم مطابقت هم په گوته كړې دې او په ظاهره د حضرت گنگوهى رحمه الله په نيز هم دلته د عدم مطابقت څه اشكال نشته دې بلكه هغوى خود امام بخارى رحمه الله دا مراد واضح كول غواړى چه د مقام ابراهيم سره خواكې د مونځ د حكم باوجودهم د فرض استقبال كعبه په تاكد كښې فرق نه راځى. ځكه چه حضورپاك خو صلوة خلف المقام سره هم د استقبال كعبه ترك نه دې فرمائيلې. دويمه خبره حضرت رحمه الله د امام بخارى رحمه الله دا خودلې ده چه په آيت كښې اگرچه امر دې مگر هغه د سنيت يا استحباب د پاره دې د وجوب د پاره نه دې. ځكه چه كه چرې د وجوب د پاره وې نو حضورپاك به مواجهه بيت الله كښې مونځ نه كولو، كوم چه په دويم او دريم حديث باب كښې ذكر دې. (۱)(۲)

ځكه چه په دې صورت كښې خو مقام ابراهيم د حضورپاك شاته وو وړاندې نه وو او وړاندې

---

(۱) إيضاح البخارى: ۱۷۳/۲.

(۲) الدرالمختار مع ردالمحتار، كتاب الصلاة، باب: الإمامة: ۳۱٦/۲-۳۱٤. بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل فى بيان مقام الإمام والمأموم: ٦٧٤/۱. الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة، الباب الخامس فى الصلاة، الفصل الخامس فى بيان المقام الإمام والمأموم: ۸۸/۱ (۲) حدثنا محمد بن العلا، الهمدانى أبوكريب، قال: حدثنا أبومعاوية، عن الأعمش، عن إبراهيم، عن الأسود، وعلقمة، قالا: أتينا عبدالله بن مسعود فى داره، فقال: أصلى هؤلاء خلفكم؟ فقلنا: لا، قال: فقوموا فصلوا، فلم يأمرنا بأذان ولا إقامة، قال: وذهبنا لنقوم خلفه، فأخذ بأيدنا فجعل أحدنا عن يمينه والآخر عن شماله، قال: فلما ركع وضعنا أيدينا على ركبنا، قال: فضرب أيدينا وطبق بين كفيه، ثم أدخلهما بين فخذيه، قال: فلما صلى، قال: إنه ستكون عليكم أمراء يؤخرون الصلاة عن ميقاتها، ويخنقونها إلى شرق الموتى، فإذا رأيتموهم قد فعلوا ذلك، فصلوا الصلاة لميقاتها، واجعلوا صلاتكم معهم سبحة، وإذا كنتم ثلاثة فصلوا جميعا، وإذا كنتم أكثر من ذلك، فيؤمكم أحدكم، وإذا ركع أحدكم فليفرش ذراعيه على فخذيه، وليجنأ، وليطبق بين كفيه، فلكأنى أنظر إلى اختلاف أصابع رسول الله صلى الله عليه وسلم فأراهم. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب الندب إلى وضع الأيدى على الركب فى الركوع، رقم الحديث: ۱۲۲۱). والمذكور فى "نزهة الألباب فى قول الترمذى: وفى الباب هذا: "أما حديث ابن مسعود، فرواه مسلم: ۳۷۸/۱، وأبوعوانة فى مستخرجه: ۱۸۱/۲-۱۸۰، والنسائى فى المجتبى: ٦٦/۲، والكبرى: ۳۷۸/۱، وأحمد: ٤۱۳و٤۱۸/۱، وغيرهم. (نزهة الألباب وفى قول الترمذى: "وفى الباب، كتاب الصلاة: ٥٥٤/۲)]

صرف کعبة وه. دې نه علاوه دا خبره په خپل ځائې هم صحیح نه ده چه د باب په روایاتو کښې مقام ابراهیم لره په مصلی جوړولو باندې څه دلالت نشته دې. هم په رومبی حدیث کښې د حضورپاك په مقام ابراهیم کښې د مونځ کولو ذکر په صراحت سره موجود دې. دا خو په پوره شان سره د ترجمة الباب د آیت په مصداق باندې عمل وو لیکن په دې باندې د عمل کولو باوجود داهم ښکاره کول ضروری وو چه مقام ابراهیم سره مونځ کول د شرف، برکت او اجر زیاتیدو موجب دې. دا سې نه ده چه د دې په وجه د بیت الله د استقبال اهمیت څه کم شو. بلکه د حضرت گنگوهی رحمه الله د تحقیق مطابق د دې نور تاکید مفهوم شو چه دې سره مونځ هم په صحت د استقبال کعبه معظمه باندې موقوف دې او هم د دې د پاره حضورپاك هلته هم په مونځ کښې استقبال ترك نه کړو(۱)

**د مذکوره حدیث شریف نه مستنبط شوی احکام:** د مذکوره حدیث نه چه کوم فوائد او احکام مستنبط کیږی په هغې کښې یو څو دا دی:

① په اتفاق د علماؤ په عمره کښې سعی واجب ده. دې نه بغیرعمره کونکې نه شی حلالیدې(۲)

② د سعی د پاره اووه چکرې لا زمی دی(۳)

③ دوه رکعته مونځ مقام ابراهیم سره کول واجب دی. په دې کښې د سید المرسلین ﷺ اقتداء ده. دا د احنافو په نیز دی گنی د شوافع په نیز دا دوه رکعته سنت دی.(۴)

**تعلیق:** وَسَأَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، فَقَالَ: «لَا يَقْرَبَنَّهَا حَتَّى يَطُوفَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ»

**د تعلیق ترجمه:** حضرت عمرو بن دینار رحمه الله وائی چه هم دغه سوال مونږ د حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه اوکړو نو هغوی (په صراحت سره) اوفرمائیل چه دا سې سړې دې هیڅ کله د خپلې بی بی سره کوروالې نه کوی، تردې چه د صفا مروه په مینځ کښې سعی اوکړی.

**د تعلیق تخریج:** دا روایت مسند حمیدی(۵)

او مصنف ابن ابی شیبه(۶) کښې موصولاً موجود دې.

---

(۱) أنوارالباری: ۱۹۵/۱۲.

(۲) فتح الباری: ۶۴۷/۱.الشرح المیسر لصحیح البخاری: ۴۴۴/۱، کوثرالمعانی الدراری فی کشف خبایا صحیح البخاری: ۲۲/۷.

(۳) الشرح المیسر لصحیح البخاری: ۴۴۴/۱.

(۴) فتح الباری: ۶۴۷/۱.الشرح المیسر لصحیح البخاری: ۴۴۴/۱، کوثرالمعانی الدراری فی کشف خبایا صحیح البخاری: ۲۲/۷.

(۵) حدثنا الحمیدی، قال: حدثنا سفیان، قال: حدثنا عمرو بن دینار، قال: سألنا جابر بن عبدالله، فقال: لا تقربها حتی تطوف بین الصفا والمروة. (مسندالحمیدی، کتاب الحج، باب: أیقع الرجل بإمرأته قبل أن یسعی، رقم الحدیث: ۶۸۴، ۵۴۱/۱)

(۶) حدثنا أبوبكر قال: حدثنا ابن عيينة عن عمرو قال: سألت جابر بن عبدالله عن رجل اعتمر، فطاف بالبيت، ثم أراد أن يقع على أهله قبل أن يطوف بين الصفا والمروة؟ فقال: لا، حتى يطوف بين الصفا والمروة.(المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الحج، باب: في المعتمر يطوف بالبيت، أيقع على أهله، رقم الحديث: ۱۴۹۲۷، ۴۹۲/__)

**دتعلیق مقصد:** ددې تعلیق مقصد صرف دا خبره واضح کول دی چه مخکښنی روایت کښې حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په صراحت سره د سائل د سوال جواب نه وو ورکړې بلکه صرف د رسول الله ﷺ عمل ئې پیش کړې وو چه په دې کښې ستاسو د پاره لار خودنه موجود ده ددې مطابق عمل اوکړئ. لیکن په مذکوره تعلیق کښې ددې خبرې وضاحت موجود دې چه حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنهما په واضحه توګه باندې اوخودل چه معتمر هغه وخته پورې حلالیدې نه شی ترکومې پورې چه سعی اونه کړی (۱)

حدیث باب (دویم حدیث) [حدیث نمبر ۳۸۸]

-۳۸۷ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سَيْفٍ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا (۲) قَالَ أُتِيَ ابْنُ عُمَرَ فَقِيلَ لَهُ هَذَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ الْكَعْبَةَ. فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ فَأَقْبَلْتُ وَالنَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ خَرَجَ، وَأَجِدُ بِلاَلاً قَائِمًا بَيْنَ الْبَابَيْنِ، فَسَأَلْتُ بِلاَلاً فَقُلْتُ أَصَلَّى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْكَعْبَةِ قَالَ نَعَمْ رَكْعَتَيْنِ بَيْنَ السَّارِيَتَيْنِ اللَّتَيْنِ عَلَى يَسَارِهِ إِذَا دَخَلْتَ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى فِي وَجْهِ الْكَعْبَةِ رَكْعَتَيْنِ.

**ترجمه حدیث:** حضرت مجاهد رحمه الله روایت کوی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما له یو سړی راغلو او وئی وئیل چه اوګوره رسول الله ﷺ کعبې معظمې ته دننه تشریف اوړې دې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما بیان دې چه زه هلته اورسیدم نو حضورپاك بهر تشریف راوړې وو او (لکه) چه زه بلال رضی الله عنه (اوس هم) وینم چه دواړه د دروازې په مینځ کښې ولاړ دی. ما د حضرت بلال رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه رسول الله ﷺ په کعبه کښې دننه مونځ کړې دې؟ نوهغوی اووئیل چه آو، دوه رکعته د هغه ستنو په مینځ کښې کومې چه د بیت الله دداخلیدو په وخت ښی او ګس طرف ته وی. بیا حضورپاك بهر راغلو او دوه رکعته ئې د کعبې مواجهه کښې اوکړل.

---

(۱) فتح الباری: ۶۴۷/۱،عمدة القاری: ۱۹۵/۴.

(۲) أخرجه البخاری أیضاً وفی المساجد، باب: الأبواب والغلق للکعبة والمساجد، رقم الحدیث: ۴۶۸، وفی سترة المصلی، باب: الصلاة بین السواری فی جماعة، رقم الحدیث: ۵۰۴، ۵۰۵، ۵۰۶، وفی التطوع،باب: ماجاء فی التطوع مثنی مثنی، رقم الحدیث: ۱۱۶۷، وفی الحج، باب: إغلاق البیت ویصلی فی أی نواحی البیت شاء، رقم الحدیث: ۱۵۹۸، وباب: الصلاة فی الکعبة، رقم الحدیث: ۱۵۹۹، وفی الجهاد، باب الردف علی الحمار، رقم الحدیث: ۲۹۸۸، وفی المغازی، باب: دخول النبی صلی الله علیه وسلم من أعلی مکة، رقم الحدیث:۴۲۸۹، باب: حجة الوداع، رقم الحدیث: ۴۴۰۰، ومسلم فی صحیحه، فی الحج، باب: استحباب دخول الکعبة للحاج وغیره، رقم الحدیث: ۳۲۳۰، ۳۲۳۱، ۳۲۳۲، ۳۲۳۳،۳۲۳۴، ۳۲۳۵، ۳۲۳۴. وأبوداؤد فی سننه، فی المناسک، باب: الصلاة فی الکعبة، رقم الحدیث: ۲۰۲۳. والترمذی فی سننه، فی الحج، باب ماجاء فی الصلاة فی الکعبة، رقم الحدیث: ۸۷۴ والنسائی فی سننه، فی المساجد، باب: الصلاة فی الکعبة، رقم الحدیث: ۶۹۳وفی القبلة، باب: مقدار ذلک، رقم الحدیث: ۶۵۰ وفی الحج، باب: دخول البیت، رقم الحدیث: ۲۹۰۸،۲۹۰۹، وباب: موضع الصلاة بالبیت، رقم الحدیث: ۲۹۱۰، ۲۹۱۱. وابن ماجة فی سننه، فی المناسک،باب: ۳۰۶۳. وفی جامع الأصول، حرف الحاء، الکتاب الأول: فی الحج والعمرة، الباب الرابع: فی الطواف والسعی ودخول البیت، الفصل الثالث: فی دخول البیت، رقم الحدیث: ۱۵۱۴، ۲۲۵/۳.

**تراجم رجال:** دمذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه رجال دى:

① **مسدد رحمه الله:** دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل الاسدى البصرى رحمه الله دې. او د بعضو په نيز د دوى نوم عبد الملك بن عبد العزيز دې. د دوى مختصر حالات كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه، لاندې او تفصيلى حالات كتاب العلم، باب: من خص بالعلم قوما دون قوم كراهية أن لايفهموا لاندې تير شوى دى.(۱)

② **يحيى رحمه الله:** دا يحيى بن سعيد بن فروخ القطان تميمى رحمه الله دې. د دوى كنيت ابو سعيد دې د دوى مختصر حالات كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تير شوى دى.(۲)

③ **سيف رحمه الله:** دا سيف بن سليمان المخزومى المكى رحمه الله دې. د دوى كنيت ابو سليمان المكى دې(۳). دوى ته سيف بن ابى سليمان هم وئيلې شو(۴)

ابن معين رحمه الله وائى سيف بن سليمان المكى او سيف بن ابى سليمان هم د يو كس دوه نومونه دې(۵). د دوى شمير په طبقه سادسه كښې كيدلو(۶). دا د بنى مخزوم آزاد كړې شوې غلام وو(۷)

دوى چه دكومو مشائخو نه روايت كوى په هغوى كښې مجاهد بن جبر، عبد الله بن ابى نجيح، قيس بن سعد المكى، عدى بن عدى الكندى، عمرو بن دينار، ابو اميه عبد الكريم بن ابى المخارق البصرى، وغيره رحمهم الله شامل دى.(۸) او د دوى نه روايت كونكو كښې يحيى بن سعيد القطان، ابو اسامه حماد بن اسامه، زيد بن الحباب، سفيان الثورى، معتمر بن سليمان، عبد الله ابن المبارك، مسلم بن خالد الزنجى، زيد بن الحباب، عبد الله بن نمير وغيره رحمهم الله شامل دى.(۹)

امام بخارى رحمه الله فرمائى چه يحيى القطان رحمه الله وائى "كان عندنا ثقة ممن يصدق ويحفظ"(۱۰) هم د قول ابو حاتم رحمه الله د على ابن المدينى رحمه الله نه داسې نقل كړې دې چه ما د يحيى بن سعيد نه

(۱) كشف البارى: ۲/۲، ۵۸۸/۴.
(۲) كشف البارى: ۲/۲.
(۳) تهذيب الكمال: ۳۲۰/۱۲.
(۴) الجرح والتعديل: ۴۲۵/۶، تهذيب التهذيب: ۲۹۴/۴.
(۵) تاريخ ابن معين: ۸۴/۳.
(۶) موسوعة رجال الكتب التسعة: ۱۳۳/۲، تقريب التهذيب: ۴۹۸/۱.
(۷) التاريخ الكبير للبخارى: ۱۷۱/۴، تهذيب التهذيب: ۲۹۴/۴.
(۸) تهذيب الكمال: ۳۲۰/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۹۴/۴.
(۹) تهذيب الكمال: ۳۲۰/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۹۴/۴.
(۱۰) التاريخ الكبير للبخارى: ۱۷۱/۴.

دَسيف بن سليمان باره كښې تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائيل "كان عندنا ثبت ممن يصدق ويحفظ"[١]. صالح بن احمد رحمه الله وائی چه زما پلار احمدبن حنبل رحمه الله فرمائيلی دی: سيف ثقة. ابومحمد رحمه الله وائی چه زما والد نه دَ سيف بن سليمان رحمه الله باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نوهغوی اوفرمائيل: لابأس به.[٢] عجلی رحمه الله او ابوبکر البزار رحمه الله دَ هغوی باره کښې فرمائی: ثقة.[٣] ابوزرعه الدمشقی رحمه الله فرمائی: ثبت.[٤] ابن عدی رحمه الله دَ هغوی باره کښې فرمائی: حديثه ليس بالكثير، وأرجو أنه لابأس به.[٥] امام نسائی رحمه الله دَهغوی باره کښې اوفرمائيل ثقة ثبت.[٦] ابن حبان رحمه الله هغوی په الثقات کښې ذکرکړی دی.[٧] يحيی ابن معين رحمه الله به وئيل چه سيف بن سليمان او زکريا بن اسحاق دواړه قدری وو[٨]. حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی چه دَ ابن معين رحمه الله دَدې تعنت باوجود يحيی بن سعيد القطان رحمه الله دَهغوی نه روايت کړې دې.[٩]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی چه ابن عدی رحمه الله په الكامل فی ضعفاء الرجال کښې دَهغوی ذکر کړې دې اودَهغوی دا حديث ئې نقل کړې دې: ((عن قيس بن سعيد، عن عمرو بن دينار، عن ابن عباس، "أن النبی صلی الله عليه وسلم قضی باليمين مع الشاهد الواحد")). (الكامل فی ضعفاء الرجال: ٤٣٨/٣) او عباس دَ يحيی ابن معين نه دَدې حديث باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی جواب ورکړه: "ليس بمحفوظ، وسيف قدری". حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی چه زه وايم چه دا حديث عبد الرزاق عن محمد بن مسلم الطائفی، عن عمرو په سند سره روايت کړې دې او دا عن داؤد العطار، عن عمرو په سندسره هم روايت کړې شوې دې. ابن عدی رحمه الله دَدې پوره بحث نه پس اوفرمائيل: أرجو أنه لا بأس به.[١٠] الساجی رحمه الله وائی: أجمعوا على أنه صدوق ثقة، غير أنه اتهم بالقدر.[١١]

---

[١] يعنی دَ ثقة په ځائی ثبت لفظ استعمال کړې دې. الجرح والتعديل: ٢٥٤/٤،تهذيب الكمال: ٣٢١/١٢
[٢] الجرح والتعديل: ٢٥٤/٤ تهذيب الكمال: ٣٢١/١٢.
[٣] تهذيب التهذيب: ٢٩٤/٤.
[٤] تهذيب الكمال: ٣٢٠/١٢ تهذيب التهذيب: ٢٩٤/٤.
[٥] تهذيب الكمال: ٣٢٠/١٢ تهذيب التهذيب: ٢٩٤/٤.
[٦] الكاشف: ٤٧٥/١، تهذيب التهذيب: ٢٩٤/٤.
[٧] الثقات لابن حبان: ١٨٣/١.
[٨] تاريخ ابن معين برواية الدوری: ٧٧/٣.
[٩] ميزان الاعتدال: ٢٥٥/٢ سير أعلام النبلاء: ٣٣٨/٦.
[١٠] ميزان الاعتدال: ٢٥٥/٢ سير أعلام النبلاء: ٣٣٩/٦-٣٣٨.
[١١] تهذيب التهذيب: ٢٩٤/٤ هدی الساری، ص: ٥٧٤.

ابوعبيد الاجري رحمه الله وائي چه ما د ابوداؤد رحمه الله نه د هغه باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائيل: ثقة، ما عرض اوكړو: يرمى بالقدر نوهغوی جواب ورکړو: أعلمه.(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: ثقة ثبت، رمي بالقدر.(۲)

خلاصه دا چه په هغوی باندې کړې شوې دا جرح دَجمهور ائمة الرجال دَتعديل په مقابله کښې مذموم نه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله هم مقدمه فتح الباري هدي الساري کښې په دې باندې تفصيلي کلام کړې دې. دَهغوی دَعمر آخری حصه بصره کښې تيره شوه او وفات ئې ۱۵۶هجری کښې شوې دې.(۳) دَهغوی دَ وفات باره کښې دويم قول دَ ۱۵۱هجری دې.(۴)

④ مجاهد رحمه الله: دا ابو الحجاج مجاهد بن جبر مکی قرشی مخزومی رحمه الله دې. دَدوی حالات کشف الباری، کتاب العلم، باب: الفهم في الحديث لاندې تيرشوی دی.(۵)

⑤ ابن عمر رضي الله عنهما: دا مشهور صحابی رسول حضرت عبد الله بن عمر بن خطاب رضي الله عنهما دې. دَ دوی احوال کشف الباري، كتاب الإيمان، باب: بني الإسلام على خمس کښې تيرشوی دی.(۶)

شرح حديث: أُتِيَ ابْنُ عُمَرَ فَقِيلَ لَهُ: هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ

يعني حضرت ابن عمر رضي الله عنهما له څوك سړې راغلو او وئې وئيل چه ګوره رسول الله ﷺ کعبې معظمې ته دننه تشريف اوړې دې.

**قوله:**-أُتِيَ- دَهمزې په ضمې سره دَمجهول صيغه ده.(۷) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ماته دغه سړی دَنوم علم اونه شو چاچه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ته خبر ورکړې وو.(۸)

**قوله:** فَأَقْبَلْتُ: دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما بيان دې چه زه هلته اورسيدم.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چونکه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما سخت دَسنتو تابعدار وو په دې وجه چه کله هغوی ته دا خبر ملاؤ شو چه حضوپاك کعبې ته داخل شو نوهغه هم ورغلو چه اوګوری چه حضورپاك هلته لاړو نوچه څه ئې اوکړه او کوم څه چه حضورپاك اوکړه چه هم هغه زه هم اوکړم، مګر حضورپاك بهر تشريف راوړې وو.(۹)

**قوله:** وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ خَرَجَ: په داسې حال کښې چه نبی کريم بهرتشريف راوړې

---

(۱) تهذيب الكمال: ۳۲۱/۱۲ تهذيب التهذيب: ۲۹٤/٤.
(۲) تقريب التهذيب: ٤٩٨/١ تحرير تقريب التهذيب: ١٠٠/٢.
(۳) الجرح والتعديل: ٤٢٥/٦ تقريب التهذيب: ٤٩٨/١.
(۴) الكاشف: ٤٧٥/١.
(۵) كشف الباری: ۳۰۷/۳.
(۶) كشف الباری: ٦٣٧/١.
(۷) عمدة القاری: ١٩٦/٤ الكوثر الجاری إلى رياض أحاديث البخاری: ٨٢/٢.
(۸) فتح الباری: ٦٤٨/١ التوضيح لمبهمات الجامع الصحيح، ص:٥٢.
(۹) تقرير بخاری شريف: ١٤٥/٢، الكنز المتواری: ٨٦/٤.

وو. دَ "خرج" صله "من الكعبة" ده.

**قوله:** وَأَجِدُ بِلاَلًا قَائِمًا بَيْنَ الْبَابَيْنِ: ماحضرت بلال ﷺ دَ بيت الله دَ دواړو دروازو په مينځ كښې ولاړ اوليدو. دلته "اجد" دَمضارع صيغه ده ليكن دَ ماضى "وجدت" په معنى كښې ده. اودې نه مقصود دَ حال حكايت كول دى ياد تيرې شوې زمانې، هغه صورت په ذهن كښې حاضر ساتل دى.[1]

يعنى ماضى ئې دَ استقبال صيغې سره تعبير كړه. ماضى دَ استقبال صيغې سره تعبيركولو مطلب دا وى چه هغه واقعه دې وخت كښې زما دَ ستر كو مخې ته راتاؤ شوې ده څنګه چه هغه وخت زما دَ ستر كو په وړاندې وه.

علامه سيوطى ﷺ فرمائى "بين البابين" نه مراد "بين المصراعين" دې. اودَ حموى په روايت كښې خو په دې ځائى دَ "بين الناس" لفظ دې.[2]

علامه برماوى ﷺ فرمائى "بين البابين" نه مراد "مصراعي الباب" هم كيدې شى څكه چه هغه وخت دكعبې هم يوه دروازه وه اودَدې نه مراد دوه دروازې هم كيدې شى چه دَ حضرت ابراهيم ﷺ په زمانه كښې دكعبې دوه دروازې وې. هم په دې وجه حضرت عبدالله بن زبير ﷺ په خپل دوركښې دكعبې هم دوه دروازې كړې وې. اوبعضې نسخو كښې دَ "البابين" په ځائى "الناس" لفظ هم دې[3]

**قوله:** فَسَأَلْتُ بِلاَلًا، فَقُلْتُ: أَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكَعْبَةِ؟ قَالَ: «نَعَمْ، رَكْعَتَيْنِ، بَيْنَ السَّارِيَتَيْنِ اللَّتَيْنِ عَلَى يَسَارِهِ إِذَا دَخَلْتَ:

يعنى ما دَ حضرت بلال ﷺ نه تپوس اوكړو چه آيا نبى كريم ﷺ په كعبه كښې دننه مونځ كړې دې؟ هغوى اووئيل آو. حضورپاك دَ دغه دوو ستنو په مينځ كښې چه ستا دَ داخليدو په وخت ګس لاس ته راځى دوه ركعته كړى دى.

**قوله:** "نعم! ركعتين" نه مراد "نعم! صلى ركعتين" دې[4]. "الساريتين" نه مراد "الأسطوانتين" دى. او "على يساره" نه مراد "يسار الداخل" دې. يا "يسار البيت" دې. يا بيا په دې مقام باندې دَ حاضر نه دَ غائب طرف ته التفات كړې شوې دې. ګنى دَ مقام مناسب خو "يسارك" كيدل پكار وو.

---

[1]) شرح الكرمانى: ۵۹/٤، التوشح شرح الجامع الصحيح للسيوطى: ٤٨٦/٣، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٤٠/٣.

[2]) التوضيح شرح الجامع الصحيح للسيوطى: ٤٨٦/٣. يعنى داخبره نه ده چه هغه وخت دَ كعبې دوه دروازې وې. يعنى يوه دروازه دَ داخليدو دَ پاره اودويمه دَ وتلو دَ پاره. او نبى كريم ﷺ دَ دغه دوو دروازو په مينځ كښې ولاړ وو. بلكه دَ دوو دروازو نه مراد دَ يوې دروازې دوه تنبې دى دكومې په مينځ كښې چه نبى كريم ﷺ ولاړ وو. (ازمرتب)

[3]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٤٠/٣، وكذا فى شرح الكرمانى: ٥٩/٤.

[4]) التوشيح شرح الجامع الصحيح للسيوطى: ٤٨٦/٣.

**نبی اکرم ﷺ په کعبه کښې دننه څو رکعته مونځ کړې دې؟** د روایت دداې مقام نه معلومیږي چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د حضرت بلال رضی الله عنه نه سوال اوکړو چه نبی کریم ﷺ څو رکعته مونځ کړې دې نو په دې باندې هغه جواب ورکړو چه دوه رکعته ئې کړې دی. خو په بعضې روایتونو کښې ذکر دی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په ډیر افسوس سره فرمائی چه (افسوس) ما د حضرت بلال رضی الله عنه نه ولې تپوس اونه کړو چه نبی کریم ﷺ په کعبه کښې دننه څو رکعته مونځ اداکړو(۱)

نو دَدې اشکال مختلف جوابونه ورکړې شوی دی: ① علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَدې بهتر جواب دادې چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما هغه وخت صرف دا سوال کړې وو چه حضورپاک بیت یعنی کعبه کښې دننه څه اوکړه؟ نو حضرت بلال رضی الله عنه د لاس په دوو ګوتو سره اشاره اوکړه(۲)

د کوم نه چه ئې دوه رکعته اوګنړل. بیا په زبانی توګه باندې دَدې وضاحت کول د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه هیرشوې وو په کوم چه ئې افسوس کولو(۳)

② حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د "رکعتین" کوم لفظ چه ذکرکړې دې هغه د ده خپل کلام دې د حضرت بلال رضی الله عنه نه دې. په ظاهره هغوی د مونځ تحقیقی مقدار باندې اعتماد کولو سره خپل دا قول ذکرکړې دې. هغه داسې چه د حضرت بلال رضی الله عنه د طرف نه دا جواب خو ملاؤ شو چه حضورپاک مونځ کړې دې بل طرف ته د رسول

---

(۱) كما رواه البخاري في صحيح البخاري: حدثنا أبوالنعمان، وقتيبة بن سعيد، قالا: حدثنا حماد بن زيد، عن أيوب، عن نافع، عن ابن عمر: "أن النبي صلى الله عليه وسلم قدم مكة فدعا عثمان بن طلحة، ففتح الباب، فدخل النبي صلى الله عليه وسلم وبلالا وأسامة بن زيد وعثمان بن طلحة، ثم أغلق الباب، فلبث فيه ساعة، ثم خرجوا .قال ابن عمر: فبدرتُ فسألتُ بلالا فقال: صلى فيه، فقلت: في أي؟ قال:بين الأسوانتين، قال:ابن عمر: فذهب على أسأله كم صلى.(كتاب الصلاة، باب: الأبواب والغلق للكعبة والمساجد، رقم الحديث: ٤٦٨،دارطوق النجاة) ورواه أيضا: حدثنا يحيى بن بكير، حدثنا الليث، قال يونس: أخبرني نافع، عن عبدالله رضي الله عنه:أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أقبل يوم الفتح من أعلى مكة على راحلته مردفا أسامة بن زياد، ومعه بلال، ومعه عثمان بن طلحة من الحجبة، حتى أناخ في المسجد، فأمره أن يأتي بمفتاح البيت، ففتح، ودخل رسول الله صلى الله عليه وسلم ومعه أسامة وبلال وعثمان، فمكث فيها نهارا طويلا، ثم خرج، فاستبق الناس، وكان عبدالله بن عمر أول من دخل، فوجد بلالا وراء الباب قائما، فسأله:"أين صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ فأشار له إلى المكان الذي صلى فيه، قال عبدالله: فنسيت أن أسأله كم صلى من سجدة.(كتاب الجهاد والسير، باب الردف على الحمار، رقم الحديث: ٢٩٨٨، دارطوق النجاة).

(۲) حدثنا إسحاق بن يوسف، حدثنا ابن أبي داؤد، عن نافع، عن ابن عمر، قال: صعد رسول الله صلى الله عليه وسلم البيت وبلال خلفه، قال: وكنت شابا، فسعدت، فاستقبلني بلال، فقلت له: ما صنع رسول الله صلى الله عليه وسلم هاهنا؟ قال: فأشار بيده، أي: صلى ركعتين. (مسندأحمد بن حنبل، حديث بلال، رقم الحديث: ٢٣٩٢١، ٣٤٣/٣٩، مؤسسة الرسالة).

(۳) عمدة القاري: ١٩٧/٤.

اکرم ﷺ نه په ورځ کښې د دوو رکعتونه زیات کول نقل نه دی نو ددې مقدماتو لازمی نتیجه به هم دا راوځی چه په کعبه کښې دننه د حضور پاك ﷺ مونځ کم نه کم دوه رکعته خو وو. هم په دې وجه حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د "رکعتین" لفظ اووئیلو.

حافظ رحمه الله فرمائی چه بیا ماته دځپلې ددې خبرې تائید هم ملاؤ شو هغه داسې چه عمر بن شبه رحمه الله کتاب مکه کښې دعبد العزیز بن ابی رواد په طریق سره دا روایت نقل کړې دې:

((عن نافع، عن ابن عمر: "....فاستقبلنی بلال، فقلت: ما صنع رسول الله صلی الله علیه وسلم هاهنا؟ فأشار بیده، أی: صلی رکعتین بالسبابة والوسطی")). لهذا دحضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما دا قول "نسیت أن أسأله کم صلی" به په دې خبره باندې محمول کولې شی چه هغه په ژبې سره نه دا سوال اوکړو اونه حضرت بلال رضی الله عنه په ژبې سره ددې جواب ورکړو یعنی دوه رکعته مونځ ئې د هغه په اشاره سره اوګڼرلو نه چه دهغه کلام کولو سره. خلاصه د کلام دا چه د حضرت بلال رضی الله عنه دا قول "نسیت أن أسأله کم صلی" به په دې خبره باندې محمول وی چه هغه ته ددې خبرې تحقیق اونه شو چه رسول الله ﷺ دوه رکعته مونځ کړې دې که ددوؤ نه زیات؟([1])

علامه کورانی رحمه الله ددې خبرې په جواب کښې فرمائی چه دا خو داسې جواب دې چه هیڅوك به هم ددې قائل نه شی. ځکه چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په دې کښې دا فرمائی چه ما د حضرت بلال رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه آیا نبی کریم ﷺ (په کعبه کښې دننه) مونځ اوکړو؟ نوهغوی جواب راکړو چه آو، د دوو ستنو په مینځ کښې ئې دوه رکعته اوکړه. نو ددې خبرې سوچ څنګه کیدې شی چه دا قول د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما خپل قول دې. صحیح جواب دا کیدې شی چه حضور پاك دوه ځل کعبه کښې دننه داخل شو، یو ځل د فتح مکې په موقع باندې او په دویم ځل د حجة الوداع په موقع باندې. (د تعدد دخول یا د تعدد واقعه) دلیل دادې چه په دې مقام کښې (یعنی حجة الوداع په موقع کعبې ته د داخلیدو په واقعه کښې) دادی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د بیت طرف ته راغلو. هغوی ته خبر ورکړې شو چه رسول الله ﷺ کعبې ته داخل شو. او د مکې دفتحې په موقع کعبې ته دداخلیدو په حدیث کښې دی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما خلقو ته خبر ورکړو چه رسول الله ﷺ مکې ته تشریف راوړو او بیت الله کښې داخل شو او دروازه ئې بنده کړه او دائی هم اوفرمائیل چه حضرت بلال رضی الله عنه ما د کعبې د دروازې شاته ولاړ اولیدو. او د حجة الوداع والا واقعه کښې ئې فرمائیلی وو چه ما حضرت بلال رضی الله عنه د دواړو درواز په مینځ کښې ولاړ لیدلې وو. نو چه کوم سړې هم په دواړو قسم احادیثو کښې غور اوفکر کوی هغه به دا ښکاره فرق ښه شان سره اوپیژنی([2])

---

[1]) فتح الباری: ۶۴۸/۱ شرح الزرقانی علی الموطا للإمام مالک. کتاب الحج، الصلاة فی البیت: ۲۴۹/۲.

[2]) الکوثر الجاری إلی ریاض أحادیث البخاری: ۸۲/۲ خلاصه دا چه حدیث باب د حجة الوداع د موقع دې. دا جواب قیاس ته ډیر نیزدې دې په دې اعتبار سره چه فتحه مکه اول پیښه شوې ده او حجة الوداع روستو. نو دا خبره عین ممکن ده چه اول پیښیدونکې واقعه کښې هغه دا تپوس اونه کړې شو چه حضور پاك څو رکعته اداکړل او روستو پیښیدونکې واقعه کښې هغه تپوس هم اوکړو او هغه ته جواب هم ملاؤ شو، فلا تعارض. والله اعلم بالصواب. (از مرتب).

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه بعضې متاخرینو دا دواړه متضاد روایتونه داسې د جمع کولو کوشش کړې دې چه کله حضرت بلال رضی الله عنه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ته دا حدیث بیان کړو نو حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه د حضرت بلال رضی الله عنه نه دا سوال کول هیر شوی وو. بیا دوباره ملاقات اوشو نو حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د هغه نه سوال هم اوکړو. حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چه په دې جواب یا احتمال کښې دوو طریقو سره نظر دې یو دا چه دا قصه (یعنی د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د حضرت بلال رضی الله عنه نه په کعبه کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د مونځ کولو باره کښې پوښتنې والا) یو ځل پیښه شوې ده نه چه ډیر ځل. په دې باندې دلیل دا دې چه دواړو روایتونو کښې د سوال جواب په مقام د "فاء" تعقیبیه استعمال موجود دې. اوګورئی په رومبی روایت کښې «فأقبلتُ، ثم قال: فسألتُ بلالا» دې او دویم روایت کښې «فبدرتُ، فسألتُ بلالا» دې نو د فاء تعقیبیه استعمال دَدې خبرې دلیل دې چه مذکوره سوال هم یو ځل او هم په یو وخت شوې وو. دویمه خبره دا چه د حضرت ابن عمر قول "ونسيتُ....إلخ" روایت کونکې د هغوی آزاد کړې شوې غلام نافع دې چه د ډیرې اوږدې مودې نه د هغوی سره اوسیدلو لیکن په آخری وخت کښې دې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما سره نه وو بلکه دهغوی نه جدا شوې وو. نو دا خبره عین ممکن ده چه په دغه آخری وخت کښې ابن عمر رضی الله عنهما په خپل دې نسیان اوهیرې والا قول باندې باقې پاتې نه وې بلکه هغوی د دوو رکعتو والا صریح قول اختیار کړې وی[1]

علامه عینی رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله ذکرکړې شوې د نظر وجوهات بیانولو نه پس د حافظ صاحب رحمه الله نوم اخستلو نه بغیر فرمائی چه دمذکوره وجوهات په نظر سره تعبیر کولو کښې هم په ډیرو اعتباراتو سره نظر دې:

① اول خبره دا چه دَدې قصې متعدد کیدو دعوی کول بلا دلیل دی. دَدې قصې دمتعدد کیدو نه څه څیز مانع دې؟ هغه دې ذکر کړې شی.

② دویمه خبره د فاء تعقیبیه کیدو نه استدلال کولو سره د تعدد نفی کول صحیح نه دی ځکه چه د "فاء" استعمال صرف دتعقیب د پاره نه کیږی بلکه د فاء استعمال دثم معنی دتراخئ د پاره هم کیږی. لکه چه د الله تعالی په دې قول: ﴿ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً ﴾ کښې فخلقنا باندې داخلیدونکې فاء اودَدې نه وړاندې ﴿فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ﴾ اودَدې نه وړاندې ﴿فَكَسَوْنَا﴾ باندې داخلیدونکې فاء د ثم په معنی د تراخئ د پاره دې. او که چرې دَدې فاء د تعقیب د پاره کیدل اومنلې شی نو بیا هم په یو څیز کښې تعقیب معنی هم د هغه څیز په اعتبارسره مراد اخستل صحیح وی. آیا دا خبره نه ده چه دعربو په نیز دا وئیلې شی "تزوج فلان، فولدله" حالانکه د تزویج او ولادت په مینځ کښې پوره موده دحمل د وخت موجود ده. دغه شان

[1]) فتح الباري:٦٤٨/١، ذخيرة العقبى شرح سنن النسائي، كتاب المساجد، الصلاة في الكعبة:٥١٠/٨-٥٠٩، دار المعراج.

ونيلي شي: "دخلت البصرة، فبغداد" دلته په بغداد باندې فاء دتعقيب دَ پاره ده ليکن دَ بصرې اوبغداد په مينځ کښې دَ دوو ښارونو مسافت موجود دې لهذا دا نظر هم قابل تسليم نه دې.

③ دريمه خبره دا وينا چه دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما آزاد کړې شوي غلام دَ نافع دَهغوی نه جدا کيدل او بيا دَ هغوی آخرى اوږد عمر کښې پخپله دا احتمال پيدا کول چه هغوی به خپل قول بدل کړې وی دَاهم بې بنياده خبره ده. ځکه چه انسان خو ماخوذ دَ نسيان نه دې. لهذا چه کله داسې ده نو دَدې احتمال هم څه وقعت باقی نه پاتې کيږی.(۱)

④ علامه ولى الدين العراقى رحمه الله فرمائي زما پلار (علامه زين الدين العراقى رحمه الله) بيان کړې دې چه يو احتمال دادې چه ابن عمر رضي الله عنهما پخپله په دې باره کښې سوال نه وو کړې بلکه دَهغوی دَ تپوس نه بغير حضرت بلال رضي الله عنه هغوی ته خبر ورکړې وو. ليکن په دې کښې بُعد دې ځکه چه که چرې داسې وې نو په دې صورت کښې په پخپل تپوس نه کولو باندې هغه خپل ځان نه ملامته کولو.(۲)

⑤ دغه شان يو احتمال دا دې چه ابن عمر رضي الله عنهما دَ دوو رکعتو کولو ذکر دَ حضرت بلال رضي الله عنه نه دَ تپوس کولو نه مخکښې کړې وی اوبيائى روستو دَهغه نه تپوس کړې وی يا بيا حضرت بلال دَ دوو رکعتو اداکولو باره کښې حديث دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَدې قول نه روستو بيان کړې وی. ليکن په دې کښې هم بُعد دې ځکه چه دَ ابن عمر رضي الله عنهما بعضې احاديث چه په دې باره کښې دَ هغوی نه نقل دی هغه دهغوی نه دَ حضرت بلال دَ وفات نه پس اوريدلې شوې دی

⑥ يو احتمال دا دې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا تپوس کول هير کړې وو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ دوو رکعتونه زيات کړې وو که نه.(حواله بالا)

⑦ حضرت مولانا انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائي چه حضرت شاه صاحب رحمه الله په دې موقع باندې فرمائي چه بعضې علماؤ ليکلی دی چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په خپله زمانه کښې دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه دَخپلې زمانې په لحاظ سره افضل وو هغه کيدې شی چه دَدې په شان وجوه سره دې چه حضرت ابن عمر ته هر وخت دَ سنتو دَ اتباع کولو شوق لګيدلې وو اوکه چرې څه خبره دَتحقق نه پاتې شوې وی نو دَ هغې افسوس به ئې کولو. دا دَهغوی عجيبه اوحيرانونکی شان دَ فضيلت خاصه موجب وو. نور فرمائي دلته چه کوم دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په يقين سره دَ دوو رکعتو ذکر اوفرمائيلو هغه دَدې دَ پاره نه وو چه دَ حضرت بلال رضي الله عنه نه ئې تپوس کړې وو بلکه په دې وجه چه کم نه کم مونږ هم دوه رکعته وی نو هم دَدې قائل شو(۳)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۹۸/٤.

(۲) طرح التثريب فى شرح التقريب، باب: دخول الكعبة والصلاة فيها، هل كانت هذا الصلاة تحية الكعبة؟ وهل يستدل بها على جواز صلاة الفريضة في جوف الكعبة؟ ذكر المذاهب فى ذلک: ۱۳۹/۸، دار إحياء التراث العربى. ذخيرة العقبى شرح سنن النسائى، كتاب المساجد، الصلاة فى الكعبة: ۸/ ۵۱۰-۵۰۹، دارالمعراج.

(۳) أنوارالباري: ۱۹۶/۱۲، فيض البارى: ٤٢/٢.

**نبی کریم ﷺ کعبه کښې په کوم ځائی کښې مونځ اداکړو؟** کله چه نبی کریم ﷺ کعبه کښې داخل شو نو حضورپاك کوم ځائی کښې په کعبه کښې مونځ اداکړو؟ په دې باره کښې مختلف قسم روايات نقل دی[۱].

تقرير بخاری شريف کښې حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده دَدې روايتونو په مينځ کښې ډير بهترين تطبيق کړې دې. شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه په مذکوره حديث کښې يوه جمله ده: ((الساريتين اللتين على يساره)) بعضې رواياتو کښې دَدې عکس راغلې دې ((على يمينه)) او بعضې رواياتو کښې ((بين العمودين المقدمين)) دې او بعضې کښې دا دې چه دَحضورپاك مخې ته درې ستنې وې. دَدې مختلف رواياتو دَ وجې نه دَ دغه ځائی په تعيين کښې اختلاف پيدا شو.

زما والد صاحب اعلى الله مراتبه فرمائی چه په هغه زمانه کښې به په عام توګه ستنې بې ترتيبه وې. هوارې او بالکل نيغې په يو خط کښې او په يو لائن کښې به نه وې. نو دَ هغه زمانې نقشه دَدې قسم وه او حضورپاك داسې ولاړ وو چه په يسار کښې هم دوه ستنې وې او په يمين کښې هم دوه ستنې وې. په دې توګه دَحضورپاك بين الساريتين کيدل هم صادق شو او دا چه دَحضورپاك مخې ته هم دوه ستنې وې ځکه چه درې دی داسې يو خوا بل خوا مقابله کښې دوه دی هم دَدې ذکر ئې اوکړو[۲].

---

[۱] ابوزرعه ولى الدين، ابن العراقی رحمه الله "تقريب الأسانيد وترتيب المسانيد" شرح "طرح التثريب" کښې دغه مختلف روايات او په هغې باندې تشريحی کلام نقل کولونه پس دَخپل پلار ابوالفضل زين الدين العراقی رحمه الله اخذ کړې شوې نتيجه ذکرکوی چه بنه جامع اومانع دہ، مقصود ته دَ رسيدو دپاره دَهغې نقل کول مفيد معلوميږی، وئی ګورئی: عن ابن عمر "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم دخل الكعبة...... فقال جعل عمودا عن يساره، وعمودين عن يمينه، وثلاثة أعمدة وراءه وكان البيت يومئذ على ستة أعمدة، ثم صلى". وفى رواية ابن القاسم عن مالك: "وجعل بينه وبين الجدار نحوا من ثلاثة أذرع". وفى رواية البخاري: "عمودا عن يمينه وعمودا عن يساره". وفى رواية لمسلم: "عمودا عن يمينه وعمودين عن يساره". وله فى رواية: "بين العمودين اليمانيين".

قال والدي: "فى شرح الترمذى وهى موافقة لكونه مقابل الباب، وفى رواية فى الصحيح أيضا "صلى بين العمودين اليمانيين" وإذا نقرر ترجيح الرواية الأولى فلا ينافيها قوله فى الرواية الثانية عمودا عن يمينه وعمودا عن يساره لأن معناها صلى بين عمودين وإن كان بجانب أحدالعمودين عمود آخر ولاقوله فى الرواية الأخيرة بين العمودين اليمانيين فإن لعمد الثلاثة أحدها يمانى وهوالأقرب إلى الركن اليمانى والآخر وهوالأقرب إلى الهجر شامى والأوسط بينهما إن قرن بالأول قيل: اليمانيان وإن قرن بالثانى قيل الشاميان. ذكر المحب الطبرى، وهو واضح، وأما الرواية الثالثة: فإنه يتعذر الجمع بينها وبين الأولى، فهى ضعيفة لشذوذها ومخالفتها رواية الأكثرين كما تقدم، والرواية الرابعة: فهى مقطوع بوهمها إذ ليس هناك أربعة أعمدة حتى يكون عن يمينه اثنان وعن يساره اثنان". (طرح التثريب فى شرح التقريب، كتاب الحج، باب: دخول الكعبة، والصلاة فيها، حديث: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم دخل الكعبة هو وأسامة بن زيد، فائدة: إثبات صلاته عليه السلام فى الكعبة: ۱۳۶/۵).

[۲] تقرير بخاری شريف: ۱۴۴/۲ الكنزالمتوارى: ۸۷/۴-۸۶.

**قوله:** «ثُمَّ خَرَجَ، فَصَلَّى فِي وَجْهِ الْكَعْبَةِ رَكْعَتَيْنِ» بيا نبى كريم ﷺ دَ بيت الله نه بهر اووتلو بيائى دَ كعبې «دَ دروازې» مخامخ دوه ركعته مونځ ادا كړو.

**قوله:** "وجه الكعبة" نه مراد "مواجهة باب الكعبة" دې. يعنى دكعبې مكرمې دَ دروازې مخې ته[1]

علامه برماوى رحمه الله فرمائى چه دَدې لفظ "وجه الكعبة" دَ ظاهر نه معلوميږى چه دا دوه ركعته دَ مقام ابراهيم سره ادا كړې شوى وو اودَ وجة كعبه نه عموم مراد اخستلو احتمال هم شته چه دَ كعبې دَ دروازې په جهت كښې ئى مونځ اوكړو.[2]

حضرت شيخ الحديث صاحب نور الله مرقده فرمائى چه دې "وجه الكعبة" سره تعميم هم اوشو ځكه چه "وجه الكعبة" كښې ئى كله ادا كړو نو مقام ابراهيم شاته پاتې شو نو هغه ركعتين كوم چه دَ مقام ابراهيم سره متعلق دى دَ هغې ايجاب پاتې نه شو[3]

**دَ روايت دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ مذكوره روايت دَ ترجمة الباب سره مطابقت دَ روايت آخرى جملې "فصلى فى وجه الكعبة" كښې دې. هغه داسې چه "وجه الكعبة" نه مراد دَ كعبې دَ دروازې طرف دې كوم ته چه مقام ابراهيم وائى.

**دَ حديث نه مستنبط شوى احكام او فوائد:** دَ مذكوره حديث شريف نه ډير زيات احكام او فوائد مستنبط كيږى. په هغې كښې يو څو لاندې درج كولې شى:

① بيت الله ته دننه داخليدل جائز دى.[4] المغنى كښې ذكر دى چه كوم سړې حج اوكړى نو دَ هغه دَ پاره مستحب دى چه هغه دې بيت الله ته هم داخل شى او هلته دې دوه ركعته مونځ اوكړى لكه چه څنګه حضور پاك عليه السلام كړى وو. او بيت الله كښې دې څپلئ او موزې وغيره كوزولو سره داخل شى[5]

② بيت الله كښې دوه ركعته مونځ كول مستحب دى.[6]

③ دا حديث دَ هغه حضراتو دليل دې څوك چه دَدې خبرې قائل دى چه په ورځ كښې دوه ركعته كول افضل دى[7]

---

[1] ) التوشيح شرح الجامع الصحيح للسيوطى: ۴۸۷/۲.

[2] ) ظاهره: عند مقام إبراهيم، وبه تحصل مطابقة الترجمة، ويحتمل جهة الباب عموما. (اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۴۰/۳).

[3] ) تقرير بخاري شريف: ۱۴۵/۲.

[4] ) الإعلام بفوائد الأحكام لابن ملقن، كتاب الحج، باب: دخول مكة وغيرها، الحديث الثالث: ۱۸۰/۶، عمدة القاري: ۱۹۷/۴.

[5] ) المغنى لابن قدامة الحنبلى، كتاب الحج، باب: الفدية وجزاء الصيد، مسئلة مالزم من الدماء، فصل: يستحب لمن حج أن يد كل البيت ويصلى: ۵۶۴/۵.

[6] ) الإعلام بفوائد الأحكام لابن ملقن، كتاب الحج، باب: دخول مكة وغيرها، الحديث الثالث: ۱۸۰/۶، عمدة القاري: ۱۹۸/۴.

[7] ) عمدة القاري: ۱۹۸/۴.

④ دا حدیث دَ ابن جریر طبري رحمه الله خلاف په دې مسئله کښې حجت دې چه هغه دَدې خبرې قائل دې چه په کعبه کښې مونځ کول جائز نه دی که هغه فرض وی او که نفل وی.[1]

⑤ دَدې حدیث نه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما عظیم منقبت معلومیږی چه هغوی دَ احکامو زده کولو او هرځائی او هروخت دَ رسول الله ﷺ دَ آثارو په لټون او اتباع باندې ښه حریص وو

⑥ په خبر واحد باندې دَعمل کولو ثبوت هم کیږی.[2]

**بیت الله شریف کښې دننه دَ داخلیدو اداب او متعلقه مسائل:** معلم الحجاج (مؤلفه: مفتی سعید احمد مظاهری رحمه الله) کښې بیت الله شریف ته دننه داخلیدو آداب باره کښې مفیدبحث موجود دې هغه بعینه لاندې نقل کولې شی.[3]

**مسئله نمبر①:** بیت الله ته دننه داخلیدل مستحب دی په دې شرط چه دَ داخلیدو موقع په آسانئ سره وی. پخپله تکلیف اوچتول یا بل ته تکلیف ورکولو سره داخلیدو نه بچ کیدل پکاردی. بل ته تکلیف ورکول حرام دی. اکثر خلق په شوق کښې داسې لیونی کیږی چه دَ بل دَ تکلیف هډو پرواه نه کوی. داسې شوق په کوم سره چه دَحرام ارتکاب وی دَ الله تعالی دَ ناراضګئی سبب دې نه چه دَ ثواب موجب.[4]

**مسئله نمبر②:** بیت نه دَ کنجئ والا ته څه ورکولو سره داخلیدل حرام دی. نن صبا په عام توګه دَ بیت الله دربان بغیردَ څه اخستو داخلیدو ته نه پریږدی. دا اخستل او ورکول حرام دی ځکه چه رشوت دې. (دربان دَ داخلید و په وخت دَ رشوت نوم نه اخلی بلکه بخشش وائی داهم رشوت دې. لکه داسې او ګنړئی چه شراب کہنہ درجام نو).[5]

**مسئله نمبر③:** بیت الله ته که دَ داخلیدو موقع ملاؤ شی نو مستحب دی چه مونځ اوکړی او دعا اوغواړی او برېنډې خپې دې داخل شی. اول دې ښې خپه کیږدی او په ډیره خشوع اوخضوع سره دې داخل شی. چت طرف ته دې نه ګوری او نه دې اخوادیخوا ګوری، دا بې ادبی ده. او کوم ځائی چه حضورپاك مونځ کړې وو نوهغه ځائی کښې دې نفل اوکړی. یعنی دَ دروازې نه داخلیدو سره دې نیغ لاړشی کله چه مغربی دیوال درې لاسه پاتې شی نو هم په دغه ځائی دوه یا څلور رکعته نفل کولو سره دې خپل مخ په دیوال باندې کیږدی اودَ الله تعالی حمد او ثنا دې اوکړی اودَ تهلیل، تکبیر او درود نه پس دې دعا اوغواړی.

(مسئله: کعبه کښې دَدوو ستنو په مینځ کښې شین بلاط "دَ شین کاڼړی فرش" عوام دې ته

---

[1] الإعلام بفوائد الأحكام لابن ملقن، كتاب الحج، باب: دخول مكة وغيرها، الحديث الثالث: ۱۸۰/۶، عمدة القاری: ۱۹۸/٤.

[2] الإعلام بفوائد الأحكام لابن ملقن، كتاب الحج، باب: دخول مكة وغيرها، الحديث الثالث: ۱۸۰/۶.

[3] معلم الحجاج بیت اللہ شریف کے اندر داخل ہونے کے آداب اور متعلقہ مسائل، ص: ۱۳۲، کاپاسنز، کراچی.

[4] غنية الناسک، باب: السعی بین الصفاوالمروة، مطلب فی دخول البیت، ص: ۱۳۸. إرشاد الساری، فصل: یستحب دخول البیت، ص: ۵٤۷-۵٤۶.

[5] غنية الناسک، باب: السعی بین الصفاوالمروة، مطلب فی دخول البیت، ص: ۱۳۸- ۱۳۹. إرشاد الساری، فصل: یستحب دخول البیت، ص: ۵٤۷-۵٤۶.

دپیغمبر علیه السلام مصلی وائی دا صحیح نه ده.([1])

**مسئله:** دکعبې هرې ستنې سره نیزدې هم دعا غواړی دا دَ رسول الله ﷺ دَفعل نه ثابته خبره ده. کما رواه الإمام احمد فی المسند. البته ستن له غاړه ورکول ثابت نه دی. دَ امام مالك رحمه الله نه تپوس اوکړې شو نو وئی فرمائیل دکعبې ستن له دې غاړه نه ورکوی ځکه چه پیغمبر علیه السلام چه کله کعبې ته داخل شو نو ما نه دی اوریدلی چه حضورپاك ستن له غاړه ورکړې وی. کذا ذکر العزی بن جماعة.([2])

**مسئله نمبر④:** حطیم هم دَ بیت الله حصه ده. که چرې یو سړی ته دَ بیت الله دَ داخلیدو موقع ملاؤ نه شی نو حطیم کښې دې داخل شی.([3])

**مسئله نمبر⑤:** دکعبې شریفې په مینځ کښې یو میخ دې هغې ته عوام "سرة الدنیا" (دَدنیا نوم) وائی او په هغې باندې خپل نوم ایږدی یا مخامخ دیوال کښې یوه کړه ده هغې ته "عروة الوثقی" وائی داټولې دَعوامو دَ ځانه خبرې دی داسې دې هیڅ کله نه کوی.([4])

**مسئله:** کعبه کښې ځان له یا په جمع سره مونځ کول جائز دی او هلته دا شرط هم نشته چه دَامام او مقتدیانو مخ دې هم یو طرف ته وی ځکه چه هلته هرطرف ته قبله ده. البته دا ضروری دی چه مقتدی دې دَ امام نه وړاندې نه وی. که یو مقتدی دَ امام طرف ته مخ کولو سره مونځ کوی نو مونځ به ئې اوشی مګر داسې مونځ کول مکروه دی او په دې صورت کښې دې مقتدی امام نه مخکښې کوی. دَ وړاندې کیدو صورت دادې چه دَ مقتدی او امام دواړو مخ هم یو طرف ته وی او چه مقتدی وړاندې وی نو په دې صورت کښې دَ مقتدی مونځ نه کیږی.([5])

---

[1]) غنیة الناسک، باب: السعی بین الصفاوالمروة، مطلب فی دخول البیت، ص: ۱۳۹-۱۳۸. إرشاد الساری، فصل: یستحب دخول البیت، ص:۵٤٧-٥٤٦.

[2]) غنیة الناسک، باب: السعی بین الصفاوالمروة، مطلب فی دخول البیت، ص: ۱۳۹. إرشاد الساری، فصل: یستحب دخول البیت، ص:٥٤٦.

[3]) مجمع الزوائد، کتاب الحج، باب: الحجر من البیت: ٤٦٤،٤٧٥/٤.

[4]) الدرالمختار، کتاب الحج، باب الهدی: ٦٢٤/٢ غنیة الناسک، باب: السعی بین الصفاوالمروة، مطلب فی دخول البیت، ص: ۱۳۹.

[5]) الفتاوی عالمکیریة، کتاب الصلاة، ومما یتصل بذلک الصلاة فی الکعبة: ٦٥/١، الفتاوی التاتارخانیة، کتاب الصلاة، الفرائض: ٤٢٦/١.

حدیث باب «دریم حدیث» [حدیث نمبر ۳۸۹]

۳۹۸- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ [۱] قَالَ لَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- الْبَيْتَ دَعَا فِي نَوَاحِيهِ كُلِّهَا، وَلَمْ يُصَلِّ حَتَّى خَرَجَ مِنْهُ، فَلَمَّا خَرَجَ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِي قُبُلِ الْكَعْبَةِ وَقَالَ هَذِهِ الْقِبْلَةُ».

**ترجمهٔ حدیث:** حضرت عطاء رحمه الله وائی چه ما د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه واؤریده چه کله حضورپاك بیت الله ته داخل شو نوحضورپاك دَ هغې په ټولو ګوټونو کښې دعا اوکړه او بهرته د تشریف راوړو پورې ئې مونځ اونه کړو. بیائې چه کله بهر تشریف راوړو نو دوه رکعته ئې دَ کعبې مخامخ اوکړل، او وئې فرمائیل چه هم دغه قبله ده.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول پنځه رجال دی:

① **اسحاق بن نصر رحمه الله:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په څومقاماتو باندې دهغوی نه حدیث روایت کړې دې. نو امام صاحب رحمه الله کله دَ هغوی نوم اسحاق بن ابراهیم بن سعد ذکرکوی اوکله دهغوی نسبت دَ هغوی دَ نیکه طرف ته نسبت کولو سره اسحاق بن نصر وئیلو سره ئې ذکرکوی. دَدوی تفصیلی حالات کشف الباری، کتاب الغسل، باب: من اغتسل عریانا وحده فی خلوة لاندې تیرشوی دی[۲]

② **عبدالرزاق رحمه الله:** دا ابوبکر عبدالرزاق بن همام صنعانی یمانی رحمه الله دې. دَدوی حالات کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: حسن إسلام المرء ددویم حدیث لاندې تیرشوی دی[۳]

③ **ابن جریج رحمه الله:** دَ دوی پوره نوم عبدالملك بن عبدالعزیز بن جریج رحمه الله دې. دَدوی حالات کشف الباری، کتاب الحیض، باب: غسل الحائض رأس زوجها وترجیله کښې تیرشوی دی[۴]

④ **عطاء رحمه الله** دا ابومحمد عطاء بن ابی رباح مکی قرشی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی حالات کشف الباری، کتاب العلم، باب: عظة الإمام النساء وتعلیمهن لاندې تیرشوی دی[۵]

---

[۱] أخرجه البخاري، أيضاً في الحج، باب: من كبر في نواحي الكعبة، رقم الحديث: ۱۶۰۱، وفي المغازي، باب: أين ركز النبي صلى الله عليه وسلم الراية يوم الفتح، رقم الحديث: ۴۲۸۸. ومسلم في الحج، باب: استحباب دخول الكعبة للحاج، رقم الحديث: ۱۳۳۱. والنسائي في الحج، باب: التكبير في نواحي ا لكعبة، رقم الحديث: ۲۹۱۶وفي باب: موضع الصلاة من الكعبة، رقم الحديث: ۲۹۲. وفي جامع الأصول، حرف الحاء، الكتاب الأول: في الحج والعمرة، الباب الرابع: في الطواف والسعي ودخول البيت، الفصل الثالث: في دخول البيت، رقم الحديث: ۱۵۱۳، ۲۲۵/۳.

[۲] كشف الباري، كتاب الغسل، باب: من اغتسل عريانا وحده في خلوة.

[۳] كشف الباري: ۴۲۱/۲.

[۴] كشف الباري، كتاب الحيض، غسل الحائض، رأس زوجها وترجيله: ۲۰۴.

[۵] كشف الباري: ۳۹/۴.

⑤ ابن عباس رضي الله عنهما: دا مشهور صحابي رسول حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما دي. دَدوی مختصر احوال كشف الباري، كتاب بدء الوحي ځلورم حديث لاندې او تفصيلي حالات كتاب الإيمان، باب: كفران العشير، وكفر دون كفر لاندې تير شوي دي.[1]

**شرح حديث:**

**قوله:** عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ، دَعَا فِي نَوَاحِيهِ كُلِّهَا: يعني حضرت عطا رحمه الله وائي چه ما دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه واوريده چه كله حضورپاك بيت الله ته داخل شو نو حضورپاك دَهغې په ټولو ګوټونو كښې دعا اوكړه.

**قوله:** "نواحيه" جمع ده دَ "ناحية" اودې نه مراد طرف دې.[2]

**قوله:** وَلَمْ يُصَلِّ حَتَّى خَرَجَ مِنْهُ، فَلَمَّا خَرَجَ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِي قُبُلِ الْكَعْبَةِ: اوبهر تشريف راوړو پورې ئې مونځ اونه كړو، بيائې بهر تشريف راوړو نو دوه ركعته ئې دَ كعبې مخامخ اوكړه.

"ركع ركعتين" نه مراد "صلى ركعتين" دې. جزء ذكر كولو سره كل مراد اخستې شوې دې.[3]

**قوله:** "في قُبُل الكعبة" كښې "قُبُل" دَ قاف او باء په ضمې سره دې اودې نه مراد دَ يو څيز مخې ته كيدل دي. يعني دَ كعبې مكرمې دَ دروازې مخې ته دَ مقام ابراهيم سره[4]

ابن رجب حنبلي رحمه الله فرمائي چه دې نه مراد وجهٔ كعبه ده يعني دَ بيت الله دروازې سره لكه چه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ماقبل حديث شريف كښې چه تير شو[5]

**قوله:** وَقَالَ: «هَذِهِ الْقِبْلَةُ»: او ارشاد ئې اوفرمائيلو چه هم دغه قبله ده.

**قوله:** "هذه" اسم اشاره ده او مشار اليه كعبه ده[6]

**دَ "هذه القبلة" وئيلو مطلب اومقصد:** علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه حضورپاك دَدې جملې په ذريعه لكه چه دا اراده اوفرمائيله چه دَ قبلې معامله هم په دې بيت الله باندې په دې قرار نيولې. اوس دَدې نه علاوه بلې قبلې طرف ته مخ اونه كړې شي. دائې په دې وجه ارشاد اوفرمائيلو چه دې نه مخكښې په دَ بيت المقدس طرف ته هم مخ كولو سره مونځ كولې شو. بيا دَ بيت المقدس قبله كيدل منسوخ شو او قبله دَ كعبې طرف ته راوګرځولې شوه. لكه چه حضورپاك اوفرمائيل چه دَ نن نه پس به ستاسو قبله نه شي بدليدې. نو تاسو همېشه دَ كعبې

---

[1] كشف الباري: ۳۵/۱، ۲۰۵/۲.
[2] عمدة القاري: ۱۹۹/٤.
[3] شرح الكرماني: ٦٠/٤، اللامع الصبيح: ۱٤۱/۳، عمدة القاري: ۱۹۹/٤.
[4] التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح: ۱۵۰/۱، مصابيح الجامع: ۱۱۳/۲، اللامع الصبيح: ۱٤۱/۳، عمدة القاري: ۱۹۹/٤، حاشية السندي على سنن النسائي، كتاب المناسك، رقم الحديث: ۲۹۰۸، ۲۳٦/۵، دار المعرفة.
[5] فتح الباري لابن رجب حنبلي: ۱۱۹/۲.
[6] عمدة القاري: ۱۹۸/٤ الكوثر الجاري: ۸۸/۲

طرف ته مخ کولو سره مونځ کوئی هم دغه ستاسو قبله ده.
دَ دې جملې په مطلب کښې دویم احتمال دادې چه رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ ته دَهغوی دَ امام دَ اودریدو مسنون ځائی اوخودلو چه امام دې مواجهه بیت کښې اودرېږی نه چه دَ بیت الله په ګوټونو او یا باقی دریوارو طرفونو نه یو طرف ته. اګرچه دَ بیت الله دَ اطرافو نه یو طرف کښې اودریدو سره هم مونځ کول جائز دی.
دَ دې جملې په مطلب کښې دریم احتمال دا دې چه په دې سره ئې صرف دَ هغه خلقو حکم اوخودلو ځوك چه دَ بیت الله مشاهده اومعائنه کوی چه دهغوی دَ پاره مواجهه بیت عیاناً ضروری دې. دَ خپلې اجتهادی رائې نه کار نه شي اخستې.
علامه نووی رحمه الله یو بل احتمال ذکرکړې دې چه دَدې معنی داده چه دا مسجد حرام دکوم دَ استقبال چه تاسو ته حکم درکړې شوې دې هم دغه قبله ده نه چه ټول حرم او نه مکه او نه هر هغه جمات کوم چه دکعبې نه چاپیره وی بلکه قبله هم صرف دغه ده.[1]
**نبی کریم ﷺ په بیت الله کښې دننه مونځ اوکړو که نه؟:** هم دَدې باب دَمذکوره حدیث نه مخکښې دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې دَحضرت بلال رضی الله عنه دا ارشاد تیر شو چه رسول الله ﷺ په کعبه کښې دوه رکعته مونځ ادا کړو[2]
خو په مذکوره حدیث شریف کښې دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دا ارشاد ذکر دې چه نبی کریم ﷺ په بیت الله کښې دننه دعا اوغوښتله لیکن مونځ ئې ادا نه کړو.
**په متعارض احادیثو کښې تطبیق:** دَ احادیثو دا تعارض دَ تطبیق، توفیق او ترجیح په لار سره لرې کړې شوې دې. تطبیق ورکونکی حضراتو کښې امام زرقانی رحمه الله دې هغوی فرمائی:
① مهلب رحمه الله فرمائی چه په دې باره کښې احتمال دې چه حضور پاك دوه ځل بیت الله کښې داخل شوې وی. یو ځل داخلیدو کښې ئې مونځ کړې دې او په دویم ځل داخلیدو کښې ئې مونځ نه دې کړې. ابن حبان رحمه الله فرمائی چه زما په نیز دواړه قسم احادیث دَ راجمع کولو بهترین صورت دادې چه دواړه خبرې دوه مختلفو مواقعو کښې پیښیدل اوګرځولې شی. چنانچه کله دَ فتح مکه په موقع حضورپاك کعبه کښې داخل شو نو حضورپاك هلته مونځ

---

[1] شرح النووی علی صحیح مسلم، کتاب الحج، باب: استحباب دخول الكعبة للحاج وغيره، رقم الحديث: ۸۳/۹علامه ابن رجب حنبلی رحمه الله فرمائی:"وزعم غيره أن مراده: أن القبلة هي الكعبة نفسها، لا المسجد ولا الحرم، وهذا قاله بعض من يرى أن الواجب على البعيد الاستقبال على العين. (فتح الباري لابن رجب حنبلي: ۱۲۰/۲). وقال السندي رحمه الله:"الإشارة إلى الكعبة المشرفة، أو جهتها، وعلى الثاني الحصر واضح، وعلى الأول باعتبار من كان داخل المسجد، أو من كان بمكة. (حاشية السندي على سنن النسائي، كتاب المناسك، رقم الحديث: ۲۹۰۸، ۲۳۶/۵، دالمعرفة).

[2] حدثنا مسدد قال: حدثنا يحيى، عن سف قال: سمعت مجاهداً قال: أتى ابن عمر، فقيل له: هذا رسول الله صلى الله عليه وسلم دخل الكعبة، فقال ابن عمر: فأقبلت والنبي صلى الله عليه وسلم قد خرج، وأجد بلالاً قائمًا بين البابين، فسألت بلالاً فقلت: أصلى النبي صلى الله عليه وسلم في الكعبة؟ قال: نعم، ركعتين، بين السارتين اللتين على يساره إذا دخلت، ثم خرج، فصلى في وجه الكعبة ركعتين. (صحيح البخاري: رقم الحديث: ۳۹۷).

او کړو لکه چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د حضرت بلال رضي الله عنه نه روایت کړی دی او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما چه کوم په کعبه کښې د مونځ کولو نفی کړې ده هغه د حجة الوداع په موقع باندې کعبه کښې د داخليدو موقع ده. او هغوی دې نسبت د حضرت اسامه رضي الله عنه طرف ته کړې دې لهذا تعارض ختم شو.(۱)

ليکن امام نووی رحمه الله په دې تاويل باندې اعتراض کړې دې چه په دې خبره کښې هيڅ اختلاف نشته دې چه نبي اکرم صلی الله عليه وسلم د فتح مکه په ورځ بيت الله ته داخل شوې وو، نه چه د حجة الوداع په ورځ. اوددې خبرې شهادت هغه حديث دې کوم چه الازرقی رحمه الله خپل کتاب مکه (اصل نوم اخبار مکه دې) کښې ذکرکړې دې: "حضرت سفيان رضي الله عنه د ډيرو اهل علم نه داخبره نقل کړې ده چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم د فتح مکه په کال بيت الله ته صرف يو ځل داخل شوې وو. بيا حضورپاک حج اوکړو نو بيت الله ته داخل نه شو".(۲)

نو چه کله خبره داسې ده نو دا خبره ممتنع نه ده چه حضورپاک د فتح مکه په کال دوه ځل بيت الله ته داخل شوې وی. اود ابن عيينه رحمه الله په حديث کښې چه د کوم وحدة ذکر دې د هغې نه مراد دې وحدت سفر وی نه چه وحدت دخول په داسې حال کښې چه د دارقطنی د يو ضعيف حديث نه هم دې جمعې ته تقويت ملاويږی. والله اعلم.(۳)

په يو بل مقام باندې فرمائی چه دا په دې خبره باندې دليل دې چه د حضورپاک کعبې ته د داخليدو او هلته مونځ کولو باره کښې چه کوم احاديث ذکر دی هغه (دخول کعبه) د فتح مکه په موقع باندې وو او په دې کښې د چاهم اختلاف نشته دې اوهغه ورځ د حجة الوداع ورځ نه وه.(۴)

② بعضې هغه حضرات چه په بيت الله کښې دننه مونځ کول مکروه ګرځوی. هغوی دا دواړه متعارض روايات داسې راجمع کړی دی چه په کوم حديث کښې د مونځ کولو ذکر راغلې دې په هغې کښې د صلاة نه مراد لغوی صلاة (يعنی دعاوغيره) مراد دی او په کومو احاديثو کښې چه د مونځ نه کولو ذکردې په هغې کښې د مونځ نه مراد شرعی مونځ دې.

(۱) قال المهلب: "يحتمل أنه دخل البيت مرتين، صلى فى إحداهما، ولم يصل فى الأخرى..... وقال ابن حبان: "الأشبه عندى فى الجمع أن يجعل الخبران فى وقتين، فلما دخل الكعبة فى الفتح، صلى فيها على مارواه ابن عمر عن بلال..... إلخ ونفى ابن عباس الصلاة فيها فى حجة الوداع، لأنه نفاها وأسنده إلى أسامة، وابن عمر أثبتها، وأسنده إلى بلال وإلى أسامة أيضا، فبطل التعارض، وهذا جمع حسن. (شرح الزرقانى على المؤطا للإمام مالك، كتاب الحج، الصلاة فى البيت: ۲۴۷/۴).

(۲) قال: حدثنا أبوالوليد، قال: وحدثنى جدى، قال: سمعت سفيان يقول: سمعت غير واحد من أهل العلم يذكرون أن رسول الله صلى الله عليه وسلم إنما دخل الكعبة مرة واحدة عام الفتح، ثم حج، فلم يدخلها. (أخبارمكة وما جاء فيها من الآثار للأزرقى، الصلاة فى الكعبة، رقم الحديث: ۳۳۴، مكتبة الأسدى).

(۳) نيل الأوطار، باب صلاة التطوع فى الكعبة، رقم الحديث: ۶۱۹، ۱۶۴/۲، شرح الزرقانى على المؤطا للإمام مالك، كتاب الحج، الصلاة فى البيت: ۲۴۷/۴، كوثرالمعانى الدرارى فى كشف خبايا صحيح البخارى: ۳۷/۷.

(۴) شرح النووى على صحيح مسلم، كتاب الحج، استحباب دخول الكعبة للحاج وغيره، رقم الحديث: ۳۸۹، ۸۲/۹.

ليكن دا توجيه په دې خبره باندې رد کړې شوې ده چه په کومو احاديثو کښې د مونځ د اثبات ذکر دې په هغې کښې د رکعتونو د تعداد هم ذکر دې. په دې صورت کښې د صلاة نه مراد صلاة لغوی مراد اخستل څنګه صحيح کيدې شي؟

③ امام قرطبي رحمه الله فرمائي چه د مالکيه د مذهب مطابق دا دواړه متعارض احاديث داسې راجمع کول ممکن دی چه د حضرت بلال رضي الله عنه د قول "أنه صلى فيها" نه نفل مونځ مراد واخستې شي او د حضرت اسامه رضي الله عنه د قول "إنه لم يصل" نه فرض مونځ مراد واخستې شي.[1]

علامه محمد يوسف صاحب بنوري رحمه الله فرمائي چه زمونږ شيخ (علامه کشميري رحمه الله) فرمائي چه دا خبره ممکن ده چه اثبات او نفي دواړه روايتونه په مختلف واقعاتو باندې محمول کولو سره توفيق او تطبيق ورکړې شي ليکن محدثين حضرات دې طرف ته مائل نه شو بلکه د دغه حضراتو خيال د ترجيح طرف ته تلې دې.[2]

په دې باندې علامه بنوري رحمه الله فرمائي چه (د حضرت کشميري رحمه الله خبره په خپل ځائې ليکن) راقم وائي چه (تطبيق والا لار اختيارولو سره د محدثينو نه) علامه زرقاني رحمه الله فرمائي......[3]. امام نووي رحمه الله فرمائي چه د حضرت بلال رضي الله عنه اثبات او د حضرت اسامه رضي الله عنه نفي داسې جمع کړې شي چه کله دا تول حضرات بيت الله ته داخل شو نو په دعا کښې مشغول شو. نو حضرت اسامه رضي الله عنه نبي کريم ﷺ په دعا کښې مشغول اوليدلو نو حضرت اسامه رضي الله عنه هم په يو ګوټ کښې کيناستو دعا کښې مشغول شو په داسې حال کښې چه نبي کريم ﷺ په دويم ګوټ کښې وو. بيا نبي کريم ﷺ مونځ شروع کړو نو حضرت بلال رضي الله عنه اوليدلو ځکه چه هغه نبي کريم ﷺ ته ډير نيزدې وو او حضرت اسامه رضي الله عنه د لرې کيدو د وجې نه او په خپله دعا کښې د مشغوليدو د وجې نه اونه ليدلې شو. دا وجه هم کيدې شي چه د بيت الله دروازه بنده وه او په کعبه کښې دننه ډيرې ستنې هم وې. چنانچه هغوی د خپل ګمان د وجې نفي اوکړه.[4]

**په متعارض احاديثو کښې ترجيح:** بعضې نورو حضراتو په دې دواړو روايتونو کښې د تطبيق په ځائې د ترجيح لار اختيار کړې ده. چنانچه علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه بهرحال د ابن عباس رضي الله عنهما قول "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم لم يصل في الكعبة" نافي دې، خو د حضرت بلال رضي الله عنه د روايت نه دا خبره ثابته ده چه نبي کريم ﷺ په بيت الله کښې مونځ کړې دې، په داسې حال کښې چه نبي کريم ﷺ د هغه سره بيت الله کښې داخل شوې وو. او د مثبت قول د نافي د

---

[1] ويمكن أن يجمع بين حديث أسامة وبلال على مقتضى مذهب مالك، فيقال: إن قول بلال: "أنه صلى فيها" يعني به: "التطوع. وقول أسامة: "إنه لم يصلي فيها، يعني به: "الفرض. (المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الحج، باب: ماجاء في دخول النبي صلى الله عليه وسلم الكعبة: ٤٣١/٣).

[2] معارف السنن، باب: الصلاة في الكعبة: ١٧٣/٦فيض الباري: ٤٢/٢.

[3] معارف السنن، باب: الصلاة في الكعبة: ١٧٤/٦-١٧٣.

[4] شرح النووي على صحيح مسلم، كتاب الحج، استحباب دخول الكعبة للحاج وغيره، رقم الحديث: ٣٨٩، ٨٢/٩.

قول نه افضل وي.[1]

محب طبري رحمه الله فرمائي چه بيت الله ته دَ داخليدو نه پس حضرت اسامه رضي الله عنه به دَ څه حاجت دَ وجې نه دَ بيت الله نه وتلې وي په دې وجه دَ نبي كريم صلى الله عليه وسلم په مونځ باندې خبر نه شو.[2] په دې باندې شاهد هغه روايت دې كوم چه ابوداؤد الطيالسي رحمه الله په خپل مسند كښې نقل كړې دې چه حضرت اسامه رضي الله عنه اوفرمائيل زه رسول الله صلى الله عليه وسلم سره كعبې ته داخل شوم هلته رسول الله صلى الله عليه وسلم جوړشوې تصويرونه اوليدل نو حضورپاك دَ اوبو ډولچه راؤغوښتله، زه لاړم راؤړم. بيا حضورپاك په دغه اوبو سره هغه تصويران وران كړل.[3]

امام قرطبي رحمه الله فرمائي چه حضرت اسامه رضي الله عنه دَ خپل ډير زر واپس راتلو دَ وجې نه دَ حضورپاك مونځ نه كولو باندې قياس كړو.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه عمر بن شبه خپل كتاب "كتاب مكه" كښې دَ علي بن بذيمه رحمه الله په طريق سره يو روايت نقل كړې دې چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم كعبې ته داخل شو په داسې حال كښې چه حضورپاك سره خضرت بلال رضي الله عنه هم وو او حضرت اسامه رضي الله عنه دَ بيت الله دروازې سره نيزدې كيناستو. بيا چه كله دا حضرات دَ بيت الله نه اووتل نو هغوى حضرت اسامه رضي الله عنه احتباء سره ناست اوليدلو (يعنى هغه په خپلو كوناټوباندې داسې ناست وو چه هغه خپل زنګونونه اودرولې وو اودَ خپلې ملا او زنګونونو نه چاپيره ئې لاسونه راتاؤ كړې شوې تړلې وو) إلخ. نو عين ممكن ده چه دَ احتباء په حالت كښې هغه آرام كول غوښتل، بيا په هغه باندې پركالې راغلو نو په دې وجه هغه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ كول اونه ليدلې شو. نوچه كله دَ هغه نه دَ نبي پاك عليه السلام په كعبه كښې دَ مونځ باره كښې تپوس اوكړې شو نوهغوى نفي اوكړه. بهرحال چه په دې ټوله قصه كښې هغه د خپل رؤيت نفي كړې ده نه چه دَنفس الامر.[5]

---

[1]) أعلام الحديث للخطابي: ٣٨١/١.

[2]) فتح الباري، كتاب الحج، باب: من كبر فى نواحى الكعبة، رقم الحديث: ١٦٠١، ٤٦٩/٣.

[3]) حدثنا أبوداؤد، قال: حدثنا ابن أبى ذئب، عن عبدالرحمن ابن مهران، قال: حدثنى عمير مولى ابن عباس، عن أسامة بن زيد، قال: دخلت على رسول الله صلى الله عليه وسلم فى الكعبة، ورأى صورا، قال: فدعا بدلو من ماء، فأتيته به، فجعل يمحوها، ويقول: "قاتل الله قوما يصورون مالا يخلقون. (مسندأبى داؤد الطيالسي. مسند أسامة بن زيد، رقم الحديث: ٦٥٧، ١٧/٢).

واضح دې وي چه مذكوره جواب به دَ حضرت اسامه رضي الله عنه په باره كښې صحيح شي ليكن دَ حضرت فضل بن عباس رضي الله عنهما حديث جواب دا نه شي جوړيدې ځكه چه په كوم حديث كښې چه دَ هغې باره كښې نقل دې چه هغه هم كعبه كښې داخل شو په هغې كښې داسې هيڅ خبره نشته ده چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه دَ څه كار دَ پاره بهر ليږلې وي، بلكه په ظاهره خو به هغه هم دننه وي. نود هغوى باره كښې به هم هغه جواب وركولې شي كوم چه پورته په متن كښې دَ امام نووي رحمه الله دَ طرف نه ذكر كړې شوې دې.

[4]) المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الحج،باب: ماجاء فى دخول النبى صلى الله عليه وسلم الكعبة: ٤٣١/٣.

[5]) فتح الباري، كتاب الحج، باب: من كبر فى نواحى الكعبة، رقم الحديث: ١٦٠١، ٤٦٩/٣.

حافظ ابن حجر رحمه الله نورفرمائي ښكاره دې وي چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خپله بيت الله ته......

چه هغوی د نبی کریم ﷺ مونځ نه ادا کول لیدلو سره ارشاد اوکړو چه نبی کریم ﷺ په بیت الله کښې دننه دعا خو اوغوښتله لیکن مونځ ئې اونه کړو. بلکه هغه د دغه نفی نسبت کله د حضرت اسامه رضی الله عنه طرف ته منسوب کوی.[١]

او کله ئې د خپل رور فضل بن عباس طرف ته[٢]

باوجود د دې چه د هغه رور فضل بن عباس نبی کریم سره بیت الله ته داخلېدل د یو شاذ روایت نه علاوه بل چرته نه ملاوېږی. د دې نه علاوه د حضرت اسامه رضی الله عنه په نسبت سره د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما کوم چه د نبی کریم ﷺ د مونځ کولو نفی ذکر ده نو د دې باره کښې عرض دا دې چه هم د حضرت اسامه رضی الله عنه نه د نبی کریم ﷺ په کعبه کښې د مونځ کول هم ذکر دی[٣]

په دې وجه د مونځ د نفی باره کښې احادیث مختلف شو خو د مونځ د اثبات متعلق احادیثو کښې اختلاف نشته دې. په دې وجه به مثبت له په نافی باندې ترجیح ورکولو سره دا وئیلې شی چه نبی کریم ﷺ په بیت الله کښې دننه مونځ کړې دې[٤]

**بیت الله کښې د مونځ د جواز یا د عدم جواز حکم:** یوه مسئله د حدیث باب لاندې دا هم راځی چه بیت الله کښې مونځ کول، فرض وی که نفل، جائز دې یا ناجائز؟

---

..... نه وو داخل شوی.) ځکه چه بیت الله ته د داخلېدو په وخت نبی اکرمﷺ سره داخلېدونکی صحابه کرام رضی الله عنهم کښې صرف د دریو ذکر ملاوېږی. په هغوی کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نشته دې بلکه حضرت بلال، حضرت اسامه بن زید او حضرت عثمان بن طلحه رضی الله عنهم دی، اوګورئ: عن ابن شهاب، عن سالم عن أبيه أنه قال: دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم البيت هو وأسامة بن زيد وبلال وعثمان بن طلحة، فأغلقوا عليهم..... إلخ.(صحيح البخاري، كتاب المناسك، باب: إغلاق البيت، ويصلى فى أى نواحى البيت شاء، رقم الحديث: ١٥٩٨).

[١]) حدثنا إسحاق بن إبراهيم وعبد بن حميد جميعا عن ابن بكر قال عبد: أخبرنا محمد بن بكر أخبرنا ابن جريج قال: قلت لعطاء: أسمعت ابن عباس يقول: إنما أمرتم بالطواف، ولم تؤمروا بدخوله؟ قال: لم يكن ينهى عن دخوله، ولكني سمعته يقول: أخبرني أسامة بن زيد أن النبى صلى الله عليه وسلم لما دخل البيت، دعا فى نواحيه كلها، ولم يصل فيه حتى خرج..... إلخ(صحيح مسلم، كتاب الحج، باب: استحباب دخول الكعبة للحاج وغيره والصلاة فيها والدعاء فى نواحيها كلها، رقم الحديث: ١٣٣٠).

[٢]) حدثنا يونس بن محمد، حدثنا حماد بن سلمة، عن عمرو بن دينار عن ابن عباس عن الفضل بن عباس: أن النبى صلى الله عليه وسلم قام فى الكعبة، فسبح، وكبر، ودعا الله عزوجل، واستغفر، ولم يركع، ولم يسجد. (مسند أحمد، رقم الحديث: ١٧٩٥، ٣١٣/٣).د فضل بن عباس رضی الله عنهما هم دغه حديث مسند احمد كښې هم په يو بل طريق (حدثنا أبوكامل، حدثنا حماد – يعنى :ابن سلمة – عن عمرو بن دينا عن ابن عباس عن الفضل بن عباس.....إلخ) سره روايت دې، اوګورئ: (مسند أحمد، رقم الحديث: ١٨٣٠، ٣٣١/٣).

[٣]) حدثنا أبوقطن، حدثنا المسعودى، عن أبى جعفر عن أسامة: "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى فى الكعبة". (مسند أحمد، رقم الحديث: ١٧٩٧، ١٣٠/٣٦).

[٤]) فتح البارى، كتاب الحج، باب: من كبرفى نواحى الكعبة، رقم الحديث: ١٦٠١، ٤٦٩/٣.

نو په دې مسئله کښې د جمهور علماء کرامو[1]

په نیز په کعبه کښې مونځ کول نه صرف جائز بلکه مستحب دي. خودَ امام مالک رحمه الله په نیز فرض مونځ په بیت الله کښې دننه کول ډیر سخت مکروه دي او په وخت کښې دننه دننه د دغه مونځ راګرځول مستحب دی. نفل که چرې غیرمؤکده وی نو بیت الله کښې دننه کول مستحب دی او که چرې مؤکده وی نو مکروه دی مګر د راګرځولو ضرورت نشته دې[2]

اودَ امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیزپه کعبه کښې نفل کول خو جائز دی لیکن فرائض کول جائز نه دي. صرف دا صورت کیدې شي چه بیت الله کښې دننه یو دیوال سره داسې متصل اوکړی چه دَده نه شاته څه حصه پاتې نه شي[3].

هم دې طرف ته اشاره کولو سره امام ترمذی رحمه الله فرمائي: "والعمل علیه عند أکثر أهل العلم لایرون بالصلاة بأسا، وقال مالك بن أنس: لا بأس بالصلاة النافلة في الکعبة، وکره أن یصلی المکتوبة في الکعبة". [4]

**دَ صاحب هدایه رحمه الله یوه سهو:** صاحب هدایه علامه مرغیناني رحمه الله نه په دې مقام باندې دَمذاهب په نقل کولو کښې سهو شوې ده. هغوی په کعبه کښې دننه دَمونځ نه جائز کیدل دَ امام شافعي رحمه الله طرف ته منسوب کړی دی.[5]

---

[1] دَ جمهور علماؤ نه مراد احناف او شوافع دی: اوګورئی: عند الأحناف: فتح القدیر، کتاب الصلاة، باب: الصلاة في الکعبة: ١/١٦٠، دارالکتب العلمیة. التنویر مع الدر، کتاب الصلاة، باب: الصلاة في الکعبة، ص: ١٢٥، دارالکتب العلمیة. البحرالرائق، کتاب الصلاة، باب: الصلاة في الکعبة: ٢/١٣٥. البته دَ شوافعو په نیز که دَ بیت الله دروازه کولاؤ وی نودننه دَدې مخامخ اودریدو سره به مونځ صحیح نه وی. عندالشوافع: الحاوی في فقه الشافعي، کتاب الصلاة، باب: صفة الصلاة، فصل في الخشوع: ٢/٢٠٦. المجموع شرح المهذب، کتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة: ٣/١٩٦. الحاوی الکبیر للماوردي، کتاب الصلاة، باب صفة الصلاة وعدد سجود القرآن: ٢/٢٠٦.

[2] مواهب الجلیل لشرح مختصر خلیل، کتاب الصلاة، فصل في استقبال القبلة: ٢/٢٠٠. الذخیرة للقرافي، کتاب الصلاة، الباب الثالث في شروط الصلاة، الشرط الخامس: استقبال القبلة: ٢/١١٢. الاستذکار لابن عبدالبر، کتاب الحج، باب: الصلاة في البیت وقصر الصلاة: ١٣/١٢٧-١٢٢.

[3] دَامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز دَ یو مشهور قول مطابق په کعبه کښې اودَ کعبې په چت باندې فرض مونځ کول جائز نه دی. البته نفل مونځ کول جائز دی. اوګورئی: المقنع، کتاب الصلاة، باب اجتناب النجاسة، رقم المسئلة: ٣٤٣ ولا تصح الفریضة في الکعبة ولا علی ظهرها: ٣/٣١٣. الشرح الکبیر، کتاب الصلاة، باب اجتناب النجاسة، رقم المسئلة: ٣٤٣ ولا تصح الفریضة في الکعبة ولا علی ظهرها: ٣/٣١٣. المبدع شرح المقنع، کتاب الصلاة باب: اجتناب النجاسات: ٣/٣٥١. او په یو قول کښې دَ امام احمد رحمه الله نه داهم نقل دی چه په کعبه کښې دننه فرض وی اوکه نفل دواړه قسم مونځ جائز دي. اوګورئی: علامه مرداوی رحمه الله فرمائي: "وعنه تصح، واختارها الآجري وصاحب الفائق". (الإنصاف في معرفة الراجح من الخلاف علی مذهب الإمام أحمد بن حنبل، کتاب الصلاة، باب اجتناب النجاسة، رقم المسئلة: ٣٤٣، ولا تصح الفریضة في الکعبة ولا علی ظهرها: ٣/٣١٣)

[4] سنن الترمذي، أبواب الحج، باب ماجاء في الصلاة في الکعبة، تحت رقم الحدیث: ٨٧٤.

[5] الصلاة في الکعبة جائزة فرضها ونفلها خلافا للشافعي فیهما. (الهدایة، کتاب الصلاة، باب: الصلاة في الکعبة. ١/٤٣٥ مکتبة البشری).

حالانکه امام شافعي رحمه الله په کعبه کښې د مونځ د جواز قائل دې. د دې تصريح علامه ابن همام[1] علامه عينى[2] کړې ده.

**دَمذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت دَحديث دَ جملې "قُبُل الكعبة" کښې دې. چه دَدې نه مراد مقام ابراهيم دې کوم چه دَ بيت الله دروازې سره نيزدې دې.[3]

## ۴-باب: التَّوَجُّهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ حَيْثُ كَانَ

دا باب په دې باره کښې دې چه مونځ گذار چرته هم وى،
په مونځ کښې دې خپل مخ قبلې طرف ته کړى.

**قوله: "نحو القبلة"** نه مراد جهةُ القبلة او ناحية القبلة دې. او حيث كان کښې كان تامه دې. لکه چه دَ الله تعالى قول: ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ﴾ [البقرة: ۱۴۴] کښې كان تامه دې. دَدې فاعل به شخص وى.

چنانچه دَحيث كان مطلب به دا شى چه يو کس په کوم ځائې کښې هم وى، په سفر کښې وى يا په حضر کښې په هغه باندې په فرض مونځ کښې دَ قبلې طرف ته مخ کول لازم دى.[4]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې دَ فرض مونځ دَ پاره دَ قبلې طرف ته دَ توجو کولو ضرورت اوفرضيت خودلې دې که مونځ گذار په سفر کښې وى او که په حصر کښې.[5]

---

[1] خلافا للشافعي، سهو، فإن الشافعي رحمه الله يرى جواز الصلاة فيها. (فتح القدير، كتاب الصلاة، باب: الصلاة في الكعبة: ۱۶۰/۱، دار الكتب العلمية).

[2] وقول المصنف: (خلافا للشافعي) ش: أي: في الفرض والنفل ليس كما ينبغي. قال: السغناقي: كأن هذا اللفظ وقع سهوا من الكاتب، فإن الشافعي يرى جواز الصلاة في الكعبة فرضها ونفلها. كذا أورده أصحابه في كتبهم عن "الوجيز" و "الخلاصة" و "والذخيرة" وغيرهما، ولم يرد أحد من علمائنا أيضا هذا الخلاف فيما عندي من الكتب "كالمبسوط" و "الأسرار" و "والإيضاح" و "المحيط" و شروح الجامع الصغير وغيرها ما خلا أنه يشترط السترة المتصلة بالأرض اتصال قرار إذا كان المصلي في عرصة الكعبة كالحجر والشجر. (البناية، كتاب الصلاة، باب: الصلاة في الكعبة: ۲۸۱/۳، دار الكتب العلمية). وغيره ) دلته صاحب النهايه دَ صاحب هدايه دَدې مذاهبو دَ نقل کولو تاويل کولو سره يو جواب ذکر کړې دې چه دَ صاحب هدايه رحمه الله مراد دا کيدې شى چه کله يو سړې په بيت الله کښې دننه دهغې کولاؤ دروازې ته مخامخ داسې اودريږى چه مونځ اوکړى چه دَ هغه مخې ته څه سترا وغيره نه وى نو د شوافع په نيز مونځ نه کيږى. لهذا دا تاويل دَدې نه بهتر دې چه دَ صاحب هدايه رحمه الله کلام په سهو باندې محمول کړې شى اګرچه دَ صاحب هدايه رحمه الله دَ کلام ظاهر دَدې تاويل نفى کوى. اوګورئ: وقال صاحب النهاية...... وأجيب بأن مراده ما إذا توجه إلى الباب وهو مفتوح، وليست العتبة مرتفعة قدر مؤخرة الرحل، وهو خير من الحمل على السهو إلا أن إطلاق الكلام ينافيه. (النهاية، كتاب الصلاة، باب: الصلاة في الكعبة: ۱۶۰/۱ دار الكتب العلمية).

[3] عمدة القارى: ۱۹۹/۴، مصابيح الجامع: ۱۱۳/۲.

[4] اللامع الصبيح: ۱۴۲/۳ ضياء السارى في مسالك أبواب البخارى: ۲۸۰/۵، التوشيح: ۴۸۸/۲.

[5] عمدة القارى: ۲۲۰/۴.

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه د شراحو رائې په "حیث کان" کښې داده چه سفر او حضر چرته هم چه وی نو مونځ کښې دې مخ قبلې ته کوی. او چونکه: ﴿فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ﴾ نه به دا په پوهه کښې راتله چه په سفر کښې د قبلې طرف ته مخ کول شرط نه دې بلکه چه څنګه هم درنه کیږی مونځ کوه هم دغه قبله ده. ځکه چه آیت په سفر کښې دننه دې نو امام بخاری رحمه الله دا وهم لرې کولو سره اوخودل چه نه مسافر له به هم خپل مخ قبلې ته کول وی.
او زما رائې داده چه د حضرت امام بخاری رحمه الله غرض د ترجمة الباب نه دادې چه چرته هم د قبلې قبلیت متحقق شی نو ورمخ دې کړی که هغه د مونځ په شروع کښې وی او که په مینځ کښې وی یا په آخره کښې وی او که هغه مسافر وی او که هغه مقیم وی. ټولو د پاره دا حکم عام دې لکه چه د تحری په مسئله کښې دی چه کله هم او کوم طرف ته هم تحری وی هم هغه طرف ته دې مخ کړی.[۱]

**تعليق:** وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَكَبِّرْ» [ر: ۵۸۹۷]
**د تعليق ترجمه:** حضرت ابوهریره رضي الله عنه اوفرمائیل چه نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه خپل مخ د قبلې طرف ته کړه او (د مونځ شروع کولو د پاره) تکبیر تحریمه اووایه.
**د تعليق تخريج:** مذکوره تخریج دهغه اوږد حدیث یوه ټکړه ده کوم چه نبی کریم ﷺ مسیئ الصلاة ته ارشاد فرمائیلې وو. امام بخاری رحمه الله دا تعلیق مکمل مسندا هم په هغه الفاظو سره کتاب الاستیذان کښې ذکر کړې دې.[۲]

وني ګورئ: «حدثنا إسحاق بن منصور، أخبرنا عبد الله بن نمير، حدثنا عبيد الله، عن سعيد بن أبي سعيد المقبري، عن أبي هريرة رضي الله عنه: أن رجلا دخل المسجد، ورسول الله صلى الله عليه وسلم جالس في ناحية المسجد، فصلى، ثم جاء فسلم عليه، فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم: "وعليك السلام، ارجع، فصل، فإنك لم تصل" فرجع، فصلى، ثم جاء، فسلم، فقال: "وعليك السلام، فارجع، فصل، فإنك لم تصل"، فقال في الثانية، أو في التي بعدها: علمني يا رسول الله، فقال: "إذا قمت إلى الصلاة، فأسبغ الوضوء، ثم استقبل القبلة، فكبر ثم اقرأ بما تيسر معك من القرآن، ثم اركع حتى تطمئن راكعا، ثم ارفع حتى تستوي قائما، ثم اسجد حتى تطمئن ساجدا، ثم ارفع حتى تطمئن جالسا، ثم اسجد حتى تطمئن ساجدا، ثم ارفع حتى تطمئن جالسا، ثم افعل ذلك في صلاتك كلها"».[۳]

---

[۱]) تقریر بخاری شریف: ۱۴۴/۲. بل دا چه د تقریر بخاری شریف په حاشیه کښې ذکر دی: "وفيه حيث توجهت به". یعنی په نوافل کښې په اتفاق د علماؤ کوم طرف ته چه سورلی ځی هم هغه طرف ته مخ کولو سره دې مونځ کوی. لیکن بعضې علماء دا وائی چه د تکبیر تحریمه د پاره دې خپله سورلی د قبلې طرف ته کړی او بیا چه کله مونځ شروع کړی نو چه کوم طرف ته نې مخ وی هیڅ مضائقه نشته. خودا د جمهورو خلاف دې ځکه چه بعضې وخت چه دا کله خپل طرف ته راتاووی د تکبیر تحریمه نه پس نو کیدې شی چه هغه اونړیږی او بیا د عمل کثیر ضرورت پیښ شی. (تقریربخاری شریف: ۱۴۵/۲).
[۲]) فتح الباري: ۶۵۰/۱.
[۳]) صحيح البخاري، كتاب الاستيذان باب: من رد، فقال: عليک السلام، رقم الحديث: ۵۱۶۲.

**دتعليق مقصد:** دتعليق نه مقصود دترجمة الباب اثبات دې چه مذكوره حديث كښې هم د مونځ حالت كښې د قبلې طرف ته مخ كول لا زم ګرځولې شوى دى.

**د ترجمة الباب سره مناسبت:** د مذكوره تعليق د ترجمة الباب سره مناسبت هم صفا ښكاره دې چه په دواړو كښې د استقبال قبله ذكر دې.

حديث باب (رومبى حديث) [حديث نمبر ٣٩٠]

-٣٩١- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ -رضي الله عنهما- (١) قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- صَلَّى نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ عَشَرَ أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُحِبُّ أَنْ يُوَجَّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ (قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ) فَتَوَجَّهَ نَحْوَ الْكَعْبَةِ، وَقَالَ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ -وَهُمُ الْيَهُودُ- مَا وَلَّاهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا (قُلْ لِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ) فَصَلَّى مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- رَجُلٌ ثُمَّ خَرَجَ بَعْدَ مَا صَلَّى، فَمَرَّ عَلَى قَوْمٍ مِنَ الأَنْصَارِ فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ فَقَالَ هُوَ يَشْهَدُ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَنَّهُ تَوَجَّهَ نَحْوَ الْكَعْبَةِ. فَتَحَرَّفَ الْقَوْمُ حَتَّى تَوَجَّهُوا نَحْوَ الْكَعْبَةِ.

**د حديث ترجمه:** دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ۱۶ يا ۱۷ مياشتو پورې د بيت المقدس طرف ته مخ كولو سره مونځ ادا كړو او حضورپاك (د زړه نه) دا غوښتل چه (مونځ) د كعبې طرف ته مخ كولو سره اوكړې شي. نو الله تعالى آيت: ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ﴾ (چه اې پيغمبره مونږ ستا د آسمان طرف ته بار بار مخ اوچتول وينو) نازل كړو نو حضورپاك په (مونځ كښې) د قبلې طرف ته مخ كړو. په دې باندې بې وقوفانو خلقو كوم چه يهوديان وو طنز اوكړو چه اوس د دوى د اولنۍ قبلې نه چا واړول؟ (الله تعالى حضورپاك ته اوفرمائيل) دوى ته اووايه مشرق ومغرب دواړه هم د الله تعالى دى. هغه چه چاته غواړې د نيغې لارې هدايت وركوى. حضورپاك سره يو سړي مونځ اوكړو او بيا هغه د انصارو د يو قبيلې سره تيريدو چه د مازيګر مونځ ئې د بيت المقدس طرف ته مخ كولو سره كولو. نو هغه ورته اووئيل چه الله ګواه دې چه ما د رسول الله ﷺ سره مونځ اوكړو او راغلم او الله ګواه دې چه حضورپاك د كعبې طرف ته مونځ كول شروع كړى دى. په دې باندې هغه قبيلې والا (د بيت المقدس نه) تاؤ شو او هغوى د كعبې طرف ته مخ كړو.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف ټول څلور رجال دى:

① عبدالله بن رجاء رحمه الله: واضحه دې وى چه عبدالله بن رجاء دوه دى. يو عبدالله بن رجاء بن عمر الغُداني او دويم عبدالله بن رجاء المكي البصري دې. په دې حديث كښې اول ذكر شوې (عبدالله بن رجاء) مراد دې ځكه چه ددې تصريح علامه عيني رحمه الله كړې ده.(٢) ددوى

(١) مرتخريجه فى كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الإيمان، رقم الحديث: ٤٠ (كشف البارى: ٣٦٦/٢، ٤٠٧)
(٢) عمدة القارى: ٢٢٠/٤.

تفصيلي احوال كشف البارى، كتاب الصلاة، باب: وجوب الصلاة فى الثياب وقول الله تعالى ﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ ومن صلى ملتحفافى ثوب واحد كښې تيرشوى دى[1]

② اسرائيل رحمه الله: دا اسرائيل بن يونس بن ابى اسحاق سبعى رحمه الله دې. دَدوى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: من ترك بعض الاختيار مخافة أن يقصر فهم بعض الناس عنه فيقعوا فى أشد منه لاندې تيرشوى دى[2]

③ ابواسحاق رحمه الله: دَدوى پوره نوم ابواسحاق عمرو بن عبدالله الكوفى رحمه الله دې. دَدوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الإيمان لاندې تيره شوې ده[3]

④ براء بن عازب رضي الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت براء بن عازب بن حارث بن عدى انصارى رضي الله عنه دې. دَدوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الإيمان لاندې تيره شوې ده[4]

شرح حديث: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ، سِتَّةَ عَشَرَ أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا يعنى دَ حضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ۱۶ يا ۱۷ مياشتو پورې دَ بيت المقدس طرف ته مخ كولو سره مونځ اوكړو.

قوله: "بيت المقدس" دا لفظ "الْمَقْدِسُ" هم لوستلې شى او "الْمُقَدَّسُ" هم.[5]

قوله: "سِتَّةَ عَشَرَ أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا" دَ كلمهٔ او په ذريعه چه دَكوم شك اظهار كيږى په ظاهره هغه دَ راوى دَ طرف نه دې. دَ بيت المقدس طرف ته مخ كولو سره ۱۶ يا ۱۷ مياشتې مونځ اداكول دَ مدينې منورې طرف ته دَ هجرت كولو نه پس زمانه كښې وو. ځكه چه په مكه مكرمه كښې خو مكمل موده هم دَ بيت المقدس طرف ته مخ كولو سره مونځ ادا كيدلو[6]. او په صحيح مسلم كښې ۱۶ مياشتې جزماً ذكركړې شوى دى.[7] دا تعارض اود دفع كولو دَ تعارض او تطبيق باندې تفصيلى بحث كشف البارى، كتاب الايمان كښې تيرشوې دې[8]

قوله: وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ أَنْ يُوَجَّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ، فَأَنْزَلَ اللهُ: ﴿قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ﴾ [البقرة: ۱۴۴]، فَتَوَجَّهَ نَحْوَ الْكَعْبَةِ: او حضورپاك دَ (زړه نه) دا غوښتل چه (مونځ) دَ كعبې

[1] كشف البارى، كتاب الصلاة، باب: ص: ٢٤١.
[2] كشف البارى: ٥٤٦/٤.
[3] كشف البارى: ٣٧٠/٢.
[4] كشف البارى: ٣٧٥/٢.
[5] شرح الكرمانى: ٦١/٤، التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح، ص: ٣٣.
[6] شرح الكرمانى: ٦٢/٤ عمدة القارى: ٢٠١/٤.
[7] صحيح مسلم كتاب المساجد، باب: تحويل القبلة من القدس إلى الكعبة، التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح، ص: ٣٣.
[8] كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الإيمان: ٣٧٨-٣٨٢/٢.

طرف ته مخ کولو سره ادا کړې شي، نو الله تعالی آیت: ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ﴾ (چه اې پیغمبره مونږ ستا دَ آسمان طرف ته بار بار مخ اوچتول وینو) نازل کړو، نو حضورپاك په (مونځ کښې) دَ کعبې طرف ته مخ کړو.[1]

**قوله:** "يُوَجَّهُ" دَ مضارع مجهول صیغه ده، مراد دادې چه دَ کعبې طرف ته مخ کولو سره دَ مونځ ادا کولو حکم ملاؤ شی.[2]

**قوله:** "فَتَوَجَّهَ" چنانچه دَدې آیت نازلیدو نه پس حضورپاك مونځ کښې قبلې طرف ته مخ کړو څکه چه په پوره آیت کښې ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ هم دې. دَ آیت مبارك په دې تکړه کښې "المسجد" نه مراد کعبه ده.[3]

**قوله:** وَقَالَ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ، وَهُمُ الْيَهُودُ: {مَا وَلَّاهُمْ} [البقرة: ۱۴۲] عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا، قُلْ لِلّٰهِ الْمَشْرِقُ [ص: ۸۹] وَالْمَغْرِبُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ فَصَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ، ثُمَّ خَرَجَ بَعْدَ مَا صَلَّى، فَمَرَّ عَلَى قَوْمٍ مِنَ الأَنْصَارِ فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ:

په دې باندې بې وقوفانو خلقو کوم چه یهودیان وو طنزاوکړو چه اوس دوی دَ خپل اولنئ قبلې نه چا واړول؟ (الله تعالی حضورپاك ته اوفرمائیل) دوی ته اووایه چه مشرق اومغرب دواړه هم دَ الله دی، هغه چه چاله غواړی دَ نیغې لار هدایت ورکوی. حضورپاك سره یو سړی مونځ اوکړو او بیا هغه دَ انصارو دَ یوې قبیلې سره تیر شو چه دَ مازیګر مونځ ئې بیت المقدس طرف ته مخ کولو سره کولو.

**قوله:** "رجل" دَ بخاری شریف په بعضې نسخو کښې مثلاً دَمستملی او حموی په نسخو کښې دَ رجل په ځائې رجال دَ جمع صیغه استعمال شوې ده. دَدغه نسخې مطابق که یو څوك اعتراض اوکړی چه که چرې رجال دَ جمع صیغه صحیح اومنلې شی نو بیا دَ حدیث پاك په وړاندې جمله کښې دَ "خرج" فعل ضمیر رجال دَ جمع طرف ته څنګه راګرځی؟ نو دَ هغې جواب به دا شی چه دَ ضمیر مرجع به هغه وی په کوم چه رجال دلالت کوی او هغه مفرد دې یا به دَ "خرج" معنی "خرج خارج" وی لهذا هیڅ اشکال نشته. اودَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ تصریح مطابق به "خرج بعض أولائك الرجال" تقدیراً راویستلی شی.[4]

---

[1] شرح الكرماني: ۶۲/۴.

[2] شرح الكرماني: ۶۲/۴ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱۴۴/۳، فتح الباري: ۶۵۱/۱ عمدة القاري: ۲۰۱/۴.

[3] شرح الكرماني: ۶۲/۴ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱۴۴/۳.

[4] شرح الكرماني: ۶۲/۴ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱۴۴/۳ فتح الباري: ۶۵۱/۱ التوشيح لشرح الجامع الصحيح للسيوطي: ۲۸۸/۲ عمدة القاري: ۲۰۱/۴.

**"رجل" نه څوک مراد دي؟**: دَدې "رجل" نه څوك مراد دي؟ په دې باره کښې دَ دوو کسانو نومونه ملاويږي. عباد بن بشر دې يا عباد بن نَهيك[1]. او ابن الملقن رحمه الله يو بل نوم ذکرکړې دې: عباد بن وهب[2]

**قوله: فِي صَلاَةِ الْعَصْرِ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ**: دا جمله دَ کشميهني رحمه الله په روايت کښې "فِي صَلاَةِ الْعَصْرِ يُصَلُّونَ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ" ده په ظاهره په دې جمله کښې زيات وضاحت او فصاحت دې[3]

**قوله: "صَلاَةِ الْعَصْرِ"** دَدې حديث نه معلوميږي چه دَ دغه سړي تيريدل په قباء کښې دَ انصارو دَ قبيلې سره دَ سحر په مونځ کښې شوې وو. نو په دغه دواړو روايتونو کښې څه منافات نشته دې. داسې چه هغه سړې مدينه منوره کښې دَ يو جماعت سره تيرشونو دَ ماژيگر وخت وو. بيا په هغه سفر کولو سره دَ مدينې نه بهر دَ قباء والو ته رسيدلې وې نوهلته دَ سحر وخت وو[4]

په دې تعارض، دفع دَ تعارض او تطبيق باندې تفصيلي بحث کشف الباری کتاب الايمان کښې تيرشوې دې[5]

**قوله: "فقال"** دَدې فعل ضمير او "هو" ضمير دَ "رجل" طرف ته راگرځي. يعنی هغه سړی "هو" ضمير نه خپل ځان مراد واخستلو. دَمتکلم خپل ځان دَ غائب په صيغې سره تعبيرکول جائز دی. دا دَ التفات په توگه وی. يو احتمال داهم دې چه راوی دَ حديث دَ دغه رجل دَ کلام معنی نقل کړې وی په داسې توگه چه دَ هغه اصل کلام "أنا أشهد" وو[6]

**دَ روايت دَ ترجمة الباب سره مناسبت**: دَمذکوره حديث شريف دَترجمة الباب سره مناسبت دَ حديث "فتوجه نحو الكعبة" جمله کښې دې. چه په باب کښې هم دغه ذکر دی او حديث کښې هم[7]

**دَ حديث شريف نه مستفاد شوی فوائد او احکام**: دَمذکوره حديث شريف نه ډير فوائد مستنبط کيږي. دَ هغې تولو نه يو څو دلته ذکرکولې شی چه:

① دَدې حديث شريف نه دَ احکامو دَ منسوخ کيدو جواز معلوميږي[8]

---

[1] التنقيح لألفاظ الجامع الصحيح، ص: ۳۳. فتح الباري: ۹۷/۱. عمدة القاري: ۲۰۱/٤.

[2] الإعلام بفوائد عمدة الإحكام، كتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحديث الثاني: حديث عبدالله بن عمر: ۴۸۷/۲.

[3] فتح الباري: ۶۵۱/۱التوشيح لشرح الجامع الصحيح للسيوطي: ۲۸۸/۲ عمدة القاري: ۲۰۱/٤.

[4] شرح الكرماني: ۶۲/٤.

[5] كشف الباري، كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الإيمان: ۲۹۰/۲-۳۸۸.

[6] شرح الكرماني: ۶۲/٤ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۱٤٤/۳ فتح الباري: ۶۵۲ التوشيح لشرح الجامع الصحيح للسيوطي: ۲۸۸/۲ عمدة القاري: ۲۰۱/٤.

[7] عمدة القاري: ۲۰۰/٤.

[8] الإعلام بفوائد عمدة الإحكام، كتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحديث الثاني: حديث عبدالله بن عمر: ۴۹۷/۲، عمدة القاري: ۲۰۲/٤.

③ په دې حديث شريف کښې د نسخ السنة بالقرآن دليل دې.(1)

④ په دې حديث شريف کښې د خبر واحد په قبليدو باندې دليل دې(2)

④ د قبلې طرف ته مخ کول او مونځ کول او د کعبې قبله کيدو باندې د اجماع کيدل هم معلوميږي(3)

⑤ د مکلف سړي په حق کښې به د احکامو منسوخ کيدل هغه وخت معتبر وی کله چه د دغه منسوخ کيدو هغه ته خبر اورسيږي(4)

⑥ په دې حديث شريف کښې د دې خبرې هم دليل دې چه دکعبې طرف ته مخ کولو نه مخکښې د بيت المقدس طرف ته مخ کولو سره ادا کړې شوی مونځونه د الله تعالى په نيز مقبول دی د هغې اعاده به نه شی کولې(5)

حديث باب (دويم حديث) [حديث نمبر ٣٩١]

...حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ(6) كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ، فَإِذَا أَرَادَ الْفَرِيضَةَ نَزَلَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ.

**د حديث ترجمه:** حضرت جابر رضي الله عنه او فرمائيل چه نبى كريم ﷺ به په خپله سورلئ باندې كه د هغې مخ به هرطرف ته وو (نفل) مونځ به ئې كولو. ليكن چه كله به ئې فرض مونځ كول غوښتل نو د سورلئ نه به راكوزيدلو او د قبلې طرف ته به ئې مخ كولو سره مونځ كولو.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه رجال دى:

① مسلم رحمه الله: دا مسلم بن ابراهيم القصاب ازدى بصرى رحمه الله دې. د دوى تفصيلى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: زيادة الإيمان ونقصانه لاندې تيرشوى دى(7)

---

(1) الإعلام بفوائد عمدة الإحكام. كتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحديث الثاني: حديث عبدالله بن عمر: ٤٩٧/٢، عمدة القاري: ٢٠٢/٤.

(2) أعلام الحديث للخطابي: ٣٨٣/١. الإعلام بفوائد عمدة الإحكام. كتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحديث الثاني: حديث عبدالله بن عمر: ٤٩٧/٢، عمدة القاري: ٢٠٢/٤.

(3) عمدة القاري: ٢٠٢/٤.

(4) الإعلام بفوائد عمدة الإحكام. كتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحديث الثاني: حديث عبدالله بن عمر: ٤٩٧/٢، عمدة القاري: ٢٠٢/٤.

(5) أعلام الحديث للخطابي: ٣٨٣/٤.

(6) أخرجه البخاري أيضًا في تقصير الصلاة، باب: صلاة التطوع على الدابة وحيثما توجهت، رقم الحديث: ١٠٩٤، وباب: ينزل للمكتوبة، رقم الحديث: ١٠٩٩، وفي المغازي، باب: غزوة أنمار، رقم الحديث: ٤١٤٠. وفي جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول في الصلاة، الباب الأول في الصلاة وأحكامها، الفصل الرابع في استقبال القبلة، رقم الحديث: ٣٣٨٠، ٢٩٨/٥.

(7) كشف الباري: ٤٥٥/٢.

③ هشام رحمه الله: دا ابوبکر هشام بن ابوعبدالله بصری الدستوائی رحمه الله دي. دَدوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: زیادة الإیمان ونقصانه لاندې تیرشوی دی.[1]

④ یحیی بن ابی کثیر رحمه الله: دا یحیی بن ابی کثیر طائی یمامی رحمه الله دي. دَدوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: کتابة العلم دَ دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[2]

④ محمد بن عبدالرحمن رحمه الله: دا محمد بن عبدالرحمن بن المغیره بن الحارث قرشی عامری مدنی رحمه الله دي. دَدوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: حفظ العلم دَ دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[3]

⑤ جابر رضی الله عنه: دا مشهور صحابی رسول حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنه دي. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: من لم یرالوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر لاندې تیرشوی دی.[4]

**دَ حدیث شرح:** «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ، حَيْثُ تَوَجَّهَتْ»: حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ به په خپله سورلئ باندې که دَهغې هر طرف ته مخ وو (نفل) مونځ ئې کولو.

**قوله:** "علی راحلته" دَ راحله نه مراد هغه اوښه ده چه دَ سور دَ اوړلو صلاحیت لري. اوداهم وئیلي شي چه راحله دَ اوښ سورلي ده. عام ده چه هغه اوښ وي که اوښه وي.[5]

دَ حدیث شریف دَدې جملې نه دلیل نیولو سره احنافو او مالکیؤ فرمائیلي دي چه دَ پیدل تلونکي دَ پاره په روانه روانه نوافل ادا کول جائز نه دي. خودَ شوافع او حنابله په نیز په دې حالت کښې هم دَ نوافلو اداکول جائز دي.[6]

**قوله:** "حیث توجهت" دَکشمیهنی روایت کښې "توجهت" نه پس دَدې صله "به" هم ذکرده.[7] علامه ابن ملقن رحمه الله لیکي چه په حالت دَسفر کښې په سورلئ باندې په ناسته دَ نوافل کولو وجه به دا وه چه دَ سفر دَ وجې نه دَ الله تعالی عبادت پاتې نه شي یا مسافر دَ نوافلو نه محروم پاتې نه شي.[8]

---

[1] کشف الباری: ۴۵۶/۲.
[2] کشف الباری: ۲۶۷/۴.
[3] کشف الباری: ۴۴۲/۴.
[4] کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: "من لم یرالوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر".
[5] الإعلام بفوائد عمدة الإحکام، کتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحدیث الأول: حدیث عبدالله بن عمر: ۴۹۷/۲، عمدة القاری: ۲۰۳/۴.
[6] الإعلام بفوائد عمدة الإحکام، کتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحدیث الأول: حدیث عبدالله بن عمر: ۴۸۲/۲.
[7] عمدة القاری: ۲۰۳/۴.
[8] الإعلام بفوائد عمدة الإحکام، کتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحدیث الأول: حدیث عبدالله بن عمر: ۴۸۱/۲.

**قوله:** «فَإِذَا أَرَادَ الفَرِيضَةَ نَزَلَ فَاسْتَقْبَلَ القِبْلَةَ» ليكن چه كله به ئې فرض مونځ كول غوښتل نو دَ سورلۍ نه به كوزېدلو او دَ قبلې طرف ته مخ كولو سره مونځ اداكول.

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حديث دَترجمة الباب سره مناسبت دَحديث په دې جملې "فاستقبل القبلة" كښې دې.[1]

**دَ حديث شريف نه مستنبط فوائد او احكام:** دَمذكوره حديث شريف نه ډېر فوائد مستنبط كيږي. دَهغې نه څه دادي چه:

① دَ سفرپه حالت كښې چه كوم طرف ته هم مخ وي، دَ سوريدو په حالت كښې نوافل اداكول جائز دي.[2]

② فرائضو كښې دَ قبلې طرف ته نه مخ كول صحيح نه دي. په دې وجه به حضورپاك دَ فرض دَ پاره دَ سورلۍ نه كوزيدو سره قبلې طرف ته مخ كولو او مونځ به ئې اداكولو. البته دَ سختې ويرې حالت دَدې نه مستثنىٰ دې او دَ مجبورئى او معذورئى په حالت كښې په سورلۍ باندې هم فرض مونځ كول صحيح كيږي.[3]

دَمذكوره حديث شريف لاندې دوه مسئلې زير بحث راځي. يو په سورلۍ باندې دَ مونځ (فرض وي كه نفل) كولو حكم او دويم په سورلۍ باندې مونځ كولو سره دَ قبلې طرف ته دَ مخ كولو حكم، لاندې دواړه مسئلې په تفصيل سره ذكر كولې شي:

**په سورلۍ باندې دَمونځ (فرض وي كه نفل) كولو حكم:** دَ فرض مونځ دَ صحيح كيدو چه كوم شرائط دي كه په سورلۍ باندې دَ سوريدو په حالت كښې هم دَ هغې پوره كيدل ممكن وي نو په سورلۍ باندې به دَ فرض مونځ اداكيدل صحيح وي اوكه چرې ټولو شرائطو سره دَ فرائضو اداكول ممكن نه وي نو دَ دغه فريضې اداكول به په سورلۍ صحيح نه وي.

په ښاريه كښې دننه دَ مقيم سړي دَ پاره په څناور باندې سوريدو سره نفل مونځ اداكول دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز نه دي. او دَ امام ابويوسف رحمه الله په نيز په ښاريه كښې هم بغيردَ څه كراهت نه جائز دي اودَ امام محمد رحمه الله په نيز دَ كراهت سره جائز دي.

دَ ښارېې نه بهر وتلو نه پس مسافر (شرعي) دَ پاره دَ ټولو فقهاؤ په نيز اودَ غيرمسافردَ پاره دَ اكثر فقهاؤ په نيز (تردې چه كه يو سړې دَ خپلو پټو وغيره طرف ته يا دَ ښار گردونواح ته تلې وي، دَ هغه دَ پاره هم) په سورلۍ باندې سوريدو سره نفل كول جائز دي. دَ ښار نه بهر وتلو دَ حد نه مراد هغه ځائى دې دكوم ځائى نه چه دَمسافردَ پاره قصر كول جائز كيږي. دَ هغه ځائى نه په سورلۍ باندې نفل كول جائزكيږي. سنت مؤكده او غيرمؤكده ټول دَ نفل په حكم كښې دي بغيردَ سحر دَ سنتو نه چه دا دَ امام صاحب په نيز په سورلۍ باندې كيناستو

[1]) عمدة القاري: ۲۰۲/٤.
[2]) الإعلام بفوائد عمدة الإحكام، كتاب الصلاة، باب: استقبال القبلة، الحديث الأول: حديث عبدالله بن عمر: ٤٨٣/٢.
[3]) عمدة القاري: ۲۰۳/٤.

سره ادا کول جائز نه دی ځکه چه دَدې ډیرزیات تاکید راغلې دې[۱]
هم دغه حکم دَ هرقسم سورلئ دې کـه هغـه دَ پخوانئی زمانې وی (لکه اوښ، قچر او خر وغیره) اوکه دموجوده زمانې (لکه جهاز، ریل ګاډې، بس، موټر وغیره)[۲]

**په ریل ګاډی کښې دَ سفر کولو په حالت کښې دَ مونځ حکم:** په ریل ګاډی کښې دَ سفر کولو په وخت چه دَ مانځه وخت راشی نومونځ کول فرض دی. چونکه په ریل ګاډی کښې قیام کول او دَ قبلې طرف ته مخ کول ممکن وی په دې وجه په مکمل مونځ کښې قبلې ته مخ کولو سره په ولاړه مونځ اداکول ضروری دی. تردې که په مونځ کښې ریل ګاډې دَ قبلې نه تاؤ شی نودَ مونځ ګذار دَ پاره هم خپل مخ تااول ضروری دی.[۳]
په ریل ګاډی کښې دسفرکولوپه وخت کښې که ډیره بیړه وی، دَ اودریدو ځائی نه وی نودَ خپل سفردَ ملګرو نه دَ مونځ دَ پاره ځائی غوښتل پکار دی، که چرې ځائی ملاؤ شی نوښه ده ګنی په هغه وخت په ناسته سره مونځ ادا کول پکاردی لیکن روستو ئی بیا راګرځول لازم دی[۴]

**په سورلئ باندې دَمونځ کولو وخت کښې قبلې ته دَ مخ کولو حکم:** په سورلئ باندې دَ فرض مونځ دَ صحیح کیدو دَ پاره دَ قیام په شان دَ قبلې طرف ته مخ کول هم ضروری دی ګنی مونځ به نه کیږی. البته په سورلئ باندې دَ نفل کولو په حالت کښې (که په ولاړه وی او که په ناسته) قبلې ته مخ کول فرض نه دی. په ډیرو زیاتو احادیثو کښې دَ نبی کریم ﷺ پاره کښې دا نقل دی چه حضورپاك به په سورلئ باندې نفل مونځ کولو که سورلی به هر طرف ته هم تلله. اوګورئی: دَحضرت عامر بن ربیعه رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مې په سورلئی باندې نفل مونځ دَ سر په اشارې سره کونکې لیدلې دې. کوم طرف ته چه به هم سورلی وه هم

---

[۱] قال الحصكفی رحمه الله: (و)يتنفل المقيم (راكبا خارج المصر) محل القصر (موئا) فلو سجد اعتبر إيماء لأنها إنما شرعت بالإيماء (إلى أي جهة توجهت دابته). قال ابن عابدين رحمه الله: قوله: (ويتنفل المقيم راكبا.....إلخ)أي: بلا عذر، أطلق النفل، فشمل السنن المؤكدة إلا سنة الفجر، كما مر، وأشار بذكر المقيم إلى أن المسافر كذلك بالأولى، واحترز بالنفل عن الفرض والواجب بأنواعه كالو تر والمنذور وما لزم بالشروع والإفساد وصلاة الجنازة وسجدة تليت على الأرض، فلا يجوز على الدابة بلا عذر لعدم الحرج كما فى البحر. قوله: (راكبا) فلا تجوز صلاة الماشي بالإجماع، بحر عن المجتبى. قوله: (خارج المصر) هذا هو المشهور، وعندهما يجوز فى المصر، لكن بكراهة عندمحمد لأنه يمنع من الخشوع، وتمامه فى الحلية. قوله: (محل القصر) بالنصب بدل من خارج المصر، وفائدته شمول خارج القرية وخارج الأخبية ح: أي المحل الذي يجوز للمسافر قصر الصلاة فيه، وهوالصحيح، بحر. وقيل: إذا جاوز ميلا، وقيل: فرسخين، أو ثلاثة. قهستانی. (ردالمحتار مع الدرالمختار، كتاب الصلاة، مطلب: فى الصلاة على الدابة: ۲/۴۸۷-۴۸۶).

[۲] الموسوعة الفقهية الكويتية، مادة: الصلاة، الصلاة على الراحلة: ۲۷/۲۲۹.

[۳] الفتاوی الهندية، كتاب الصلاة، الباب الثالث فی شروط الصلاة، الفصل الثالث فی استقبال القبلة: ۱/۶۳.

[۴] العذر إن كان من قبل الله لا تجب الإعادة، وإن كان من قبل العبد، وجبت الإعادة. (البحرالرائق، كتاب الطهارة، باب: التيمم: ۱/۱۴۲).

هغه طرف ته به ئې مخ کولو. او رسول الله ﷺ به داسې فرض مونځ کښې نه کول. (١)

حديث باب (دريم حديث) [حديث نمبر ٣٩٢]

- ...حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللهِ صَلَّى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-- قَالَ إِبْرَاهِيمُ لَا أَدْرِي زَادَ أَوْنَقَصَ- فَلَمَّا سَلَّمَ قِيلَ لَهُ يَارَسُولَ اللهِ، أَحَدَثَ فِي الصَّلَاةِ شَيْءٌ؟ قَالَ «وَمَا ذَاكَ». قَالُوا صَلَّيْتَ كَذَا وَكَذَا. فَثَنَى رِجْلَيْهِ وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ، فَلَمَّا أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ قَالَ «إِنَّهُ لَوْحَدَثَ فِي الصَّلَاةِ شَيْءٌ لَنَبَّأْتُكُمْ بِهِ، وَلَكِنْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ، أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ، فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي، وَإِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَتَحَرَّى الصَّوَابَ، فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ ثُمَّ يُسَلِّمْ، ثُمَّ يَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ». (٢)

**د حديث ترجمه:** حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ مونځ ورکړو. ابراهيم وائي چه ماته (اوس) معلومه نه ده چه دَ مانځه (رکعتونو کښې) کمې اوشو که زياتي بيا چه کله حضورپاك سلام اوګرځولو نو حضورپاك ته عرض اوکړې شو چه يارسولَ الله: آيا دَمونځ (ادا کولو باره) کښې څه نوې حکم نازل شوې دې؟ حضورپاك تپوس اوکړو چه هغه څه؟ خلقو اووئيل تاسو دومره دومره رکعتونه اوکړل. دې اوريدو سره حضورپاك خپلې خپې راغوندې کړې اودَ قبلې طرف ته ئې مخ کړو اودَ (سهو) دوه سجدې ئې اوکړې اودَ

---

(١) عن عامر بن ربيعة قال: رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو على الراحلة يسبح، يومئ برأسه قِبَلَ أى وجه توجه، ولم يكن رسول الله صلى الله عليه وسلم يصنع ذلك فى الصلاة المكتوبة. (صحيح البخارى، كتاب الصلاة، باب: ينزل للمكتوبة، رقم الحديث: ١٠٩٧). وكذا عن ابن عمررضى الله عنهما قال: كان النبى صلى الله عليه وسلم يصلى على راحلة تطوعا حيثما توجهت به وهو جاء من مكة إلى المدينة، ثم قرأ ابن عمر هذه الآية: ﴿وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ﴾ فقال ابن عمر: هذا أنزلت هذه الآية. (سنن الترمذى، أبواب التفسير ، من سورة البقرة، رقم الحديث: ٢٩٥٨).

(٢) أخرجه البخارى فى الصلاة، باب: ماجاء فى القبلة ومن لا يرى الاعادة على من سها، فصلى إلى غير القبلة. رقم الحديث: ٤٠٤، وفى كتاب السهو، باب: إذا صلى خمسًا، رقم الحديث: ١٢٢٦، وفى الأيمان، باب: إذا حنث ناسيًا فى الأيمان، رقم الحديث: ٦٦٧١، وفى كتاب أخبار الآحاد، باب: ماجاء فى إجازة خبر الواحد الصدوق فى الأذان والصلوة والصوم والفرائض والأحكام، رقم الحديث: ٧٢٤٩. ومسلم فى صحيحه، كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب: السهو فى الصلاة والسجودله، رقم الحديث: ٥٧٢. وأبوداؤد فى سننه، فى كتاب الصلاة، باب: إذا صلى خمسًا، رقم الحديث: ١٠١٩، ١٠٢٠، ١٠٢١، ١٠٢٢. والترمذى فى جامعه، فى الصلاة، باب: ماجاء فى سجدتى السهو بعد السلام والكلام، رقم الحديث: ٣٩٢، ٣٩٣. والنسائى فى سننه، فى السهو، باب: ما يفعل من صلى خمسًا، رقم الحديث: ١٢٥٥، ١٢٥٦، ١٢٦٠. وابن ماجة فى سننه، فى كتاب إقامة الصلوة والسنة فيها، باب: من صلى الظهر خمسًا وهو ساه، رقم الحديث: ١٢٠٥. وفى باب: ماجاء فيمن شك فى صلاته، فتحرى الصواب، رقم الحديث: ١٢١١، ١٢١٢، وفى جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة القسم الأول: فى الفرائض وأحكامها، الباب الأول: فى الصلاة وأحكامها، الفصل السابع: فى السجدات، الفرع الأول: فى سجودالسهوالقسم الثانى: فى السجود بعد التسليم، رقم الحديث: ٣٧٦٦، ٥٤١/٥.

هغې نه پس نبي سلام اوګرځولو. بياني زمونږ طرف ته مخ کړو او ارشاد ئې اوفرمائيلو. که چرته په مونځ کښې څه نوې حکم نازل شوې وې نو ما (به د مونځ نه مخکښې) تاسو نه خودلې دې، ليکن زه خو هم ستاسو په شان يو انسان يم، لکه څنګه چه تاسو نه هيريږي هغه شان ما نه هم هيريږي. په دې وجه چه کله مانه هيره اوشي نو تاسو ماته را ياد وئ راکوئې. او کله چه په تاسو کښې د چا په مونځ کښې شك پيدا شي نو د صحيح خبرې معلومولو کوشش دې اوکړي او هم د هغې مطابق دې مونځ پوره کړي. بيا دې سلام ګرځولو سره دوه سجدې د (سهو) اوکړي.

**تراجم رجال:** د مذکوره روايت په سند کښې ټول شپږ رجال دي:

① **عثمان** رحمه الله: دا عثمان بن محمد بن قاضي ابوشيبه ابراهيم کوفي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباري کتاب العلم، باب: من جعل لأهل العلم أياما معلومة لاندې تيرشوی دی.[1]

② **جرير** رحمه الله: دا جرير بن عبدالحميد بن قرط رازي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباري کتاب العلم، باب: من جعل لأهل العلم أياما معلومة لاندې تيرشوی دی.[2]

③ **منصور** رحمه الله: دا منصور بن المعتمر السلمي الکوفي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباري کتاب العلم، باب: من جعل لأهل العلم أياما معلومة لاندې تيرشوی دی.[3]

④ **ابراهيم** رحمه الله: دا ابوعمران ابراهيم بن يزيد النخعي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباري کتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم لاندې تيرشوی دی.[4]

⑤ **علقمه** رحمه الله: دا علقمه بن قيس بن عبدالله نخعي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباري کتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم لاندې تيرشوی دی.[5]

⑥ **عبدالله** رضي الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې. د دوی احوال کشف الباري کتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم لاندې تيرشوی دی.[6]

**شرح حديث:** قَالَ عَبْدُاللهِ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چه نبي کريم ﷺ مونځ ورکړو.

دا کوم يو مونځ وو؟ د يو قول مطابق دا د ماسپښين مونځ وو او د دويم قول مطابق دا د مازيګر مونځ وو. طبراني رحمه الله هم د دې راوی د ابراهيم رحمه الله حديث نقل کړې دې د طلحه بن

[1] کشف الباري: ۲۶۶/۳.
[2] کشف الباري: ۲۶۸/۳.
[3] کشف الباري: ۲۷۰/۳.
[4] کشف الباري: ۲۵۳/۲.
[5] کشف الباري: ۲۵۶/۲.
[6] کشف الباري: ۲۵۷/۲.

مصرف په طريق، په هغې كښې د مازيگر د مونځ تصريح ده[1]
او هم د دوې روايت ئې د شعبه عن حماد په طريق سره نقل كړې دې په هغې كښې د ماسپښين د مونځ ذكر دې[2]

**قوله:** قَالَ إِبْرَاهِيمُ: لَا أَدْرِي زَادَ أَوْ نَقَصَ: راوى ابراهيم رحمه الله اوونيل چه ماته (اوس) معلومه نه ده چه د مونځ (ركعتونو) كښې كمې شوې وو كه زياتې. "ابراهيم" دا ابن يزيد النخعى دې. او يو قول دا هم دې چه دا ابن سويد النخعى دې[3]

**قوله:** زَادَ أَوْ نَقَصَ: د دواړو افعالو ضميرونه د نبى كريم ﷺ طرف ته راجع دى. او دا دواړه افعال په دې مقام باندې متعدى دى.[4]

د راوئ حديث بيان دې چه زما خيال كښې نشته چه په مونځ كښې څه زياتې شوې وو كه كمې، ليكن لږ شان وړاندې هم د دې راوئ حديث په يو بل سند سره راروان دې د هغې نه معلوميږى چه په مونځ كښې زياتوالې شوې وو يعنى د څلورو په ځائې باندې ئې پنځه ركعته كړې وو. د هغوى شك د سجده سهو د سبب په بنياد باندې واقع شو چه سجده سهو په ركعتونو كښې د كمې پيښيدو د وجې نه اوكړې شو اوكه په ركعتونو كښې زياتې كيدو د وجې نه كړې شوې وه[5]. علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا پوره جمله د راوى منصور ادراج دې.[6]

**قوله:** فَلَمَّا سَلَّمَ قِيلَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَحَدَثَ فِي الصَّلَاةِ شَيْءٌ؟: بيا چه كله حضورپاك سلام اوگرځولو نو حضورپاك ته عرض اوكړې شو چه يا رسول الله! آيا مونځ (ادا كولو باره) كښې څه نوې حكم نازل شوې دې؟

"أ" همزه د استفهام د پاره دې او "حدث" د دال په فتحې سره د "وقع" معنى دې. مطلب د دې جملې دا دې چه آيا د وحى په ذريعه د مونځ باره كښې څه داسې حكم نازل شوې دې چه هغې د مونځ مخكينئ طريقه بدله كړې ده. يعنى د څلورو په ځائې د پنځو ركعتو حكم راغلې

---

[1]) عن طلحة بن مصرف عن إبراهيم عن علقمة عن عبدالله قال: صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم العصر، فنهض فى الرابعة، ولم يجلس حتى صلى بنا الخامسة، فقيل: يا رسول الله! صليت بنا خمسًا، فاستقبل القبلة، وكبر، وسجد سجدتين. (المعجم الكبير للطبرانى، تابع عبدالله بن مسعود، رقم الحديث: ٩٨٣٦، ٣٤/١٠).

[2]) عن شعبة عن حماد عن إبراهيم عن علقمة عن عبدالله أن رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى الظهر خمسا، فقيل: يارسول الله! زيد فى الصلوة؟ قال: "وما ذاك؟" قالوا: صليت خمساً. فسجد سجدتين.(المعجم الكبير للطبرانى، تابع عبدالله بن مسعود، رقم الحديث: ٩٨٣٩، ٣٥/١٠).

[3]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٤٦/٣.

[4]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٤٦/٣. په دې مقام باندې علامه ابن حجر رحمه الله تصريح كړې ده چه دا ابراهيم بن يزيد نخعى رحمه الله دې ځوك چه د دې ابراهيم نه مراد كښې د بل چا ذكر كوى هغه په خطا باندې دې. (فتح البارى: ٦٥٢/١).

[5]) عمدة القارى: ٢٠٥/٤ الكوثر الجارى: ٩٢/٢.

[6]) شرح الكرمانى: ٦٣/٤ اللامع الصبيح بشرح الصحيح للبرماوى: ١٤٦/٣.

دي.[1]

**قوله:** قَالَ: «وَمَا ذَاكَ»، قَالُوا: صَلَّيْتَ كَذَا وَكَذَا: حضورپاك تپوس اوكړو چه هغه څه؟ خلقو اوئيل چه تاسو دومره دومره رکعتونه کړي دي.

دَ "وَمَا ذَاكَ" استعمال دَ داسې سړي دَ طرف نه کيږي چاته چه هيڅ خبر نه وي چه دَ هغه نه څه کار شوي دې نه په يقيني توګه او نه په غالب ګمان سره.[2]

**دَخبرو اترو کولو نه پس دَمونځ دَ باقي کيدو حکم:** دلته يو اشکال پيدا کيږي چه نبی کريم ﷺ سلام ګرځولې وو دَ هغې نه پس حضورپاك "وَمَا ذَاكَ؟" په ذريعه سوال اوکړو نودَې خبرو اترو کولو نه پس حضورپاك دَ مونځ بنا څنګه اوکړه؟ نودَ احنافو دَ طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه دَ خبرو اترو کولو دا واقعه په مونځ کښې دکلام دَ حرمت نه دَ مخکښې وخت دي.[3]

يو بل سوال پيدا کيږي چه دلته خو تلقين من خارج الصلاة موندلي شي يعنی دَ مونځ کونکي دَ پاره دَ خپل غير په خبره باندې عمل کول خو جائز نه وي بيا څنګه حضورپاك دَ بل چا په خبره باندې عمل کولو سره خپل مونځ مکمل کړو؟ نودَې دا جواب ورکړې شوې دې چه نبی کريم ﷺ دَ "وَمَا ذَاكَ" په ذريعه چه کوم سوال کړې وو هغه په مونځ کښې دَ خپلې غلطۍ دَ پيژندلو دَپاره وو. کله چه دَ صحابه کرامو په خودلو سره حضورپاك پوهه شو نودَ خپل علم په بنياد باندې حضورپاك خپل مونځ مکمل کړو نه دا چه صرف دَ غير په خبره باندې ئې عمل اوکړو.[4]

په دې باندې علامه عينی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې په دې جمله کښې په شافعيه مذهب باندې اشکال لازميږي. هغه داسې چه دَ هغوی په نيز په مونځ کښې دَمونځ ګذار دَځان نه غير طرف ته رجوع کول جائز نه دي. که هغه امام وي او که مقتدي. بلکه هم دَ خپل زړه په خبره باندې عمل کول لازم دي. په دې وجه امام نووی رحمه الله هغه جواب ورکړو کوم چه پورته دَ شرح الکرمانی په حواله ذکرکړې شوې دې. په دې جواب باندې اشکال کولو سره علامه عينی رحمه الله فرمائی چه دلته دا جواب ورکول چه نبی کريم ﷺ دَ "وَمَا ذَاكَ" په ذريعه چه کوم سوال کړې وو هغه په مونځ کښې دَ خپلې غلطۍ پيژندلو دَ پاره وو، دَمنلو قابل نه دي. څکه چه دَ ذوالیدين په قصه کښې چه دَحضورپاك دَهغوی طرف ته رجوع ده هغه دَ خبرو اترو او سوال اوجواب دَ پاره ده نه يوازې دا چه دَخپل نفس دَ تسلئ دَ پاره. فافهم.[5]

**قوله:** "كَذَا وَكَذَا" سره کنايه ده دَ هغه رکعتونو دَ شمير طرف ته کوم چه په ذهن کښې کم يا

---

[1] شرح الکرمانی: ٤/٦٣ اللامع الصبيح بشرح الصحيح للبرماوی: ٣/١٤٢ فتح الباری: ١/٦٥٢ عمدة القاری: ٤/٢٠٥.

[2] فتح الباری: ١/٦٥٢ عمدة القاری: ٤/٢٠٥.

[3] شرح الکرمانی: ٤/٦٥.

[4] شرح الکرمانی: ٤/٦٥.

[5] عمدة القاری: ٤/٢٠٩.

زیات شو (۱)

**په مونځ کښې دَ خبرو اترو کولو حکم:** دَ جمهور فقهاؤ په نیز په قصد سره داسې خبرې اترې کولو سره مونځ باطلیږی کوم چه دَ مونځ دَ اصلاح په خاطر نه وی. (۲)

**دَ احنافو مذهب:** دَ احنافو په نیز په مونځ کښې په دریو شرطونو سره (۳) خبرې اترې کولو سره مونځ فاسدیږی. که هغه خبرې لږې وی او که ډیرې او که په هیره سره وی (یعنی مونځ کول ورته یاد نه وی، خپل ځان دَ مونځ نه بهر گنړلو سره خبرې اترې اوکړی) یا په خطا سره (مثلاً ارادهٔ خو ئې په خله "یاایهاالناس" وئیل غوښتل، لیکن دَ خلې نه ترې اووتل "یا زید")، که دَ جهالت دَ وجې نه وی (یعنی هغه ته پته نه وی چه په خبرو اترو سره مونځ فاسیدیږی) یا که دَ چا په مجبورولو باندې وی او که یا عمداً وی (یعنی په خپله اراده او خوشئ سره ئې کلام اوکړو) که دَ مونځ دَ اصلاح دَ پاره وی (مثلاً امام دَ قعدې په موقع باندې اودریدو او مقتدی هغه ته اووئیل چه کینه یا دَ قیام په موقع باندې کیناستو نو مقتدی ورته اووئیل اودریږه. حالانکه وئیل پکار وو سبحانه الله یا الله اکبر) او که دَ اصلاح دَ پاره نه وی او دَ راجح قول مطابق په مونځ کښې په اوده کیدو سره وی او که په بیدارئی کښې وی، په هرحال کښې به مونځ فاسدیږی (۴)

**دَ شوافعو مذهب:** دَ شوافعو په نیز په مونځ کښې دننه کلام کونکې که چرته یو داسې سړې وی چه په هیره سره کلام اوکړی یا هغه په دغه کلام کولو باندې دَ مرتب کیدونکی حکم نه جاهل وی او قلیل کلام اوکړی نو مونځ ئې نه فاسدیږی (۵)

**دَ مالکیۇ مذهب:** دَمالکیۇ په دې مسئله کښې دوه روایتونه دی. یو دَ احنافو مطابق او دویم دادې چه که چرې کلام دَ مونځ دَ اصلاح دَ پاره وی نو په دې سره مونځ نه فاسدیږی او دَدې

---

(۱) شرح الکرمانی: ۶۴/۴ اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح للبرماوی: ۱۴۶/۳.

(۲) یتکلم عامداً لا لمصلحة الصلاة فتبطل صلاته بالإجماع. نقل الإجماع. فیه ابن المنذر وغیره لحدیث معاویة بن الحکم السابق وحدیث ابن مسعود وحدیث جابر و حدیث زید بن أرقم وغیر ـ من الأحادیث التی سنذکرها إن شاء الله تعالی. (المجموع شرح المهذب، کتاب الصلاة، مسائل تتعلق بالکلام فی الصلاة: ۸۵/۴).

(۳) (۱) دَ ژبې نه وتلې کلام کم نه کم په دوو حروفو باندې مشتمل وی، دَ یو حرف په وئیلو سره مونځ نه فاسدیږی. (۲) چه هغه کلام داسې وی چه دَ خلقو په خپل مینځ کښې خبرو اترو کښې چلیږی. یعنی دَ مونځ سره متعلق اذکار وغیره نه وی، دَ مونځ سره متعلق اذکار وغیره سره مونځ نه فاسدیږی. (۳) چه هغه کلام دومره آواز سره وی چه پخپله اوریدل ئې ممکن شی. که چرې ددې نه کم آواز کښې دغه کلام وی نو مونځ به نه فاسدیږی. (عمدة الفقه: ۲۴۵/۲).

(۴) البحرالرائق، کتاب الصلاة، باب ما یفسد الصلاة وما یکره فیها: ۲/۵-۳. ردالمحتار مع الدرالمختار، کتاب الصلاة، باب: ما یفسد الصلاة ومایکره فیها: ۳۷۱/۲-۳۷۰. حشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح، کتاب الصلاة، باب: مایفسد الصلاة، ص: ۳۲۲-۳۲۱.

(۵) المجموع شرح المذهب، کتاب الصلاة، مسائل تعلق بالکلام فی الصلاة: ۸۵/۴. المهذب، کتاب الصلاة، فصل فی الضحک والکلام فی الصلاة: ۲۸۹/۲. نهایة المحتاج إلی شرح المنهاج، کتاب الصلاة، باب: صفة الصلاة: ۳۸/۲.

برعكس كلام سره مونځ فاسديږي[1]

**دَ حنابلو مذهب**: دَ حنابلو په دې مسئله كښې څلور روايتونه دى. درې روايتونه خو دَ نمه ثلاثو دَ مذهب مطابق دى او څلورم روايت دا دې چه كه يو سړې دا اوګڼړى چه زه په مونځ كښې نه يم او كلام اوكړى نو په دې سره به مونځ نه فاسديږي، اګرچه هغه په مونځ كښې وى. او دې برعكس كه يو كس په دې خبره باندې پوهيدو سره كلام اوكړى چه هغه مونځ كوى نو دَ هغه مونځ به فاسديږي[2]

**دَ احنافو ړومبي دليل**: دَ احنافو دليل دَ ټولو نه ړومبې دَ قرآن پاك نه دې. دَ الله تعالى ارشاد دې: ﴿ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ۝ ﴾ په دې آيت كښې دَ "قانتين" معنى سكوت او خاموشى ده. دَ ډيرو زياتو صحابه كرامو ﷺ نه دَ دې آيت دَ شانِ نزول باره كښې دا خبره نقل ده چه دا آيت په مونځ كښې دَ كلام بندولو دَ پاره نازل شوې دې[3]

بيا په دې آيت كښې څه تفصيل نشته دې چه دَ كوم قسم كلام نه منع كړې شوې ده. لهذا دَ هرنوعيت دَ كلام منع كيدل به مراد وى[4]

**دويم دليل**: دويم دليل دَ حضرت زيد بن ارقم ﷺ حديث دې په كوم كښې چه هغوى فرمائى

---

[1]) بداية المجتهد، كتاب الصلاة، الباب السابع فى معرفة التروك المشترطة فى الصلاة: ١١٩/١. مواهب الجليل فى شرح مختصر خليل، كتاب الصلاة، باب فى السهو: ٢٣٢/٢. الشرح الكبير للدردير، كتاب الصلاة، فصل فى سنن سجود السهو: ٢٠٥/١. طرح التثريب فى شرح التقريب، كتاب الصلاة، باب السهو فى الصلاة، حديث سجود السهو، فائدة: تعمد الكلام فى الصلاة لإصلاحها، الثالثة والعشرون: ١٦/٣.

[2]) طرح التثريب فى شرح التقريب، كتاب الصلاة، باب السهو فى الصلاة، حديث سجود السهو، فائدة: تعمد الكلام فى الصلاة لإصلاحها، الثالثة والعشرون: ١٦/٣. الشرح الكبير للمقدسى، كتاب الصلاة باب سجودالسهو، فصل فإن تكلم فى هذه الحال..... لغير مصلحة الصلاة..... بطلت صلاته: ٣٠/٤-٢٩. الإنصاف فى معرفة الراجح من الخلاف للمرداوى" تحت "الشرح الكبير للمقدسى"، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو، فصل فإن تكلم فى هذه الحال..... لغير مصلحة الصلاة..... بطلت صلاته: ٣٠/٤-٢٩.

[3]) عبدالرزاق عن الثورى عن منصور عن مجاهد قال: كانوا يتكلمون فى الصلاة، ويعلم الرجل أخاه، حتى نزلت هذه الآية: ﴿ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ۝ ﴾، فقطعوا الكلام، قال: القنوت هوالسكوت، والقنوت: الطاعة. (المصنف لعبدالرزاق، كتاب الصلاة، باب: الكلام فى الصلاة، رقم الحديث: ٣٥٧٤، ٣٣١/٢). أخبرنا فضيل عن عطية فى قوله: ﴿ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ۝ ﴾ قال: كانوا يتكلمون فى الصلاة بحوائجهم، حتى نزلت: ﴿ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ۝ ﴾، فتركوا الكلام فى الصلاة. (تفسير الطبرى، القول فى تأويل قوله تعالى: ﴿ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ۝ ﴾: ٣٧٨/٤). وكذا فى تفسير الراغب الأصفهانى: ٤٩٢/١، وتفسير السمعانى: ٢٤٤/١، وتفسير ابن كثير: ٦٥٥/١، وتفسير الماتريدى: ٢١٢/٢، وتفسير السعدى: ١٠٦/١.

[4]) إن أحاديث ابن مسعود وزيد بن أرقم ومعاوية بن الحكم وغيرها صحيحة صريحة فى تحريم الكلام من غير تخصيص أو استثناء، فهى نص فى الباب بوصف مطرد معلوم منضبط معقول المعنى، بل وقع بعضها بيانًا لنص القرآن القطعى الثبوت..... إلخ. (معارف السنن، كتاب الصلاة، باب ماجاء فى الرجل يسلم فى الركعتين من الظهر والعصر: ٥٤١/٣).

چه مونږ به په مونځ کښې خبرې اترې کولې. يو سړی به په خپل خوا کښې ولاړ مونځ کونکي سره (په وخت د ضرورت) خبرې اترې کولې. بيا چه کله آيت ﴿وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِينَ﴾ نازل شو نو مونږ ته په مانځه کښې د خاموشه پاتې کيدو حکم راکړې شو او د خبرو اترو نه منع کړې شو. دا حديث په کتب صحاح کښې موجود دې[1]

**دريم دليل:** دريم دليل د حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ حديث دې په کوم کښې چه هغوی فرمائي چه مونږ به رسول الله ﷺ ته په مانځه کښې سلام کولو، حضورپاك به جواب راکولو. مونږ چه کله د حبشې د ملك نه واپس راغلو نو حضورپاك ته مو سلام اوکړو حضورپاك جواب رانه کړو. ماته خپل نيزدې اولرې فکرونه راپيدا شو (يعنې د قسم قسم پخوانۍ او نوی نوی خيالات راتلل) او ددې خبرې افسوس کيدو چه حضورپاك په څه وجه جواب رانه کړو؟ کوم وخت چه حضورپاك د مونځ نه فارغ شو نو ارشاد ئې اوفرمائيلو الله تعالی چه کله غواړی نوې فرمان جاری کولې شي. اوس الله تعالی دا حکم نازل کړې دې چه په مونځ کښې خبرې اترې مه کوئی[2]

**څلورم دليل:** څلورم دليل د حضرت معاويه بن حکم سلمی ﷜ حديث دې هغوی فرمائي چه ما حضورپاك سره مونځ کولو چه ناڅاپې په جمع کښې يو سړی ته انتروشې راغلو نو ما هغه ته "يرحمك الله" اووئيل. په دې باندې ماته خلق برند شو نو ما اووئيل "واثکل أمياه" (دا د عربو يوه محاوره ده کومه چه د مذکوره نوعيت په ماحول کښې استعماليږی) په تاسو څه چل شوې دې چه تاسو ماته داسې ګورئې. خلقو په خپلو فتونانو باندې لاسونه وهل شروع کړه، نو زه پوهه شوم چه دا خلق ماته د چپ کيدو د پاره وائی د عثمان (يو بل راوی) په روايت کښې دی چه کله ما اوکتل چه خلق ماته د چپ کيدو د پاره وينا کوی نو زه چپ شوم. کله چه حضورپاك د مونځ نه فارغ شو نو زما مور پلار دې په حضورپاك باندې قربان شی چه هغوی نه زه اورټلم او نه ئې راته بدې ردې اووئيلې البته دومره ئې راته اوفرمائيل چه دا مونځ دې او په دې کښې خبرې کول جائز نه دی بغير د تسبيح او تکبير او تلاوت د قرآن نه. يا ئې څه داسې خبره ارشاد اوفرمائيله[3]

---

[1] عن زيدبن أرقم قال: كنا نتكلم خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم في الصلاة، يكلم الرجل مناصاحبه إلى جنبه، حتى نزلت: ﴿وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِينَ﴾ [البقرة: ٢٣٨] فأمرنا بالسكوت، ونهينا عن الكلام. (سنن الترمذي، كتاب الصلاة، ماجاء في نسخ الكلام في الصلاة، رقم الحديث: ٤٠٥).

[2] عن ابن مسعود قال كنا نسلم على النبي صلى الله عليه وسلم، فيرد علينا السلام حتى قدمنا من أرض الحبشة، فسلمت عليه، فلم يرد علي، فأخذني ما قرب وما بعد، فجلست حتى إذا قضى الصلاة قال: "إن الله عزوجل يحدث من أمره ما يشاء، وإنه قد أحدث من أمره أن لا يتكلم في الصلاة".(سنن النسائي، كتاب الصلاة، باب الكلام في الصلاة، رقم الحديث: ١٢٢٤).

[3] عن معاوية بن الحكم السلمي قال: صليت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم، فعطس رجل من القوم، فقلت: يرحمک الله، فرماني القوم بأبصارهم، فقلت: واثكل أمياه، ما شأنكم تنظرون إلي؟ فجعلوا يضربون بأيديهم على أفخاذهم، فعرفت أنهم يصمتوني – فقال عثمان: فلما رأيتهم يسكتوني لكني سكت – قال: .......

**د ائمه ثلاثو دليل:** د ائمه ثلاثه رحمهم الله دليل حديث د ذواليدين دې چه د درېو صحابه كرامو ﷺ نه په سپارلسو طرقو سره نقل دې. پوره تفصيل شرح معاني الآثار كښې ذكر دې.[۱]

امام طحاوي ﷫ په ډير تفصيل سره په دې مسئله كلام كړې دې. هم دَهغې خلاصه حضرت بنوري ﷫ په معارف السنن كښې ذكر كړې ده[۲]

كومه چه دَ كتو قابل ده. دَ هغې حاصل دا دې چه دَ شوافعو په نيز حديث ذواليدين داسې دليل جوړيږي چه دَ ذواليدين كلام دَ حكم دَ ناواقفيت په وجه باندې وو او دَ نبي كريم ﷺ كلام نسياناً وو. دَ امام مالك ﷫ په نيز دا ټولې خبرې اترې دَ مونځ دَ اصلاح په خاطر وې په كوم سره چه مونځ نه فاسديږي. دَ امام احمد ﷫ په نيز دَ نبي كريم ﷺ دَ طرف نه خبرې اترې كيدل خو ددې وجې نه وو چه دَ حضورپاك په ګمان كښې مونځ پوره شوې وو. او دَ ذواليدين كلام هم په دې ګمان باندې وو ځكه چه دلته دا احتمال موجود وو چه په مونځ كښې به دَ ركعتونو دكمي حكم نازل شوې وي. نو هم دَدې احتمال دَ وجې نه دَمونځ پوره كيدو ګمان جوړ شو. بيا هغوی د تصديق په خاطر دَ حضورپاك نه تپوس اوكړو.

**دَ ائمه ثلاثو دَ دليل رومبې جواب:** خودَ احنافو په نيز دا واقعه په كومه كښې چه په مونځ كښې كلام شوې وو دَ "نسخ الكلام في الصلاة" نه مخكښې ده. زمونږ په دې خبره باندې [چه دا واقعه دَ "نسخ الكلام في الصلاة" نه دَمخكښې وخت ده] رومبې دليل هغه ټول روايات دي په كوم كښې چه نبي كريم ﷺ دَ امام نه دَ غلطۍ كيدو په وخت دَ مونځ دَ تصحيح دَ پاره مقتديانو ته دَ سرو كيدو په صورت كښې دَ سبحان الله يا الله اكبر وئيلو او دَ ښځو كيدو په صورت كښې دَ تصفيق يعنې لاس په لاس باندې دَ وهلو تلقين كوي. ځنګه چه كه په مونځ كښې خبرې اترې كول مشروط پاتې وې نو دَ تسبيح او تصفيق دَ تلقين به هيڅ ضرورت نه پاتې كيدو. ددې په ځائې به مونځ ګذار هم په مونځ كښې خبرې كولو سره وئيل چه امام صاحب تاسو غلطي كړې ده. داسې نه ده بلكه داسې اوكړئ، ليكن تاسو ته پته ده چه داسې نه كيږي.[۳]

**دويم جواب:** دويم دليل دَ حضرت معاويه بن خديج ﷛ حديث دې چه يو ځل دَ نبي كريم ﷺ نه په هيره يو ركعت پاتې شو. حضورپاك ته خبر وركړې شو نو حضورپاك دَ اذان او اقامت حكم وركړو. ددې نه پس حضورپاك يو ركعت مونځ وركړو. حالانكه دَ ټولو په دې باندې اتفاق دې چه په مونځ كښې اذان او اقامت وئيل مونځ باطلوي. خودَ حديث مطابق رسول

........ فلما صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، بأبي وأمي ما ضربني، ولا كهرني، ولا سبني، ثم قال: إن هذه الصلاة لا يحل فيها شيئ من كلام الناس هذا، إنما هو التسبيح والتكبير وقرءة القرآن، أو كما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم. (سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، باب تشميت العاطس في الصلاة، رقم الحديث: ۹۳۰).

۱) شرح معاني الآثار، كتاب الصلاة، الكلام في الصلاة لما يحدث فيها من السهو: ۵۸۱-۱/۵۶۹.

۲) معارف السنن، كتاب الصلاة، باب ماجاء في الرجل يسلم في الركعتين من الظهر والعصر: ۳/۵۰۴.

۳) شرح معاني الآثار، كتاب الصلاة، الكلام في الصلاة لما يحدث فيها من السهو: ۱/۵۷۴-۵۷۳.

الله ﷺ هم داسې اوکړه. نودې نه معلومه شوه چه حضورپاك داسې په هغه وخت یا هغه دور کښې کړی وو کوم وخت چه په مونځ کښې خبرې کول مباح وو ، په دې سره به مونځ نه فاسدېدو. لیکن روستو په مانځه کښې خبرې اترې کول بند شو. هم په دې وجه خو په دې مسئله باندې [چه په مانځه کښې اذان او اقامت ونیل مونځ باطلوی د ټولو اتفاق دې. لهذا حدیث ذوالیدین به هم په هغه زمانه باندې محمول کولې شی.(١)

**دریم جواب**: دریم دلیل دادې چه د حدیث ذوالیدین والا واقعه کښې شریك د یو جلیل القدر صحابی نه د حضرت عمر فاروق ﷛ په زمانه کښې د یو مونځ د امامت په دوران کښې غلطی اوشوه. په دوو رکعتو باندې ئې په هیره سره سلام اوګرځولو حالانکه مونځ څلور رکعتیز وو. د مونځ نه پس خلقو وریاده کړه نو خلیفة المسلمین د دغه خبرو اترو کېدو نه پس د نوی سر نه څلور رکعته اوکړه، نه دا چه هم په هغه دوو رکعتو باندې ئې بنا اوکړه. د دې نه هم معلومه شوه چه دغه وخت په مانځه کښې خبرې اترې کول بند شوی وو ګنې د خلقو د خبردارولو نه پس به ئې صرف دوه رکعته کول لیکن هغوی داسې اونه کړه څکه چه هغوی ته معلومه وه چه په مونځ کښې خبرې کول منسوخ شوی دی.(٢)

**څلورم جواب**: څلورم جواب دادې چه دې وخت کښې د پوره امت اجماعی مسئله ده چه که د امام نه غلطی اوشی نوهغه له خبردارې ورکولو د پاره به سبحان الله ونیلې شی، خبرې اترې کولو سره به ورته نه شی خودلې. خوبل طرف ته په حدیث ذی الیدین کښې صحابه کرامو ﷡ د سبحان الله ونیلو په ځائې خبرې اترې اوکړې او نبی پاك ﷺ د هغوی په دې فعل باندې هیڅ نکیر اونه کړو. د دې نه هم معلومیږی چه دا واقعه په مونځ کښې د خبرو اترو د منسوخ کېدو نه د مخکښې وخت ده.(٣)

**عقلی دلیل**: بیا امام طحاوی ﷫ خپل عقلی دلیل (کوم چه په نظر طحاوی سره تعبیرکولې شی) پیش کوی. چه ډیر مختلف قسم عبادتونه داسې دی چه د هغې د شروع کولو نه پس نور ډیر کارونه ممنوع کیږی. مثلاً د مونځ شروع کولو نه پس خبرې او نور منافی الصلاة کارونه ممنوع کیږی. د روژې ساتلو نه پس خوراك څښاك او جماع ممنوع کیږی. د اعتکاف په حالت کښې کوروالې، د جمات نه وتل وغیره. او د حج او عمرې د احرام په حالت کښې خوشبوئی، کنډلې شوې کپړې اوجماع وغیره ممنوع کیږی. د دې تفصیل نه پس پوهه شئ چه په اتفاق د فریقینو په دې ټولو عبادتونو کښې د منع کړې شوو کارونو کولو سره که په قصد سره وی او که په هیره سره وی دا عبادتونه فاسدیږی. نو دغه شان مونځ هم یو ډیر اهم عبادت دې. په دې کښې د قصد او هیرې د قید نه بغیرخبرو په موجودېدو سره مونځ فاسد

---

(١) شرح معانی الآثار، کتاب الصلاة، الکلام فی الصلاة لما یحدث فیها من السهو: ١/٥٧٤.

(٢) شرح معانی الآثار، کتاب الصلاة، الکلام فی الصلاة لما یحدث فیها من السهو: ١/٥٧٥.

(٣) معارف السنن، کتاب الصلاة، باب ماجاء فی الرجل یسلم فی الرکعتین من الظهر والعصر: ٣/٥٤٣.

نوټ: د ائمه ثلاثه د طرف نه په دې دلائلو باندې اعتراضات او د هغې ښه په تفصیل اومدلل جوابونه د شوق لرونکو د پاره د معارف السنن طرف ته مراجعت به ډیر د فرحت سبب وی.

كيدل پكاردى. لكه څنګه چه (د ائمه ثلاثه په نيز) قصدا كلام سره مونځ فاسديږى. دغه شان په هيره سره خبرې سره هم مونځ فاسديدل پكاردى.[1]

**قوله:** فَثَنَى رِجْلَيْهِ: دې اوريدو سره رسول الله ﷺ خپلې دواړه خپې راغونډې کړې.

**قوله:** "فَثَنَى" دا د باب ضرب يضرب نه د ماضى صيغه ده دكوم معنى چه د تاوولو ده. يعنى حضورپاك خپلې خپې مباركې راتاؤ كړې اوداسې كيناستو لكه چه په قعده كښې د تشهد وئيلو دپاره كينى.[2]

**قوله:** "رِجْلَيْهِ" دا د كشميهنى او اصيلى د روايت مطابق دې ګنى په نورو نسخوكښې "رجله" د واحد صيغه ده.[3]

**د سجده سهو كولو متعلق د حضرت كشميرى رحمه الله رائې:**

**قوله:** "فَثَنَى رِجْلَيْهِ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ" باندې حضرت كشميرى رحمه الله فرمائيلى دى چه كه چرې اوئيلې شى چه هغه وخت كلام په مونځ كښې جائز وو نو د سجده سهو څه ضرورت وو؟ زه وايم چه هغه په مونځ كښې أجزاء صلوة د غير د دخل اندازئى په سبب وه. دا باب اګرچه علماؤ نه دې ذكركړې مګر غالبا هغه وخت به هم دغه مسئله وه چه كلام وغيره سره د مونځ د نه فاسد كيدو سره سره د هغې تلافى به په سجده سهو سره كيدله.[4]

**قوله:** وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ: او د قبلې طرف ته ئى مخ كړو او د (سهو) دوه سجدې ئى اوكړې او دې نه پس ئى سلام اوګرځولو.

حضرت شيخ الحديث كاندهلوى رحمه الله فرمائى چه دلته حضورپاك د سجده سهو د پاره قبلې طرف ته مخ كړو. د دې نه زما استدلال دې په دې باندې چه چرته هم وى، كه د مونځ آخره وى او كه شروع، قبلې ته به مخ كولې شى.[5]

**د پنځو ركعتو والا مونځ، د ماسپښين مونځ څنګه جوړشو؟** په دې حديث شريف كښې د صحابه كرامو رضى الله عنهم د طرف نه خبر وركړې شو چه حضورپاك د ماسپښين د څلورو ركعتو په ځائې دومره دومره ركعتونه مونځ اوكړو. د وړاندې باب حديث كښې په تصريح سره د دغه شوو ركعتونو ذكرموجود دې چه هغه پنځه ركعته وو. بيا حضورپاك په آخره كښې سجده سهو اوكړه. اوس دا د ماسپښين څلور ركعته څنګه جوړشو؟

په دې باره كښې علامه كشميرى رحمه الله فرمائى چه په داسې صورت كښې د احنافو په نيز په څلورم ركعت كيناستل ضرورى دى ګنى فرض مونځ به نفل جوړ شى ليكن د شوافعو په مسلك باندې په دې (قعده) كيناستل ضرورى نه دى. بهرصورت د فرض په توګه به صحيح

---

[1] شرح معانى الآثار، كتاب الصلاة، الكلام فى الصلاة لما يحدث فيها من السهو: ٥٨٠/١-٥٧٩.

[2] شرح الكرمانى: ٦٤/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٤٦/٣، عمدة القارى: ٢٠٥/٤.

[3] فتح البارى: ٦٥٢/١، عمدة القارى: ٢٠٥/٤.

[4] انوارالبارى: ٢٠٣/١٢.

[5] تقرى بخارى شريف: ١٤٥/٢، فتح البارى: ٦٥٢/١.

شي. زمونږ جواب داد ي چه مسئله اجتهادي ده چاسره هم شرعي دليل نشته دي. البته مونږ سره د تفقه په لحاظ سره قوي دليل موجود دي. هغه دا چه په دين محمدي كښي مونځ په دري قسمه دي. دوو ركعتو والا، دريو ركعتو والا او څلورو ركعتو والا. او ښكاره خبره ده چه د مونځ د دوو يا څلور ركعتو تحقق چه د دين د متواتراتو نه دي صرف په قعدي سره كيږي. لهذا هغه هم فرض او ضروري شوه ځكه چه د واجب مقدمه به هم واجب وي. په دي وجه احنافو اووئيل چه د يو ركعت نه دكم رفض او ترك جائز دي په خلاف د دي چه د پوره ركعت كيدو نه پس به د مونځ اهتمام فرض شي. ځكه چه دا د دين د متواتراتو نه دي يعني شريعت دا معتدبه امر ګرځولي دي كوم چه نه شي ترك كولي. ځكه چه په دي سره د دين د يو متواتر، مسلم امر ماتيدل يا دا بې وقعته كول لازميږي. (۱)

فَلَمَّا أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ، قَالَ: «إِنَّهُ لَوْ حَدَثَ فِي الصَّلَاةِ شَيْءٌ لَنَبَّأْتُكُمْ بِهِ: بيائي زمونږ طرف ته مخ كړو او وئې فرمائيل كه چرې په مونځ كښې څه نوې حكم نازل شوې وې نو ما به (د مونځ نه مخكښې) تاسو ته خودلي وې.

**قوله**: "لَنَبَّأْتُكُمْ بِهِ" كښې لام د تاكيد د پاره دي او د بعضو په نيز دا د "لو" په جواب كښې راتلونكي لام دي. "لَنَبَّأَ" د هغه افعالو نه دي كوم چه د دريو مفعولونو تقاضا كوي. چنانچه دلته رومبي مفعول د مخاطب "كُمْ" ضمير دي. دويم مفعول جار مجرور يعني "بِهِ" دي. په دي كلمه كښې "ه" ضمير د هغه حدوث طرف ته راګرځي كوم چه د رسول الله ﷺ قول «لوحدث في الصلوة شيئ» نه مفهوم كيږي.

او دريم مفعول محذوف دي. يعني كه چرې په مونځ كښې د بدليدو څه حكم راغلي وې نو د مونځ نه وړاندې به ما تاسو خلقو ته د هغه بدلون باره كښې وئيلي وې چه هغه دا دي (۲)

**قوله**: وَلَكِنْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ: ليكن زه هم ستاسو په شان يو انسان يم.

**قوله**: "إِنَّمَا" كلمهٔ حصر ده دكوم مقتضاء لغوي چه داده چه د حضورپاك بشريت د عامو انسانانو سره په مماثل كيدو كښې محصور دي. ليكن واضحه دي وي لكه څنګه چه د جنس لاندې انواع وي دغه شان د جنس بشريت لاندې هم ډير زيات درجات دي. په كوم كښې چه د ټولو نه په اوچته درجه باندې رسول الله ﷺ دي. چنانچه په نفس بشريت كښې خو مماثلت شته ليكن هغه د هغې درجې دي چه بل يو انسان هغه درجې ته نه شي رسيدې. ځكه چه د عامو انسانانو په شان د حضورپاك هم دوه سترګې، دوه لاسونه او داسې نور اندامونه دي ليكن د اوصافو په اعتبار سره رسول الله ﷺ د كمال په هغه اوچتوالي باندې دي چه عام انسان د هغې تصور هم نه شي كولې. يعني دلته حصر مطلق نه دي بلكه حصر مخصوص دي كوم چه د سياق او سباق نه معلوميږي (۳)

---

(۱) انوار الباري: ۱۲/۲۰۳.

(۲) شرح الكرماني: ۴/۶۴ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۳/۱۴۶ عمدة القاري: ۴/۲۰۵.

(۳) ملخص من عمدة القاري: ۴/۲۰۵.

**نبي کريم ﷺ نور وو که بشر؟:** د قران، حديث، صحابه کرام ﷺ، سلف صالحين، مفسرين کرام، محدثين عظام او د ائمه اربعه رحمهم الله تعليمات، تحقيقات او تصريحات مخې ته کيخودو سره د رسول الله ﷺ نور او بشر کيدو باره کښې د اهل سنت والجماعت عقيده داده چه حضورپاک ﷺ په يووخت بشرهم دې او نور هم ليکن د جنس او ذات په اعتبارسره بشر دې. او د صفاتو او د هدايت په اعتبارسره نور دې. اودواړه اعتباراتو (د نور اوبشر کيدو اعتبار) سره حضورپاک په داسې مقام او درجه باندې فائز دې چه نه د حضورپاک نه مخکښې او نه روستو څوك د حضورپاك په شان تيرشوې دې.

قاضي عياض مالکي ﷫ فرمائي چه حضرت محمد ﷺ او باقي ټول انبياء کرام او رسولان عليهم الصلوة والسلام بشر وو. او د حضورپاك بدن مبارك او ظاهري خواص بشري وو. حضورپاك باندې هغه ټول هرڅه جائز دی چه په نورو انسانانو باندې طاري کيږي. مثلاً تکليفونه، مصيبتونه، آلام، بيمارئي او د مرګ پيالئ څکل وغيره د دې ټولو امورو د وجې نه د رسول الله ﷺ په شان کښې څه کمې يا نقص نه راځي[1]

البته هم په دې خبره کښې دوه رائې نشته چه حضورپاك افضل البشر وو، خاص الخواص وو. چنانچه علامه شامي ﷫ فرمائي:

د بشر درې قسمونه دی: خواص: لکه حضرات انبياء کرام عليهم السلام او د مينځمې درجې لکه حضرات صحابه کرام ﷺ وغيرهم او عوام: لکه نور خلق[2]

نبي کريم ﷺ په دې توګه د سرنه ترخپو پورې نور ګرځول چه په هغې سره د بشريت، آدميت او د انسانيت کيدو نه انکار او کړې شي دا د صريح او قطعي نصوصو خلاف دی. او دې سره سره چه يو سړې دا او وائي چه ماته پته نشته چه حضورپاك انسان وو که پيرې، نو فقهاؤ ذکرکړې دی چه داسې سړې کافر دې مسلمان نه دې. بلکه دا عقيده لرل ضروري دی چه حضورپاك په اعتبار د جنس بشر او په اعتبار د ايمان او هدايت نور وو[3]

---

[1]) وقد قدمنا أنه عليه الصلوة والسلام وسائر الأنبياء والرسل من البشر وأنه جسمه وظاهره خالص للبشر، يجوز عليه من الآفات والتغييرات والآلام والأسقام وتجرعُ كأس الحِمام ما يجوز على البشر، وهذا كله ليس بنقيصة فيه، لأن الشيئ إنما يسمى ناقصًا بالإضافة إلى ما هو أتم منهَ وأكمل من نوعه....... فقد مرض صلى الله عليه وسلم، واشتكى، وأصابه الحر والقر، وأدركه الجوع والعطش، ولحقه الغضب والضجر، وناله الإعياء والتعب، ومسه الضعف والكبر، وسقط فجحش شقه، وشجه الكفار، وكسروا رباعيته، وسُقِي السم، وسحر، وتداوى، واحتجم، وتنشر، وتعوذ، ثم قضى نحبه، فتوفى صلى الله عليه وسلم ولحق بالرفيق الأعلى، وتخلص من دارالامتحان والبلوى، وهذه سمات البشر التى لا محيص عنها. (الشفابتعريف حقوق المصطفى، القسم الثالث: فيما يجب النبى للنبى صلى الله عليه وسلم،الباب الثاني: فيما يخصهم فى الأمور النبوية ومايطرأ عليهم من العوارض البشرية:۱۷۸/۲،دارالكتب العليمة).

[2]) وحاصله أنه قسم البشر إلى ثلاثة أقسام: خواص، كالأنبياء، وأوساط، كالصالحين من الصحابة وغيرهم، وعوام، كباقى الناس. (ردالمحتار، كتاب الصلوة، مطلب: فى تفضيل البشر على الملائكة: ۲/۲٤۲دارعالم الكتب).

[3]) ومن قال: لا أدرى أن النبى صلى الله عليه وسلم كان إنسيًا أو جنيًا، يكفر، كذا فى الفصول العمادية. (الفتاوى الهندية، كتاب السير، الباب التاسع فى أحكام المرتدين، موجبات الكفر: ۲۶۳/۲رشيدية).

**قوله:-أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ، فَإِذَا نَسِيتُ-:** لكه څنګه چه تاسو نه هيره کيږي داسې مانه هم هيره کيږي، په دې وجه چه کله مانه هيرشي.

**قوله:-أَنْسَى-** همزهٔ مفتوحه او سين مخففه سره دې. او چاچه همزهٔ مضموم او سين مشدد سره ذکرکړې دې هغه صحيح نه دې.[1]

**دَنسيان معنى:** دَ نسيان لغوى مطلب، او اصطلاحى مطلب: دَ يوڅيزنه دَ زړه غافل کيدو نوم دې. دَ نسيان يوه معنى دَ پريخودو هم راځى لکه چه دَ الله تعالى قول: ﴿ نَسُوااللّٰهَ فَنَسِيَهُمْ﴾ کښې دَ نسيان معنى دَ ترك کولو ده.[2]

**دَ انبياء کرامو عليهم السلام نه هيره ممکن ده که نه؟** دَ حديث مبارك دَدې جملې نه معلوميږي چه دَ انبياء کرامو عليهم السلام نه په افعالو کښې دَ نسيان صدور ممکن دې. ليکن په دې خبره باندې دَعلماؤ کرامو اتفاق دې چه دَ الله تعالى دَ طرف نه دَ هغوى په نسيان باندې خبردارکولې شى. هغوى په نسيان باندې برقرار پاتې کيږى. بيا بعضې علماء دَدې خبرې قائل دى چه انبياء کرام دَهغوى په نسيان باندې فورى خبردار کولې شى او دَ بعضو په نيز فورى توګه باندې خبردار کول ضرورى نه دى. بلکه ترژونده پورې هغوى خبرول صحيح دى.[3]

علامه نووى رحمه الله فرمائى چه دَ رسول الله ﷺ اقوال بلاغيه (يعنى امور تبليغيه) کښې دَ سهو واقع کيدل په اجماع دَ امت ممکن نه دى. يعنى چه حضورپاك عليه السلام دَ الله تعالى په احکاماتو دَ تبليغ کښې سهوه يا نسيان کښې اخته شى او امت ته غلطه خبره اورسوى دا ممکن نه دى. البته په دنياوى معاملاتو کښې او عباداتو کښې اکثر وختونو کښې به په حضورپاك باندې نسيان راتلو. ليکن هم په هغه وخت دَ الله تعالى دَ طرف نه په حقيقت حال باندې خبردار کولې شو او په هغه نسيان کښې اخته کيدل به هم په حقيقت کښې دَ امت دَ تربيت دَ پاره فعلاً نمونه جوړيدله.[4]

علامه ابن دقيق العيد رحمه الله فرمائى چه داحديث دَ انبياء کرامو عليهم السلام نه دَ سهو په صادريدو باندې دلالت کوى. عامة العلماء په دې باره کښې هم دغه مذهب دې لکه چه نبى کريم ﷺ پخپله ارشاد فرمائى چه مانه هم ستاسو دَهيرې په شان هيره کيږى. او په غلو کښې مبتلا يو ډلې په دې باره کښې نظريه داده چه په نبى باندې سهو نه شى راتلې بلکه نبى خو قصداً دَ نسيان والا صورت اختياروى دې دَ پاره چه امت ته فعلى تبليغ اوکړې شى. نودا نظريه په قطعى توګه باندې باطله ده. څکه چه نبى کريم ﷺ خو پخپله خبر ورکوى چه مانه هيره اوشوه. او دويمه خبره داده چه دَ داسې سړى صورت جوړول په چا چه هيره راځى

[1] اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ۱۴۶/۳.
[2] عمدة القارى: ۲۰۵/۴.
[3] عمدة القارى: ۲۰۵/۴.
[4] المنهاج شرح صحيح مسلم للنووى، كتاب الصلاة، مواضع الصلاة، صلاة المسافر، رقم الحديث: ۵۷۲، ۶۲/۵-۶۱.

نو دا خو عمدا د يو فعل د اختيارونکي په شان شو او افعال عمد په مونځ باطلوي.[۱]

دې اقوالو خلاصه دا ده چه دلته دوه څيزونه دي يو افعال نبي او دويم اقوال نبي. د افعال نبي ﷺ باره کښې تحقيقي خبره داده چه په دغه افعالو کښې قصداً نسيان يا سهوه موجوديدل خو ممتنع ده يعنې د نبي نه ممکن نه ده. او سهوا د هيرې موجوديدل ممکن دي ليکن داسې به د الله تعالى د طرف نه کيدل دي د پاره چه امت ته تعليم اوشي او په هغې باندې به فوري يا څه وخت پس حضورپاك خبرولې شو. او که چرې اقوال نبوي ﷺ به د ديني امورو سره متعلق وو نو هم په هغې کښې سهو يا نسيان نه کيدلو. او که چرې اقوال نبي ﷺ د دنياوي امورو سره متعلق وو نو په هغې کښې د نسيان د مضر نه کيدو د وجې د هغې واقع کيدل محال نه دي.[۲]

**قوله: "فَذَكِّرُونِي":** نو تاسو ماته رايادوئ. مراد دادې چه په مانځه کښې د تسبيح يا تکبير په ذريعه ماته رايادوئ.[۳]

**نبي کريم ﷺ ته څوځل سهو پيښه شوې وه؟:** علامه انورشاه کشميري رحمه الله د علامه تقي الدين ابن دقيق العيد رحمه الله په حواله ليکلي دي چه هغوي فرمائيلي دي چه رسول الله ﷺ نه څلور ځل په مونځ کښې سهو شوې ده. په هغې کښې د دوو ذکر خو صحيح البخاري کښې دي. يو دا واقعه چه په مذکوره حديث کښې بيان شوه چه حضورپاك د څلورو رکعتو په ځائې پنځه رکعته مونځ اوکړو. دلته صراحت نشته دې ليکن وړاندې صراحت هم موجود دې.

دويمه واقعه دا شوې وه چه حضورپاك د څلورو رکعتو په مونځ کښې په دوو رکعتو باندې سلام اوګرځولو د دې ذکر هم موجود دې.

دريمه واقعه داده چه د حضورپاك نه نسياناً قعده اولى پاتې شوه. دا صورت امام ابوداؤد رحمه الله ذکرکړې دې.

څلورمه واقعه داده چه حضورپاك نه په مانځه کښې يو آيت هير شو نو د مونځ نه پس حضورپاك د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه تپوس اوکړو ولې ته په مونځ کښې نه وې؟ هغوي اووئيل آو جي زه موجود ووم. حضورپاك اوفرمائيل نو تا بيا ولې ماته هغه آيت راياد نه کړو؟ دا څلور واقعات هغه دي کوم چه ابن دقيق العيد رحمه الله ذکرکړې دي. خود حضورپاك د سهو يو پنځم مقام هم په کتابونو کښې ملاويږي او هغه دادې چه حضورپاك د مابنام په مونځ کښې د دريو رکعتو په ځائې دوه رکعتو باندې سلام ګرځولې وو.[۴]

---

[۱]) إحكام الأحكام شرح عمدة الأحكام، كتاب الصلاة، باب: سجود السهو، جواز السهو على الأنبياء، الحديث: ۱۰۵، ۱/ ۲۷۴.

[۲]) عمدة القاري: ۴/ ۲۰۶.

[۳]) شرح الكرماني: ۴/ ۶۴ عمدة القاري: ۴/ ۲۰۵.

[۴]) فيض الباري: ۲/ ۴۵، العرب الشذي، كتاب الصلاة، باب: ماجاء في سجدتي السهو قبل السلام، رقم الحديث: ۳۹۱، ۱/ ۳۷۰. رومبي واقعه صحيح البخاري کښې موجود ده. اوګورئ: حدثنا عثمان، قال: حدثنا جرير، عن منصور، عن إبراهيم، عن علقمة، قال: قال قال عبدالله صلى النبي صلى الله عليه وسلم، قال إبراهيم: لا أدري، زاد أو نقص، فلما سلم قيل له: يارسول الله! أحدث في الصلاة شيئ؟ قال: وماذاک؟ قالوا: صليت كذا وكذا.......

**د امام بخاری رحمه الله په نيز په مونځ کښې دکلام الناس د جواز حکم:** علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله د سهو حديث څوځل ذکرکړې دې او مختلف تراجم قائمولوسره ئې دهغې نه د متعددو مسئلو استنباط کړې دې. ليکن ترجمه اوعنوان "جواز کلام الناس" ئې چرته نه ده قائم کړې. معلومه شوه چه په دې مسئله کښې هغوی د احنافو موافقت کړې دې. والله تعالى أعلم[1]

**قوله: "وَإِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ":** او چه کله په تاسو کښې چاته په مانځه کښې شک شي.

**د شک معنی اومفهوم:** شک په لغت کښې خلاف يقين ته وائی او اصطلاح کښې د شک نه

---

...... فثنى رجليه، واستقبل القبلة، وسجد سجدتين، ثم سلم، فلما أقبل علينا بوجهه، قال: إنه لو حدث فی الصلاة شیئ لنبأتكم به، ولكن إنما أنا بشرمثلكم، أنسى كما تنسون، فإذا نسيت فذكرونى، وإذا شک أحدكم فی صلاته، فليتحر الصواب، ليتم عليه، ثم ليسلم، ثم يسجد سجدتين. (صحیح البخاری، کتاب الصلاة، باب: التوجه نحوالقبلة حيث كان، رقم الحديث: ٤٠١). دويمه واقعه هم صحيح البخاری کښې موجود ده. وئی ګورئی:حدثنا مسدد، قال: حدثنا يحيى، عن شعبة، عن الحكم، عن إبراهيم، عن علقمة عن عبدالله، قال: صلى النبی صلى الله عليه وسلم الظهر خمسا، فقالوا: أزيد فی الصلاة؟ قال: وما ذاک؟ قالوا: صليت خمسا، فثنى رجليه وسجد سجدتين. (صحیح البخاری کتاب الصلاة، باب: ماجاء فی القبلة ومن لا يرى الإعادة على من سها فصلى إلى غير القبلة، رقم الحديث: ٤٠٤).دريمه واقعه سنن ابی داؤد کښې موجود ده اوګورئی:حدثنا القعنبی، عن مالک، عن ابن شهاب، عن عبدالرحمن الأعرج عن عبدالله ابن بحينة أنه قال: صلى لنا رسول الله صلى الله عليه وسلم ركعتين، ثم قام فلم يجلس، فقام الناس معه، فلما قضى صلاته وانتظرنا التسليم كبر، فسجد سجدتين وهو جالس قبل التسليم، ثم سلم صلى الله عليه وسلم. (سنن أبی داؤد کتاب الصلاة، باب: من قام من ثنتين ولم يتشهد، رقم الحديث: ١٠٣٦). څلورمه واقعه شرح السنة للبغوی کښې موجود ده. ليکن په دې واقعه کښې د حضورپاک عليه السلام سوال د حضرت أبی رضی الله عنه نه وو، وئی ګورئی:عن عبدالله بن عمر أن النبی صلى الله عليه وسلم صلى صلاة، فقرأفيها، فلبس عليه، فلما انصرف، قال: لأبی: أصليت معنا؟ قال: نعم، قال: فما منعک؟ ومعقول أن المرادمنه: ما منعک أن تفتح علی. (شرح السنة للبغوی، کتاب الصلاة باب: قعود بين السجدتين، رقم الحديث: ٦٦٥). او د سنن ابی داؤد په روايت کښې ددوی نه علاوه د يو متعين صحابی نه بغيردا قصه موجود ده، وئی ګورئی:عن المسوربن يزيد ا لمالكی أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال يحيى وربما قال شهدت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقرأفی الصلاة، فترک شيئالم يقرأه، فقال له رجل يا رسول الله! تركت آية كذا وكذا، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "هلا أذكرتنيها" (سنن أبی داؤد، کتاب الصلاة، باب: الفتح على الإمام فی الصلاة، رقم الحديث: ٩٠٧). اوپنځمه واقعه المستدرک على الصحيحين للحاكم کښې موجود ده وئی ګورئی:أخبرنا أبوعمرو عثمان بن أحمد بن سماک، ببغداد، ثنا على بن إبراهيم الواسطی، ثنا وهب عن جرير بن حازم، قال: سمعت يحيى بن أيوب، يحدث، عن يزيد بن أبی حبيب،عن سويد بن قيس، عن معاوية بن خديج، قال: صليت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم المغرب فسها، فسلم فی ركعتين، ثم انصرف، فقال له رجل: يارسول الله! إنک سهوت فسلمت فی ركعتين، فأمر بلالا فأقام الصلاة، ثم أتم تلک الركعة، فسألت الناس عن الرجل الذی، قال: يارسول الله! إنک سهوت، فقيل لی: تعرفه، قلت: لا، إلا أن أراه، فمر بی رجل، فقلت: هو هذا، فقالوا: هذا طلحة بن عبيدالله. اختصره الليث بن سعد، عن أبی حبيب. (المستدرک على الصحيحين للحاكم، کتاب الصلاة، تحت باب التأمين، رقم الحديث: ٩٦٠).

[1] فيض البارى: ٤٥/٢، انوارالبارى: ٢٠١/٢.

مراد هغه کیفیت دې چه یو سړې د پوهیدو او نه پوهیدو د کیفیت په مینځ کښې وی، یو طرف ته د هغه خیال نه وی. او چه کله یو طرف ته د هغه خیال لاړ شی لیکن په بل طرف د ذهن نه جتکه ورنه شی نو دې ته ظن یعنی گمان وائی او کله چه هغه ته جتکه ورکړې شی نو هغې ته غالب گمان وائی کوم چه د یقین قائم مقام وی[1]

**قوله: "فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ"**: نو د صحیح خبرې معلومولو کوشش دې اوکړی.

تحری وائی د یو شئ د طلب کولو بنه کوشش کول. علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه د "فليتحر" معنی ده "فليجتهد".[2]

د صحیح بخاری کتاب الایمان کښې راتلونکی روایت کښې دا الفاظ دی: "فيتحرى الصواب"[3]

د سنن النسائی او ابن ماجه روایت کښې "فليتحر أقرب ذلك من الصواب" الفاظ دی.[4]

د صحیح مسلم یو روایت کښې "فليتحر الذى هو الصواب" الفاظ ملاویږی.[5]

---

[1] وقيل: الشک، ما استوى طرفاه، وهو الوقوف بين الشيئين لا يميل القلب إلى أحدهما، فإذا ترجح أحدهما ولم يطرح الآخر فهوظن، فإذا طرحه فهو غالب الظن، وهو بمنزلة اليقين. (التعريفات للجرجاني، باب:الشين، رقم التعريف: ١٠٢٢، ص: ١١٠). وكذا المصباح المنير فى غريب الشرح الكبير، كتاب الشين: ٣٢٦/١.

[2] شرح الكرماني: ٦٤/٤،اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ١٤٦/٣.

[3] حدثنا إسحاق بن إبراهيم، سمع عبدالعزيز بن عبدالصمد، حدثنا منصور، عن إبراهيم، عن علقمة، عن ابن مسعود رضى الله عنه أن نبى الله صلى الله عليه وسلم صلى بهم صلاة الظهر، فزاد أو نقص منها، قال منصور: لا أدرى إبراهيم وهم أم علقمة، قال: قيل: يارسول الله! أقصرت الصلاة أم نسيت؟ قال: وما ذک؟ قالوا: صليت كذا وكذا، قال: فسجد بهم سجدتين، ثم قال: هاتان السجدتان لمن لا يدرى، زاد فى صلاته أم نقص فتحرى الصواب، فيتم ما بقى، ثم يسجد سجدتين. (صحيح البخارى فى الأيمان، باب: إذا حنث ناسيًا فى الأيمان، رقم الحديث: ٦٦٧١).

[4] أخبرنا إسمعيل بن مسعود، قال: حدثنا خالد بن الحارث، عن شعبة، قال: كتب إلى منصور، وقرأته عليه وسمعته يحدث رجلا، عن إبراهيم، عن علقمة، عن عبدالله، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى صلاة الظهر، ثم أقبل عليهم بوجهه فقالوا: أحدث فى الصلاة حدث؟ قال: وما ذاک؟ فأخبروه بصنيعه، فثنى رجله، واستقبل القبلة، فسجد سجدتين، ثم سلم، ثم أقبل عليهم بوجهه، فقال: إنما أنا بشر أنسى كما تنسون، فإذا نسيت فذكرونى وقال: لوكان حدث فى الصلاة حدث أنبأتكم به وقال: إذا أوهم أحدكم فى صلاته فليتحر أقرب ذلک من الصواب ثم ليتم عليه، ثم يسجد سجدتين. (سنن النسائى، كتاب الصلاة، باب: ما يفعل من صلى خمسًا، رقم الحديث: ١٢٤٣).

[5] حدثنا محمد بن بشار، حدثنا محمد بن جعفر، حدثنا شعبة، عن منصور، قال شعبة: كتب إلى وقرأته عليه، قال: أخبرنى إبراهيم، عن علقمة، عن عبدالله، قال: صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم صلاة لاندرى أزاد أو نقص، فسأل، فحدثناه، فثنى رجله، واستقبل القبلة، وسجد سجدتين، ثم سلم، ثم أقبل علينا بوجهه، فقال: لوحدث فى الصلاة شيئ لأنبأتكموه، وإنما أنا بشر أنسى كما تنسون، فإذا نسيت فذكرونى، وأيكم ما شک فى الصلاة فليتحر أقرب ذلک من الصواب، فيتم عليه ويسلم ويسجد سجدتين. (سنن ابن ماجه، كتاب: إقامة الصلوة والسنة فيها، باب: ما جاء فيمن شک فى صلاته فتحرى الصواب، رقم الحديث: ١٢١١).

هم دَ سنن النسائي يو روايت كښې "فليتحر الذي يرى أنه الصواب"[1]

او په يو بل روايت كښې "فلينظر أحرى ذلك إلى الصواب" الفاظ هم ملاويږي.[2]
مقصود دَ ټولو نه هم يو دې چه په دوؤ امورو كښې دِ يو طلب كولو ته تحرى وئيلى شى په داسې حال كښې چه د دې نه به يو صحيح وى.[3]

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دَ "الصواب" معنى: "الأخذ باليقين" او "البناء على الأقل" ده. خودَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ دې معنى: "البناء على غالب الظن" ده.[4]
دلته يو سوال پيدا كيږى چه دَ راوى خو بيان دې چه "لاادري، زاد او نقص" يعنى دَ هغه شك و نوچه چرته شك وو هلته صواب ته (يعنى صحيح خبرې ته) څنګه رسيدې شى؟ نو دَ دې جواب دادې چه داسې تحرى كوم چه يقين سره لاحق شى اختياروئى.[5]
**دَ شك په وخت كړى دَتحرى په بنياد باندې دَ مونځ پوره كولو حكم:** په دې خانى كښې نبى اكرم صلى الله عليه وسلم حكم وركړو چه كله تاسو ته دَ ركعتونو په شمير كښې شك پيدا شى نو بيا دَ ركعتونو شمير په ښه شان سره دَ سوچ او فكر په ذريعه متعين كړئى. داسې قسم رواياتو كښې تتبع نه پس دا خبره مخې ته راځى چه دَ شك په مسئله كښې دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه درې قسم روايات نقل دى:

[1]) وحدثنا عثمان، وأبوبكر، ابنا أبي شيبة، وإسحاق بن إبراهيم، جميعا عن جرير، قال عثمان: حدثنا جرير، عن منصور، عن إبراهيم، عن علقمة، قال: قال عبدالله: صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، قال إبراهيم: زاد أو نقص، فلما سلم قيل له: يارسول الله! أحدث فى الصلاة شيئ؟ قال: وما ذاك؟ قالوا: صليت كذا وكذا، قال: فثنى رجليه، واستقبل القبلة، فسجد سجدتين، ثم سلم، ثم أقبل علينا بوجهه فقال: إنه لو حدث فى الصلاة شيئ أنبأتكم به، ولكن إنما أنا بشر أنسى كما تنسون، فإذا نسيت فذكرونى، وإذا شك أحدكم فى صلاته فليتحر الصواب، فليتم عليه، ثم ليسجد سجدتين. (صحيح مسلم، كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب: السهو فى الصلاة والسجودله، رقم الحديث: ٥٧٢) .

[2]) أخبرنا محمد بن رافع، قال: حدثنا يحيى بن آدم، قال: حدثنا مفضل وهو ابن مهلهل، عن منصور، عن إبراهيم، عن علقمة، عن عبدالله، يرفعه إلى النبى صلى الله عليه وسلم قال: إذا شك أحدكم فى صلاته فليتحر الذى يرى أنه الصواب فيتمه، ثم يعنى: يسجد سجدتين، ولم أفهم بعض حروفه كما أردت. (سنن النسائى فى السهو، باب: ما يفعل من صلى خمسًا، رقم الحديث: ١٢٤٠).

[3]) أخبرنا سويد بن نصر، قال: أنبأنا عبدالله، عن مسعر، عن منصور، عن إبراهيم، عن علقمة، عن عبدالله، قال: صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فزاد أو نقص، فلما سلم قلنا: يارسول الله! هل حدث فى الصلاة شيئ؟ قال: لوحدث فى الصلاة شيئ أنبأتكموه، ولكنى إنما أنابشر أنسى كما تنسون، فأيكم ما شك فى صلاته فلينظر أحرى ذلك إلى الصواب، فليتم عليه، ثم ليسلم وليسجد سجدتين. (سنن النسائى فى السهو، باب: ما يفعل من صلى خمسًا، رقم الحديث: ١٢٤٢).

[4]) شرح الكرمانى: ٦٤/٤ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٤٦/٣.

[5]) شرح الكرمانى: ٦٥/٤.

دريومبي قسم د روايت مطابق په ركعتونو كښې د شك پيښيدو په وخت دې د سره مونځ ادا كړي. دا روايت د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه نقل دې كوم چه په مصنف ابن ابى شيبه كښې موجود دې. دارنګ د اسحاق بن يحيى په طريق سره د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه روايت په مجمع الزوائد كښې موجود دې.(۱)

دويم روايت دادې كوم چه د صحيح بخارى په دې باب كښې موجود دې.(۲)

په دې كښې دا خبره ذكر شوې ده چه د تحرى كولو نه پس دې په غالب گمان باندې عمل كولو سره مونځ پوره كړي او د هغې نه پس دې سجد سهو اوكړي.

او دريم قسم روايت دادې چه بناء على الاقل دې اوكړي مثلاً چه په دريو او څلورو كښې ئې شك وى نو چونكه د دريو ادا كول يقينى دى نوهم دريې كنړلوسره دې مونځ پورد كړي او په آخره كښې دې سجده سهو اوكړي. د دې روايت راوى حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه دې اودا په سنن ترمذى كښې موجود دې.(۳)

د دې نه علاوه د حضرت ابو سعيد الخدرى رضي الله عنه روايت هم د دې مطابق دې كوم چه په سنن ابوداؤد كښې موجود دې(۴)

احنافو د شك راتلو په صورت كښې دا دريواړه روايتونه جمع كړي دى. هغه داسې چه په مونځ كښې په شك پيدا كيدو باندې په درجاتى اعتبار سره درې صورتونه دى:

---

(۱) عن ابن عمر رضي الله عنهما قال: "أما أنا فإذا لم أدر كم صليت، فإني أعيد". وأيضًا عن ابن عمر: فى الذى لا يدرى ثلاثًا صلى أو أربعًا، قال: يعيد حتى يحفظ. (المصنف لابن أبى شيبة، كتاب الصلاة، من قال: إذا شک فلم يدركم صلى أعاد، رقم الحديث: ٤٤٥٤، ٤٤٥٥، ٣/ ٤٣٥).

دارنګ دا قول هم په المصنف كښې د حضرت ايوب، سعيد بن جبير، شعبى، شريح، طاؤس، عطاء او ميمون وغيره كبار تابعينو رحمهم الله نه هم نقل دې. (اوګورئى: رقم الحديث: ٤٤٥٦ – ٤٤٦٤). عن عبادة بن الصامت: "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم سئل عن رجل سها فى صلوته، فلم يدركم صلى؟ قال: ليعد صلاته، وليسجد سجدتين قاعداً. رواه الطبرانى فى الكبير هكذا، وإسحاق بن يحيى لم يسمع من عبادة، والله أعلم. (بُغية الرائد فى تحقيق" مجمع الزوائد ومنبع الفوائد، كتاب الصلاة، باب السهو فى الصلاة، رقم الحديث: ٢٩٢٣، ٢/ ٣٥٥-٣٥٤).

(۲) صحيح البخارى، كتاب الصلاة، باب: التوجه نحوالقبلة حيث كان، رقم الحديث: ٤٠١.

(۳) عن عبدالرحمن ابن عوف قال سمعت النبى صلى الله عليه وسلم يقول: "إذا سها أحدكم فى صلاته فلم يدر واحدة صلى أو ثنتين، فليبن على واحدة، فإن لم يدر ثنتين صلى أو ثلاثًا فليبن على ثنتين، فإن لم يدر ثلاثًا صلى أو أربعًا فليبن، على ثلاث، وليسجد سجدتين قبل أن يسلم". (سنن الترمذى، أبواب الصلاة، باب ماجاء فى الرجل يصلى فيشک فى الزيادة والنقصان، رقم الحديث: ٣٩٨).

(۴) حدثنا محمد بن العلاء، حدثنا أبوخالد، عن ابن عجلان، عن زيد بن أسلم، عن عطاء بن يسار عن أبى سعيد الخدرى، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إذا شک أحدكم فى صلاته فليلق الشک، وليبن على اليقين، فإذا استيقن التمام سجد سجدتين، فإن كانت صلاته تامة كانت الركعة نافلة والسجدتان، وإن كانت ناقصة كانت الركعة تماما لصلاته وكانت السجدتان مرغمتى الشيطان. (سنن أبى داؤد، كتاب الصلاة باب: إذا شک فى الثنتين والثلاث، من قال: يلقى الشک، رقم الحديث: ١٠٢٤).

① كه چرې داسې شك ئې په اول ځل شوې دې نو مونځ دې د سره اوكړي. په اول ځل شك كيدو نه څه مراد دې؟ په دې كښې د فقهاؤ كرامو يو څو اقوال دي د كوم نه چه صحيح دادې چه په مونځ كښې هيريدل د هغه عادت نه وي، معنى دا ده چه كله په عمر كښې سهو شوې نه وي دا په اول روايت باندې عمل دې.

② كه د شك واقع كيدل ئې معمول وي يعنې اكثر ورته شك پيدا كيږي نو په ښه شان سره دې سوچ اوفكر اوكړي او د غالب ګمان مطابق دې عمل اوكړي. اود بعضې مشائخو په نيز دې سجده سهو نه كوي خود اكثرو مشائخو په نيزدې سجده سهو اوكړي. دا په دويم روايت باندې عمل شو.

③ اوكه چرې غالب ګمان ئې نه قائميږي نو يقيني امر يعنې د كم شمير مطابق دې مونځ پوره كړي او په آخره كښې دې سجده سهو اوكړي. دا د دريم روايت مطابق عمل شو.[1]

خود شوافعو په نيز صرف اوصرف بناءعلى الأ قل دې اوكړي يعنې كه د ركعت پاتې كيدو باره كښې شك پيدا شي چه هغه يو ركعت كړې دې كه دوه، يا درې ركعته يا څلور ركعته نو په ده باندې لا زم دي چه د كم والا صورت دې اختيار كړي لكه چه دوه ركعته ادا كړې شوي دي كه درې؟ نو په دې كښې د دوؤ ادا كيدل خو يقيني دي د دريم شك دې. لهذا دې دې دوه ركعته شمير كولوسره خپل مونځ پوره كړي. هم دغه شان د باقي صورتونو حكم دې.
الغرض د دې حضراتو په نيز صرف په يو قسم روايت باندې عمل كولې كيږي.[2]

حضرت مولانا انورشاه كشميري رحمه الله فرمائي چه د احاديثو نه تائيد هم زمونږ د مذهب راؤځي. څكه چه بيا د سره د مونځ كولو روايت هم دې. مثلاً مصنف ابن ابى شيبه كښې تحرى او اخذ بالاقل روايت هم دې. لكه څنګه چه په مسلم شريف او دا بخاري شريف كښې دې. لهذا مونږ په ټولو احاديثو باندې عمل اوكړو او شافعيه صرف د اقل والا باندې عمل اوكړو اود باقي ټولو ئې تاويل اوكړو. او تحرى صواب ئې هم په اقل باندې محمول كړو حالانكه په لغت كښې بالكل د دې خلاف دي اود دې اصل معنى لغو كول صحيح نه ده. خاص كر په شريعت كښې د غالب ګمان اعتبار په ډيرو ابوابو كښې موجود هم دې. لهذا دې نوع لره دلته د غير معتبر ګرځولو هيڅ وجه نشته. بل د هغوى په مذهب باندې به يو نوع د هغې د حكم نه بلكليه خالي كول لا زم راشي كوم چه صحيح نه دې.[3]

**قوله: "فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ": اوهم د دې مطابق دې خپل مونځ پوره كړئي.**

د "تَمَّ" صله چه كله "على" وي نودا د اتمام په معنى وي. د تحرى كولو نه پس د غالب ګمان

---

[1]) البحرالرائق كتاب الصلوة، باب سجود السهو: ١٩٢/٢.الجوهرة النيرة، كتاب الصلوة، باب سجودالسهو: ٩٣/١. ردالمحتار مع الدرالمختار، كتاب الصلوة، باب سجودالسهود: ٥٦١/٢-٥٦٠.

[2]) المجموع شرح المهذب كتاب الصلاة، باب سجود السهو: ٣٩/٤. العزيز شرح الوجيز المعروف ب الشرح الكبير، كتاب الصلاة، الباب السادس فى السجدات، القول فى سجود السهو: ٨٢/٢ الحاوى الكبير للماوردى، كتاب الصلاة، باب سجود السهو وسجود الشكر: ٢١٢/٢.

[3]) انوارالبارى: ٢٩١/١٢.

مطابق خپل مونځ پوره کول د امام صاحب ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی او په یقین باندې بنیاد کیخودل د امام شافعي رحمه الله په نیز دی.[1]

**قوله: "ثُمَّ لِيُسَلِّمْ، ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ"**: بیا سلام ګرځولو سره دې دوه سجدې د (سهو) اوکړي.

په یو روایت کښې د "ثم یسجد سجدتین" په ځائې "ثم لیسجد سجدتین" الفاظ دي. مراد دا دې چه د سهو د وجې نه دې دوه سجدې اوکړي.[2]

**په مذکوره روایت باندې یو اشکال اوډهغې جواب**: په مذکوره حدیث کښې یو تعارض معلومیږي هغه داسې چه د حدیث باب په شروع کښې د سلام نه مخکښې په سجده کولو باندې دلالت وو او په آخر حدیث کښې روستو د سلام نه سجده سهو کولو باندې دلالت دې. ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه په دې سره د دواړو امورو د جواز طرف ته اشاره کړې شوې ده.[3]

**سجده سهو به د سلام نه مخکښې کولې شي که د سلام نه پس؟**: د حدیث پاك په دې آخري جمله کښې د حضورپاك ﷺ فرمان دې چه د سلام ګرځولو نه پس د سهو دوه سجدې اوکړئی. ددې نه ثابتیږي چه د سجده سهو وخت د سلام نه پس دې نه چه مخکښې.

**د احنافو مذهب**: په دې باره کښې د مختلف قسم احادیثو د راتلو د وجې ائمه کرامو رحمهم الله په مینځ کښې هم اختلاف پیدا شوې دې. چنانچه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز افضل دادی چه د سلام نه پس دې دوه سجدې اوکړې شي.[4]

**د سجده سهوډ پاره د سلام ګرځولو طریقه**: د سلام باره کښې د احنافو په نیز درې اقوال دي. یو مونځ ګذار دې د خپلې مخې ته کتلو سره، ښي اوګس طرف ته د کتلو نه بغیر سلام اووائي اوددې نه پس دې دوه سجدې اوکړي. دا قول مفتی به نه دې. دویم ښي اوګس دواړو طرفو ته مخ ګرځولو سره دې سلام اوګرځوي. صاحب هدایه رحمه الله دا قول صحیح ګرځولې دې.[5]

---

[1] عمدة القاري: ۲۰۶/٤.

[2] اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح للبرماوي: ۱٤۷/۳، عمدة القاري: ۲۰۶/٤. علامه انور شاه کشمیري رحمه الله فرمائي چه حافظ ابن حجر رحمه الله "ثم لیسلم، ثم یسجد سجدتین" باندې خاموشي اختیار کړه او بغیرد جواب ورکولو نه وراندې لاړو. په داسې موقع چه په خپل مذهب کښې کمزوري وي، خاموشي وي، او چرته چه څه قوت وي نو په نورو باندې نکیر کښې د اعتدال د حد نه وراندې کیدل، د اهل ادب اوتحقیق د پاره مناسب نه دي.(انورالباري: ۱۹۹/۲).

[3] الکوثرالجاري: ۹۲/۲.

[4] الدرالمختار مع ردالمحتار، کتاب الصلاة، باب سجود السهو: ۵٤۰/۲. الهدایة، کتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ۳۳۱/۱. بدائع الصنائع، کتاب الصلاة، باب: سجود السهو، فصل فی بیان محل سجود السهو: ۷۱۱/۱.

[5] ویأتي بتسلمتین، هوالصحیح. (الهدایة، کتاب الصلاة، باب: سجوالسهو: ۳۳۱/۱، المکتبة البشری).

اودې ته په بدائع الصنائع کښې د عامة العلماء قول وئیلې شوې دې[1]
دریم صرف نبی طرف ته سلام گرځولو سره دوه سجدې اوکړی شی، په دې قول فتوی ده.[2]
**د شوافعو مذهب:** د شوافعو په نیز سجده سهو کول واجب نه ده بلکه سنت ده. اود اصح قول مطابق د سلام گرځولو نه مخکښې به سجده سهو کولې شی. دې نه علاوه دوه روایتونه نور دی. یو روایت د امام مالک رحمه الله مطابق دې او د دې قائل امام مزنی رحمه الله دې. اودویم روایت د هغوی قدیم قول دې چه د غلطئ کیدو په وجه مونځ گذار ته اختیار دې چه د سلام نه مخکښې سجده سهو اوکړی یا د سلام نه پس.[3]
د اصح قول مطابق به د سجده سهو طریقه دا شی چه په قعده آخره کښې تشهد، درود، دعا تول هرڅه وئیلو نه پس به دوه سجدې کولې شی اودې نه پس به سلام گرځولې شی. د شوافعو دلیل د نبی کریم صلى الله عليه وسلم هغه حدیث دې کوم چه امام بخاری رحمه الله[4]
د حضرت عبدالله بن بُحَینَه رضي الله عنه نه روایت کړې دې په کوم کښې چه دی: ((کبر قبل التسلیم، فسجد سجدتین وهو جالس، ثم سلم)).
علامه رشید احمد صاحب گنگوهی رحمه الله فرمائی چه شوافع په خپل مذهب باندې داسې استدلال کړې دې چه د سجده سهو قبل السلام والا د حدیث راوی متأخر الإسلام دې لهذا دا حدیث به هم د روستو وخت وی. نو د دې جواب ظاهر دې چه دا خو بې بنیاد د نسخ دعوی

---

[1] وعامتهم على أنه يسلم بتسليمتين عن يمينه وعن يساره قول النبي صلى الله عليه وسلم: "لكل سهو سجدتان بعد السلام"، ذكر السلام بالألف واللام، فينصرف إلى الجنس أو إلى المعهود، وهما تسليمتان. (بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو، فصل في قدر سلام السهو وصفته: ٧١٦/١).

[2] هذا قول الجمهور، منهم شيخ الإسلام وفخر الإسلام. وقال في الكافي: إنه الصواب، وعليه الجمهور، وإليه أشار في الأصل ١هـ (حاشية ابن عابدين، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ٥٤٠/٢). أحدهما: "أنه يسلم عن يمينه فقط، وصححه في المجتبى". ثانيهما لو سلم التسليمتين سقط عنه سجود السهو لأنه بمنزله الكلام، حكاه الشارح عن خواهر زاده، فقد اختلف التصحيح فيها. والذي ينبغي الاعتماد عليه تصحيح المجتبى أنه يسلم عن يمينه فقط لأن السلام عن اليمين معهود وبه يحصل التحليل فلاحاجة إلى غيره. (البحرالرائق، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ١٦٥/٢). وقال ابن عابدين في حاشيته المسمى بمنحة الخالق تحت **قوله**: "أحدهما أنه يسلم عن يمينه فقط" والحاصل أن ما صححه في المجتبى هو بعينه ما تقدم أنه قول الجمهور وأنه الأصوب والصواب. (منحة الخالق على البحرالرائق، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ١٦٥/٢).

[3] العزيزشرح الوجيز المعروف ب الشرح الكبير للقزويني، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ٩٩/٢-٩٧. منهاج الطالبين وعمدة المفتين للنووي، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو، ص: ١١٢. المغني المحتاج إلى معرفة معاني المنهاج، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ٣٢٣/١.

[4] حدثنا عبدالله بن يوسف، أخبرنا مالک بن أنس، عن ابن شهاب، عن عبدالرحمن الأعرج، عن عبدالله ابن بحينة رضى الله عنه، أنه قال: صلى لنا رسول الله صلى الله عليه وسلم ركعتين من بعض الصلوات، ثم قام، فلم يجلس، فقام الناس معه، فلما قضى صلاته ونظرنا تسليمه، كبر قبل التسليم، فسجد سجدتين وهو جالس، ثم سلم. (صحيح البخاري، كتاب اصلاة، أبواب ما جاء في السهو، رقم الحديث: ١٢٢٤).

ده. ځکه چه د راوی متأخر الإسلام کیدو سره د حدیث مؤخر کیدل نه لا زمیږی. ([1])

**د مالکیو مذهب:** د مالکیه په نیز که په مونځ کښې څه کمې پاتې شوې وی نود سلام نه مخکښې به دوه سجدې کولې شی او په مانځه کښې که د یوفعل زیاتوالې واقع شوې وی نو د سلام نه پس به دوه سجدې کولې شی([2])

اوکه چرې د یو مونځ په څه رکن کښې کمې هم اوشی او زیاتې هم، نود مالکیو په نیز سجده سهو به د سلام نه مخکښې وی ځکه چه دهغوی په نیز نقص ته په زیاتی باندې غلبه ورکولې شی([3])

علامه رشید احمد گنگوهی رحمه الله فرمائی چه مالکیو په احادیث نبویه کښې غور کولو نه پس دا ثابت کړې وو چه دکمې کیدو په صورتونو کښې نبی کریم ﷺ سجده سهو مخکښې د سلام نه کړې وه او په مونځ کښې د زیاتی کیدو په صورتونو کښې نبی کریم ﷺ سجده سهو د سلام نه پس کړې وه. نود دې جواب دادې چه د سنن الترمذی باب ماجاء فی الإمام ینهض فی الرکعتین ناسیًا کښې یو روایت تیر شوې دې. ([4])

چه حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه مونځ ورکړو او په دوو رکعتو باندې د تشهد وئیلو نه بغیر اودریدو. مقتدیانو سبحان الله اووئیل نو په جواب کښې هغوی هم سبحان الله اووئیل بیا د مونځ په آخره کښې هغوی د سلام گرځولو نه پس دوه سجدې اوکړې او بیانی اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ هم داسې کړې وو. اوس غوراوکړئی چه په دې حدیث کښې په مونځ کښې د کمې باوجود سجده سهو د سلام گرځولو نه پس اوکړې شوه لهذا دا حدیث به د امام مالک رحمه الله خلاف حجت وی. ([5])

په دې باندې شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه د مالکیو مذهب د هغه احادیثو هم خلاف دې په کوم کښې چه دا حکم دې چه په مونځ کښې د شك پریوتلو په صورت کښې دې مونځ گذار په یقین باندې بناء اوکړی او دوه سجدې به مخکښې د سلام نه اوکړی. اوس غور اوکړئی چه په دې احادیثو کښې مونځ گذار ته دا شك دې چه هغه مونځ پوره کړې دې او که په دغه مونځ کښې ئی څه زیاتې کړې دې او په داسې

---

[1] ) الکوکب الدری، کتاب الصلاة، باب ماجاء فی سجدتی السهو قبل السلام: ۱۷۳/۱ سعید.

[2] ) بدایة المجتهد، کتاب الصلاة، الجملة الرابعة فی قضاء الصلاة وجبر ما یقع فیها من خلل. الباب الثالث من الجملة الرابعة فی سجودالسهو، الفصل الثانی فی معرفة مواضع سجودالسهو: ۱۹۲/۱. متن الأخضری فی العبادات علی مذهب الإمام مالک، کتاب الصلاة، باب فی السهو، ص:۱۶. بُلغة السالک لأقرب المسالک المعروف ب حاشیة الصاوی علی شرح الصغیر، کتاب الصلاة، فصل فی بیان سجودالسهو، السجودالقبلی والبعدی للسهو: ۳۵۶/۱.

[3] ) الکوکب الدری، کتاب الصلاة، باب ماجاء فی سجدتی السهو قبل السلام: ۱۷۲/۱، سعید.

[4] ) عن شعبی قال: صلی بنا المغیرة بن شعبة، فنهض فی الرکعتین، فسبح به القوم، وسبح بهم، فلما قضی صلاته سلم، ثم سجد سجدتی السهو، وهوجالس، ثم حدثهم أن رسول الله صلی الله علیه وسلم فعل به مثل الذی فعل. (سنن الترمذی، کتاب الصلاة، باب ماجاء فی الإمام ینهض فی الرکعتین ناسیًا، رقم الحدیث: ۳۶۴).

[5] ) الکوکب الدری، کتاب الصلاة، باب ماجاء فی سجدتی السهو قبل السلام: ۱۷۳/۱، سعید.

صورت كښې د مالكيو په نيز سجده سهوه روستو د سلام نه كول پكاردى. حالانكه په دې احاديثو كښې مخكښې د سلام نه د سجده سهو كولو حكم دې. كيدې شى چه هم په دې وجه علامه باجى رحمه الله وغيره په داسې رواياتو كښې د تاويل نه كار اخستې دې.(۱)

**د حنابلو مذهب:** د حنابلو په نيز كه چرته د مونځ گذار نه داسې غلطى اوشى كومه چه د حضورپاك نه نقل ده په هغې كښې به سجده سهو داسې كولې شى لكه څنګه چه په حديث كښې راغلى دى. اوكه چرې د مونځ گذار نه داسې غلطى او سهو اوشى كومه غلطى اوسهو چه د حضورپاك نه ثابته نه وى، په هغې كښې د امام احمد رحمه الله مذهب د شوافع مطابق دې. يعنى سجده سهو به د سلام نه مخكښې وى.(۲)

بادى النظركښې د حنابلو مذهب ډير زيات زړه راښكونكې دې ليكن حقيقت دادې چه كما حقه په دغه مذهب باندې عمل كول ممكن نه دى ځكه چه حضرت مغيره بن شعبه رضى الله عنه په حديث كښې دى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په مونځ كښې قعده اولى هيره كړه نو حضورپاك د سلام نه پس سجده سهوه اوكړه.(۳)

او د حضرت عبدالله بن بحينه روايت كښې دى چه د حضورپاك نه د ماسپښين په مونځ كښې قعده اولى هيره شوه او اودريدو نو حضورپاك مخكښې د سلام نه سجده اوكړه(۴)

دا دواړه احاديث صحيح دى. ليكن اوس د امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب مخې ته كيخودو سره چه سوچ اوكړې شى چه په دوؤ صحيح احاديثو كښې هم په يو قسم غلطئ باندې دوه شان عملونه موجود دى، نو اوس په دې باندې د عمل كولو څه صورت ممكن دې؟

**د احنافو دلائل:** په دې مسئله كښې د احنافو استدلال د حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه د حديث نه دې كوم چه امام بخارى رحمه الله روايت كړې دې.

((عن عبدالله بن مسعود أن رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى الظهر خمسًا، فقيل له: أزيد في الصلاة؟ فقال: وما ذاك؟ قال: صليت خمسًا، فسجد سجدتين بعد ما سلم))(۵)

دويم دليل هم د صحيح بخارى حديث دې كوم چه په مذكوره باب كښې تيرشوې دې په كوم

---

(۱) الكوكب الدرى، كتاب الصلاة، باب ماجاء فى سجدتى السهو قبل السلام: ۱۷۳/۱، سعيد.

(۲) المغنى لابن قدامة، كتاب الصلاة، باب سجدتى السهو، مسئلة: وما عدا من السهو فسجوده قبل السلام: ۴۱۵/۲. الشرح الكبير للمقدسى مطبوع تحت "المقنع"، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ۱۹/۴. الإنصاف فى معرفة الراجح من الخلاف للمرداوى مطبوع مع المقنع والشرح الكبير، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ۴/۲۱-۱۹.

(۳) عن شعبى قال: صلى بنا المغيرة بن شعبة، فنهض فى الركعتين، فسبح به القوم، وسبح بهم، فلما قضى صلاته سلم، ثم سجد سجدتى السهو، وهوجالس، ثم حدثهم أن رسول الله صلى الله عليه وسلم فعل به مثل الذى فعل. (سنن الترمذى، كتاب الصلاة، باب ماجاء فى الإمام ينهض فى الركعتين ناسيًا، رقم الحديث: ۳۶۴).

(۴) عن عبدالله بن بحينة الأسدى، حليف بنى عبدالمطلب: أن النبى صلى الله عليه وسلم قام فى صلاة الظهر وعليه جلوس، فلما أتم صلاته سجد سجدتين، يكبر فى كل سجدة وهو جالس، قبل أن يسلم وسجدهما الناس معه مكان مانسى من الجلوس. (سنن الترمذى، كتاب الصلاة، باب ماجاء فى سجدتى السهو قبل السلام، رقم الحديث: ۴۰۰).

(۵) صحيح البخارى كتاب الصلاة، باب إذا صلى خمسًا، رقم الحديث: ۱۲۲۶.

کښې چه صفا په وضاحت سره دی: ((فليتحر الصواب، فليتم عليه، ثم ليسلم، ثم يسجد سجدتين))[1]
دريم دليل دَحضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنه حديث دې كوم چه امام ابو داؤد رحمه الله روايت كړې دې: ((عن عبدالله بن جعفر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "من شك في صلاته، فليسجد سجدتين بعد ما يسلم"))[2].
څلورم دليل دَ حضرت عمران بن حصين روايت دې كوم چه امام مسلم رحمه الله روايت كړې دې دَهغې آخره كښې دی: ((فصلى الركعة التي كان ترك، ثم سلم، ثم سجد سجدتي السهو، ثم سلم))[3]
پنځم دليل هغه آثار دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم دی كوم چه په سجده سهو مخكښې دَ سلام باندې دلالت كوى. په هغوى كښې دَ حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت على، حضرت سعد بن ابى وقاص، حضرت عمار، حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنهم وغيره شامل دی. اوګورئ: شرح معانى الآثار او مصنف لابن ابى شيبه.[4]
شپږم دليل عقلى دې چه روستو دَ سلام نه سجده كولو كښې عبادت او مشقت زيات دې ځكه چه په دغه صورت كښې التحيات دوه ځل وئيلې كيږى نو دا صورت افضل ګرځول بهتر دی[5].
اووم دليل نظر طحاوى دې چه سجده سهوه دَ نورو سجوو واجبة في الصلاة په شان نه وى چه دَ هغې واجبيدو سره فورى اداكول ضرورى وى بلكه دَدې واجبيدل على سبيل التاخير وى. اوس دا تاخير څومره كيدل پكاردى؟ نو په دې كښې دَ ائمه مجتهدينو اختلاف دې. دَ بعضې رجحان دې طرف ته شو چه دَ سلام نه علاوه دَ باقى ټولو افعالو دَ مونځ نه روستو كيدل پكاردى او دَ بعضو رجحان دا جوړ شو چه دَ سلام نه هم روستو كول پكاردى. ليكن دا غور كولو سره راجح دا معلوميږى چه كله په اتفاق سره دَ سلام نه علاوه دَ باقى ټولو افعالو نه دا روستو كولې شى او باقى أفعال په دغه سجده باندې مقدم كولې شى نو دَ قياس او نظر تقاضا دا جوړيږى چه دَ نورو كارونو په شان دې سلام هم دَ دغه دوو سجدو نه مقدم وى

[1]) صحيح البخارى، كتاب الصلاة، باب التوجه نحو القبلة حيث كان، رقم الحديث: ۴۰۱.
[2]) سنن أبى داؤد، كتاب الصلاة، باب من قال بعد التسليم، رقم الحديث: ۱۰۳۳.
[3]) وحدثنا إسحاق بن إبراهيم، أخبرنا عبدالوهاب الثقفى، حدثنا خالد وهو الحذاء، عن أبى قلابة، عن أبى المهلب، عن عمران بن حصين، قال: سلم رسول الله صلى الله عليه وسلم فى ثلاث ركعات، من العصر، ثم قام فدخل الحجرة، فقام رجل بسيط اليدين، فقال: أقصرت الصلاة يارسول الله؟ فخرج مغضبا، فصلى الركعة التى كان ترك، ثم سلم، ثم سجد سجدتين السهو، ثم سلم. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب السهو فى الصلاة والسجود له، رقم الحديث: ۵۷۴.)
[4]) شرح معانى الآثار، كتاب الصلاة، باب سجود السهو فى الصلاة، هل هو قبل التسليم أو بعده: ۵۶۹-۱/۵۶۳. المصنف لابن أبى شيبة، كتاب الصلاة، فى السلام فى سجدتى السهو: قبل السلام أو بعد، رقم الحديث: ۴۴۷۰، ۴۴۸۱، ومن ان يقول: اسجدهما قبل أن تسلم، رقم الحديث: ۴۴۸۲، ۴۴۸۳.
[5]) معارف السنن، كتاب الصلاة، باب ماجاء فى سجدتى السهو قبل السلام، رقم الحديث: ۴۰۰، ۱/۴۸۹.

اودا سجدې دي د سلام نه روستو وي([1]).

**د احنافو د مذهب د ترجيح وجه:** احنافو ته په دې توګه وجه ترجيح حاصله ده چه په دې باب کښې احاديث فعليه او قوليه دواړه قسم دي. په کوم کښې چه په غور کولو سره دا خبره مخې ته راځي چه د حضورپاك فعل په دواړه طريقو سره ملاويږي. مخکښې د سلام نه هم او روستو د سلام نه هم. چنانچه احنافو د حضورپاك هغه فعل ته ترجيح ورکړه د کوم مطابق چه د حضورپاك قول هم وو. دغه شان د احنافو په نيز په قول او فعل دواړو باندې عمل اوشو.

په دې باندې د شوافعو د طرف نه دا اعتراض کيږي چه لکه څنګه د احنافو سره د فعلي سره سره قولي حديث هم شته. دغه شان شوافعو سره هم دواړه احاديث موجود دي. نو ددې جواب دادې چه په احاديث قوليه کښې چه کله تعارض پيدا شي نو د قياس په ذريعه ترجيح ورکولې شي. د قياس تقاضا داده چه د سلام په ذريعه په سجده سهو کښې فصل کيدل پکاردي. ځکه چه سجده سهو د مونځ دکمې پوره کولو شئ دې اود يو شئ کمې پوره کونکې شئ د هغه څيز غير وي. لکه په فرض مونځونو کښې دننه د سنتو کوتاهي د مونځ نه پس سنت او ذکرونه دغه کمې پوره کوي. لهذا دلته هم سجده سهو د سلام نه پس راتلل پکاردي دې د پاره چه د کمې پوره کونکې شئ سره جدائي راشي اودا د اصل شئ غير ثابت وي. ليکن چونکه دواړه طريقې سجده سهو مخکښې د سلام نه او روستو د سلام د حضورپاك نه قولاً او فعلاً ثابتې دي لهذا مونږ څوك نه شو منع کولې([2]).

**په مذکوره مسئله کښې د مذاهبو د اختلاف حيثيت:** د سلام نه مخکښې يا روستو سجده سهو کولو کښې د ائمه اختلاف د جواز او عدم جواز نه دې بلکه د افضل او غير افضل دې، يعنې دواړه جائز دي([3]).

**د حضرت ګنګوهي رحمه الله يوه سهو او صحيح خبره:** په دې مقام باندې د حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي نه سهوه شوې ده. د مذاهبو د نقل کولو په وخت هغوی ليکلی دی چه د امام شافعي رحمه الله مذهب دادې چه سجده سهوه به پس د سلام نه کيږي ليکن مخکښې د سلام نه سجده کول جائز نه دی ځکه چه د هغوی په نيز د هغوی د مستدل حديث نه علاوه باقي ټول منسوخ دي نو په منسوخ حديث باندې عمل کول څنګه جائز دي([4])؟

شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه حضرت ګنګوهي رحمه الله د امام ترمذي رحمه الله راتلونکې قول چه "سجدة السهو قبل التسليم" والا احاديث د نورو احاديثو د پاره ناسخ دی، ددې نه استدلال کړې دې چه د شوافعو په نيز سجده سهوه هلو جائز نه ده ځکه چه په منسوخ حديث باندې

---

[1]) شرح معاني الآثار، كتاب الصلاة، باب سجود السهو في الصلاة، هل هو قبل التسليم أو بعده؟: ۵۶۹-۱/۵۶۸.

[2]) الكوكب الدري، كتاب الصلاة، باب ماجاء في سجدتي السهو قبل السلام: ۱/۱۷۳-۱۷۲، سعيد.

[3]) الدرالمختار مع ردالمحتار، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ۲/۵٤۱، الهداية، كتاب الصلاة، باب سجودالسهو: ۱/۳۳۱، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوي: ۳/۱٤۸.

[4]) الكوكب الدري، كتاب الصلاة، باب ماجاء في سجدتي السهو قبل السلام: ۱/۱۷۲، سعيد.

عمل صحیح نه وی. لیکن د شوافعو دمذهب اکثر ناقلینو په دې باندې اجماع نقل کړې ده چه دواړه شان جائز دی. چنانچه حافظ رحمه الله فتح الباري کښې د ماوردی رحمه الله نه نقل کړې دی چه په دواړو د سجده سهوه کولو په جواز باندې اجماع ده. اختلاف خو د افضلیت دې. دغه شان امام نووی رحمه الله د اجماع قول نقل کړې دې، "انتهی کذا فی الاوجز"[1].

**د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت:** د مذکوره حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت د حدیث دې جملې "فثنی رجلیه واستقبل القبلة" سره دی[2].

**د مذکوره حدیث نه مستنبط شوی احکام او فوائد:** د دې حدیث شریف نه ډیرې زیاتې فائدې مستنبط کیږی. د هغې نه یو څو لاندې لیکلې شی:

① د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دې سوال "أحدث فی الصلاة شیئ؟" سره د نسخ جواز معلومیږی[3].

② د انبیاء کرامو علیهم السلام نه سهوه او نسیان واقع کیدل هم معلومیږی[4].

③ د دې حدیث شریف نه هغه فقهاء کرامو دلیل نیسی څوک چه د دې خبرې قائل دی چه په هیره سره کلام کولو سره مونځ نه فاسدیږی[5].

④ په دې حدیث کښې په دې خبره باندې دلیل دې چه د سهو دوه سجدې وی[6].

⑤ په دې حدیث کښې په دې خبره باندې دلیل دې چه د سهو دوه سجدې د سلام نه پس دی نه چه مخکښې[7].

⑥ د دې حدیث نه دا هم معلومیږی چه د (هغه) مونځ نه پس (په کوم کښې چه د فرضو نه پس سنت نه وی نو) امام دې د مقتدیانو طرف ته راګرځیدو سره کینی[8].

⑦ تابع ته د متبوع طرف نه د دې خبرې حکم ورکول چه کله مانه هیره اوشی نو ماته رایادوئی، هم معلومیږی[9].

⑧ دا هم معلومیږی چه د یو خبرې وضاحت د هغې د حاجت د وخت نه روستو کول نه دی پکار لکه چه حضور پاک اوفرمائیل «لوحدث فی الصلاة شیئ لنبأتکم به»[10].

---

[1] الکوکب الدری، کتاب الصلاة، باب ماجاء فی سجدتی السهو قبل السلام: ۱۷۲/۱، سعید.

[2] فتح الباري: ۶۵۲/۱، عمدة القاري: ۲۰۵/۴، کوثر المعانی الدراری فی کشف الخبایا صحیح البخاری: ۴۶/۷، الکنزالمتواری: ۹۱/۴.

[3] عمدة القاري: ۲۰۶/۴.

[4] عمدة القاري: ۲۰۶/۴.

[5] عمدة القاري: ۲۰۶/۴.

[6] عمدة القاري: ۲۰۶/۴.

[7] عمدة القاري: ۲۰۶/۴.کوثرالمعانی الدراری فی کشف الخبایا صحیح البخاری: ۵۳/۷.

[8] عمدة القاري: ۲۰۶/۴.

[9] المنهاج للنووی، کتاب الصلاة، مواضع الصلاة، صلاة المسافرین، رقم الحدیث: ۵۷۲، ۶۲/۵-۶۱.

[10] فتح الباري: ۶۵۳/۱عمدة القاري: ۲۰۶/۴.

⑨ په دې حديث شريف کښې دَ احنافو دليل دې چه کله په مونځ کښې چاته دَ رکعتونو په تعداد کښې شك واقع شي نوهغه دې تحري کولوسره خپل مونځ پوره کړي[1].

⑩ په دې خبره باندې هم دليل دې چه سجده سهو دَ متعدد اسبابو په وجه سره معتدد کيږي نه، بلکه چه څومره هم غلطياني وي دَ هغې په تدارك کښې صرف هم دوه سجدې دي لکه چه په دې واقعه کښې حضورپاك په رکعتونو کښې هم سهوه شو اودې نه پس دَ حضورپاك نه کلام هم صادر شو[2].

## ۵- باب: بَابُ مَا جَاءَ فِي الْقِبْلَةِ، وَمَنْ لَا يَرَى الإِعَادَةَ عَلَى مَنْ سَهَا، فَصَلَّى إِلَى غَيْرِ الْقِبْلَةِ

داباب دَ هغه رواياتو باره کښې دې کوم چه دَ قبلې باره کښې راغلی دی اودَ هغه حضراتو باره کښې دې څوك چه دَدې خبرې قائل دی چه په هيره سره دَ غيرقبلې طرف ته مونځ کونکی باندې دَ مونځ واپس راګرځول واجب نه دی.

دَترجمة الباب وضاحت: "وَمَنْ لَا يَرَى الإِعَادَةَ" او بعضې نسخو کښې "وَمَنْ لَمْ يَرَ الإِعَادَةَ" دې يعنی "لايری" په ځائې باندې "لم ير" دې. مقصود دَ دواړو نه هم يو دې. دَ "وَمَنْ لَا يَرَى الإِعَادَةَ" عطف په "القبلة" باندې دې. په دې صورت کښې به پوره عبارت "باب ماجاء فی من لايری الإعادة علی من سها، فصلی إلی غيرالقبلة" شی.[3]

علامه کرماني رحمه الله فرمائی چه کلمة "فصلی" کښې فاء تفسيريه ده او "فصلی" لفظ تفسير دې دَ کلمه "سها"[4].

علامه عينی رحمه الله دَدې په جواب کښې فرمائی: په دې تشريح کښې بُعد دې بهتر توجيه داده چه فاء سببيه جوړه کړې شی نه چه تفسيريه. لکه چه دَ الله تعالى قول: ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ﴾ کښې فاء سببيه ده نه چه تفسيريه. او که چرې دَ "فصلی" په ځائې باندې "وصلی" وې نو زياته بهتر به وه[5]. علامه عينی رحمه الله نور فرمائي: دا باب دَ ماقبل والا باب نه جدا دې، هلته دَ قبلې طرف ته دَ مخ کولو بيان وو او دلته دا خودل مقصود دی چه که يو سړې په غلطئ سره دَ قبلې نه علاوه بل طرف ته مخ کولو سره مونځ اوکړی نودَ هغه مونځ به اوشی او که نه؟ دَامام بخاري رحمه الله خپل مسلك په دې باره کښې دادې چه داسې سړې

---

[1] ) عمدة القاری: ۲۰۶/٤.
[2] ) عمدة القاری: ۲۰۶/٤.
[3] ) عمدة القاری: ۲۱۳/٤.
[4] ) شرح الکرمانی: ٦٦/٤.
[5] ) عمدة القاری: ۲۱۳/٤.

به خپل مونځ واپس نه راګرځوي(۱).

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه دَ شارحينو په نيز "ومن لا يرالإعادة على من سها" تفسير دې دَ "ماجاء في القبلة". او زمونږ په نيز "ماجاء في القبلة" جدا دې او "ومن لايرالإعادة على من سها" جدا دې. ځکه چه دَ قبلې باب اوس ختميږي او قاعده ده چه هر يو مصنف دَ باب په ختميدو باندې يو باب دَ مسائل شتى ليکى. په دې اعتبار سره دلته هم مسائل شتى امام بخاري رحمه الله ليکي(۲).

**دَ قبلې مشتبه کيدو په صورت کښې دَ مونځ حکم:** دَدې مسئلې باره کښې دَ ائمو اختلاف دې. دَ احنافو په نيز مسئله داده چه کله دَ يو مونځ ګذار په قبله کښې شك پيدا شي او څوك دَ قبلې خودونکې نه وي او مونځ ګذار تحري او اجتهاد کولو سره يو طرف دَ قبلې دَ پاره متعين کړي او مونځ اوکړي. روستو ورته معلومه شي چه قبله خو بل طرف ته وه، نودَدا سې سړي دَ پاره دَ دغه مونځ واپس راګرځول لا زم نه دي(۳). دَ حنابلو په نيز هم مسئله هم دغه شان ده(۴). دَ مالکيه په دې باره کښې دَوه اقوال دي. يو خو هم هغه کوم چه دَ احنافو په نيز دي او دويم دا چه په وخت کښې دننه دننه معلوميدو په صورت کښې به اعاده کوي(۵). دَ شوافعو په نيز مسئله دا ده چه دَمونځ نه فارغيدو نه پس ښکاره شو چه هغه خو مونځ دَ غير قبلې طرف ته ادا کړې دې، نودې به دَ سره مونځ اداکوي دا حکم په هغه صورت کښې دې کله چه ده ته په خپله خطا باندې کيدل بغيرډَ کوشش نه معلوم شوي وي. او که باقاعده غور او فکر کولو سره هغه ته دَ خپلې غلطۍ علم وي نو په هغه باندې اعاده واجب نه ده(۶).

---

۱) عمدة القاري: ۲۱۳/۴.

۲) الكنز المتواري: ۹۴/۴-۹۳. سراج القاري: ۴۴۲/۲.

۳) البحرالرائق، كتاب الصلاة، شروط الصلاة: ۵۰۲/۱-۴۹۸. الهداية، كتاب الصلاة، باب شروط الصلاة التى تتقدمها: ۱۸۰/۱-۱۷۹، مكتبة البشرى. الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة، الباب الثالث: فى شروط الصلاة، الفصل الثالث فى استقبال القبلة: ۶۴/۱.

۴) المقنع مع الشرح الكبير والإنصاف، كتاب الصلاة، باب استقبال القبلة، مسئلة: ومن صلى بالاجتهاد إلى جهة، ثم علم أنه أخطأ القبلة: ۳۵۴/۳. الكافى لابن قدامة المقدسي، كتاب الصلاة، باب استقبال: ۲۶۰/۱. المحرر فى فقه المذهب للإمام أحمد بن حنبل، كتاب الصلاة، باب استقبال القبلة: ۵۲/۱.

۵) بداية المجتهد، كتاب الصلاة، الجملة الثانية فى الشرط، الباب الثالث من جملة الثانية فى القبلة: ۱۱۱/۱. المدونة الكبرى، كتاب الصلاة الأول، فيمن صلى إلى غير القبلة ۱۷۴/۱. الشرح الكبير للدردير و حاشية الدسوقي، كتاب الصلاة، فصل شروط صحة الصلاة، الشرط الرابع وهو استقبال القبلة: ۲۲۵/۱.

۶) الأم كتاب الصلاة، باب استقبال القبلة، فيمن استبان الخطأ بعد الاجتهاد: ۲۱۳/۲. تحفة الحبيب على شرح الخطيب المعروف ب حاشية البجيرمى على الخطيب، كتاب الصلاة، فصل فى شروط الصلاة، القول فى مراتب القبلة وتعلم أدلتها: ۱۳۲/۲. الحاوى فى فقه الشافعي، كتاب الصلاة، باب استقبال القبلة وأن لا فرض إلا الخمس: ۸۶/۲.

**تعليق:** «وَقَدْ سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَكْعَتَيِ الظُّهْرِ، وَأَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ بِوَجْهِهِ ثُمَّ أَتَمَّ مَا بَقِيَ» [ر: ۴۶۸]

**دَ تعليق ترجمه:** او تحقيق نبی کريم ﷺ دَ ماسپښين په دوو رکعتو کښې سلام ګرځولو سره دَخلقو طرف ته مخ کړو، دې نه پس چه کوم باقی پاتې شوې وو هغه ئې پوره کړې وو.

**دَ تعليق تخريج:** دعلامه ابن بطال رحمه الله ګمان دې چه دا حديث دَحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دَ حديث ټکړه ده[۱]. علامه ابن حجر رحمه الله او علامه عينی رحمه الله فرمائی په دې معامله کښې ابن بطال رحمه الله ته وهم شوې دې. په دې وجه چه دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په حديث کښې په دوو رکعتو دَ سلام ګرځولو هډو ذکرنشته دې. بلکه دا تعليق حو دَ حديث ابوهريره رضي الله عنه په کوم کښې چه ذواليدين ذکر دې[۲]. دَهغې ټکړه ده[۳].

**دَ تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عينی رحمه الله فرمائی چه دَمذکوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت په دې اعتبار سره دې چه څنګه دَ ترجمة الباب نه معلوميږی چه کوم سړې په هيره سره دَ غير قبلې طرف ته مخ کولو سره مونځ اوکړی نو په هغه باندې مونځ راګرځول واجب نه دی اوهم دا څيز دَ مذکوره تعليق نه معلوميږی. هغه داسې چه حضورپاك په غلطئ سره په دوو رکعتو باندې سلام اوګرځولو. دې نه پس دَ مقتديانو طرف ته مخ کولو سره کيناستو. بيا چه کله په غلطئ باندې خبر کړې شو نوبيائې قبلې ته مخ کولو سره مونځ پوره کړو. اوس چه څومره وخت حضورپاك دَ خلقو طرف ته متوجه دې دومره وخت دَ قبلې نه تاؤشوې دې حالانکه هغه وخت هم دَ حضورپاك شمير هم په مونځ کښې وو. او روستو بيا حضورپاك دَ مونځ اعاده هم اونه کړه[۴].

---

[۱]) وقد أشار البخاری فی ترجمته إلی هذا الاستدلال من حديث ابن مسعود فقال: وقد سلم النبی عليه السلام فی رکعتی الظهر وأقبل علی الناس بوجهه...... إلخ. (شرح ابن بطال: ۷۸/۲).

[۲]) حدثنا إسحاق، قال: حدثنا النضر بن شميل، أخبرنا ابن عون، عن ابن سيرين، عن أبی هريرة، قال: صلی بنا رسول الله صلی الله عليه وسلم إحدی صلاتی العشاء قال ابن سيرين: سماها أبوهريرة ولکن نسيت أنا، قال: فصلی بنا رکعتين، ثم سلم، فقام إلی خشبة معروضة فی المسجد، فاتکأ عليها کأنه غضبان، ووضع يده اليمنی علی اليسری، وشبک بين أصابعه، ووضع خده الأيمن علی ظهرکفه اليسری، وخرجت السرعان من أبواب المسجد، فقالوا: قصرت الصلاة؟ وفی القوم أبوبکر وعمر، فهابا أن يکلماه، وفی القوم رجل فی يديه طول، يقال له: ذواليدين، قال: يارسول الله! أنسيت أم قصرت الصلاة؟ قال: لم أنس ولم تقصر، فقال: أکما يقول ذواليدين؟ فقالوا: نعم، فتقدم فصلی ما ترک، ثم سلم، ثم کبر وسجد مثل سجوده أو أطول، ثم رفع رأسه وکبر، ثم کبر وسجد مثل سجوده أو أطول، ثم رفع رأسه وکبر، فربما سألوه: ثم سلم؟ فيقول: نبئت أن عمران بن حصين، قال: ثم سلم. (صحيح البخاری، کتاب الصلاة، باب تشبيک الأصابع فی المسجد وغيره، رقم الحديث: ۴۸۲).

[۳]) فتح الباری: ۶۵۴/۱، عمدة القاری: ۲۱۳/۴.

[۴])(۱ فتح الباری: ۶۵۴/۱، عمدة القاری: ۲۱۳/۴).حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی : دَدې تعليق نه داسې استدلال دې چه حضورپاك په هيره سره سلام اوګرځولو اوخلقوته ئې مخ کړو، دَ قبلې طرف نه ئې مخ واړولو. بيا دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم په خبرداړولوسره ئې قبلې ته مخ کړو باقی مونځ ئې پوره کړو. سجده سهو کولوسره ئې سلام اوګرځولو. دلته دا عرض کول دې چه که هغه رومبې مونځ صحيح نه وو نو څنګه اوشوه او پوره کيدل ئې څنګه صحيح شو؟ او سجده ئې څنګه اوکړه؟ که چرې ........

حديث باب «رومبي حديث» [حديث نمبر ٣٩٤-٣٩٣]

٤٠٢- حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ قَالَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ[1] قَالَ قَالَ عُمَرُ وَافَقْتُ رَبِّي فِي ثَلَاثٍ، فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوِ اتَّخَذْنَا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى فَنَزَلَتْ (وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى) (وَآيَةُ الْحِجَابِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوْ أَمَرْتَ نِسَاءَكَ أَنْ يَحْتَجِبْنَ، فَإِنَّهُ يُكَلِّمُهُنَّ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ. فَنَزَلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ، وَاجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْغَيْرَةِ عَلَيْهِ فَقُلْتُ لَهُنَّ عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ. فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ.

**د حديث ترجمه:** د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه د دريو معاملاتو (باره) كښې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل چه زما رائې زما پروردګار سره موافق شوه. يو دا چه ما عرض اوكړو يا رسول الله! كه چرې مونږ مقام ابراهيم مصلى (د مانځه ځائې) جوړكړو نو بهتر به وى. چنانچه دا آيت مبارك ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ نازل شو. دويمه موقع د حجاب يعنى پردې د آيت ده. ما عرض اوكړو يارسول الله! كه چرې تاسو ازواج مطهرات ته په پرده كښې د اوسيدو حكم وركړئى نودا به بهتر وى. ځكه چه هغوى سره خبرې اترې كونكو كښې ښه او خراب هرقسم خلق وى. چنانچه دا آيت د حجاب ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ﴾ نازل شو. دريمه موقع دا شوه چه د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم ازواج مطهرات د حضورپاك په خدمت كښې د ځان خودونكو جذباتو په وجه راجمع شوې نو ما د زجر په توګه هغوى ته اووئيل كه چرې رسول الله صلى الله عليه وسلم خفه شى او تاسو ټولو ته طلاق دركړى نو هيڅ عجيبه نه ده چه ستاسو پروردګار حضورپاك ته ستاسو نه بهترې بيبيانې وركړى، نو هم دې مضمون آيت نازل شو. ﴿عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ مُسْلِمَاتٍ مُؤْمِنَاتٍ قَانِتَاتٍ تَائِبَاتٍ عَابِدَاتٍ سَائِحَاتٍ ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا﴾

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه رجال دى:

① عمرو بن عون رحمه الله: دا ابوعثمان عمرو بن عون بن اوس بن الجعد السلمي الواسطى

---

...... حضورپاك د دغه وخته پورې هم په مونځ كښې وو نو بنا صحيح شوه. لهذا صلاة إلى غيرالقبلة ساهيًا لا زم شو او حضورپاك په هغې باندې بنا اوكړه. ښكاره دې وى چه صلاة إلى غير القبلة سهواً سره مونځ فاسديږى. (تقرير بخارى شريف: ٣١٣/٢).

[1]) أخرجه البخاري أيضًا في تفسير سورة البقرة، باب قوله تعالى: ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾، رقم الحديث: ٤٤٨٣ – وفي تفسير سورة الأحزاب، باب قول الله تعالى: ﴿لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ﴾، رقم الحديث: ٤٧٩٠ – وفي سورة التحريم، باب قوله تعالى: ﴿عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ﴾، رقم الحديث: ٤٩١٦. وأخرجه مسلم في صحيحه، في فضائل الصحابة، باب من فضائل عمر، من حديث ابن عمر، رقم الحديث: ٢٣٩٩. وأخرجه الترمذي في جامعه، في التفسير، باب ومن سورة البقرة، رقم الحديث: ٢٩٦٠. وأخرجه ابن ماجه في سننه، في صلاة، باب القبلة، رقم الحديث: ١٠٠٩. وفي جامع الأصول، حرف التاء، الكتاب الأول في تفسير القرآن، سورة البقرة، رقم الحديث: ٤٧٤، ٩/٢.

الـزازﷺ دي. د ابو العجفـاء السـلمي ازاد کـړې شـوې غـلام وو. د بصـرې اوسـيدونکي وو. دَدوی په مشهورو استاذانو کښې هشيم بن بشير ، اسحاق بن يونس الازرق، حماد بن زيد، خالـد بـن عبد الله الواسطي وغيره رحمهم الله شامل دی. اود دوی په مشـهورو شـاګردانو کښې امام بخاری، امام ابوداؤد ، امام دارمی، احمدبن سليمان الرهاوی، احمد بن محمد وزير الواسطي وغيره رحمهم الله شامل دی.

يحيى بن معين، العجلي، يزيد بن هارون، ابوزرعه او ابو حاتم وغيره رحمهم الله ټولو دَ دوی توثيق کړې دې. ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دَ دوی ذکر کړې دې. دَ ابن حبان، امام بخاری، امام ابوداؤد او امام حاتم رحمهم الله دَ اقوالو مطابق دَ دوی وفات ۲۲۵هجری کښې شوې دې[۱].

② هُشيم رحمه الله: دا ابومعاويه هُشيم بن بشير بن قاسم الواسطي رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباري، کتاب التيمم، باب قول الله تعالى: ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَآءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُم مِّنْهُ﴾ دَ دويم حديث لاندې تيرشوی دی.[۲]

③ حميد رحمه الله: دا ابوعبيده حميد بن ابی حميد الطويل الخزاعی البصری رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباري، کتاب الإيمان، باب: خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر، لاندې تير شوی دی.[۳]

④ انس رضي الله عنه: دا انس بن مالک رضي الله عنه دې دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه لاندې تير شوی دی[۴].

⑤ عمر رضي الله عنه: دا امير المؤمنين حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه دې. دَدوی مختصر احوال کشف الباري، کتاب الإيمان، باب: بدء الوحي ، دمبی حديث کښې او تفصيلی احوال کتاب الإيمان، باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تير شوی دی[۵].

دَ حديث شرح قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: "وَافَقْتُ رَبِّي فِي ثَلَاثٍ" حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دَ دريو معاملاتو (باره) کښې اوفرمائيل چه زما رائې زما دَ پروردګار موافق شوی ده

قوله: "وافقت ربي" دَ اکثرو شارحينو دَ حديث په نيز حضرت عمر رضي الله عنه دَ ادب دَ وجې نه داسې اوفرمائيل ګنی حضرت عمر رضي الله عنه به خبره اوکړه او الله تعالی دَ هغه دَ خبرې مطابق وحی

---

[۱]) تهذيب الكمال: ۲۲/۱۸۰-۱۷۷، الطبقات لابن سعد: ۳۱۶/۷، تاريخ الكبير للبخاري: ۶ رقم الترجمة: ۲۶۳۸، الثقات لابن حبان: ۴۵۸/۸، سير أعلام النبلاء: ۴۵۰/۱۰، تهذيب التهذيب: ۸/۸۷-۸۶.

[۲]) كشف الباري، كتاب التيمم، ص: ۸٤.

[۳]) كشف الباري: ۷۱/۲.

[۴]) كشف الباري: ٤/۲.

[۵]) كشف الباري: ۲۳۹/۱، ۲۷٤/۲.

نازل کړه. لکه چه موافقت د الله تعالی د طرف نه شوي دي. لیکن په باب مفاعله کښې فعل چونکه من الجانبین وی په دې وجه د ادب رعایت کولو سره حضرت عمر رضی الله عنه داسې اووئیل چه ما د خپل رب موافقت اوکړو اودا عنوان ئې بې ادبی اوګڼړله چه الله تعالی زما موافقت اوکړو. په دې وجه ئې وَافَقَنِيْ رَبِّيْ اونه وئیل.

علامه برماوی رحمه الله فرمائی چه دَدې تشریح ضرورت نشته دې، دلته د موافقت اصطلاحی معنی یعنی امتثال اوامر رب عزوجل مراد نه دې بلکه د موافقت لفظ په خپل اطلاق باندې استعمال شوې دې. یعنی کومه خبره چه د حضرت عمر رضی الله عنه وه د قرآن پاك آیت هم د هغې موافق نازل شو (۱).

علامه کورانی رحمه الله هم دا خبره ذکرکولوسره نور فرمائیلی دی چه که چرې د ادب د رعایت د وجې "وَافَقْتُ رَبِّيْ" وینا کول اومنلې شی نو بیا د صحیح بخاری کتاب التفسیر کښې هم دَدې آیت په نازلیدو باندې د حضرت عمر رضی الله عنه "وَافَقَنِيْ رَبِّيْ" وئیل نقل دی، دَدې به څه جواب وی(۲)؟علامه کرمانی رحمه الله د تمییز "أمورا" ذکرکړې دې او په دې باندې یو اشکال ذکرکولوسره د هغې جواب ورکړې دې چه "أموراً" جمع ده د "أمر"، کوم چه مذکر دې. دَدې تقاضا داده چه لفظ "ثلاث" مؤنث وې نودَدې جواب ئې دا ورکړو چه تمییز ذکر نه وی (لکه څنګه چه دلته دې) نود عدد مذکر یا مؤنث راوړلو کښې اختیار وی(۳). خو علامه برماوی رحمه الله "فِيْ ثَلاث" نه مراد قضایا اخستې دې(۴) او حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه "فِيْ ثَلاثٍ" نه مراد "ثلاثة وقائع" دې(۵).

**موافقات عمر رضی الله عنه:** دلته د دریو مقاماتو ذکر دې چه په دې دریو مقاماتو کښې وحی د حضرت عمر رضی الله عنه د رائې موافق راغلې ده. دا (درې مقامات) غالبًا د مقام اومصلحت په رعایت سره بیان کړې شوې دی چه د هغه مقام اود هغه ځائی د مصلحت تقاضا دَدې دریو د ذکر وه په دې وجه ئې د دریو ذکر اوکړو(۶). یا به داسې وئیلې شی چه اقل عدد د اکثر نفی نه کوی(۷).

یو توجیه دا هم ممکن ده چه دَدې قول په وخت صرف هم په دریو امورو کښې موافقت

---

(۱) اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح للبرماوی: ۱۵۰/۳.
(۲) الکوثرالجاری للکورانی: ۹۵/۲.
(۳) شرح الکرمانی: ۶۶/۴.
(۴) اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح للبرماوی: ۱۵۰/۳.
(۵) فتح الباری: ۶۵٤/۱.
(۶) التوضیح لشرالجامع الصحیح لابن ملقن: ٤۱۱/۵، اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح للبرماوی: ۱۵۰/۳.فتح الباری: ۶۵٤/۱.
(۷) شرح الکرمانی: ۶۶/٤، فتح الباری: ۶۵٤/۱.

مخې ته راغلې وى اوباقى مواقع ددې قول نه پس حاصل شوې وى[1]. دا مذكوره توجيه د علامه كرمانى رحمه الله ذكركړې ده. علامه عينى رحمه الله دَ مذكوره توجيه ذكركولو نه پس په دې باندې رد كولوسره فرمائى چه په دې توجيه كښې نظر دې ځكه چه حضرت عمر رضي الله عنه دَدې موافقاتو خبر دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ وفات نه پس وركړې وو لهذا مذكوره احتمال صحيح كيدې نه شى[2].

علامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه دَ تعداد اهتمام غالبًا دَ وحى قرآن مجيد دَ موافقت دَ وجې نه ښكارى ګنى دَ ابن عمر رضي الله عنهما دَ ارشاد مطابق مطلق دَ وحئ نبوت موافقت په كثير تعداد باندې موجود دې. او كه ددې ټولو هم دَ شمير طرف ته توجه كولې نو عدد به ډير زياتيدو.[3]

**دَموافقات عمر رضي الله عنه تعداد:** حقيقت دادې چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه موافقت په ډيرو مقاماتو كښې ثابت دې. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله پنځلس مقامات شميركړى دى.[4] او امام سيوطى رحمه الله دا شل او يويشتو ته رسولى دى.[5] بلكه دَ دوى (امام سيوطى رحمه الله) خو په دې باره كښې مستقل يو منظوم كلام هم دې.[6]

---

[1] شرح الكرمانى: ٤/٦٦ التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن ملقن: ٥/١١٤.

[2] عمدة القارى: ٤/٢٠٥.

[3] انوارالبارى: ١٢/٢٠٤.

[4] فتح البارى: ١/٦٥٤.

[5] تاريخ الخلفاء للسيوطى رحمه الله فصل فى موافقات عمر رضى الله عنه قد وصلها بعضهم إلى أكثر من عشرين، ص: ٨٥-٨٣.

[6] دَ دغه منظوم كلام نوم "قطف الثمر فى موافقات عمر" دې. كوم چه دَ امام سيوطى رحمه الله دَ مجموعه رسائل "الحاوى للفتاوى: ١/٣٧٧" جزء دې او دَ هغې سره چهاپ شوې دې. وئى ګورئى:

| | |
|---|---|
| الحمد لله و صلى الله | على نبيه الذى اجتباه |
| يا سائلى والحادثات تكثر | من الذى والحق فيه عمر |
| و ما يرى أنزل الكتاب | موافقاً لرأيه الصواب |
| خذ ما سألت عنه فى أبيات | منظومة تأمن من شتات |
| فى المقام وأسارى بدر | و آيتى تظاهر و ستر |
| وذكر جبريل لأهل الغدر | و آيتين أنزلا فى الخمر |
| وآية الصيام فى حل الرفث | وقوله نساؤكم حرث بحث |
| و قوله لايؤمنون حتى | يحكموك إذ بقتل ألفتى |
| وآية فيها ليهدر أوبه | ولا تصل آية فى التوبة |
| وآية فى النور هذا بهتان | وآية فيها بها الاستئذان |
| فى ختام آية فى المؤمنين | تبارك الله بحفظ المتقين |
| وثلة من فى صفات السابقين | فى سواء آية المنافقين |

وعدوا من ذاك نسخ الرسم — لآية قد أنزلت في الرجم
وقال قولا هو في التوراة قد — فيه كعب عليه قد سجد
وفي الأذان الذكر للرسول — رأيته في خبر موصول
وفي القرآن جاء بالتحقيق — ماهو من موافق الصديق
كقوله هو الذى يصلى — عليكم أعظم به من فضل
و قوله في آخر المجادله — لاتجد الآية في المخالله
هذا ما رأيته منقولا — والحمد لله على ما أولى

دَ فائدې دَ پاره هغه ۱۶ آياتونه لاندې ذكر كولې شى. په وخت دَ ضرورت دې سره متعلقه تفصيلى مباحث او دَ دې شان نزول په تفاسيرو كښې كتلې شى:

① آيت: ﴿قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللّٰهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِيْنَ۝ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰىلَ فَإِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ۝﴾ (البقرة: ۹۸-۹۷)

② آيت: ﴿وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا ؕ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ إِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى ؕ وَعَهِدْنَا إِلٰٓى إِبْرٰهِيْمَ وَإِسْمٰعِيْلَ أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ۝﴾ (البقرة: ۱۲۵)

③ آيت: ﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ؕ قُلْ فِيْهِمَآ إِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ ؗ وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا ؕ﴾ (البقرة: ۲۱۹)

④ آيت: ﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلٰى نِسَآئِكُمْ ؕ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ أَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ ۚ فَالْـٰٔنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ۠ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۠ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى الَّيْلِ ۚ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَأَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ ۙ فِي الْمَسٰجِدِ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ أٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ۝﴾ (البقرة: ۱۸۷)

⑤ آيت: ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا۝﴾ (النساء: ۶۵)

⑥ آيت: ﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ۠ وَإِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ۝﴾ (الأنفال: ۵)

⑦ آيت: ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَّكُوْنَ لَهٗٓ أَسْرٰى حَتّٰى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ؕ تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا ۖ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ الْأٰخِرَةَ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ۝ لَوْلَا كِتٰبٌ مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيْمَآ أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ۝﴾ (الأنفال: ۶۸)

⑧ آيت: ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى أَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ أَبَدًا وَّلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ ؕ إِنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَمَاتُوْا وَهُمْ فٰسِقُوْنَ۝﴾ (التوبة: ۸۴)

⑨ آيت: ﴿ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا ۠ ثُمَّ أَنْشَأْنٰهُ خَلْقًا أٰخَرَ ؕ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ أَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ۝﴾ (المؤمنون: ۱۴)

⑩ آيت: ﴿وَلَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَّا يَكُوْنُ لَنَآ أَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ۖ سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ۝﴾ (النور: ۱۶)

⑪ آيت: ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ أٰمَنُوْا لِيَسْتَأْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ؕ مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ ۠ ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ ؕ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌۢ بَعْدَهُنَّ ؕ طَوّٰفُوْنَ عَلَيْكُمْ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْأٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ۝﴾ (النور: ۵۸)

⑫ آيت: ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ أٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ إِلَّآ أَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ إِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ إِنٰىهُ ۙ وَلٰكِنْ إِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَلَا مُسْتَأْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ ؕ إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيٖ مِنْكُمْ ۠ وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيٖ مِنَ الْحَقِّ ؕ وَإِذَا سَأَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ؕ ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَقُلُوْبِهِنَّ ؕ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَآ أَنْ تَنْكِحُوْٓا أَزْوَاجَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖٓ أَبَدًا ؕ إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا۝﴾ (الاحزاب: ۵۳)

⑬ آيت: ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِيْنَ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْأٰخِرِيْنَ۝﴾ (الواقعة: ۴۰)

او امام ترمذی رحمه الله په صحيح سند سره د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت ذکر کړې دې. چه کله به څه خبره پيښيدله او په هغې کښې به د رائي اختلاف کيدو. خلقو به يوه خبره کوله او حضرت عمر رضي الله عنه به بله خبره کوله نو قرآن پاك به د حضرت عمر رضي الله عنه د رائي مطابق نازليدلو[1].

**رب سره د موافقت وجه:** دا دې نه معلوميږي چه يو څو مقاماتو کښې نه بلکه ډيرو مقاماتو کښې به په کثرت سره داسې کيدل چه وحی به د حضرت عمر رضي الله عنه د رائي په موافقت کښې نازليدله. د دې وجه دا معلوميږي چه حضرت عمر رضي الله عنه محدّث دې.[2] محدث هغه سړی ته وائی د چا په زړه کښې چه د الله تعالی د طرف نه صحيح خبره اچولې کيږي. يا هغه سړی ته وائی د چا د ژبې نه چه بغير د ارادې صحيح خبره جاری کيږی[3].

**د خطاء نه محفوظ صرف انبياء کرام عليهم السلام دی:** د رسول الله ﷺ د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باره کښې د مذکوره او نورو ډيرو بشارتونو مطلب دا هم نه دې چه هغوی د خطاء او غلطئ نه محفوظ وو. ځکه چه د الله تعالی د طرف نه د خطاء نه حفاظت صرف او صرف د انبياؤ عليهم السلام کيږی خو د دې برخلاف اصحاب رسول ﷺ نه خطاګانې صادر شوی. او په دې باب کښې هم د امت مرحومه د پاره اسوهٔ نبوی ﷺ مخې ته راغله خو بيا هم دومره ضروری دی چه د دغه پاك دامن جماعت قدسيه د الله تعالی د طرف نه هم په دنيا کښې د خلاصی، د ګناهونو نه د پاکيدو او د الله تعالی د رضا کيدو اعلان اوشو. ﴿ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ﴾.

چنانچه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه محدث او ملهم کيدو او د دې په سبب ډير قرآنی موافقات کيدو باوجود د هغوی نه څو ځل خطاء هم شوې او روستو د هغې نه رجوع هم شوې. مثلاً

---

⑬ آيت: ﴿سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۚ لَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾ (المنافقون: ۶).

⑮ آيت: ﴿عَسَىٰ رَبُّهُ إِن طَلَّقَكُنَّ أَن يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنكُنَّ مُسْلِمَاتٍ مُّؤْمِنَاتٍ قَانِتَاتٍ تَائِبَاتٍ عَابِدَاتٍ سَائِحَاتٍ ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا﴾ (التحريم: ۵).

⑯ آيت: ﴿إِن تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا ۖ وَإِن تَظَاهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلَاهُ وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ﴾ (التحريم: ۴).

[1] عن ابن عمر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "إن الله جعل الحق على لسان عمر وقلبه"، وقال ابن عمر: ما نزل بالناس أمر قط، فقالوا فيه، وقال فيه عمر، أو قال ابن الخطاب فيه – شک خارجة – إلا نزل فيه القرآن على نحوما قال عمر. (سنن الترمذي، المناقب، باب في مناقب عمر بن الخطاب رضى الله عنه، رقم الحديث: ۳۶۸۲).

[2] عن أبي هريرة رضى الله عنه قال قال رسو الله صلى الله عليه وسلم: لقد كان فيما قبلكم من الأمم محدثون، فإن يک في أمتي أحد، فإنه عمر. زاد زكريا بن أبي زائدة عن سعد عن أبي سلمة عن أبي هريرة قال قال النبي صلى الله عليه وسلم: "لقد كان فيمن كان قبلكم من بني إسرائيل رجال، يكلمون من غير أن يكونوا أنبياء، فإن يكن من أمتي منهم أحد فعمر" قال ابن عباس رضى الله عنهما: "من نبي ولا محدث". (صحيح البخاري، كتاب المناقب، باب مناقب عمر بن الخطاب رضى الله عنه، رقم الحديث: ۳۶۸۹).

[3] الكاشف عن حقائق السنن، كتاب المناقب، مناقب عمر، رقم الحديث: ۶۰۵۳، ۳۸۵۴/۱۲. إرشاد السارى للقسطلاني، كتاب المناقب، باب مناقب عمر بن الخطاب رضى الله عنه، رقم الحديث: ۳۶۸۹، ۱۰۳/۶.

① د صلح حديبيه په موقع باندې چه کله بغير د عمرې صلح کيدو په وجه د واپس تلو حکم اوشو نو د حضرت عمر رضي الله عنه په دې باندې سينه کولاؤ نه وه د کوم په وجه چه هغه د حضورپاك په خدمت کښې حاضر شو او په دې باره کښې ئې ډير اوږده سوالونه او جوابونه اوکړه. او د دې نه پس ئې هم هغه سوال او جواب د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه نه هم اوکړه. د الله تعالى شان ته ګوره چه د هغوى جوابونه هم بالکل هغه شان وو کوم چه د نبى کريم صلى الله عليه وسلم وو. روستو بيا د حضرت عمر رضي الله عنه فرمان هم ملاويږى چه هغوى به په خپلو دغه جذباتو باندې خپيمانتيا کوله[1].

② دويمه موقع هغه وه چه کله د رسول الله صلى الله عليه وسلم انتقال اوشو نو هغه وخت حضرت عمر رضي الله عنه توره راويستله او اودريدو. هغوى د نبى کريم صلى الله عليه وسلم د وفات نه انکار اوکړو او اعلان ئې اوکړو چه که چرې چا داسې اووئيل چه نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفات شوې دې نوزه به د هغه سر قلم کړم. بلکه په رسول الله صلى الله عليه وسلم خو هسې سکته راغلې ده څنګه چه موسى عليه السلام راغلې وه. الله

---

[1] صحيح بخارى کښې د صلح حديبيه په تفصيلاتو باندې ډير اوږد حديث شريف موجود دې د افادۀ عام په خاطر د متعلقه واقعه ترجمه لاندې ذکر کولې شى:
د عمرې کولو نه بغير چه کله د واپسئ حکم اوشو نو په عامو مسلمانانو باندې د هغوى واپس کيدل سخت تير شو. د حضرت عمر نه صبر اونه شو اوعرض ئې اوکړو يا رسول الله، ولې تاسو د الله تعالى په حقه نبى نه يئ؟ حضورپاك اوفرمائيل ولې نه. حضرت عمر عرض اوکړو آيا مونږ په حقه او هغوى په باطله باندې نه دى؟ حضورپاك اوفرمائيل بې شکه. حضرت عمر رضي الله عنه عرض اوکړو يا رسول الله: بيا مونږ دا ذلت ولې برداشت کړو؟ حضورپاك اوفرمائيل زه د الله تعالى رسول او په حقه نبى يم د هغه د حکم نه خلاف نه شم کولې او هغه زما ملګرې او امدادى دې. حضرت عمر رضي الله عنه عرض اوکړو يا رسول الله: تاسو دا نه وو فرمائيلى چه مونږ به د بيت الله طواف کوو؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو ايا ما وئيلى وو چه دې کال به طواف کوو؟ حضرت عمر رضي الله عنه جواب ورکړو چه نه. حضورپاك اوفرمائيل چه بيا په دې کښې هيڅ شك نشته چه ته به بيت الله ته اورسې او د هغې طواف به کوې.
حضرت عمر رضي الله عنه بيان اوکړو چه بيا زه حضرت ابوبکر رضي الله عنه له لاړم او د هغوى نه مې هم دغه تپوس اوکړو چه اې ابوبکره ولې داحقيقت نه دې چه حضورپاك د الله تعالى نبى صلى الله عليه وسلم دې؟ هغوى هم اوفرمائيل ولې نه؟ ما وئيل ولې مونږ په حقه باندې نه يو او زمونږ دښمن په باطله باندې دې؟ هغوى وئيل ولې نه. ماتپوس اوکړو چه بيا مونږ د دين په معامله کښې ولې ښکته شو؟ حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل حضورپاك بغير د شك او شبهې د الله رسول دې او هغوى د خپل رب د حکم نه ډده نه شى کولې او د هغوى رب هم د هغوى مددګار دې. پس د هغوى رسئ په مضبوطيا سره اونيسه الله ګواه دې چه هغوى په حق باندې دى. ما ورته اووئيل چه ولې حضورپاك مونږ ته دا نه وو وئيلي چه مونږ به ژر بيت الله ته اورسو او د هغې طواف به کوو؟ هغوى جواب ورکړو چه دا هم صحيح ده ليکن حضورپاك تاته فرمائيلي وو چه هم دې کال کښې به ته بيت الله ته رسيږې؟ ما اووئيل نه. حضرت ابو بکر رضي الله عنه اوفرمائيل بيا په دې کښې هيڅ شك شبه نشته چه ته به بيت الله ته رسيږې او د هغې طواف به کوې. (صحيح البخارى، کتاب الشروط، باب الشروط فى الجهاد والمصالحة مع أهل الحرب وکتابة الشروط، رقم الحديث: ۲۷۳۱).
حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى چه روستو زه په دغه خپله ګستاخئ باندې ډير خپيمانه شوم او د دې په کفاره کښې مې ډيرزيات مونځونه اوکړه، روژې مې اوساتلې او صدقې او خيراتونه مې اوکړل او ډير زيات غلامان مې آزاد کړل. (سيرت مصطفى صلى الله عليه وسلم، صلح حديبيه، شرائط صلح: ۲/۳۴۷-۳۴۶).

تعالى به هغه دوباره دې مخکښې په شان کوی او هغه وخت به حضورپاك د داسې وينا کونکو خپې لاسونه پرې کوی. هغه وخت حضرت ابوبکر رضي الله عنه تشريف راوړو او حضرت عمر رضي الله عنه ئې خاموش کړو او په منبر باندې ورا وختو او د قرآن پاك دا آيت ئې تلاوت کړو: ﴿اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ مَّيِّتُوْنَ۝﴾ [الزمر: ۳۰]. ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ؕ﴾ [آل عمران: ۱۴۴] دې آياتونو اوريدو سره حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي چه ما دا آياتونه واوريدل نو سکته کښې راغلم او ماته داسې محسوسه شوه چه زما خپې لاسونه به زما بوج اوچت نه کړې شي او زه به په زمکه باندې راپريوځم[1].

③ يو دريمه موقع هم ده چه د حضورپاك عليه السلام د وفات نه پس کله چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه د مرتدينو سره د جنګ اراده اوکړه نو حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه مخالفت اوکړو. ليکن هغه په خپله فيصله باندې کلك ولاړ وو. په دې باندې روستو چه کله د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په دې اقدام باندې ښه اثرات مخې ته راغلل نو حضرت عمر رضي الله عنه به فرمائيل په الله قسم الله تعالى په دغه معامله کښې د هغوی سينه کولاؤ کړې وه او ما اوپيژندلو چه هغه په حق باندې وو.[2]

---

[1] صحيح البخاري کښې دا واقعه په تفصيل سره په ډيرو مقاماتو کښې موجود ده. د افادهٔ عام په خاطر د متعلقه واقعې ترجمه لاندې ذکر کولې شي:
حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان کړې دې چه......حضرت ابوبکر رضي الله عنه تشريف راوړو نو حضرت عمر رضي الله عنه خلقوته څه وئيل. حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل اې عمر کينه. ليکن حضرت عمر رضي الله عنه د کيناستو نه انکار اوکړو. په دې کښې خلقو حضرت عمر رضي الله عنه پريخودو او حضرت ابوبکر رضي الله عنه له لاړل. هغوی دا آيت تلاوت کړو: ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ؕ﴾ اما بعد! تاسو کښې چه چا هم د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم عبادت کولو نو هغه ته دې معلومه وی چه هغوی وفات شوی دی او چاچه د الله تعالى عبادت کولو نو (د هغه معبود) الله هميشه ژوندې پاتې کيدونکې دې او په هغه باندې کله هم مرګ نه راځی. الله تعالى پخپله فرمائيلی دی: "محمد صرف رسول دې، د دوی نه مخکښې هم رسولان تيرشوی دی......الخ" ........ د زهری رحمه الله بيان دې چه ماته سعيد بن مسيب رحمه الله خبر راکړو چه حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل خدائی ګواه دې چه ماته هغه وخت هوش راغلو کوم وخت چه ما د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه د دې آيت تلاوت واوريدو. کله چه ما د هغوی نه تلاوت کولو سره واوريده چه حضورپاك وفات شوې دې نو زه سکتې کښې راغلم او داسې مې محسوس کړه چه زما خپې به زما بوج اوچت نه کړې شی او زه به په زمکه راپريوځم. (صحيح البخاری، کتاب المغازی، باب مرض النبی صلى الله عليه وسلم ووفاته، رقم الحديث: ٤٤٥٤).

[2] صحيح بخاری کښې د دې واقعې تفصيل موجود دې. د افادهٔ عام په خاطر د متعلقه واقعې ترجمه لاندې ذکر کولې شي:
حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان کړې دې چه کله حضورپاك وفات شو نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه خليفه جوړ شو. بل طرف ته د عربو ډيرو قبائلو (د خلافت او زکوة وغيره) نه انکار شروع کړو نو (د هغوی په انکار باندې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د هغه منکرينو سره د جنګ قصه اوکړو په دې باندې) حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل تاسو د حضورپاك د دې فرمان چه ماته حکم راکړې شوې دې چه زه به د خلقو سره تر هغې پورې جنګيږم تر کومې پورې چه هغوی د لا اله الا الله ګواهي ورنه کړی او کوم سړی چه د دې ګواهي ورکوی........

**په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې يو اشكال اود هغې جواب:** علامه ابن جوزي رحمه الله د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باره كښې يو اعتراض ذكركړې دې چه څه وجه وه چه هغه په شريعت محمدى على صاحبها الف الف تحيات باندې اكتفاء نه كوله، حالانكه نبى كريم صلى الله عليه وسلم هغه يو ځل منع كړې هم وو كوم وخت چه هغه د توريت څو پاڼې راوړې وې نو حضورپاك هغه ته اوفرمائيل: ((أمطهاعنايا عمر)). بيا ابن جوزي رحمه الله د دې اعتراض جواب نقل كړې دې. د تتبع كتب نه دا خبره مخې ته راځي چه دا جواب په اصل كښې علامه خطابي رحمه الله ذكركړې دې.(١) دكوم تسهيل چه ابن جوزي رحمه الله نقل كړې دې. هغه دا چه د حضرت عمر رضي الله عنه مخې ته د قرآن دوه روايات وو، يو: ﴿إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا﴾ [سورة بقره: ۱۲۴]او دويم: ﴿أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا﴾[النحل: ۱۲۳]. په اول آيت كښې حضرت ابراهيم عليه السلام د پوره انسانيت د پاره امام اوګرځولې شو او دويم آيت كښې د ملت ابراهيمى د اقتداء حكم وركړې شو. نو هغه د دې خبرې نه په دې پوهه شو چه د نورو انبياء كرامو نه جدا دوى لره امام جوړول اود دوى اقتداء كول مشروع دې. بيا دا خبره هم د هغوى مخې ته وه چه د بيت الله نسبت هم د دوى طرف ته دې چه هغوى د دې پاك كور تعمير اوكړو. بيائى د الله تعالى په حكم سره خلق د دې كور طرف ته راؤغوښتل. بله دا خبره هم د هغوى مخې ته وه چه مقام ابراهيم كوم چه يو كاڼړې دې په كوم چه د حضرت ابراهيم عليه السلام د قدم مبارك نښه هم باقى ده. دا داسې ده لكه چه يو سړې يو عمارت جوړكړى اود يادګارد پاره په هغې باندې خپل نوم اوليكى دې د پاره چه د هغه د مرګ نه پس هم د هغه نوم باقى وى. چنانچه د حضرت عمر رضي الله عنه په زړه كښې دا خبره راغله چه په دې مقام باندې دوه ركعته مونځ ادا كړې شى دا به هم داسې وى چه يو آباد كړې شوې كور ته راتلونكي سړې هلته ليكلې شوې د هغه عمارت د جوړونكى نوم لولى. نود هغوى په دې رائې باندې د الله تعالى د طرف نه تائيد اوشو او په حضورپاك باندې وحى نازل شوه. ليكن داسې اتباع يا د اتباع رائې د حضرت ابراهيم عليه السلام نه علاوه د بل نبى باره كښې نه ده شوې(٢).

........ نو زما د طرف نه به د هغه مال اوځان محفوظ وى. د هغه حق اود هغه حساب د الله تعالى په ذمه وى، په موجودګئ كښې څنګه هغوى سره جنګ كولې شې؟ په دې باندې حضرت ابوبكر رضي الله عنه هغه ته جواب وركړو په الله قسم زه به هر هغه سړى سره جنګ كوم څوك چه په زكوة او مونځ كښې فرق كوى. څكه چه زكوة د مال حق دې په الله قسم كه هغوى (زكوة كښې) د څلورو مياشتو د بچې وركولو نه هم انكار اوكړو لكه څنګه چه به هغوى رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وركولو نو زه به هم هغوى سره جنګيږم. حضرت عمر رضي الله عنه روستو اوفرمائيل په خدائى چه دا خبره د هغې نتيجه وه چه الله تعالى د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سينه كولاؤ كړې وه او روستو زه هم په دې نتيجه باندې اورسيدم چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه په حقه باندې وو. (صحيح البخاري، كتاب الزكوة، باب وجوب الزكوة، رقم الحديث: ۱۳۹۹).

(١) أعلام الحديث للخطابي: ۳۸۵/۱.

(٢)كشف المشكل من حديث الصحيحين لابن الجوزي،مسند عمربن الخطاب، الحديث الرابع عشر:۸۲/۱، اوګورئ دا اشكال او جواب علامه ابن الملقن رحمه الله په خپله شرح البخاري (التوضيح لشرح الجامع ......

فَقُلْتُ يَارَسُولَ اللّٰهِ، لَوِ اتَّخَذْنَا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى، فَنَزَلَتْ: ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ (البقرة: ۱۲۵). (يودا چه) ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ که چرې مونږ مقام ابراهيم مصلى (دَمونځ ځائى) جوړ کړو نو بهتر به وى. نو آيت مبارك: ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ نازل شو.

**قوله:** "لَوِ اتَّخَذْنَا" کښې دَ کلمه "لو" جواب به محذوف وى يعنى "لكان خيراً" يا به کلمه "لو" دَتمنى دَ پاره ده. په دې صورت کښې جواب دَ "لو" ضرورت نشته[۱].

**قوله:** "وَاتَّخِذُوا" کښې دوه قراءتونه دى يو: "وَاتَّخِذُوا" په کسرې دَ خاء دا قراءت دَ ابن کثير، عاصم، ابوعمرو، حمزه اوکسائى رحمهم الله نه نقل دې. اودويم قراءت: "وَاتَّخَذُوا" په فتحې دَ خاء دَ نافع رحمه الله او ابن عامر رحمه الله نه نقل دې.[۲]

**قوله:** وَآيَةُ الْحِجَابِ، قُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ، لَوْ أَمَرْتَ نِسَاءَكَ أَنْ يَحْتَجِبْنَ، فَإِنَّهُ يُكَلِّمُهُنَّ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ، فَنَزَلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ:

دويمه موقع دَ حجاب دَ آيت ده. ما عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ که چرې تاسو ازواج مطهرات ته په پرده کښې دَ اوسيدو حکم اوکړئى نو بهتره به وى. ځکه چه هغوى سره خبرې اترې کونکو کښې ښه او بد هرقسم خلق وى. چنانچه دَ حجاب آيت نازل شو.

**قوله:** "وَآيَةُ الْحِجَابِ" دَدې عطف په ماقبل کښې په مقدر عبارت "اتخاذ المصلى مقام ابراهيم" باندې وى کوم چه دَ سياق عبارت نه معلوميږى. لفظ "آية" باندې کسره وئيل زيات ظاهر دى په دې صورت کښې به دا لفظ دَعبارت دَ لفظ "ثلاث" نه بدل شى[۳].

---

...... الصحيح: ۴۱۱۲/۵-۴۱۱)، کښې دَ علامه ابن الجوزى رحمه الله په نسبت سره په دې الفاظو "فإن قلت: ما السر فى أن عمر لم يقنع بما فى شريعتنا حتى طلب الاستكان بملة إبراهيم، وقد نهاه الشارع عن مثل هذا حين أتى بأشياء من التوراة، فقال له: أمثلها منك يا عمر" ذکرکړې دې ليکن په دې کښې په ظاهره دَ کاتب دَ غلطئ دَ وجې نه په دوو مقاماتو کښې سهوه شوې ده: يو لفظ "استكان" او بل دَ شارع عليه السلام قول "أمثلها منك يا عمر". ځکه چه دَ علامه ابن الجوزى رحمه الله کتاب "كشف المشكل من حديث الصحيحين" کښې چه دَدې اشکال کوم عبارت دې په هغې کښې داسې نه دې. اصل عبارت اوګورئى: "فإن قيل: فما السر فى أن عمر لم يقنع بما فى شريعتنا حتى طلب الاستنان بملة إبراهيم، وقد نهاه رسول الله عن مثل هذا حين أتى بأشياء من التوراة. فقال: أمطها عنا يا عمر. (كشف المشكل من حديث الصحيحين لابن الجوزى، مسند عمر بن الخطاب، الحديث الرابع عشر: ۸۲/۱).

[۱]) شرح الكرمانى: ۶۶/۴ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ۱۵۱/۳.

[۲]) جامع البيان عن تأويل آى القرآن المعروف بتفسير الطبرى، سورة البقرة، رقم الآية: ۱۲۵. ۵۲۲/۲ وقال الإمام الطبرى رحمه الله: والصواب من القول والقراءة فى ذلك عندنا: ﴿وَاتَّخِذُوا﴾ بكسر الخاء على تأويل الأمر باتخاذ مقام إبراهيم مصلى. (أيضاً: ۵۲۴/۲) الجامع لأحكام القرآن المعروف بتفسير القرطبى، سورة البقرة.. رقم الآية: ۱۲۵. ۲۷۳/۲.

[۳]) شرح الكرمانى: ۶۷/۴-۶۶.

دې نه علاوه دا لفظ مبتدا ګرځولو سره مرفوع لوستل هم صحيح دى.[1] په دې صورت کښې به خبر محذوف "كذلك" شى[2].

**دَ حجاب دَ ايت په مصداق کښې اختلاف:** دَعلامه کرمانى رحمه الله او علامه برماوى رحمه الله دَ تصريحاتو مطابق دَ حجاب آيت: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّۚ﴾ دى[3].

خو علامه کورانى رحمه الله دَدې دواړو حضراتو دَدې آيت تعيين ته دَ بعضې خلقو قول وئيلو سره سهوه ګرځولې ده اودَ حجاب دَ آيت نه مراد ئې هم دَ سورت احزاب آيت نمبر ۵۳:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَدۡخُلُواْ بُيُوتَ ٱلنَّبِيِّ إِلَّآ أَن يُؤۡذَنَ لَكُمۡ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيۡرَ نَٰظِرِينَ إِنَىٰهُ وَلَٰكِنۡ إِذَا دُعِيتُمۡ فَٱدۡخُلُواْ فَإِذَا طَعِمۡتُمۡ فَٱنتَشِرُواْ وَلَا مُسۡتَـٔۡنِسِينَ لِحَدِيثٍۚ إِنَّ ذَٰلِكُمۡ كَانَ يُؤۡذِي ٱلنَّبِيَّ فَيَسۡتَحۡيِۦ مِنكُمۡۖ وَٱللَّهُ لَا يَسۡتَحۡيِۦ مِنَ ٱلۡحَقِّۚ وَإِذَا سَأَلۡتُمُوهُنَّ مَتَٰعٗا فَسۡـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٖۚ ذَٰلِكُمۡ أَطۡهَرُ لِقُلُوبِكُمۡ وَقُلُوبِهِنَّۚ وَمَا كَانَ لَكُمۡ أَن تُؤۡذُواْ رَسُولَ ٱللَّهِ وَلَآ أَن تَنكِحُوٓاْ أَزۡوَٰجَهُۥ مِنۢ بَعۡدِهِۦٓ أَبَدًاۚ إِنَّ ذَٰلِكُمۡ كَانَ عِندَ ٱللَّهِ عَظِيمًا﴾ ګرځولې دى[4].

**قوله:** وَاجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَيْرَةِ عَلَيْهِ، فَقُلْتُ لَهُنَّ: (عَسَىٰ رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ)، فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ" قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ:

دريمه موقع دا شوه چه دَ نبى کريم صلى الله عليه وسلم ازواج مطهرات دَ حضورپاك په خدمت کښې دَ غيرت دَ جذباتو دَ وجې نه راجمع شوې نو ما زجراً هغوى ته اووئيل چه که رسول الله صلى الله عليه وسلم خفه شو او تاسو ټولو ته ئې طلاق درکړو نو هيڅ عجيبه نه ده چه دَهغوى پروردګار حضورپاك ته تاسو نه بهترې بيبيانې ورکړى. نوهم دَدې مضمون آيت نازل شو.

دَدې آيت دَ نزول پس منظر تفصيلاً كتاب التفسير سورة التحريم کښې راځى[5].

**قوله:** "فَنَزَلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ": حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله ليکلى دى چه روايت تير شوې دې په باب: خروج النساء إلي البراز کښې چه حضرت سوده رضى الله عنها بهر اووتله. حضرت عمر رضى الله عنه اووئيل چه مونږ اوپيژندله چه سوده ده. دَغه وخت دَ حجاب آيت نازل شو[6].

**حضرت عمر رضى الله عنه له په کومه خبره غيرت راغلو؟**

**قوله:** "وَاجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَيْرَةِ عَلَيْهِ" غيرت خو يا په دې خبره بانديې وو چه حضرت ماريه رضى الله عنها سره ئې صحبت اوکړو يا په دې وجه چه حضرت ام سلمه رضى الله عنها کره ئې شات اوڅکل. دا پوره واقعه به په خپل ځائې راشى. هغه دا چه يو ځل حضرت عمر رضى الله عنه څه اوفرمائيل په دې بانديې دَ هغه بى بى هغه اورټلو. حضرت عمر رضى الله عنه اوفرمائيل ته ځوك ئې

---

[1] اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ۱۵۱/۳، تحفة البارى: ۱۰۸/۲.
[2] ضياء السارى فى مسالک أبواب البخارى: ۲۹۵/۵.
[3] شرح الکرمانى: ۶۷/۴، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ۱۵۱/۳.
[4] الکوثر الجارى للکورانى: ۹۶/۲.
[5] شرح الکرمانى: ۶۷/۴، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ۱۵۱/۳.
[6] تقرير بخارى شريف: ۱۴۸/۲.

خبري كونكي؟ او دي وجه دا وه چه د انصارو ښځو به هميشه خپلو خاوندانو سره بلاتكلف اونيغ په نيغه خبري اتري كولي او د قريشو ښځي بالكل چپ او د خپلو خاوندانو مخي ته به ديري غلي اوسيدي صحابه كرامو ﷺ چه كله هجرت اوكړو او مديني منوري ته راغله نو د انصارو ښځو نه د قريشو ښځو د هغوى عادتونه او طور طريقي زده كړي خربوزي خربوزي ته په كتو سره رنګ نيسي. ښځي ورته عرض اوكړو. خپلي لور ته نه ګوري چه رسول الله ﷺ ته ځنګه جواب وركوي. حضرت عمر ﷺ دي اوريدو سره ام المؤمنين حضرت حفصه ﷺ كره تشريف يوړو او ورته ئي اوفرمائيل چه بيا هيڅ كله داسي اونه كړي او خپلي بني سره ضد مه كوه هغه د خپل حسن د وجي نه نيازبينه ده. كه ستا څه ضرورت وى نو ماته وايه. حضرت عمر ﷺ بيا ام سلمه ﷺ له راغلو او ورته ئى اوفرمائيل چه ما اوريدلى دى چه ته حضورپاك ته جواب وركوي. حضرت ام سلمه ﷺ اوونيل اي عمر! (ته) د حضورپاك د بيبيانو باره كښي په هره خبره كښي خپه تاووي. غرض دا چه د شاتو څكلو واقعه يا د حضرت ماريه ﷺ خبره پيښه شوه او حضورپاك په مشربه كښي قيام اوكړو[1].

**د حديث مبارک ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه كرماني رحمه الله او علامه برماوى رحمه الله فرمائى چه دا حديث د ترجمة الباب په اول جزء باندي دلالت كوى او وړاندي حديث د ترجمة الباب په جزء اخير باندي دلالت كوي. دلالت به په دي توګه وى چه د مقام ابراهيم د مصداق باره كښي علماء مختلف دي. نوچه كوم علماء د مقام ابراهيم نه مراد كعبه اخلى نو د هغوى په نيز خو مطابقت او دلالت واضح دي او كوم علماء چه د مقام ابراهيم نه مراد پوره حرم اخلى د هغوى په نيز به ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ كښي كلمه "مِن" تبعيضيه وى. (لكه چه حضرت عمر ﷺ غوښتنه ښكاره كړه چه يا رسول الله زما زړه غواړي چه مقام ابراهيم يعنى د پوره حرم څه حصه قبله جوړه شي).

او د ﴿مُصَلًّى﴾ نه مراد به قبله يا د دي طرف ته مخ كولو سره د مونځ كولو ځائى وى. يا د ترجمة الباب نه مراد "ماجاء فى القبلة ومايتعلق بها" واخستي شي او هم دا زياته ښكاره ده ځكه چه متبادر الى الفهم د مقام نه هغه كاڼړي مراد دي په كوم چه حضرت ابراهيم عليه السلام ولاړ وو او د دي د نصب كيدو ځائى مشهور او معروف دي[2].

علامه خطابى رحمه الله ليكلى دى چه حضرت عمر فاروق ﷺ د نبى كريم ﷺ نه دي باره كښي تپوس اوكړو چه كه چري دا كاڼړي مونځ ګذار د قبلي او خپل مينځ كښي كړى په كوم چه حضرت ابراهيم عليه السلام اودريدو سره تعمير اوكړو او مونځ اداكړى نو ځنګه دي؟ نو د دي تپوس كولو باندي د الله تعالى د طرف نه مذكوره آيت مبارك نازل شوي وو[3].

ابن رجب الحنبلى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دا حديث په دي باب كښي ذكر كړو د دي

---

[1] تقرير بخارى شريف: ١٤٩/٢-١٤٨.

[2] شرح الكرماني: ٦٧/٤ اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٥١/٣، تحفة البارى: ١٠٩/٢.

[3] أعلام الحديث للخطابى: ٣٨٥/١.

مقصد دادې چه هغوی د الله تعالی د دې قول: ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ تفسير بيت الله يعني د كعبې (كومه چه حضرت ابراهيم عليه السلام تعمير كړې وه) طرف ته مخ كولو سره مونځ اداكولو سره كړې دې[1].

د بعضې شارحينو وينا ده چه زياته مناسب خبره دا وه چه امام بخاري رحمه الله دا حديث ماقبل باب كښې ذكر كړې وې. نو حافظ ابن حجر رحمه الله د دې په جواب كښې ليكلى دى چه دا سې وينا كول صحيح نه دى ځكه چه هلته حديث ابن عمر رضي الله عنهما كښې د مقام ابراهيم مصلى جوړولو تصريح وه او دلته حديث عمر رضي الله عنه كښې د دې تصريح نشته دې[2].

تعليق: وحَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، قَالَ: حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا بِهَذَا [۴۲۱۳، ۴۲۱۲، ۴۵۱۲، ۴۶۳۲]

د ابوعبدالله نه مراد امام بخاري رحمه الله پخپله دې. هغوی دا تعليق په دې مقام باندې او كتاب التفسير كښې تعليقًا ذكر كړې دې. د دې تعليق نه مقصود صرف دادې چه په دې تعليق كښې د حميد رحمه الله راوی د حضرت انس رضي الله عنه نه د سماع تصريح ده. په كوم سره چه د تدليس نه امن حاصليږي. او ماقبل روايت كښې عنعنه وه يعني "عن حميد عن أنس" سره روايت ذكر وو او دلته "حدثني حميد قال: سمعت أنسًا" دې[3].

حديث باب (دويم حديث) [حديث نمبر ۳۹۵]

- ۳۰ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ[4] بَيْنَا النَّاسُ بِقُبَاءٍ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ إِذْ جَاءَهُمْ آتٍ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ

---

[1]) فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۳۸۵/۱.

[2]) فتح الباري لابن حجر: ۶۵۵/۱-۶۵۴ ضياء الساري في مسالك أبواب البخاري: ۲۹۵/۵.

[3]) فتح الباري: ۵۲۰/۱. عمدة القاري: ۲۰۵/۴.

[4]) أخرجه البخاري أيضًا في التفسير، سورة البقرة، باب قوله الله تعالى: ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ﴾ رقم الحديث: ۴۴۸۸ وباب: ﴿وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ بِكُلِّ آيَةٍ مَّا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ﴾ رقم الحديث: ۴۴۹۰ وباب: ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ﴾ رقم الحديث: ۴۴۹۱ وباب: ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ رقم الحديث: ۴۴۹۳ وباب: ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ رقم الحديث: ۴۴۹۴. وفي اخبار الآحاد، باب ماجاء في إجازة خبر الواحد الصدوق، رقم الحديث: ۷۲۵۱. ورواه مسلم في صحيحه، في المساجد، باب: تحويل القبلة، رقم الحديث: ۵۲۶ ورواه الترمذي في جامعه، في الصلاة، باب: ماجاء في ابتداء القبلة، رقم الحديث: ۳۴۱. ورواه النسائي في سننه، في القبلة، باب: استبانة الخطأ بعد الاجتهاد، رقم الحديث: ۴۹۴. وفي جامع الأصول، حرف التاء الكتاب الأول: في تفسير القرآن وأسباب نزوله، سورة البقرة، رقم الحديث: ۴۷۹، ۱۴/۲. علامه ابن الملقن رحمه الله په التوضيح كښې ليكلى دى چه د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما مذكوره حديث صحيح البخاري كتاب الصلاة كښې په دوو نورو ځايونو كښې هم راځي او كتاب التفسير كښې به څلور ځل راځي. اوګورئ. والكلام عليه من أوجه: أحدها: هذا الحديث سيأتي إن شاء الله في الصلاة في موضعين، وفي التفسير في أربعة مواضع، وفي خبر الواحد، وقد سلف في الإيمان من حديث البراء. (التوضيح لابن الملقن: ۴۱۴/۵-۴۱۳). خو معلوميږي داسې چه د علامه ابن الملقن رحمه الله نه په دې باره كښې سهوه شوې ده. ځكه چه دا حديث كتاب الصلاة كښې صرف هم په يو مقام باندې او كتاب التفسير كښې پنځو مقاماتو كښې راغلې دې.

-صلی الله علیه وسلم- قَدْ أُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْآنٌ، وَقَدْ أُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوهَا، وَكَانَتْ وُجُوهُهُمْ إِلَى الشَّامِ، فَاسْتَدَارُوا إِلَى الْكَعْبَةِ.

**د حدیث ترجمه:** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما او فرمائیل چه مونږه په قبا کښې د سحر مونځ کولو چه په دې کښې یو سړې راغلو هغه اوونیل چه په رسول الله ﷺ باندې تیره شپه د قران پاك آیاتونه نازل شوی دی او هغه ته دکعبې طرف ته (په مونځ کښې د مخ) کولو حکم شوې دې. لهذا تاسو هم د قبلې طرف ته مخ کړئ. دغه وخت هغوی د شام (ملك) طرف ته مخ کړې ولاړ وو په دې وجه هغوی د کعبې طرف ته راتاؤ شو.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول څلور رجال دی.

① عبدالله بن یوسف رحمه الله: دا عبدالله بن یوسف تنیسی دمشقی رحمه الله دې. د دوی مختصر تذکره کشف الباری، کتاب بدء الوحی، الحدیث الثانی او تفصیلی تذکره کتاب العلم، باب: لیبلغ العلم الشاهد الغائب لاندې تیره شوې ده[1].

② مالك بن انس رحمه الله: دا مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر المدنی رحمه الله دې. د دوی تفصیلی تذکره کشف الباری کتاب الإیمان باب: من الدین، الفرار من الفتن لاندې تیره شوې ده[2].

③ عبدالله بن دینار رحمه الله: دا ابوعبدالرحمن عبدالله، بن دینار ورشی عدوی مدنی رحمه الله دې. د دوی تفصیلی تذکره کتاب العلم، باب: قول المحدث: حدثنا وأخبرنا وأنبأنا لاندې تیره شوې ده[3].

④ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما: دا د مشهور صحابی حضرت عمر فاروق رضی الله عنه خوئی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: الإیمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الإسلام علی خمس لاندې تیر شوی دی[4].

**د حدیث شرح:** قَالَ: بَيْنَا النَّاسُ بِقُبَاءٍ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه مونږه په قبا کښې د سحر مونځ کولو.

**قوله:** "بَيْنَا": داکلمه نورو نسخو کښې په میم سره یعنی "بَيْنَمَا" ده مطلب د دې "بَيْنَ أوقات كذا" دې. یعنی د هغه اوقاتو په مینځ کښې چه خلق په قباء کښې...... إلخ.[5] کلمه "بَيْنَا" صیغه د ظرف ده د مفاجاة په معنی کښې. د دې استعمال د جملې طرف ته په اضافت سره کیږی اودا د خپل معنوی تمامیت د پاره د جواب هم محتاج وی. چنانچه په دې مقام باندې د دې

---

[1]) کشف الباری: ۲۸۹/۱، ۱۱۳/٤.
[2]) کشف الباری: ۲۹۰/۱۱، ۸۰/۲
[3]) کشف الباری: ۲۵۸/۱، ۱۲۵/۳.
[4]) کشف الباری: ۶۳۷/۱
[5]) التوضیح لابن الملقن: ٤١٤/٥.

کلمې دَ اضافت مبتداء او خبر (الناس بقباء في صلاة الصبح) طرف ته دي. لهذا مضاف او مضاف الیه ملاویدو نه پس دَدې جواب به راتلونکې جمله (إذ جاءهم آت) وی[1].

**قوله: "النَّاسُ"** کښې الف لام عهدی ذهنی دې. مراد اهل قباء اوهغه کسان دی چه هغه وخت هلته حاضر وو[2].

**قوله: "قُبَاءٍ"** دَ صحیح مشهور قول مطابق داکلمه په مد سره لوستلې کیږی. او دَ مد نه علاوه قصر سره، مذکرهم، مؤنث هم، منصرف هم اوغیر منصرف هم استعمالیږی. دامدینې سره نیزدې دَ مدینې عوالی کښې دَ یو ځائی نوم دې.[3] اودې نه مراد مسجد قباء دې[4].

**دَ قبلې دَ بدلیدو حکم په کوم مونځ کښې اوشو؟:**

**قوله: "صَلَاةِ الصُّبْحِ"** په دې حدیث کښې دَ سحر دَ وخت ذکردې خو دې نه مخکښې باب: "التوجه نحو القبلة" کښې دَ مازیګر دَ وخت ذکر دې. نو په دې دواړو کښې څه منافات نشته دې. تطبیق ممکن دې. هغه داسې چه کوم سرې مدینه کښې اوسیدونکې وو هغه ته خبر دَ مازیګر په وخت کښې رسیدلې وو او کوم چه دَ مدینې نه بهر (مثلاً قباء وغیره کښې) اوسیدونکې وو هغه ته خبر په صبائې ورځ دَ سحر په مونځ کښې به رسیدلې وی[5].

**قوله: إِذْ جَاءَهُمْ آتٍ، فَقَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْآنٌ»** چه په دې کښې یو سرې راغلو هغه اووئیل چه په رسول الله ﷺ باندې تیره شپه دَ قرآن آیاتونه نازل شوی دی.

**دا راتلونکې سرې څوک وو؟:** "إِذْ جَاءَهُمْ آتٍ" دا راتلونکې څوك وو؟ په دې باره کښې علامه کرمانی رحمه الله لیکلی دی چه دَهغه نوم عباد بن ابی بشر وو[6]. او علامه ابن الملقن رحمه الله درې نومونه ذکرکړی دی په دې دریو کښې یو وو عباد بن نهیك، عباد بن ابن بسر او عباد بن ابن وهب[7].

**قوله: "أُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ"** په دې کښې لفظ "اللَّيْلَةَ" مطلق دې دکوم نه مراد چه تیره شوې ورځ او هغې سره متصل شپه ده[8].

**قوله: "قُرْآنٌ"** نه مراد دَمکمل قرآن نازلیدل نه دی بلکه دَ بعضې قرآن نازلیدل مراد دی. ځکه

---

[1] عمدة القاری: ۲۱۹/٤.
[2] فتح الباری: ۶۵۵/۱، عمدة القاری: ۲۱۹/٤.
[3] شرح الکرمانی: ۶۸/٤، التوضیح لابن الملقن: ٤۱٤/۵، عمدة القاری: ۲۱۹/٤.
[4] فتح الباری: ۶۵۵/۱.
[5] شرح الکرمانی: ۶۸/٤، په دې موضوع باندې تفصیلی کلام کشف الباری: ۲۹٤/۲-۳۹۲ کښې تیرشوې دې.
[6] شرح الکرمانی: ۶۸/٤، عمدة القاری: ۲۱۹/٤.
[7] التوضیح لابن الملقن: ٤۱٤/۵، الإعلام بفوائد عمدة الأحکام لابن الملقن: ٤۸۹/۲.
[8] فتح الباری: ۶۵۵/۱، عمدة القاری: ۲۱۹/٤.

چه په دې باندې تنوين دَتبعيض دې يعنى د قران يو څو اياتونه نازل شوى دى[1]. او دَ دغه آياتونو نه مراد ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ﴾ والا آياتونه دى[2].

**قوله:** وَقَدْ أُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ، فَاسْتَقْبِلُوهَا: او هغوى ته دَ كعبې طرف ته (په مانځه كښې دَ مخ) كولو حكم شوې دې. لهذا تاسو هم قبلې طرف ته مخ كړئى.

**قوله:** "وَقَدْ أُمِرَ" حضرت محمد ﷺ ته حكم وركړې شو[3]. هم په دې كښې دا امر موجود دې چه دَ حضورپاك نه علاوه سره دَ حضورپاك امت ته هم داحكم وركړې شوې. هم دَدې نه هم دامعلوميږى چه دامت د پاره دَ حضورپاك دَ افعالو تابعدارى كول هم هغه شان ضرورى دى څنګه چه دَ رسول الله ﷺ دَ اقوالو تابعدارى كول، ترهغه وخته پورې چه دَ دغه فعلِ نبوى باره كښې څه قرينه قائم شى چه دا فعل نبى اكرم ﷺ سره خاص دې[4].

**قوله:** "فَاسْتَقْبِلُوهَا" په دې كلمه كښې دوه احتمالات دى. رومبى احتمال دادې چه دادَ امر صيغه وى (دَ حديث ترجمه كښې هم دَدې مطابق ترجمه كړې شوې ده) اودويم احتمال دادې چه دا فعل ماضى وى په دې صورت كښې به داجمله دَ خبر دَ پاره وى چه نبى كريم ﷺ او صحابه كرامو ﷺ په مونځ كښې خپل مخ دَ قبلې طرف ته كړې دې[5].

ابن الملقن رحمه الله فرمائى چه دادَ امر صيغه لوستل دَ ماضى صيغه لوستلو نه زياته بهتر او مشهوره ده. ابن عبدالبر رحمه الله ليكلى دى چه دَ بخارى اكثر رواة هم په دې باندې دى[6].

**قوله:** وَكَانَتْ وُجُوهُهُمْ إِلَى الشَّامِ، فَاسْتَدَارُوا إِلَى الْكَعْبَةِ»: هغه وخت هغوى دَ شام (ملك) طرف ته مخ كړې شوې وو. په دې وجه هغوى دكعبې طرف ته تاؤ شو. مذكوره دواړه جملې دَ حضرت ابن عمر ﷺ دى نه چه دَ دغه خبر وركونكى سرى[7].

**دَ حديث مبارك دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه كرمانى رحمه الله ليكى چه دَدې حديث دَ ترجمة الباب دَ رومبى جزء سره مطابقت خو "فاستقبلوها" دَ امر په صيغه كښې دې. اوپه دويم جزء باندې دلالت په دې جهت سره دې چه دَمانځه شروع هغه خلقو دَ داسې قبلې طرف ته مخ كولو سره كړې وه كومه چه منسوخ شوې وه. دكوم علم چه هغوى ته نه وو. چنانچه هغوى د هيرونكو په شان شو. بيا دَ اعلان كونكى اعلان اوريدوسره هغوى ته دَ صحيح قبلې علم

[1]) شرح الكرمانى: ٦٨/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٥٢/٣، فتح البارى: ٦٥٥/١.

[2]) عمدة القارى: ٢١٩/٤.

[3]) عمدالقارى: ٢١٩/٤.

[4]) فتح البارى: ٦٥٥/١.

[5]) شرح الكرمانى: ٤/٦٨.

[6]) التوضيح لابن الملقن: ٤١٤/٥. خو علامه دمامينى رحمه الله دَدې برعكس ذكركړى دى چه دَ جمهورو رواتو مطابق دادَماضى صيغه ده اودَ أصيلى په روايت كښې دَ امر صيغه ده. وئى ګورئى: المصابيح الجامع الدمامينى: ١١٥/٢، والله اعلم بالصواب.

[7]) شرح الكرمانى: ٦٨/٤اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح للبرماوى: ١٥٣/٣،عمدة القارى: ٢١٩/٤.

اوشو. دَدې نه پس هغوی هم په مونځ کښې خپل مخ تاؤ کړو نو چه کوم مونځ دهغوی د غیر قبلې طرف ته اوشو دَ هغه مونځ هغوی ته دَ راګرځولو حکم اونه کړې شو. اوهم دغه خبره د ترجمة الباب په دويم جزء کښې ذکر ده[1].

ابن الملقن رحمه الله صرف هم دومره خبره کړې ده چه دَدې حدیث مطابق دَ انحراف قبلې په صورت کښې هم دَمونځ دَ راګرځولو حکم نه ورکول هم داسې دی لکه "مجتهد للقبلة" چه په هغه باندې هم دَ مونځ واپس راګرځول لازم نه دی[2].

دَ حدیث مبارک نه مستنبط شوی فوائد او احکام: د مذکوره حدیث شریف نه ډیر احکام مستنبط کیږی په هغې کښې څه لاندې نقل کولې شی:

① معلومه شوه چه دَ حضورپاك په توسط سره دهغوی امت ته هم داحکم ورکړې شو. هم دَدې نه داهم معلومیږی چه دَ امت دَپاره دَ حضورپاك دَ افعالو تابعداری کول هم هغه شان ضروری دی څنګه چه دَ حضورپاك دَ اقوالو تابعداری کول ترهغه وخته پورې چه دَ فعلِ نبوی باره کښې څه قرینه قائم شی چه دا فعل دَ نبی کریم ﷺ سره خاص دی[3].

② دَ افعال نبوی ﷺ تابعداری کولو کښې که دَدې عمل په وجوب باندې څه قرینه قائم وی نودَ دې فعل اتباع کول به واجب وی، په بل صورت کښې به دَ دلیل په قائمیدو باندې د تابعدارئی حکم متعین کیږی[4].

③ دَدې حدیث نه دَ خبر واحد دَمقبول کیدو علم کیږی[5].

④ داهم معلومه شوه چه که مونځ ګذار سړې دَ غیر مونځ ګذار خبره واوری نوداد هغه دَ پاره نقصانی نه ده[6].

⑤ داهم معلومیږی چه کومو کسانو ته دَ ورځې یو حکم نه وی رسیدلې نودَ هغوی نه به دَ دغه حکم تپوس پوښتنه نه کیږی ترکومې چه هغه دَ دین حکم هغوی ته اونه رسیږی[7].

⑥ دَدې حدیث نه دَاحکامو دَ منسوخ کیدو دَ جواز علم هم کیږی.[8]

---

[1]) شرح الكرماني: ٦٨/٤.

[2]) التوضيح لابن الملقن:٤١٤/٥، المصابيح الجامع للدماميني: ١١٥/٢، اللامع الصبيح بشرح الجامع التصحيح للبرماوي: ١٥١/٣، فتح الباري: ٦٥٥/١ عمدة القاري: ٢١٨/٤.

[3]) فتح الباري: ٦٥٥/١، عمدة القاري: ٢٢٠/٤.

[4]) عمدة القاري: ٢٢٠/٤.

[5]) عمدة القاري: ٢٢٠/٤الإعلام بفوائد الأحكام لابن الملقن: ٤٩٨/٢.

[6]) عمدة القاري:: ٢٢٠/٤.

[7]) الإعلام بفوائدعمدة الإحكام لابن الملقن: ٤٩٩/٢، عمدة القاري: ٢٢٠/٤. واضحه دې وی چه دا حکم دارالاسلام کښې دَ آزاد عاقل بالغ دَ پاره نه دې بلکه دهغوی دَ پاره خو بخپله دَ بلوغت نه مخکښې یا د بلوغت نه پس متصل احکامات دینیه زده کول ضروری دی. دهغوی داسې عذر چه مونږ ته خو داسې حکم نه دې رسیدلې نه دې دَ الله تعالی په نیز به مسموع نه وی. والله اعلم بالصواب.

[8]) الإعلام بفوائدعمدة الإحكام لابن الملقن: ٤٩٧/٢.

⑥ داهم معلوميږي چه د "الليلة" اطلاق په تيره شوې شپه باندې خو صحيح دې ليكن د راتلونكې شپې دپاره صحيح نه دې[1].

حديث باب: (دريم حديث) [حديث نمبر ۳۹۶]

| ٤٠٢- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ[2] صَلَّى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- الظُّهْرَ خَمْسًا فَقَالُوا أَزِيدَ فِي الصَّلَاةِ قَالَ «وَمَا ذَاكَ». قَالُوا صَلَّيْتَ خَمْسًا. فَثَنَى رِجْلَيْهِ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ. |
|---|

**دحديث ترجمه:** د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه يو ځل رسول الله ﷺ د ماسپښين مونځ وركړو او پنځه ركعتونه ئې اوكړه. نوخلقو عرض اوكړو آيا په مونځ كښې څه د زياتى حكم كړې شوې دې؟ حضورپاك اوفرمائيل څه مطلب؟ خلقو عرض اوكړو تاسو پنځه ركعته اوكړل. دې اوريدو سره حضورپاك خپلې خپې راغونډې كړې او دوه سجدې ئې اداكړې.

**تراجم رجال.** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول اووه رجال دى:

① مسدد رحمه الله: دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل الاسدى بصرى رحمه الله دې. د بعضو په نيز د دوى نوم عبد الملك بن عبد العزيز دې. د دوى مختصر حالات كشف البارى كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه، لاندې او تفصيلى حالات كتاب العلم، باب: من خص بالعلم قوما دون قوم كراهية أن لايفهموا د دويم حديث لاندې تيرشوې دى.[3]

② يحيى رحمه الله: دا يحيى بن سعيد بن فروخ القطان تميمى رحمه الله دې. د دوى كنيت ابوسعيد دې. د دوى مختصر حالات كشف البارى كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه لاندې تير شوى دى[4].

③ شعبه رحمه الله: دا امير المؤمنين شعبه بن الحجاج بن واسطى بصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې تيره شوې ده[5].

④ حكم رحمه الله: داحكم بن عتيبه الكندى الكوفي رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: السمر في العلم لاندې تير شوى دى[6].

[1] ) الإعلام بفوائدعمدة الإحكام لابن الملقن: ٥٠١/٢.
[2] ) مرتخريجه رقم الحديث: ٣٩٢.
[3] ) كشف البارى: ٢/٢، ٥٨٨/٤.
[4] ) كشف البارى: ٢/٢.
[5] ) كشف البارى: ٦٧٨/١.
[6] ) كشف البارى: ٤١٤/٤.

⑤ابراهيم رحمه الله: دا ابوعمران ابراهيم بن يزيد النخعي رحمه الله دي. دَ دوی احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم، لاندې تير شوې دى[1].

⑥ علقمه رحمه الله: دا علقمه بن قيس بن عبد الله نخعي رحمه الله دي. دَدوی احوال كشف البارى كتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم لاندې تيرشوی دی[2].

⑦ عبدالله رحمه الله: دامشهور صحابئ رسول حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دي. دَدوی احوال كشف البارى كتاب الإيمان، باب: ظلم دون ظلم لاندې تيرشوی دی[3].

**دَ حديث شرح:** دَ مذكوره حديث مكمل شرح ماقبل باب: "التوجه نحو القبلة حيث كان" كښې حديث نمبر ۴۰۱ لاندې تيره شوې ده. په دې باب كښې هم دَ هغه سابقه حديث څه ټكړه ذكركولو نه مقصود صرف داخودل يا واضح كول دی چه په غلطئ سره سلام ګرځولو نه پس حضورپاك دَ قبلې نه تاويدو سره دَخلقو طرف ته مخ كړو او كيناستو. په سهوه باندې خبردار كولو نه پس دوباره قبلې طرف ته تاؤ شو او سجده سهوه ئې اوكړه. كه چرته دَ قبلې نه تاويدو سره حضورپاك دَ مونځ نه وتلې وې نوصرف په سجده سهوه باندې به ئې اكتفاء نه كوله بلكه مونځ به ئې راګرځولو ليكن حضورپاك داسې اونه كړل. لهذا دَدې نه معلومه شوه چه په خطا دَ قبلې نه تاويدل مونځ واپس راګرځول نه واجبوی[4].

**دَحديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حديث دَترجمة الباب سره مناسبت ښكاره دې چه حضورپاك سهوه شو او حضورپاك صرف سجده سهوه اوكړه مونځ ئې راؤنه ګرځولو اوهم دغه څيز په ترجمة الباب كښې ذكردې[5].

---

[1]) كشف البارى: ٢٥٣/٢.
[2]) كشف البارى: ٢٥٦/٢.
[3]) كشف البارى: ٢٥٧/٢.
[4]) عمدة القارى: ٢٢٠/٤..
[5]) عمدة القارى: ٢٢٠/٤.

بسم الله الرحمن الرحیم

# ۱۱- أبواب المساجد

**ماقبل سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ احکام قبله نه پس اوس دَ ابواب مساجد په مینځ کښې مناسبت واضح دې. دَدې باب نه واخله تر باب سترة الامام پورې دَ ټولو ابوابو تعلق هم دَمساجدو سره دې.[1]

## ۱- بَابُ حَكِّ البُزَاقِ بِاليَدِ مِنَ المَسْجِدِ

داباب په جمات کښې دَ پریوتلې توکانړې او بلغم په خپلو لاسونو سره دَ صفا کولو په بیان کښې دې.

**دَ ترجمة الباب مقصد:**

**دَحضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه چونکه دَ قبلې ذکرشروع وو نو امام بخاری رحمه الله ۵۵ ابواب مساجد سره متعلق دَ باب (حك البزاق بالید من المسجد نه ترباب المساجد علی طرق المدینة) منعقد کړل او دَ ټولو خلاصه داده چه دَ مساجدو باره کښې تشدیدات اووعیدات په کثرت سره راغلی دی. په یو روایت کښې دی چه یو سړی په جمات کښې فضول خبرې کولې. حضورپاك اوفرمائیل «لا ردها الله علیك» او په کنزالعمال کښې دَ جماتونو په آدابو کښې داسې روایات ذکرکړې شوی دی دَ کوم تقاضا چه داده چه په جماتونو کښې دې هیڅ قسم کلام اونه کړی صرف تلاوت قرآن، دَ الله ذکر او مونځ دې اوکړی. چنانچه په یو روایت کښې دی چه په جمات کښې خندا په قبر کښې دَ تیارو سبب دې. یو ځل حضرت عمر رضی الله عنه په مسجدنبوی کښې دوه کسان په زوره خبرې کولو باندې اولیدل نو وئی فرمائیل چه که تاسو دَدې ځائی اوسیدونکې وئی نو تاسو به مې وهلی وئی. نو امام بخاری رحمه الله ابواب المساجد اوتړل او په دې کښې ئی دوه څیزونه ذکرکړی دی. یو خو هغه چه دَ امام بخاری رحمه الله په نیز په آدابو کښې داخل دی. هغه ئی ثابت کړو لکه "حك بزاق" او بل ئی دَ هغه څیزونو استثناء اوکړه دَ کوم چه په جمات کښې کول جائز دی. لکه چه دَدې عموم ئی مقید کړو لکه چه "من دعا إلی الطعام فی المسجد".

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دَ "ید" قید لګولې دې دَ "ید" ذکر صرف په یو روایت کښې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په ترجمه کښې تعمیم دې دَ بالید او بغیره، "ید" احترازی قید نه دې اودَ بعضې علماؤ رائې داده چه امام بخاری رحمه الله دَ "بالید" په قید سره "تولی بنفسه" طرف ته اشاره اوکړه چه پخپله کول پکار دی. اوس ئی که په لاس سره لرې کوی او که په بل څیز سره.

اودَ حضرت شاه ولی الله صاحب رحمه الله رائې مبارك په خپلو تراجمو کښې داده چه دَ امام

[1]) عمدة القاري: ۲۲۰/٤.

بخاري رحمه الله مقصد كله كله ابواب نه وي بلكه روايات وي. چنانچه دلته هم غرض ابواب نه دي بلكه روايات دي او باب ئې دَ رواياتودَ الفاظو لحاظ كولوسره دَ تفنن په توگه اوترلو گنې دَ دواړه بابونو (باب البزاق او باب المخاط) غرض هم يو دې او هغه ده ازاله.

اوزما رائې داده چه امام بخاري رحمه الله دوه بابونه ترلوسره بزاق ومخاط كښې فرق اوكړو چه بزاق كښې خو يد كافي كيږي ځكه چه په دې كښې دننه لزوجت نه وي اومخاط كښې يد نه كافي كيږي بلكه ددې د پاره دَ حصى وغيره ضرورت وي ځكه چه په دې كښې لزوجت وي.[1]

**دَعلامه شبيراحمدعثماني رحمه الله رائې:** علامه شبيراحمد عثماني صاحب رحمه الله فرمائي چه دَ "حك البزاق باليد" دوه مطلبونه كيدې شي ① بعضو وئيلي دي چه "باليد" دَ "بالعصا ونحوه" په مقابله كښې دې يعنى لرگى وغيره سره نه بلكه بغيردَ واسطې په لاس سره دې هغه لرې كړي. ② بعضو وئيلي دي چه "باليد" دَ "بالغير" په مقابله كښې دې يعنى پخپله په خپل لاس سره دې هغه لرې كړي، بل ته دې حكم نه كوي.[2]

**دَعلامه ابن رجب الحنبلي رحمه الله رائې:** علامه ابن رجب الحنبلي رحمه الله فرمائي چه دَ امام بخاري رحمه الله دَدې تبويب نه داخبره معلوميږي چه حضورپاك پخپله اوبغيردَ څه حائله په خپل لاس مبارك سره هغه بلغم صفا كړو. په دې باندې دليل دادې چه دَدې باب نه پس ئې باب "حك المخاط بالحصى من المسجد" په عنوان سره قائم كړې شوې دې. يعنى راتلونكى باب كښې دَ "بالحصى" قيد او په دې باب كښې دَ "باليد" قيد احترازى دې نه چه واقعى.[3]

---

[1] تقرير بخارى شريف: ۲/۱۵۰-۱٤۹، الكنزالمتوارى: ٤/۹۷. سراج القاري كښې دَحضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله يو بل تقرير نقل دې: "حك البزاق باليد" په تشريح كښې حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه دَدې باب لاندې امام بخاري رحمه الله درې روايتونه نقل كړي دي ليكن دَ "يد" ذكر صرف په ړومبى روايت كښې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله فرمائي "أى سواء كان، بآلة أم لا" مطلب دادې چه دَ يد قيد، قيد احترازى نه دې بلكه په ترجمه كښې تعميم دې كه هغه په لاس وي اوكه په بل څيز سره وي مقصد دغه گندگى دَ الله تعالى دَ كور نه لرې كول دي. صحيح مسلم او سنن ابوداؤد كښې دَ حضرت جابر رضي الله عنه بيان دې چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم زمونږ جمات ته تشريف راوړو اودَ حضورپاك په لاس مبارك كښې عرجون (دَكهجورې دَ غنچې جړه كومه چه كږه وي او دَ غنچې پرې كيدو باندې په ونه كښې اوچيدو سره باقي پاتې كيږي) ابن طاب وو. په دې كښې دَ حضورپاك نظر مبارك په جمات كښې قبلې طرف ته پروت بلغم باندې پريوتلو نو حضورپاك هغه دَ عرجون په ذريعه صفا كړو. دې نه پس زمونږ طرف ته متوجه شو وئې فرمائيل: (أيكم يحب أن يعرض الله عنه بوجهه، ثم قال: إن أحدكم إذا قام يصلى، فإن الله قبل وجهه، فلا يبصقن قبل وجهه، ولا عن يمين، وليبزق عن يساره تحت رجله اليسرى، فإن عجلت به بادرة، فليقل بثوبه هكذا، ووضعه على فيه ثم دلكه، الحديث). دَدې نه معلومه شوه چه دَ حضورپاك په لاس مبارك كښې چه كوم لرگې وو دَ هغې په مدد سره ئې هغه بلغم صفا كړو. (سراج القاري: ۲/٤٤۹-٤٤۸).

[2] فضل الباري: ۳/۱۱٦.

[3] فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۳/۱۰۸.

حدیث باب (رومبی حدیث) [حدیث نمبر ۳۹۷]

۴۰۵- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ [۱] أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - رَأَى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ، فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِ حَتَّى رُئِيَ فِي وَجْهِهِ، فَقَامَ فَحَكَّهُ بِيَدِهِ فَقَالَ «إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ فِي صَلَاتِهِ، فَإِنَّهُ يُنَاجِي رَبَّهُ - أَوْ إِنَّ رَبَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ - فَلَا يَبْزُقَنَّ أَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهِ، وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ، أَوْ تَحْتَ قَدَمَيْهِ». ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ فَبَصَقَ فِيهِ، ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ، فَقَالَ «أَوْ يَفْعَلُ هَكَذَا».

**ترجمه حدیث:** د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه یو ځل حضورپاک د قبلې طرف ته دیوال باندې بلغم لګیدلې اولیدلو نو په حضورپاک باندې دا خبره ډیره سخته اولګیدله تردې چه د حضورپاک په مخ مبارک باندې د دې اثر ښکاره شو. بیا حضورپاک په ولاړه باندې هغه په خپل لاس مبارک سره اوتوګلو. بیائې اوفرمائیل په تاسو کښې چه څوک د مونځ د پاره اودریږی نو هغه خپل پروردګار سره مناجات کوی. نور ئې اوفرمائیل لکه چه بیشکه د هغه رب د هغه او د قبلې په مینځ کښې وی. په دې وجه دې یو کس هم خپل د قبلې طرف ته هیڅ کله نه توکئ او خپل ګس طرف ته یا د خپو لاندې د توکلو ګنجائش شته. د دې نه پس حضورپاک د خپل څادر مبارک غاړه اونیوله او په هغې کښې اوتوکل او وئی مږل او وئی فرمائیل یل دې داسې کوی.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف د ټولو رجالو ذکر ماقبل کښې تیرشوې دې [۲].

**شرح حدیث:** أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ، فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِ یو ځل حضورپاک د قبلې په دیوال باندې بلغم لګیدلې اولیدلو نو په حضورپاک باندې دا خبره ډیره سخته تیره شوه.

**قوله:** نُخَامَة- ابن اثیر رحمه الله لیکلی دی چه نخامه هغه بلغم وی چه د حلق د آخر او د خاء معجمه د مخرج نه راوځی. [۳] علامه طیبی رحمه الله هم دغه ذکرکړی دی [۴].

لیکن لږم یاد کښې راځی چه ملا علی قاری رحمه الله په دې رد کړې دې [۵]. او په مُغرب کښې ئې

---

[۱] مر تخریجه فی کتاب الوضوء باب: البصاق والمخاط ونحوه فی الثوب، رقم الحدیث: ۲۴۱.

[۲] د مذکوره حدیث مبارک مکمل سند کتاب الإیمان، باب: خوف المؤمن أن یحبط عمله کښې تیرشوې دې. د رجال د احوال د پاره اوګورئ: کشف الباری: ۵۷۱/۲.

[۳] النهایة فی غریب الحدیث والأثر، المادة: ن خ م: ۷۲۳/۲.

[۴] الکاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطیبی، کتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحدیث: ۷۴۶، ۲۵۹/۲.

[۵] ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه د علامه ابن اثیر رحمه الله خبره صحیح نه ده ځکه چه د خاء معجمه مخرج اقصی الحلق نه بلکه أدق الحلق دی. (یعنی د ابن اثیر رحمه الله د قول مطابق نخامه هغه توکانړې یا بلغم دې کوم چه د اقصی حلق او مخرج خاء نه راوځی، خو مخرج خاء اقصی حلق نه بلکه ادق حلق دې، چنانچه توکانړې په یو وخت د دغه دواړو مقاماتو نه نشی وتلې. مرقاة المفاتیح، کتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحدیث: ۷۴۶، ۴۲۰/۲.

لیکلی دی چه هغه بلغم چه د پوزې سونړ کولو په وخت د پوزې نه اوځی([1]).
په دې باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه نخامه باره کښې ونیلی شوی دی چه دې نه مراد هغه بلغم دې کوم چه د سینې نه اوځی اودا هم ونیلی شوی دی چه که دا لفظ په عین سره وی یعنی نخاعة نودې نه مراد د سینې نه وتونکې بلغم دې او که دا لفظ په میم سره وی یعنی نخامة نو دې نه مراد د سر د طرف نه راتلونکې بلغم دې([2]).

**قوله:**"فی القبلة" نه مراد هغه دیوال دې کوم چه د قبلې طرف ته وو([3]).

**قوله:**"فشق ذلك" د ذلك مشارٌالیه به هغه منظر شی کوم چه د حضورپاك مخې ته د قبلې د دیوال راغلې وو. یعنی دا منظر په حضورپاك باندې ډیر سخت تیر شو یا د مشقت سبب جوړ شو.

**قوله:**حَتّٰی رُئِیَ فِی وَجْهِهٖ، فَقَامَ فَحَكَّهٗ بِیَدِهٖ: تردې چه د حضورپاك په مخ مبارك باندې د دې اثر رانښکاره شو. بیا حضورپاك اودریدو او دا ئې په خپل لاس مبارك سره اوتوګل.

**قوله:**"رُئِیَ" فعل مجهول دې، د دې ضمیر کوم چه به نائب فاعل جوړیږی. د دې مرجع به د "فشق ذلك علیه" معنی شی کراهت، ناخوښی اوبد لګیدل وغیره([4]). په روایاتو کښې دا هم ذکر دې چه د دې منظر د وجې نه د ناخوښۍ اثرات د حضورپاك په مخ مبارك باندې اولیدلې شو([5]).
او د سنن النسائی په روایت کښې دی چه د غصې د وجې نه د حضورپاك مخ مبارك تك سور شو([6]).. دې نه علاوه په صحیح بخاری کښې "العمل فی الصلاة" او "الأدب" کښې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه یو حدیث دې په کوم کښې چه دی چه نبی کریم ﷺ د دې منظر د وجې په جمات والو باندې غصه هم شو([7]).

---

[1]) المغرب فی ترتیب المعجم، المدة: ن خ م: ۲۹٤/۲.
[2]) فتح الباري: ۶۵۸/۱.
[3]) شرح الکرمانی: ۷۰/٤،مرقاة المفاتیح، کتاب الصلاة،باب المساجد ومواضع الصلاة،رقم الحدیث: ۷٤۶، ۴۲۰/۲.
[4]) شرح الکرمانی: ۷۰/٤ مرقاة المفاتیح، کتاب الصلاة،باب المساجد ومواضع الصلاة،رقم الحدیث: ۷٤۶، ٤۲۰/۲.
[5]) اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ۱۵۵/۳، عمدة القاری: ۲۲۱/٤.
[6]) أخبرنا إسحاق بن إبراهیم قال: حدثنا عائذ بن حبیب قال: حدثنا حمید الطویل، عن أنس بن مالك قال: رأی رسول الله صلی الله علیه وسلم نخامة فی قبلة المسجد، فغضب حتی احمر وجهه، فقامت امرأة من الأنصار فحکتها وجعلت مکانها خلوقا، فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: ما أحسن هذا. (سنن النسائی، کتاب المساجد، تخلیق المساجد، رقم الحدیث: ۷۲۸)
[7]) حدثنا سلیمان بن حرب، حدثنا حماد، عن أیوب، عن نافع، عن ابن عمر رضی الله عنهما: أن النبی صلی الله علیه وسلم رأی نخامة فی قبلة المسجد، فتغیظ علی أهل المسجد، وقال: إن الله قبل أحدکم، فإذا کان فی صلاته فلا یبزقن أو قال: لا یتنخمن، ثم نزل فحتها بیده وقال ابن عمر رضی الله عنهما: إذا بزق أحدکم فلیبزق علی یساره. (صحیح البخاری، أبواب العمل فی الصلاة، باب: مایجوز من البصاق والنفخ فی الصلاة، ......

**قوله:** "فَقَامَ، فَحَكَّهُ بِيَدِهِ" په دې جمله کښې اشاره ده چه د قوم سردار دهغوی خادم وی. په دې وجه نبی ﷺ پخپله اودریدو او په خپل مبارک لاس باندې ئې صفا کړو اودا صفا کول د الله تعالی د پاره تواضع او عاجزی اختیارول وو. اود الله تعالی کور د جمات سره د محبت وجه وه اود ضعیف امت د طرف نه دعوض په توګه وو[1].

**قوله:** فَقَالَ: «إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ فِي صَلَاتِهِ فَإِنَّهُ يُنَاجِي رَبَّهُ» بیائی اوفرمائیل په تاسو کښې چه څوك کله د مانځه د پاره اودریږی نو هغه خپل پروردګار سره مناجات کوی.

**قوله:** "إِذَا قَامَ فِي صَلَاةٍ" په دې جمله کښې تعمیم دې چه هغه په جمات کښې مونځ کونکې وی یا د جمات نه علاوه چرته بل ځائی کښې مونځ اداکونکې وی[2].

**قوله:** "فَإِنَّهُ يُنَاجِي رَبَّهُ" یعنی کله چه مونځ ګذار په مانځه کښې قراءت، ذکر او دعاکوی نو دې په ژبه د الله تعالی سره خبرې کوی. اوکله چه رکوع سجده او قعده وغیره کښې د یو حالت نه بل حالت وربدلیږی نو د خپل بدلیدو په احوالو سره د الله تعالی سره خبرې کوی[3].

علامه کرمانی رحمه الله لیکلی دی چه کلمه "فإنه" د کأنه په معنی ده. د کوم معنی چه به دا شی لکه چه هغه د خپل رب سره مناجات کوی[4].

**قوله:** أَوْ إِنَّ رَبَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ، فَلَا يَبْزُقَنَّ أَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهِ: او وئی فرمائیل لکه چه بیشکه د هغه رب، د هغه او د قبلې په مینځ کښې وی. په دې وجه دې یو کس د خپلې قبلې طرف ته هیڅ کله توکانړې نه توکی. د مستملی اوحموی په نسخه کښې "أوإن ربه" په ځائی "وإن ربه" دې.[5] "أوإن ربه بينه وبين القبلة" علامه کرمانی رحمه الله لیکلی دی چه د دې جملې ظاهری معنی مراد اخستل خو ممکن نه دی ځکه چه الله تعالی خو په یو مکان وغیره کښې د راکوزیدو وغیره نه بې نیازه دې نو دلته صرف تشبیه مراد ده چه دې وخت لکه چه الله تعالی د دغه مونځ ګذار او د قبلې د دیوال په مینځ کښې موجود دې[6].

علامه بغوی رحمه الله شرح السنة کښې د دې جملې په معنی کښې لیکی چه ظاهراً خو مونځ ګذار قبلې ته مخ کولو سره اودریږی. لیکن په دغه اودریدو کښې هغه د الله تعالی قصد کوی

........ رقم الحديث: (١٢١٣). حدثنا موسى بن إسماعيل، حدثنا، جويرية، عن نافع، عن عبدالله رضى الله عنهما، قال: بينا النبى صلى الله عليه وسلم يصلى، رأى فى قبلة المسجد نخامة، فحكها بيده، فتغيظ، ثم قال: إن أحدكم إذا كان فى الصلاة، فإن الله حيال وجهه، فلا يتنخمن حيال وجهه فى الصلاة. (صحيح البخارى، كتاب الأدب، باب: مايجوز من الغضب والشدة لأمرالله، رقم الحديث: ٦١١١).

[1]) مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ٧٤٦، ٤٢٠/٢.

[2]) مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ٧٤٦، ٤٢٠/٢.

[3]) مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ٧٤٦، ٤٢٠/٢.

[4]) شرح الكرمانى: ٧٠/٤.

[5]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٥٥/٣، فتح البارى: ٦٥٨/١

[6]) شرح الكرمانى: ٧٠/٤.

نولكه چه هغه هم د الله تعالى په مخكښې ولاړ دې يعنى د دغه مونځ ګذار اود قبلې د ديوال په مينځ كښې الله تعالى موجود دې. چنانچه حضورپاك د دغه طرف د خيال د ساتلو اود توكاڼړو توكلو وغيره نه دَدې د حفاظت كولو حكم وركړې دې[۱].

علامه خطابى رحمه الله فرمائيلى دى چه دَدې جملې معنى داده چه د مونځ ګذار قبلې ته د مخ كولو مقصد قبله نه ده بلكه د هغه رب دې نولكه چه دمونځ ګذار رب د هغه اود قبلې په مينځ كښې دې. هم په دې وجه حكم وركړې شو چه دَدغه طرف حفاظت دې اوكړې شى دغه طرف ته دې توكاڼړې توك نه كړې شى او نه دې متيازې اوكړې شى[۲].

**قوله:** فَلَا يَبْزُقَنَّ أَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهِ - د قبلې طرف ته د اشرف الجهات كيدو په سبب د هغې طرف ته د توكاڼړې توكلو نه په تاكيد سره منع كړې شوې ده[۳].

ابن بطال رحمه الله د امام مهلب رحمه الله طرف ته نسبت كولو سره ليكلى دى چه په دې حكم كښې د قبلې اعزاز، اكرام او هغه د ګندګئ وغيره نه پاك صفا ساتل دى. ځكه چه مونځ ګذار خپل رب سره مناجات كوى نو په هغه باندې لا زم دى چه د قبلې داسې اكرام اوكړى لكه د مخلوقاتو سره دَخبرو اترو كولو په وخت چه د هغوى طرف ته مخ كولو سره خبرې اترې كوى. يعنى څنګه چه د دغه مخلوقاتو اكرام كولې شى هم دغه شان دې د الله تعالى هم اكرام اوكړى ځكه چه الله تعالى خو د مخلوقاتو په مقابله كښې د ډير زيات اكرام لائق دې.

د طاؤس تابعى رحمه الله قول دې چه د الله تعالى د قبلې اكرام كوئ داسې چه دهغې طرف ته مخ كولوسره مه توكئ. نبى كريم ﷺ داخبره واضحه كړه چه دَقبلې طرف ته د توكاڼړو توكلو نه د ممانعت وجه د الله تعالى سره مناجات كول دى كوم چه مونځ ګذار په خپل مونځ كښې د قبلې طرف ته مخ كولوسره د الله تعالى سره كوى. څومره لوئى ظلم او بې ادبى ده چه يو سړې د رب الارباب او شهنشاه په مخكښې ولاړ وى اود هغه طرف ته مخ كولو سره توكاڼړې اوتوكى[۴].

**قوله:** وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمَيْهِ: آو خپل ګس طرف ته يا دخپلو خپو لاندې دتوكلو ګنجائش شته.

**قوله:** عَنْ يَسَارِهِ - په دَفعل محذوف "لِيَبْصُقْ" سره متعلق وى.[۵]

---

[۱]) شرح السنة للبغوى، كتاب الصلاة، باب: كراهية البزاق فى المسجد ونحو القبلة، رقم الحديث:۴۹۲، ۳۱۲/۲. علامه طيبى رحمه الله هم دغه خبره د علامه بغوى رحمه الله طرف ته د نسبت كولو نه بغير ذكركړې ده. وګورئ: الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبى، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ۷۴۶، ۲/۲۵۹.

[۲]) أعلام الحديث للخطابى: ۳۸۶/۱.

[۳]) مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ۷۴۶، ۴۲۰/۲.

[۴]) شرح ابن بطال: ۶۸/۲.

[۵]) مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ۷۴۶، ۴۲۰/۲.

**قوله:** تَحْتَ قَدَمَيْهِ: كښې دَ قدم نه مراد هم ګس قدم دې.[۱]
علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه ګس طرف ته دَ توكلو حكم ئې ځكه وركړو چه په دې كښې دَ ښي طرف تحفظ هم وو ځكه چه په بعضې رواياتو كښې دا هم راغلي دي چه ښي طرف ته مه توكئ ځكه چه ښي طرف ته فرښته وي. او ګس طرف ته دَ توكلو حكم هم هغه وخت دې كله چه ګس طرف ته بل مونځ ګذار نه وي يعني كه چرته ګس طرف ته هم څوك مونځ ګذار وي نو بيا دې ګس او ښي يو طرف ته هم نه توكي بلكه دَ خپو لاندې يا په خپله كپړا كښې دې اوتوكي ځنګه چه حضورپاك اوكړل[۲].
علامه نووي رحمه الله ليكلي دي چه دَ ضرورت په وخت په دغه دواړو طرفونو كښې دَ توكلو حكم هغه وخت دې كله چه مونځ بهر دَ جمات نه ادا كولې شي خو چه كله مونځ په جمات كښې ادا كولې شي او بيا دَ توكلو ضرورت راغلو نو صرف هم په خپله كپړا كښې دې توكي، ښي، ګس طرف ته يا دَ خپو لاندې دې نه توكي[۳].
دَ علامه نووي رحمه الله په دې خبره باندې ملاعلي قاري رحمه الله دَحافظ ابن حجر رحمه الله دَ طرف نه يو اشكال نقل كولو سره دَ هغې جواب وركړې دې. چنانچه فرمائي: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه [دَعلامه نووي رحمه الله] په دې توجيه كښې نظر دې. ځكه چه كله مونځ ګذار په جمات كښې څه كپړا يا جائي نماز وغيره خورولو سره مونځ كوي نو دَ ضرورت په وخت دَ هغه دَ پاره جائز دي چه خپل ګس طرف ته يا خپو لاندې دې توكي ځكه چه مقصود دا وو چه دَتوكانړو، قرينګ يا بلغم نه څه هم په جمات كښې پرينوځي لكه ځنګه چه دلته دې مونځ ګذار په خپله كپړا باندې پريوځي نه چه دَ جمات په فرش باندې.
په دې باندې ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه دَ علامه نووي رحمه الله ذكركړې شوي تفصيل كښې دَ څه قسم اشكال نه پيدا كيږي ځكه چه دَ حديث شريف دَ جملې "إلى ثوبه" دَ مطلق كيدو نه چه څه مفهوم كيږي هغه صحيح او صريح دې په دې كښې دَ څه قسم نظر نشته دې. عملي صورت ددې جملې دا دې چه حضورپاك دَ خپل څادر مبارك يو ګوټ اونيولو او په هغې كښې ئې اوتوكل. ځكه چه په عامه توګه باندې خلق په مونځ كښې جدا دَ ځان لاندې څه كپړا نه خوروي[۴]. ابن الملقن رحمه الله هم دَ علامه نووي رحمه الله تائيد كړې دې[۵].
**قوله:** ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ، فَبَصَقَ فِيهِ ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ، فَقَالَ: «أَوْ يَفْعَلُ هَكَذَا»:
دې نه پس حضورپاك دَ خپل څادر مبارك يو ګوټ اونيولو او په هغې كښې توكلو سره

---

[۱]) كما فى حديث أبى هريرة فى الباب الذى بعده.
[۲]) أعلام الحديث للخطابي: ۳۸۷/۱-۳۸۶.
[۳]) شرح النووي، كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب: النهى عن البصاق فى المسجد فى الصلاة، رقم الحديث: ۵۵۰، ۴۱/۵.
[۴]) مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة، رقم الحديث: ۷۴۶، ۴۲۱/۲.
[۵]) التوضيح لابن الملقن: ۴۱۹/۵.

او مرلو او ارشادئی او فرمائیلو یا دې داسې کوی.

**قوله**: "ثُمَّ أَخَذَ رِدَاءَهُ" نه واخله تر آخر پورې په وخت د ضرورت د بلغم د غورزولو طریقه اوخودلې شوه. اودا د بیان بالفعل د قبیل نه دې ځکه چه دا طریقه د سامع د پاره اوقع فی النفس وی[1].

**قوله**: "أَوْيَفْعَلُ" دَدې" عطف به د لکن حرف استدراك نه پس په فعل محذوف باندې وی. تقدیری عبارت به داسې شي: "ولکن یبزق عن یساره او یفعل هکذا"[2]. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه کلمه د او د شك د پاره نه ده بلکه دتنویع د پاره ده. د کوم معنی چه به دا وی چه هغه ته په دواړو عملونو کښې اختیاردې کوم هم چه کوی[3].

دَحدیث مبارك دَدې جملې نه معلومیږی چه توکل کونکی ته د دواړو کارونونه د یو د کولو اختیار دې لیکن د ځلورو ابوابو نه پس ذکرشوی یو باب کښې د راتلونکی روایت د وجې مصنف دغه آخری عمل بهتر ګرځولې دې[4].

**دَ بلغم دَ پاکوالی یا ناپاکوالی حکم**: دَ حدیث شریف په آخره کښې دَ ذکرکړې شوی طریقې نه معلومیږی چه بلغم پاك وی نجس نه وی. اودا حکم اجماعی دې. دَدې خلاف چه دکومو ائمه حضراتو چه څه اقوال دی هغه دَ شاذ په حکم کښې دی. لکه قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه توکل دَ هغه سرې په حق کښې ګناه ده چه هغه ښخ نه کړی اوکه یو سړې دَ توکلو نه پس هغه په خاوره یا شګه کښې ورښخ کړی یا داسې ممکن نه کیدو دَ وجې په څه ځیز هغه اوتوګی نو دَ هغه په حق کښې ګناه نشته[5].

**دَحدیث شریف دَ ترجمة الباب سره مناسبت**: علامه کرمانی رحمه الله فرمائی اګرچه په ترجمة الباب کښې دَ حك بالید ذکر دې لیکن حدیث باب کښې دَ "حك" تصریح خو شته اودَ بالید تصریح نشته دې. لیکن متبادر الی الفهم داخبره موجود ده چه حضورپاك به دَ دیوال نه هغه بلغم وغیره هم په خپل لاس سره صفا کړې وی[6].

**دَ حدیث شریف نه مستفاد امور او اداب**: دَمذکوره حدیث شریف نه دَ ډیرو امورو او آدابو استنباط کیږی دَ هغې نه یو څو لاندې ذکرکولې شی:

① دَدې حدیث شریف نه دَ نبې طرف دَ ګس طرف نه افضل کیدل معلومیږی[7].

② دَ بدن فضلات دَ جمات نه دَ لرې ساتلو حکم معلومیږی[8].

---

[1]) فتح الباري: ٦٥٩/١.

[2]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٥٦/٣.

[3]) عمدة القاري: ٢٢٢/٤.

[4]) فتح الباري: ٦٥٩/١.

[5]) التوضيح لابن الملقن: ٤١٩/٥.

[6]) شرح الكرماني: ٧١/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٥٦/٣، عمدة القاري: ٢٢١/٤.

[7]) التوضيح لابن الملقن: ٤١٩/٥، عمدة القاري: ٢٢٢/٤.

[8]) عمدة القاري: ٢٤٢/٤.

③ دَ قبلې دَ طرف تعظيم هم معلوميږي.([1])

④ دَ جمات دَ صفائي مستحسن کيدل معلوميږي.([2])

⑤ دَ توکانړو، بلغم وغيره پاك کيدل معلوميږي ځکه چه مونځ ګذار ته په حالت دَ مانځه کښې په خپله کپړا کښې دَ توکلو حکم دَدې أمر تقاضا کوی چه هغه دې پاك وی. ګنی دَ مونځ ګذار کپړا ناپاکه کيدل او دَ دغه نجس کپړې دَ وجې به مونځ نه کيدل لازم شی دکوم چه هيڅوك هم قائل نه دی([3]).

حديث باب: (دويم حديث)[حديث نمبر ۳۹۸]

۴۰۶ -حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ.([4]) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَأَى بُصَاقًا فِي جِدَارِ الْقِبْلَةِ فَحَكَّهُ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ «إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ يُصَلِّي، فَلَا يَبْصُقْ قِبَلَ وَجْهِهِ، فَإِنَّ اللَّهَ قِبَلَ وَجْهِهِ إِذَا صَلَّى».

**دحديث ترجمه:** د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبي کريم ﷺ د قبلې طرف ته ديوال باندې بلغم لګيدلې اوليدلو نو هغه ئې اوتوکل. بيائې خلقو طرف ته متوجه کيدو سره ارشاد اوفرمائيلو کله چه تاسو کښې څوك مونځ کوی نو خپلې مخې ته دې نه توکی، ځکه چه الله تعالى دَ مونځ ګذار مخې ته وی.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حديث شريف په سند کښې ټول څلور رجال دی:

① عبد الله بن يوسف رحمه الله: دا عبد الله بن يوسف تنيسی دمشقی رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی په دويم حديث کښې او تفصيلی احوال کتاب العلم، باب: ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوې دې([5]).

② مالك بن انس رحمه الله: دا مشهور امام مالك بن انس بن مالك الاصبحی المدنی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی په دويم حديث کښې او تفصيلی تعارف کتاب

---

[1]) عمدة القاری: ۲۲۲/۴.

[2]) عمدة القاری: ۲۲۲/۴.

[3]) عمدة القاری: ۲۲۲/۴.

[4]) رواه البخاری أيضًا فی صفة الصلاة، باب: هل يلتفت لأمر ينزل به، رقم الحديث: ۷۵۳، وفی العمل فی الصلاة، باب: مايجوز من البصاق والنفخ فی الصلاة، رقم الحديث: ۱۲۱۳، وفی الأدب، باب: ما يجوز من الغضب والشدة لأمرالله تعالى، رقم الحديث: ۶۱۱۱. ورواه مسلم فی صحيحه فی المساجد، باب: النهی عن البصاق فی المسجد، رقم الحديث: ۵۴۷. ورواه أبوداؤد فی سننه فی الصلاة باب: فی کراهية البزاق فی المسجد، رقم الحديث: ۴۷۹. ورواه النسائی فی سننه فی المساجد، باب: النهی عن أن يتنخم الرجل فی قبلة المسجد، رقم الحديث: ۷۲۵. وفی جامع الأصول، حرف الميم، الکتاب السادس فی المساجد وما يتعلق به، الفصل الثانی فی أحکام تتعلق بالمسجد، الفرع الأول فی البصاق، رقم الحديث: ۸۷۲۹، ۱۹۱/۱۱.

[5]) کشف الباری: ۲۸۹/۱، ۱۱۳/۴.

الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوې دي[۱].

۳ نافع رحمه الله: دا مولی عبدالله بن عمر القرشی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: ذکر العلم والفتيا فی المسجد لاندې تير شوی دی[۲].

۴ عبدالله بن عمر رضي الله عنهما: دا مشهور صحابي رسول دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خوئی حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: الإيمان وقول النبی صلی الله عليه وسلم: بنی الإسلام علی خمس کښې تير شوی دی[۳].

دَ حديث شرح: "فِي جِدَارِ الْقِبْلَةِ" کښې دَ القبلة الف لام دَ عهد ذهنی دَ پاره دې يعنی فی جدار قبلة المسجد، دَمستملی په روايت کښې "فی جدار المسجد" الفاظ دی[۴].

هم په صحيح البخاری کښې دَ کتاب الصلاة په آخر کښې دَ "ايوب عن نافع" په طريق سره يو روايت موجود دې په هغې کښې دَ "فی قبلة المسجد" الفاظ دی. او په دې روايت کښې دَ "ثم نزل، فحتها بيده" الفاظو زياتوالي هم دې. دَدې زياتوالی نه معلوميږی چه حضورپاک خطبه ارشاد فرمائيله کوم وخت چه حضورپاک په ديوال باندې بلغم اوليدلو[۵].

قوله: "فَإِنَّ اللَّهَ قِبَلَ" يعنی الله تعالی ستاسو دَ مخ په طرف کښې دې. په دې حديث شريف کښې دا جمله دَ تشبيه په توګه وئيلې شوې ده. يعنی لکه چه الله تعالی دَ مونږ ګذار مخ ته مخامخ دې. لهذا دغه طرف ته مه توکئ. ځکه چه په دې عمل کښې دَ هغه پاک ذات تخفيف لازميږی.[۶]

دَ حديث مبارک دَ ترجمة الباب سره مناسبت: دَدې حديث شريف به دَ ترجمة الباب سره مناسبت په دې حيثيت سره قائميږی چه په دې حديث کښې دَ "حك" نسبت دَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم طرف ته دې نو په پوهه کښې راتلونکې خبره هم داده چه دَ دغه بلغم توکل به هم دَ لاس په ذريعه شوې وی.

دويمه خبره دا چه په حديث کښې "جدار القبلة" نه مراد "جدار قبلة مسجد رسول الله صلی الله عليه وسلم" دې. په دې تقدير سره به هغه اعتراض هم ختم شی کوم چه دَ بعضې کسانو دَ طرف نه کړې شوې دې چه دَدې حديث دَترجمة الباب دَکل سره نه بلکه دَ جزء سره مطابقت دې ځکه

---

[۱] کشف الباری: ۲/۱۸۰/۲۹۰.
[۲] کشف الباري: ۱/۶۴۸.
[۳] کشف الباري: ۱/۶۳۷.
[۴] عمدة القاري: ۴/۲۲۳.
[۵] صحيح البخاري، العمل فی الصلاة، باب: مايجوز من البصاق والنفخ فی الصلاة، رقم الحديث: ۱۲۱۳.
[۶] عمدة القاري: ۴/۲۲۳.

چه ترجمة الباب كنبې "جدار المسجد" ذكر دې او حديث كنبې "جدار القبلة" ذكر دې[1].

حديث باب: دريم حديث [حديث نمبر ۳۹۹]

۴۰۷- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ[2] أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- رَأَى فِي جِدَارِ الْقِبْلَةِ مُخَاطًا أَوْ بُصَاقًا أَوْ نُخَامَةً فَحَكَّهُ.

**د حديث ترجمه:** د ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د قبلې طرف ته ديوال باندې ترينګ، توكانړې يا بلغم لګيدلې اوليدلو نو هغه ني اوتوګلو.

**تراجم رجال:** دَ مذكوره حديث په سند كنبې ټول پنځه رجال دي:

① عبدالله بن يوسف رحمه الله: دا عبد الله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى دَ دويم حديث او تفصيلى احوال كتاب العلم، باب: ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوى دى[3].

② مالك بن انس رحمه الله: دا مالك بن انس المدنى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى دَ دويم حديث او تفصيلى تعارف كتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوى دى[4].

③ هشام بن عروه رحمه الله: دا هشام بن عروه بن زبير رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى دَ دويم حديث او تفصيلى احوال كتاب الإيمان، باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوى دى[5].

④ عروه رحمه الله: دا عروه بن زبيربن عوام رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى، دويم حديث لاندې او تفصيلى احوال كتاب الإيمان باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تير شوى دى[6].

⑤ حضرت عائشه رضي الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما ده. دَ

---

[1] عمدة القارى: ۲۲۳/۴.

[2] أخرجه مسلم فى صحيحه فى المساجد، باب: النهى عن البصاق فى المسجد، رقم الحديث: ۵۴۹. وفى جامع الأصول، حرف الميم، الكتاب السادس فى المساجد وما يتعلق به، الفصل الثانى فى أحكام تتعلق بالمسجد، الفرع الأول فى البصاق، رقم الحديث: ۸۷۳۳، ۱۹۵/۱۱.

[3] كشف البارى: ۲۸۹/۱، ۱۱۳/۴.

[4] كشف البارى: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

[5] كشف البارى: ۲۸۹/۱، ۱۱۳/۴.

[6] كشف البارى: ۲۹۱/۱، ۴۳۲/۲.

دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، دَدویم حدیث لاندې تیر شوی دی[1].

**دَحدیث شرح:** دَ مذکوره حدیث تشریح وړاندې تیر شوی دواړو احادیثو کښې تیره شوې ده

**دَحدیث شریف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ حدیث مبارك دَ ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه متبادرالی الفهم هم دادی چه دغه بلغم به ئې هم په خپل لاس مبارك سره توکلې وی[2].

## ۲ - بَابُ حَكِّ الْمُخَاطِ بِالْحَصَى مِنَ الْمَسْجِدِ

دا باب دې دَ جمات ته دَ وړوکی کانړی په ذریعه دَ بلغم توګلو باره کښې

**دَ مذکوره باب دَ ماقبل سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه سابقه باب کښې په لاس سره توکانړې یا بلغم دَ لرې کولو بیان وو اودلته په قوتکانړی یا کانړی وغیره سره دَ لرې کولو بیان دې. په دواړو کښې فرق دادې چه دَ "مخاط" رطوبت یالزوجت په نسبت دَ بلغم یا دَ توکانړو زیات وی لهذا دا دَ جمات نه په مکمله توګه لرې کولو دَ پاره صرف لاس کافی نه وی بلکه په څه څیز وغیره سره دَ لرې کولو ضروزت وی. په دې وجه په وړوکی کانړی سره دَ صفا کولو بیان په دې حدیث مبارك کښې ذکرشو. په دې مقام باندې یو اشکال پیدا کیږی چه ترجمة الباب کښې خو دَ "مخاط" ذکردې خو په حدیث مبارك کښې دَ "نخامه" ذکردې.

نو دَدې جواب دادې چه دا دواړه دَ انسانی بدن پاك فضلات دی. په دې دواړو کښې دَ حکم په اعتبارسره هیڅ فرق نشته دې. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا جواب علامه کرمانی رحمه الله ذکرکړې دې. زما په نیز زیات بهتر جواب دادې چه اګرچه په دې دواړو کښې څه فرق دې چه "مخاط" دَ پوزې نه وتونکې بلغم وی او "نخامه" دَ سینې نه وتونکې بلغم. لیکن په ترجمة الباب کښې دَ "مخاط" ذکر او حدیث شریف کښې دَ "نخامه" ذکر دَدې خبرې خبر ورکوی لکه څنګه چه دواړه په خپل ځان کښې دَ غوړوالی او ټینګوالی په اعتبار سره برابر دی نو هم دغه شان دواړه په حکم کښې هم برابردی[3].

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه دَ امام بخاری رحمه الله دَدې ترجمې قائمولو مقصد په هغه بعضې حضراتو باندې رد کول دی چاچه دَ پوزې اوبه او رطوبت پلیت ګرځولې دې اودلیل ئې دَدې حدیث مبارك نه نیولې دې. کوم چه امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې ذکرکړې دې. اودَدې بنیاد ئې دا ګرځولې دې چه نبی اکرم ﷺ پخپله دا رطوبت صفا کول صرف دَ جمات دَ صفائی او نظافت په خاطر نه وو کړې بلکه جمات دَ دغه نجاست نه پاکول هم وو. نو عین ممکن دی چه امام بخاری رحمه الله دَداسې کسانو دَتردید دَپاره دا ترجمه قائمه کړې وی. خاص کر دَ ابن عباس رضی الله عنهما اثربه ئې هم دَدې دَ پاره قائم کړې وی چه دَ دغه اثر

---

[1] کشف الباری: ۱/۲۹۱.
[2] عمدة القاری: ۴/۲۲۲.
[3] عمدة القاری: ۴/۲۲۴.

نه د هغه بعضې حضراتو تردید کیدلو.
حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي چه يوښه توجيه زما په نيز دا ده چه امام بخاري رحمه الله سره که چرې يو حديث په مختلف طرق سره وی نود هغوی عادت دا دې چه دغه ټول طرق د يو عنوان لاندې نه راجمع کوی بلکه هر روايت د مستقل عنوان لاندې ذکرکوی. د حديث الفاظ مخې ته ساتلو سره ترجمة الباب او عنوان کښې تنويع پيدا کوی. او اصل مقصد د حديث طرق بيانول وی هم دغه شان دلته هم شوی دی[1].
د صحيح بخاری د بعضې نسخو مطابق امام بخاری رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يو اثر د دې ترجمة الباب جزء جوړولو سره تعليقا نقل کړې دې هغه هم لاندې نقل کولې شی.
**تعليق نمبر[2]:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: «إِنْ وَطِئْتَ عَلَى قَذَرٍ رَطْبٍ، فَاغْسِلْهُ وَإِنْ كَانَ يَابِسًا فَلاَ»
**د تعليق تخريج:** د حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما دا اثر ابن ابی شيبه رحمه الله خپل مصنف کښې ذکرکړې دې، وئی کورئی:
«حدثنا حفص بن غياث، عن الأعمش، عن يحيى بن وثاب قال: سئل ابن عباس عن رجل خرج إلى الصلاة فوطئ على عذرة قال: إن كانت رطبة غسل ما أصاب، وإن كانت يابسة لم تضره»[3]
**د تعليق ترجمه:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه که چرې ستا خپې په څه لمده ګندګئ باندې اولګی نو هغه اووينځه او که چرې په اوچه ګندګئ باندې اولګی نو د وينځلو ضرورت نشته.
**د تعليق د ترجمة الباب سره مناسبت:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې نهی کښې لوئی او اهم علت د قبلې احترام دې صرف د رطوبت د نفرت قابل کيدل نه دی، اګرچه د دې قابل نفرت کيدل هم يو سبب دې ليکن د قبلې د احترام په مقابله کښې دکمې درجې سبب دې. هم دغه وجه کيدې شی چه د جمات په معامله کښې د رطوبت صفا کولو کښې د دې د لوند يا د اوچيدو فرق نه دې کړې شوې (په خلاف د دې که چرې د نهی علت صرف د دې د نفرت قابل کيدل وی نو هلته به دواړو کښې فرق کيدل پکار دی چه چرته په اوچ رطوبت باندې خپه راشی نو څه د حرج خبره نه ده ليکن چه کوم ځائی په لوند رطوبت باندې خپه راشی نو هغه وخت دغه رطوبت وينځل پکار دی. چنانچه وئيلې شی چه د ابن عباس رضي الله عنهما په اثر کښې په رطوبت باندې د خپې راتلو واقعه د جمات نه وې بلکه د جمات نه به د بهر وی. په دې وجه د جمات په معامله کښې به د رطوبت لوند کيدو يا اوچ کيدو ته نه شی کتلې بلکه دا به صفا کولې شی)[4].

[1]) الأبواب والتراجم للدهلوی فی بداية صحيح البخاری، باب: حک المخاط بالحصی، ص: ۳۰.
[2]) مذکوره تعليق الدکتور مصطفی ديب البغا والا نسخه کوم چه د کشف الباری د پاره بنياد جوړ کړې شوې دې، کښې نشته دې ليکن شراح حديث په دې کلام کړې دې. په دې وجه کشف الباری کښې هم د دې تشريح کړې شوې ده.
[3]) المصنف لابن أبی شيبة، کتاب الطهارة، باب فی الرجل يتوضأ فيطأ علی العذرة، رقم الحديث: ۶۱۳ ۴۲۶/۱.
[4]) فتح الباری: ۶۶۰.

علامه عینی رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله په رد کښې فرمائی چه دا سې صحیح نه دی په دې کښې ډیر بعد دې بلکه علت د ممانعت د قبلې احترام سره سره د تکلیف موجودیدل هم دی ځکه چه لږ شان روستو د حضرت ابو سهله رضی الله عنه روایت راځی چه حضورپاك ارشاد فرمائيلې دې. ((إنك آذيت الله ورسوله))، د دې ارشاد نه په واضحه توګه باندې د تکلیف حصول علت ممانعت کیدل معلومیږی.

د ترجمة الباب سره د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د دې اثر مناسبت په دې توګه باندې هم ممکن دی چه ترجمه کښې "حك المخاط بالحصى" دې او د روایت نه دا خبره هم معلومیږی چه د پوزې هغه رطوبت اوچ وو ځکه خو په کانړی سره صفا کول ممکن کیدې شی ګنې په کانړی سره به په ځائې د صفا کیدو نور زیات خوریدلو. چنانچه مذکوره اثر په اوچ او لوند نجاست کښې د فرق د پاره راوړلې شوې دې. سره د دې چه ظاهر حدیث کښې په دې باندې څه دلالت نشته دې. چنانچه اثر او ترجمه کښې په دې حیثیت سره مناسبت دې او دومره مقدار د مناسبت کافی دې[1].

**د تعلیق د ترجمة الباب سره مناسبت:** د مذکوره اثر یا تعلیق د ترجمة الباب سره مناسبت په پورته دواړو اقوالو کښې واضح شوې دې.

حدیث باب: رومبې حدیث [حدیث نمبر ۴۰۰]

۴۰۸و۴۰۹- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ وَأَبَا سَعِيدٍ[2] حَدَّثَاهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَأَى نُخَامَةً فِي جِدَارِ الْمَسْجِدِ، فَتَنَاوَلَ حَصَاةً فَحَكَّهَا فَقَالَ «إِذَا تَنَخَّمَ أَحَدُكُمْ فَلاَ يَتَنَخَّمَنَّ قِبَلَ وَجْهِهِ وَلاَ عَنْ يَمِينِهِ، وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى».

**د حدیث ترجمه:** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه او حضرت ابوسعید رضی الله عنه بیان دې چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د جمات په دیوال باندې بلغم اولیدلو نو یو کانړې ئې راواخستلو او هغې سره ئې اوګرولو. بیائی اوفرمائیل کله چه تاسو کښې څوك بلغم توکی، نو نه دې خپلې مخې طرف ته توکی او نه دې خپل ښی طرف ته بلکه خپل ګس طرف ته یا د خپو لاندې دې توکی.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول شپږ راویان دی:

---

[1]) عمدة القاري: ۴/۲۲۵-۲۲۴.

[2]) أخرجه البخاری أیضًا فی المساجد، باب: لا یبصق عن یمینه فی الصلاة، رقم الحدیث: ۴۱۰، ۴۱۱، ۴۱۴، ۴۱۶. ومسلم فی صحیحه فی المساجد، باب النهی عن البصاق فی المسجد، رقم الحدیث: ۵۴۸. وأبوداؤد فی سننه فی الصلاة، باب فی کراهیة البزاق فی المسجد، رقم الحدیث: ۴۸۰. والنسائی فی سننه فی المساجد، باب ذکر نهی النبی صلی الله علیه وسلم عن یبصق الرجل بین یدیه أو عن یمینه وهو فی صلاته، رقم الحدیث: ۷۲۶. وابن ماجة فی سننه فی المساجد، باب کراهیة النخامة فی المسجد، رقم الحدیث: ۷۶۱. وفی جامع الأصول، حرف المیم. الکتاب السادس، فی المساجد وما یتعلق به أو لا وآخرا، الفصل الثانی: فی أحکام تتعلق بالمساجد، الفرع الأول: فی البصاق، رقم الحدیث: ۸۷۳۰، ۱۱/۱۹۳.

① موسیٰ بن اسماعیل رحمه الله: دا ابوسلمه موسیٰ بن اسماعیل التبوذکی البصری رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دَ څلورم حدیث او تفصیلی احوال کتاب العلم، باب: من أجاب الفتیا بإشارة الید والرأس لاندې تیرشوې دي[1].

② ابراهیم بن سعد رحمه الله: دا ابو اسحاق ابراهیم بن سعد بن ابراهیم الزهری رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب الإیمان باب: من کره أن یعود فی الکفر کما یکره أن یلقی فی النار من الإیمان او تفصیلی احوال کتاب العلم، باب: ما ذکر فی ذهاب موسیٰ علیه السلام فی البحر إلی الخضر...... لاندې تیرشوې دي[2].

③ ابن شهاب رحمه الله: دا ابوبکر محمد بن مسلم، بن عبیدالله، بن عبدالله بن شهاب الزهری المدنی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیر شوی دی.[3]

④ حمید بن عبدالرحمن رحمه الله: دا حمید بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: تطوع قیام رمضان من الإیمان لاندې تیر شوی دی[4].

⑤ ابوهریرة رضی الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: امور الإیمان لاندې تیر شوی دی[5].

⑥ ابوسعید رضی الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الدین الفرار من الفتن لاندې تیر شوی دی[6].

**دَ حدیث شرح:** دَ مذکوره حدیث شریف تشریح وړاندې باب کښې تیره شوې ده. نور دَ تشریح قابل څۀ څیز نشته دې. سوا دَدې نه چه په دې روایت کښې "فحکها" لفظ دې خود کشمیهنې په روایت کښې هم دغه لفظ "فحتها" دې خبره په دواړو کښې هم یوه ده.

**دَ حدیث مبارک دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ حدیث مبارك ترجمة الباب سره مناسبت هم او په دې باندې یو اشکال او جواب هم دَ باب په شروع کښې تیر شوې دې.

---

[1]) کشف الباري: ٤٣٢/١، ٤٧٧/١.
[2]) کشف الباري: ١٢٠/٢، ٣٣٣/٣.
[3]) کشف الباري: ٣٢٦/١.
[4]) کشف الباري: ٣١٦/٢.
[5]) کشف الباري: ٦٥٩/١
[6]) کشف الباري: ٨٢/٢.

## ۳-بَابُ: لَا يَبْصُقْ عَنْ يَمِينِهِ فِي الصَّلَاةِ

په دې باب کښې ذکرکړې شوی دی چه مونځ ګذار دې
دَ مونځ په وخت خپل ښی طرف ته نه توکی.

**دَترجمة الباب مقصد:**

**دَ حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده رائې:** حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده فرمائي چه شارحينو دې ابوابو ته هيڅ تعرض نه دې کړې بلکه دا فرمائي چونکه دَ مذکوره رواياتو نه مختلف احکام ثابتيدل په دې وجه امام بخاری رحمه الله په هريو باندې مستقل باب اوتړلو. خوزما په نيز دَ هريوباب نه خانله يو غرض دې. چنانچه دَدې باب غرض دادې چه په دې کښې اختلاف چه دَ بصاق عن اليمين نهى دَ صلوة سره خاص ده اوکه عام ده صلوة اوغيرصلوة تولوته څکه چه روايات دواړه شان دی.

دَ حضرت امام مالك رحمه الله نه تخصيص بالصلوة نقل دې او امام نووی رحمه الله فرمائی چه عام دې. اودَدې اختلاف وجه اختلاف في التعليل دې. کوم خلق ئې چه عام منی هغوی وائی چه نهی دَ بصاق إلى اليمين معلل کړې شوې ده دَ فرښتې دَ ښی طرف ته په کيدو سره. اوهغه هروخت انسان سره وی لهذا نهی عام ده، څکه چه دا دَ هغې دَ احترام خلاف ده. مګر په دې باندې اشکال دا کولې شی چه ګس طرف ته خو هم دَ ګناهونو ليکونکې فرښته وی. ويراعى للأميرمالا يراعى للمأمور. دې نه علاوه دَنيکو ليکونکې فرښتې لره بدی ليکونکې فرښته دَ ګناه ليکلو نه منع کوی. لهذا دَ هغې په مونږ باندې احسان دې په دې وجه مونږ له هم دَ هغې احترام کول پکاردی.

او حضرت امام بخاری رحمه الله "في الصلاة" زياتولو سره دَ امام مالك رحمه الله تائيد کړې دې. اوزما رائې هم دغه ده چه نهى دَ صلاة سره خاص ده اوکوم علت چه شارحينو بيان کړې دې او دَ "ملك" نو "كاتبين حسنات" مراد اخستې دې دا زما په نيز صحيح نه دی. اګرچه دَ مشرانو نه نقل دی اودَ صحيح نه کيدو وجه داده چه کاتب سيئات اګرچه کاتب سيئات ده مګر فرښته خوبيا هم ده او فرښتې تول په تولې مکرم دی. "هم عباد مكرمون". بله دا چه هغه خودَ سيئات کتابت پخپله نه کوی بلکه هغه مامور ده لهذا دَ هغې هم احترام کيدل پکاردی. بله دا خبره چه توکانړې ښکته پريوځی او فرښته پورته وی. لهذا زما په نيز دا صحيح نه ده چه دَ "ملك" نه مراد کاتب حسنات وی بلکه دې نه مراد دَدې نه علاوه بله فرښته ده چه خاص هم په مونځ کښې راځی او ښی طرف ته اودريږی او دَده دَ زړه حفاظت کوی. او يو شيطان راځی کوم چه ګس طرف ته اودريږی اودَ ده په زړه کښې وسوسې اچوی. نودَدغه فرښتې نه مراد دا فرښته ده او چونکه دا لاندې ولاړه وی په دې وجه که توکی نو هغه توکل به په دې باندې

پریوځی[1].

دَ حضرت مولانا محمدادریس کاندهلوی رحمه الله رائې: ترجمة الباب کښې "في الصلاة" نه دې خبرې طرف ته اشاره کیږي چه دا ممانعت صرف دَمونځ دوران کښې دې دَ مانځه نه بهر نه دې. لکه چه امام بخاری رحمه الله دَ هغه حضراتو رد کوی ځوك چه په مونځ کښې اودَ مونځ نه بهر هرحالت کښې توکل منع کوی. اګرچه ادب ته نیزدې خبره هم دا ده چه په هرحالت کښې دَ قبلې طرف ته توکل منع وی ځنګه چه به دَ حضرت ابن مسعود، حضرت معاذبن جبل، حضرت عمر بن عبد العزیز رضي الله عنهم وغیره دَ مونځ نه بهر هم قبلې طرف ته توکل مکروه ګرځول[2].

حدیث باب «رومبی حدیث» [حدیث نمبر ۴۰۱]

۴۰۸،۴۰۹- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ وَأَبَا سَعِيدٍ[3] أَخْبَرَاهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - رَأَى نُخَامَةً فِي حَائِطِ الْمَسْجِدِ، فَتَنَاوَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَصَاةً فَحَتَّهَا ثُمَّ قَالَ «إِذَا تَنَخَّمَ أَحَدُكُمْ فَلاَ يَتَنَخَّمْ قِبَلَ وَجْهِهِ وَلاَ عَنْ يَمِينِهِ، وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ، أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى».

**دحدیث ترجمه:** د حضرت ابوهریره او حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنهما بیان دې چه نبی اکرم ﷺ دَ جمات په دیوال باندې بلغم اولیدلو نو یو کاڼړی ئې راواخستلو او هغې سره ئې اوګرولو، بیائې اوفرمائیل کله چه تاسو کښې ځوك بلغم توکی، نو نه دې خپلې مخې طرف ته توکی او نه دې خپل ښی طرف ته بلکه خپل ګس طرف نه یا دَ خپو لاندې دې توکی.

**تراجم رجال:** دَمذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول اووه راویان دی:

① **یحیی بن بکیر** رحمه الله: دا ابوزکریا یحیی بن عبدالله بن بکیر القرشی المخزومی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، باب: کیف کان بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیر شوی دی[4].

② **اللیث** رحمه الله: دا امام ابوالحارث اللیث بن سعد بن عبد الرحمن رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، باب: کیف کان بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیر شوی دی[5].

③ **عقیل** رحمه الله: دا عُقیل بن خالد بن عَقیل رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، باب: کیف کان بدء الوحی دریم حدیث لاندې او تفصیلی احوال کتاب العلم باب: فضل

[1] تقریر بخاری شریف: ۲/۳۶۲.
[2] تحفة القاري للكاندهلوی: ۲/۴۷۱.
[3] مرتخریجه تحت رقم الحدیث: ۴۰۰.
[4] کشف الباري: ۱/۳۲۳.
[5] کشف الباري: ۱/۳۲۴.

العلم لاندې تیر شوی دی[1].

④ ابن شهاب رحمه الله: دا ابوبکر محمدبن مسلم، بن عبید الله، بن عبد الله بن شهاب الزهری المدنی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیر شوی دی[2].

⑤ حمید بن عبد الرحمن رحمه الله: دا حمید بن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: تطوع قیام رمضان من الإیمان لاندې تیر شوی دی[3].

⑥ ابوهریرة رضي الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: امور الإیمان لاندې تیر شوی دی[4].

⑦ ابوسعید رضي الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الدین الفرار من الفتن لاندې تیر شوی دی[5].

**دَ حدیث شرح:** دَ مذکوره حدیث مبارك مکمل شرح وړاندې تیره شوې ده په دې کښې هیڅ څه نوې خبره نشته دې. وړاندې او دې موجوده حدیث شریف کښې صرف څه لفظی فرق دې په کوم سره چه په معنی او مباحثو باندې هیڅ فرق نه پریوځی. مثلاً هلته "جدار المسجد" وو او دلته "حائط المسجد" دې هلته "فحکها" وو اودلته "فحتها" دې هلته "فلایتنخمن" وو او دلته "فلایتنخم" دې. هلته "تحت قدمه" وو اودلته "تحت قدمه الیسریٰ" دې.

**دَ حدیث مبارک دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث مبارك دَ ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله "فلایتنخم قبل وجهه ولاعن یمینه" کښې دې. که چرې دا اعتراض اوکړې شی چه ترجمة الباب کښې خو دی: "لایبصق عن یمینه" او په حدیث مبارك کښې دَ "لایتنخم" الفاظ دی نودَ دې جواب دادې چه دَ حکم په اعتبار سره "نخامه" او "بصاق" یو کړخولې شوی دی دَ نورو احادیثو نه ددې تساوی اشاره ملاویږی.[6]

---

[1]) کشف الباري: ۱/۳۲۵، ۳/٤٥٥.

[2]) کشف الباري: ۱/۳۲۶.

[3]) کشف الباري: ۲/۳۱۶.

[4]) کشف الباري: ۱/۶۵۹.

[5]) کشف الباري: ۲/۸۲.

[6]) عمدة القاری: ٤/۲۲۶. مثلاً لږ شان روستو راتلونکې حدیث شریف کښې دی «لا یبزقن فی قبلته ولکن عن یساره» حضورپاك دا جمله دَ قبلې په دیوال کښې "نخامه" لیدلونه پس ارشاد فرمائیلې وه. دا دلالت دې چه نخامه او بزاق دَ حکم په اعتبار سرّه برابر دی. (عمدة القاری: ٤/۲۲۶).

حديث باب (دويم حديث) [حديث نمبر ٤٠٢]

٤١٢- حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي قَتَادَةُ قَالَ (١) سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لَا يَتْفِلَنَّ أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَا عَنْ يَمِينِهِ، وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ رِجْلِهِ.

**د حديث ترجمه:** حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه نبي اكرم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو كښې دې څوك خپلې مخې ته نه توكې او نه دې خپل ښي طرف ته ليكن (چه د توكلو ضرورت پيښ شي نو) خپل كس طرف اود خپو لاندې توكلې شي.

**تراجم رجال:** دَ مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول څلور راويان دي:

① **حفص بن عمر** رحمه الله: دا حفص بن عمر، ابن الحرث الحوضي رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: إذا شرب الكلب في إناء أحدكم فليغسله سبعًا، الحديث الرابع لاندې تير شوى دى. (٢)

② **شعبه** رحمه الله: دا امير المؤمنين شعبه بن الحجاج بن الورد عتكى الواسطى بصرى رحمه الله دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې تيره شوې ده (٣).

③ **قتادة** رحمه الله: دا قتاده بن دعامه رحمه الله دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوې ده (٤).

④ **انس** رضي الله عنه: دامشهور معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك بن نضر خزرجى انصارى رضي الله عنه دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوى ده. (٥)

**دَ حديث شرح:** دَمذكوره حديث شريف تشريح او وضاحت هم وراندې تير شوې دې. "لايتفلنّ" دا صيغه دَ باب نصر او ضرب دواړو نه مستعمل دې. يعنى دَ فاء كسره او ضمه دواړه شان لوستلې كيدې شى. دَدې معنى دَتوكلو ده. "لايتفلنّ" او "لايبزقنّ" يا "لايبصق" دَدې ټولو هم يوه معنى ده (٦).

---

(١) مر تخريجه تحت رقم الحديث: ٢٤١، في كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: البزاق والمخاط ونحوه في الثوب.
(٢) كشف البارى: ٦٧٨/١.
(٣) كشف البارى: ٦٧٨/١.
(٤) كشف البارى: ٣/٢.
(٥) كشف البارى: ٤/٢.
(٦) عمدة القارى: ٢٢٧/٤.

**د حديث مبارک د ترجمة الباب سره مطابقت:** د مذکوره حديث د ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دي چه په دواړو کښې هم يوه خبره ذکر ده[1].

## ۴- بَابٌ: لِيَبْزُقْ عَنْ يَسَارِهِ، أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى

داباب دې په دې باره کښې چه (مونځ گذار له) پکار دی چه (د ضرورت په وخت) خپل گس طرف ته توکی يا د خپلې گسې خپې لاندې

دباب د عنوان بعضې نسخو کښې "ليبزق" په ځائې "ليبصق" دې. د دواړو معنی هم يوه ده[2].

**د ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په دې باب سره يو اختلاف طرف ته اشاره کړې ده او هغه دا چه قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه بصاق في المسجد جائز دې او ودې نه دفن کول گناه ده. او امام نووی رحمه الله فرمائی بصاق في المسجد گناه ده او ودې کفاره ددې دفن کول دی.

ما بيان کړې وو چه دا دواړه د پخوانو شارحينونه دی. قاضی عياض رحمه الله مقدم دې اومالکی دې. او امام نووی رحمه الله مؤخر دې او شافعی دې. نو اکثر وختونو کښې د حديث معانی بيانولو کښې دواړه اختلاف کوی او بيا د هغوی نه پس راتلونکی دوه فريق شو. يو د امام عياض رحمه الله موافقت کوی او دويم د امام نووی رحمه الله تائيد کوی. هم ددغې نه دا اختلاف هم دې. امام بخاری رحمه الله د مختار قاضی عياض رحمه الله طرف ته اشاره فرمائيلې ده. د مختار قاضی عياض رحمه الله دامطلب نه دې چه امام بخاری رحمه الله مختار عياض رحمه الله گڼړلو سره د هغه طرف ته اشاره کړې ده. چونکه شهرت هم په امام عياض رحمه الله سره شوې وو په دې وجه هغه طرف ته منسوب کړې شو[3].

حديث باب (رومبې حديث) [حديث نمبر ۴۰۳]

- ۴۰۳- حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ[4] قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا كَانَ فِي الصَّلاَةِ فَإِنَّمَا يُنَاجِي رَبَّهُ، فَلاَ يَبْزُقَنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلاَ عَنْ يَمِينِهِ، وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ».

**د حديث ترجمه:** حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو مؤمن چه کله په مانځه کښې وی نوهغه دخپل پروردگار سره مناجات کښې مشغول وی. چنانچه د (توکلو حاجت راتلو په وخت) دې خپل مخامخ يا خپل ښی طرف ته نه توکی بلکه خپل گس طرف ته يا د خپو طرف ته دې توکی.

**تراجم رجال:** دمذکوره حديث شريف په سند کښې ټول څلور راويان دی:

---

[1] عمدة القاري: ۲۲۷/۴.
[2] فتح الباري: ۶۶۲/۱ عمدة القاري: ۲۲۷/۴.
[3] تقرير بخاری شريف: ۱۵۱/۲.
[4] مرتخريجه رقم الحديث: ۳۹۷.

① آدم رحمه الله: دا آدم بن ابى اياس العسقلانى رحمه الله دى. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الايمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تير شوى دى.[1]

② شعبه رحمه الله: دا امير المؤمنين شعبه بن الحجاج بن الورد عتكى الواسطى بصرى رحمه الله دى. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې تيره شوې ده[2].

③ قتادة رحمه الله: دا قتاده بن دعامه رحمه الله دى. دَدوى تذكره كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوې ده[3].

④ انس بن مالك رضي الله عنه: دامشهور او معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك بن نضر خزرجى انصارى رضي الله عنه دى. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوى ده.[4]

**دَ حديث شرح:** دَمذكوره حديث شريف تشريح ماقبل كښې تيره شوې ده.

**دَمذكوره حديث دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حديث دَترجمة الباب سره مناسبت "ولكن عن يساره أو تحت قدمه" كښې دى. معنى دَدې جملې داده چه پكاردى چه خپل كس طرف ته اونه توكى. واضحه دې وى چه ماقبل ترجمة الباب كښې دَ فى الصلاة قيدوو خو په دې روايت كښې دا قيد نه وو. اودلته په ترجمة الباب كښې دا قيد نشته دې خو په حديث شريف كښې دا قيد موجود دى[5].

حديث باب (دويم حديث) [حديث نمبر ۴۰۴]

- ٤٠٣ـ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. [6] أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَبْصَرَ نُخَامَةً فِي قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَحَكَّهَا بِحَصَاةٍ، ثُمَّ نَهَى أَنْ يَبْزُقَ الرَّجُلُ بَيْنَ يَدَيْهِ أَوْ عَنْ يَمِينِهِ، وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى. وَعَنِ الزُّهْرِيِّ سَمِعَ حُمَيْدًا عَنْ أَبِي سَعِيدٍ نَحْوَهُ.

**د حديث ترجمه:** د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم د جمات قبلې طرف (ديوال) باندې بلغم اوليدلو نو حضورپاك په يو كانړى باندې هغه اوكرولو. بيا

[1] كشف البارى: ۶۷۸/۱.
[2] كشف البارى: ۶۷۸/۱.
[3] كشف البارى: ۳/۲.
[4] كشف البارى: ۴/۲.
[5] عمدة القارى: ۲۲۷/۴.
[6] مرتخريجه تحت رقم الحديث: ۴۰۰.

حضور پاك منع اوفرمائیله چه یو کس دې هم خپل مخې طرف ته یا خپل ښي طرف ته نه توکی بلکه (د ضرورت په وخت) دې خپل کس طرف ته یا د خپلې کسې خپې لاندې توکی.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف په سند کښې تول پنځه رجال دی:

① **علي رحمه الله:** دا علی بن عبدالله المدینی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: الفهم في العلم لاندې تیر شوی دی[۱].

② **سفیان رحمه الله:** دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحي، الحدیث الأول او تفصیلی حالات کتاب العلم، باب: قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا لاندې تیر شوی دی.[۲]

③ **زهري رحمه الله:** دا امام محمد بن مسلم، بن عبیدالله، بن شهاب الزهری رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات کشف الباری، کتاب بدء الوحي د دریم حدیث لاندې تیر شوی دی[۳].

④ **حمید بن عبدالرحمن رحمه الله:** دا حمید بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: تطوع قیام رمضان من الإیمان لاندې تیر شوی دی[۴].

⑤ **ابوسعید رضي الله عنه:** دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه دې. د دوی تفصیلی تذکره کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الدین الفرار من الفتن لاندې تیر شوی دی[۵].

**د حدیث شرح:** دا روایت هم واضح دې. د دې تشریح هم ماقبل ابواب کښې بیان شوې ده.

**د مذکوره حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت:** د مذکوره حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت "ولكن عن يساره أو تحت قدمه" کښې دې. معنی د دې جملې داده چه پکاردی خپل کس طرف ته اونه توکی[۶].

**قوله:** وَعَنِ الزُّهْرِيِّ، سَمِعَ حُمَيْدًا، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ نَحْوَهُ: د دې تکړې په ذریعه امام بخاری رحمه الله دا اشاره کول غواړی چه مذکوره حدیث ماقبل سند کښې زهری رحمه الله د حمید بن عبدالرحمن رحمه الله نه په عنعنه سره روایت کړې وو اود زهری رحمه الله د حمید بن عبدالرحمن رحمه الله نه سماع هم ثابته ده. چنانچه دا سند هم په دغه سماع باندې دلالت کوی[۷].

---

[۱]) کشف الباری: ۲۹۷/۳.
[۲]) کشف الباری: ۲۳۸/۱، ۱۰۲/۳.
[۳]) کشف الباری: ۱/۳۲۶.
[۴]) کشف الباری: ۲/۳۱۶.
[۵]) کشف الباری: ۲/۸۲.
[۶]) عمدة القاری: ۲۲۷/٤.
[۷]) شرح الکرمانی: ۷۳/٤، عمدة القاری: ۲۲۸/٤.

دَدې تكرې باره كښې علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه دا تعليق دې.[1] خو حافظ ابن حجر رحمه الله دَهغوی دَ نوم اخستو نه بغير نقد كولو سره فرمائي چه دا تعليق گرځول دَ شراحو وهم دې بلكه دا موصول دې لكه چه دَدې نه مخكښې هم داسې شوی دی.[2] په دې باندې علامه عيني رحمه الله دَ علامه كرماني رحمه الله طرف داری كولو سره دَدې تعليق كيدل راجح گرځولی دی.[3]

## ۵- بَابٌ: كَفَّارَةِ الْبُزَاقِ فِي الْمَسْجِدِ

دا باب دَدې باره كښې دې چه په جمات كښې دَ بلغم غورزولو كفاره څه ده؟

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه په دې باب سره امام بخاري رحمه الله دَ امام نووي رحمه الله مختار (مذهب) طرف ته اشاره كړې ده. (او دَ سابقه ابوابو نه دَ قاضي عياض رحمه الله دَ مذهب تائيد كيدلو)[4].

**په جمات كښې دَ توكلو يا نه توكلو دَ احكاماتو خلاصه:** دَ تيرو شوو ابوابو دَمقاصدو خلاصه به دا راوځي چه په جمات كښې دَمونځ دروان كښې يا دَ مونځ نه بهر كه چرته دَ توكانړو توكلو مجبوري پيښه شي نو دَ احاديثو مطابق په جمات كښې خپل گس طرف ته يا دَ خپلې گسې خپې لاندې دَ توكلو تصريح ذكر ده. هغه په دې شرط سره چه جمات كچه وي دكوم په بنياد چه هغه توكانړې په خاوره وغيره سره پټول ممكن وي نو داسې دې كوي خو كه جمات پوخ دې نو بيا دَ جمات په فرش باندې دَ توكلو اجازت نشته دې. په دې صورت كښې په خپله كپړا وغيره كښې توكلو سره هغه مرل پكار دی. زمونږ دَدې خبرې تائيد دَ ابوداؤد شريف دَ يو روايت نه هم كيږي.[5]

حديث باب [حديث نمبر ۴۰۵]

٤١٥- حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ[6] قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ، وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا».

---

[1]) شرح الكرماني: ۷۳/٤.

[2]) فتح الباري: ۶۶۲/۱.

[3]) عمدة القاري: ۲۲۸/٤.

[4]) تقرير بخاري شريف: ۱۵۲/۲.

[5]) عن عبدالرحمن بن أبي حدرد الأسلمي قال سمعت أباهريرة يقول: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من دخل هذا المسجد، فبزق فيه، أو تنخم، فليحفر، فليدفنه، فإن لم يفعل، فليبزق في ثوبه ثم ليخرج به. (سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، كراهية البزاق في المسجد، رقم الحديث: ٤۷۷).

[6]) أخرجه مسلم في صحيحه في المساجد، باب: النهي عن البصاق في المسجد، رقم الحديث: ۱۲۶۰. وأبوداؤد في سننه، في الصلاة، باب: في كراهية البزاق في المسجد، رقم الحديث: ٤۷٤، ٤۷۵، ٤۷۶. والترمذي في جامعه، في الصلاة، باب: ماجاء في كراهية في المسجد، رقم الحديث: ۵۷۲. والنسائي في سننه في المساجد، باب: البصاق في المسجد، رقم الحديث: ۸۰٤ وفي جامع الأصول، حرف الميم، الكتاب السادس: في المساجد، الفصل الثاني: في أحكام تتعلق بالمساجد، الفرع الأول: في البصاق، رقم الحديث: ۸۷۳۲ ۱۹٤/۱۱.

**دَ حدیث ترجمه:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه جمات کښې توکل گناه ده اودَدې کفاره دفن کول دی.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حدیث په سند کښې ټول څلور راویان دی.

① آدم رحمه الله: دا آدم بن ابی ایاس العسقلانی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې تیر شوی دی[1].

② شعبه رحمه الله: دا شعبه بن الحجاج رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده، لاندې تیر شوی دی[2].

③ قتادة رحمه الله: دا قتاده بن دعامه رحمه الله دې. دَ دوی تذکره کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوې ده[3].

④ انس بن مالک رضی الله عنه: دامشهور او معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالک بن نضر خزرجی انصاری رضی الله عنه دې. دَ دوی تذکره کشف الباری، کتاب الایمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوی ده.[4]

**دَ حدیث شرح:** قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ: نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په جمات کښې توکانړې توکل گناه ده.

**قوله:** "الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ" دَ صحیح بخاری دَ روایت الفاظ خودادی لیکن دَ صحیح مسلم په روایت کښې دَ "البزاق" په ځائې دَ "التفل" لفظ دې یعنی "التفل فی المسجد" معنی دَ دواړو هم یوه ده[5].

**قوله:** "فِي الْمَسْجِدِ" دا ظرف دې دَ وقوع فعل دَ پاره یعنی دا خبره ضروری نه ده چه فاعل دې هم په ظرف کښې دننه وی بلکه فاعل دَ ظرف نه بهر وی اودغه فعل په ظرف کښې دننه واقع وی نو بیا به هم ممانعت متوجه وی. چنانچه توکونکې که په جمات کښې دننه وی که بهر وی په دواړو صورتونو کښې توکانړې په جمات کښې غورزیدل گناه ده[6].

**قوله:** وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا: اودَدې کفاره دفن کول دی.

په جمات کښې که چرته خاوره، شگه یا واړه کانړی وغیره وی نودَ دفن کولو نه مراد دادې چه دَ جمات په خاوره وغیره کښې دې هغه توکانړې پټې کړی. اوکه دغه ذکرشوی څیزونه نه

---

[1]) کشف الباری: ۱/۶۷۸.
[2]) کشف الباری: ۶۷۸/۱.
[3]) کشف الباری: ۳/۲.
[4]) کشف الباری: ۴/۲.
[5]) اخرجه مسلم فی صحیحه فی المساجد، باب: النهی عن البصاق فی المسجد، رقم الحدیث: ۱۲۶۰.
[6]) عمدة القاری: ۲۲۹/۴.

وي مثلاً پوخ فرش وي يا قالينونه وغيره خواره وي نو د دفن كولو نه مراد به دا وي چه توكانړې يا بلغم دَ جمات نه اوباسي يعني وئې گروي يا ئې په څه كپړا وغيره باندې ئې صفا كړي[1].

دَ سنن ابوداؤد حديث كښې دَدې امر طرف ته اشاره موجود ده وئې گورئې: ((عن عبد الرحمن بن أبي حدرد الأسلمي قال سمعت أبا هريرة يقول: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من دخل هذا المسجد، فبزق فيه، أو تنخم، فليحفر، فليدفنه، فإن لم يفعل، فليبزق في ثوبه ثم ليخرج به")[2].

امام نووي رحمه الله فرمائي چه دا حكم دَ جمات نه دَ بهرسرې دې نه چه په جمات كښې دَ داخل سرې به په جمات كښې دَ داخل سرې حكم خو دادې چه هلته دې هډو توكې نه اوكه چرې دَ توكلو حاجت راغلو نو په خپله كپړا كښې دې اوتوكي[3].

علامه عيني رحمه الله دَدې خبرې په ترديد كښې فرمائيلو سره ليكي چه «دَ علامه نووي رحمه الله په دې خبره باندې ډير زيات احاديث دال دي چه دا ټول احكام په جمات كښې دَ دننه توكلو او صفاكولو سره متعلق دي.»[4] علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه په توكانړو باندې به دَ گناه اطلاق هغه وخت كيږي كله چه هغه بغيردَ دفن كولو نه هم داسې پريخودې شي صرف دَتوكلو دَ وجې نه به دَ گناه حكم نه لاگو كيږي[5].

علامه عيني رحمه الله دَ حضرت سعيد بن منصور رحمه الله يو اثر نقل كړې دې چه حضرت ابوعبيده رضي الله عنه ته يو ځل دَ شپې دَ مجبورئې په صورت كښې توكل پيښ شو بيا هغه صفا كول هير كړل اوخپل كور ته لاړو. كور ته چه اورسيدو نو ورته ياد شو دَ اور شغله ئې دَ رنړا دَ پاره راوړه ـ جمات طرف ته راؤگرځيدو جمات ته په رسيدو ئې توكانړې اولټولې اوهغه ئې دفن كړې. يعني صفا ئې كړې. بيائې اوفرمائيل ټول ثنا اوصفت هم دَ الله تعالى دَ پاره دى چه هغه زما په عمل نامه كښې دَ شپې دغه خطا اونه ليكله[6].

**دَ حديث مبارك دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې چه په دواړو كښې هم يوه خبره ذكر ده.

---

[1] عمدة القاري: ٢٢٩/٤.
[2] سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، كراهية البزاق في المسجد، رقم الحديث: ٤٧٧.
[3] شرح النووي على صحيح مسلم، كتاب الصلاة، كتاب المساجد، باب النهى عن البصاق في المسجد في الصلاة وغيرها: ٣٩/٥.
[4] عمدة القاري: ٢٢٩/٤.
[5] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم للقرطبي، كتاب الصلاة، باب النهى عن الاختصار، وما يجوز من اللبس فيها، وماجاء في البصاق في المسجد، رقم الحديث: ١٤٩، ١٥٥/٢.
[6] عمدة القاري: ٢٢٩/٤.

# ۶- بَابٌ: دَفْنِ النُّخَامَةِ فِي الْمَسْجِدِ

دا باب په جمات كښې دَ بلغم دَ دفن كولو باره كښې دې

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه نخامه په جمات كښې دفن كول جائز دى. علامه رويانى رحمه الله وائى چه جمات دَ تحت الثرىٰ نه واخله تر آسمانه پورې دې. لهذا كه په جمات كښې دفن كړې شو نو هم په جمات كښې به وى او حك دَجمات دَ احترام دَ وجې نه كيږى نو اوس هم دَ احترام خلاف شو، لهذا دَ فن نه مراد ددې بهر كول دى.

حضرت امام بخارى رحمه الله دَ دفن جواز ثابتوى. ځكه چه اوس هغه (بلغم) دَ خاورې لاندې شوې دې او ددې نه لاندې نه ده معلومه چه څومره څيزونه دى، مرى هم وى. لهذا داددې خلاف دى او دويم غرض دا دې چه دفن دَ جمات سره خاص دې دَ جمات نه بهر نه دې[1].

حديث باب [حديث نمبر ۴۰۶]

۴۰۶- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ[2] عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ: «إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ، فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللَّهَ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ، وَلَا عَنْ يَمِينِهِ، فَإِنَّ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكًا، وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ، فَيَدْفِنُهَا».

**دَ حديث ترجمه:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ نبى اكرم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى چه حضور پاك ارشاد فرمائيلى دې كله چه تاسو نه څوك دَ مانځه دَ پاره او دريږى نو هغه دې خپلې مخې ته نه توكى، ځكه چه تركومې پورې هغه په خپل مونځ كښې مشغول وى نو ترهغه وخته پورې الله تعالى سره مناجات كوى. او خپل ښى طرف ته دې هم نه توكى، ځكه چه دَ هغه ښى طرف ته يوه فرښته وى البته خپل كس طرف ته يا دَ خپلو خپو لاندې دې توكى بيا دې هغه دفن كړى.

**تراجم رجال:** دَمذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه راويان دى:

① اسحاق بن نصر رحمه الله: دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: من اغتسل عريانا وحده فى خلوة لاندې تير شوې دى[3].

② عبد الرزاق رحمه الله: دا عبد الرزاق بن همام بن نافع صنعانى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف

---

[1]) تقرير بخارى شريف: ۱۵۲/۲، سراج القارى: ۴۵۸/۲، الكنز المتوارى: ۱۰۶/۴. دَ تقرير بخارى شريف په حواشى كښې دَ مولوى سلمان صاحب طرف ته منسوب تقرير كښې يوه بله خبره ذكر ده چه دَ بعضې علماؤ نه دَ نخامه دَ دفن كولو ممانعت نقل كړې شوې دې دَ احترام دَ خلاف كيدو دَ وجې، نوزمونږ دَ طرف نه ددې جواب دادې چه دا دَ احترام مخالفت ترهغې به هله وى چه هغه پخپله ناپاك وى. بزاق پخپله ناپاكه نه دې بلكه دَ استقذار دَ وجې دفن كولې شى او په دې حيثيت سره دَ احترام خلاف نه دې. (حاشيه تقرير بخارى شريف: ۱۵۲/۲).

[2]) تقدم تخريجه تحت رقم الحديث: ۴۰۰.

[3]) كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: من اغتسل عريانا وحده فى خلوة.

الباری، کتاب الإیمان، باب: حسن إسلام المرء لاندې تیر شوې دی[1].

④ معمر رحمه الله: دا ابو عروه معمر بن راشد الازدی رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی څلورم حدیث او تفصیلی احوال کتاب العلم، باب: کتابة العلم لاندې تیر شوې دی[2].

④ همام رحمه الله: دا همام بن منبه بن کامل یمانی صنعانی رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: حسن إسلام المرء او تفصیلی احوال کتاب العلم، باب: کتابة العلم دَدریم حدیث لاندې تیر شوې دی[3].

⑤ ابوهریرة رضی الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: أمور الإیمان لاندې تیر شوې دی[4].

**دَ حدیث شرح:** إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ، فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ: حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو کله چه تاسو کښې څوك دَ مانځه دَ پاره اودریږی نوهغه دې خپلې مخې ته نه توکی.

**قوله:** "فَلَا يَبْصُقْ" دا دَ نهی غائب واحد مذکر غائب صیغه ده.

**قوله:** فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللَّهَ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ: ځکه چه ترکومې پورې هغه په خپل مونځ کښې مشغول وی نو ترهغه وخته پورې دَ الله تعالی سره مناجات کوی. دَ کشمیهنی په روایت کښې "فإنه یناجی" الفاظ دی[5].

**قوله:** "مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ" څو پورې، چه په مونځ کښې مشغول وی ترهغه وخته پورې.

**په جمات کښې دَتوکلو ممانعت صرف دَ مونځ دوران کښې دې که دَ مونځ نه بهر هم دې؟:** په دې باندې اشکال راځی چه دَدې روایت مطابق دَ توکلو ممانعت صرف دَ مونځ په حالت کښې دې حالانکه دَ روایت په کوم کښې چه دَدې وجه مسلمان ته تکلیف رسول خودلې شوې وو، تقاضا خو داده چه ممانعت دې دَ مانځه سره خاص نه وی بلکه مطلق وی.

دَدې جواب دا ورکړې شوې دې چه دَدې ممانعت مختلف درجې دی. دا کار په مانځه کښې کول ډیره سخته گناه ده او بیا دَ جمات دَ نورو حصو په نسبت دَ قبلې دیوال باندې کېدل نوره هم سخته گناه ده وغیره وغیره[6].

---

[1] کشف الباری: ۴۲۱/۲.
[2] کشف الباری: ۴۶۵/۱، ۳۲۱/۴.
[3] کشف الباری: ۴۲۸/۲، ۳۱۷/۴.
[4] کشف الباری: ۶۵۹/۱.
[5] فتح الباری: ۶۶۴/۱، عمدة القاری: ۲۳۰/۴.
[6] فتح الباری: ۶۶۴/۱، عمدة القاری: ۲۳۰/۴.

**قوله:** وَلَاعَنْ يَمِينِهِ، فَإِنَّ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكًا: اوخپل ښى طرف ته دې هم نه توكى ځكه چه دَده ښى طرف ته يو فرښته ده.

**قوله:** "مَلَكًا" په يو روايت كښې دا لفظ "ملك" استعمال شوې دې په دې صورت كښې به دادَ لفظ "إن" خبر وى اودَ "إن" اسم به ضمير الشان وى[١].

**كس طرف ته توكلو كښې ولې دَ فرښتې بې احترامى نشته؟** په دې عبارت باندې يو اشكال دا راځى چه ښى طرف ته دَ فرښتې دَ كيدو د وجې نه دَ هغې په اكرام كښې ښى طرف ته توكل منع دى. خو فرښته خو كس طرف ته هم وى لهذا كس طرف ته توكل څنګه جائز كيدې شى؟ نو ددې مختلف جوابات وركړې شوى دى:

يو جواب علامه كرماني رحمه الله وركړې دې چه مونږ كوم چه ام الحسنات دې ددې دَ اداكيدو په وخت كښې دَ بدنى دَ ليكونكې فرښتې هيڅ عمل دخل نه وى لهذا دَ مونځ په حالت كښې هغه فرښته نه وى. يا بيا داهم مراد كيدې شى چه دَ كراماً كاتبين نه علاوه څه بله فرښته ورسره وى لهذا هيڅ اشكال نشته[٢].

ليكن علامه عينى رحمه الله دا جوابات رد كولو سره يو خپل جواب نقل كړې دې چه هرانسان سره يو فرښته او يو قرين (شيطان) وى، دَ فرښتې ځائى ښى طرف ته او دَ قرين ځائى كس طرف ته وى. نو كيدې شى چه كس طرف ته توكلې بلغم په شيطان باندې پريوځي په فرښته باندې نه[٣]. هم ددې طرف ته دَ طبراني رحمه الله په يو روايت كښې اشاره هم ملاويږى[٤].

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه دا فرښته كاتب حسنات نه ده بلكه دا هغه فرښته ده چه مصلي له راشى ښى طرف ته اودريږى او المام حسنات كوى[٥].

**قوله:** وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ، أَوْتَحْتَ قَدَمِهِ، فَيَدْفِنُهَا: البته خپل كس طرف ته يا دَ خپلو خپو لاندې دې اوتوكى او بيا دې هغه دفن كړى.

**قوله:** "وَلْيَبْصُقْ" دا لفظ دَ يو بل روايت مطابق "وليبزق" دې[٦].

---

[١]) شرح الكرماني: ٧٤/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٦٢/٣.

[٢]) شرح الكرماني: ٧٤/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٦٢/٣.

[٣]) عمدة القاري: ٢٣٠/٤.

[٤]) عن أبى أمامة قال قام رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات يوم، فاستفتح الصلاة، فرأى نخامة فى القبلة فخلع نعليه، ثم مشى إليها فحتها، ففعل ذلك ثلاث مرات، فلما قضى صلاته، أقبل على الناس بوجهه، فحمدالله وأثنى عليه، ثم قال: "أيهاالناس! إن أحدكم إذا قام فى الصلاة فإنه فى مقام عظيم، يسأل أمرا عظيما الفوز بالجنة، والنجاة من النار، وإن أحدكم إذا قام فى الصلاة، فإنه يقوم بين يدى الله مستقبل ربه وملكه عن يمينه، وقرينه عن يساره، فلا يتفلن أحدكم بين يديه، ولا عن يمينه، ولكن عن يساره تحت قدمه اليسرى......" (المعجم الكبير للطبراني، صدى بن العجلان أبو أمامة الباهلي، رقم الحديث: ٧٨٠٨، ١٩٩/٨).

[٥]) الكنزالمتوارى: ١٠٢/٤، سراج القارى: ٤٥٩/٢، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٦٢/٣.

[٦]) مصابيح الجامع شرح الجامع الصحيح للإمام البخارى: ١١٨/٢.

**قوله:** "فَيَدْفِنُهَا" په دې فعل باندې درېواړه اعراب (نصب، رفع او جزم) لوستل جائز دي. دَ نصب لوستلو په صورت کښې به دا صيغه دَ امر واقع کېږي. دَ رفع په صورت کښې به مبتداء محذوف "هو" خبر وي او دَ جزم لوستلو په صورت کښې به دَدې عطف په امر "ليبصق" باندې وي[1].

**قوله:** "فَيَدْفِنُهَا" دَ هاء ضمير مرجع به "النُّخَامَة" جوړولې شي په کوم چه دَ حديث شريف قول "وليبصق" دلالت کوي[2].

علامه کرماني رحمه الله يو اشکال ذکرکولو سره دَ هغې جواب هم ورکړې دې چه ترجمة الباب خو "دفن نخامة" په ذکر باندې دې او حديث شريف "دفن بزاق" باندې دلالت کوي. نو دَدې جواب دادې چه دَ حکم په اعتبار سره دواړه (نخامه او بزاق) برابر دي[3].

**توکانړې په جمات کښې دَ دفن کولو صورت:**

**قوله:** "فَيَدْفِنُهَا" يو صورت خودا دې چه دَمونځ پوره کولو نه پس په هغې باندې لږه ډېره خاوره اچولو سره پټ کړې شي نودلته دا معنی مراد نه ده. ځکه چه په دې صورت کښې به دا خطره باقي پاتې وي چه هلته دَ چا خپه راشي يا هغه هم په دغه ځائې باندې کيني نو په دې سره به هغه ته تکليف او پريشاني اورسي. بلکه دَدې دَ دفن کولو طريقه به دا مراد وي چه باقاعده لږه شان زمکه اوکني دَ هغې په خاوره کښې دغه بلغم پټ کړې شي. اوس بنکاره خبره ده چه دا په هغه صورت کښې ممکن کيدې شي کله چه دَ جمات فرش کچه وي خو که فرش پوخ وي نودا خبره بيا وراندې تيره شوې ده چه په دې صورت کښې دَ جمات په فرش باندې اونه توکلې شي بلکه دَخپلې کپړې په يوه غاړه کښې دې اوتوکي او اودې مږي. اوکه هم په هغه فرش باندې توکل اوشو نو په دې صورت کښې به دَ مونځ نه پس په کپړا يا اوبو سره هغه توکانړې صفا کول مراد وي[4].

**دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت دَ روايت لفظ په "فَيَدْفِنُهَا" کښې دې په دې توګه چه بزاق او نخامه هم په يو حکم کښې دي[5].

[1]) شرح الكرماني: ٧٤/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٦٢/٣، عمدة القاري: ٢٣٠/٤.
[2]) عمدة القاري: ٢٣٠/٤.
[3]) شرح الكرماني: ٧٤/٤.
[4]) فتح الباري: ٦٦٤/١.
[5]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٦٢/٣، فتح الباري: ٦٦٤/١، عمدة القاري: ٢٢٩/٤.

## ٧ - بَابٌ: إِذَا بَدَرَهُ الْبُزَاقُ فَلْيَأْخُذْ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ

دا باب په دې باره کښې دې چه کله مونځ ګذار باندې دَ توکلو غلبه راشي نو هغه دې دا توکافرې دَ کپړې په غاړه کښې واخلی.

**دَترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې دا خودل مقصود دی چه که مونځ ګذار دَ توکلو وغیره دَ پاره مجبوره شی نو دَ هغه دَ پاره په کپړا کښې توکل هم جائز دی.[١]

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله تنبیه فرمائی چه په روایت کښې ئی "بصاق فی اليسار" او "تحت القدم" او "فی الثوب" کښې تسویه فرمائیلې ده. دا مطلب ئې نه دې چه په کپړه کښې دې واخلی او دې مږی بلکه دا هغه وخت دی کله چه بصاق په ده غالب راشی او بل څه لار نه وی نو داسې دې اوکړی. اګرچه ترجمه شارحه ده او ما بیان کړې دې چه دَ امام بخاری رحمه الله دَ اصول نه دی چه هغه کله ترجمهٔ شارحه تړی. په کوم کښې چه دَ ابهام توضیح او دَ خاص تعمیم او دَعام تخصیص وی[٢].

---

[١]) انوار الباری: ٣٢٢/١٣. مولانا بجنوری رحمه الله په دې مقام باندې لیکی چه په دې موقع باندې امام بخاری رحمه الله "بدره" دَ عربیت خلاف لیکلی دی صحیح "بدر إليه" وو لکه چه جوهری وغیره اهل لغت او تصریف لیکلی دی. محقق عینی رحمه الله لیکلی دی حافظ ابن حجر رحمه الله چه په دې موقع باندې دَ امام بخاری رحمه الله کوم بې ځایه حمایت کړې دې هغه پخپله دَ هغه دَعلم تصرف نه دَ ناواقفیت دلیل دې. (عمده: ٣٢٤/٣). دلته په دې خبره باندې حیرانتیا نه دی کول پکار چه امام بخاری رحمه الله یا حافظ ابن حجر رحمه الله په علم تصرف کښې کمزورې وو ځکه چه لکل فن رجال دی، دا کله ضروری دی چه امام بخاری رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله دَعلم حدیث او رجال امامان وی نو دَ لغت او تصریف دې هم امامان وی. علامه کشمیری رحمه الله په درس دَ بخاری شریف کښې په څو مواقعو دَ امام بخاری رحمه الله په عربیت باندې نقد کړې اوفرمائیلی ئی وو چه ده له خو په جرح او تعدیل دَ رواة کښې کیدل پکار دی دلته خو به هم دَ زمخشری رحمه الله اتباع کولې شی ځکه چه هغه دَعربیت مالك دې. یوځائې کښې داهم فرمائیلی دی چه که دَ امام بخاری رحمه الله عربیت کامل وې نوهغه به دَ مجاز القرآن نه په نقل کولو باندې اکتفاء نه کوله بلکه پخپله به ئی هم څه لیکل. دا هم داسې دی لکه چه حافظ ابن تیمیه رحمه الله دَ امام نحو سیبویه غلطیانې ښائی حالانکه په قول دَ حضرت کشمیری رحمه الله هغه به په کتاب سیبویه باندې پوره شان سره پوهه شوې هم نه وی. (انوار الباری: ٣٢٣/١٣، وكذا في عمدة القاري: ٢٣٠/٤.

[٢]) تقریربخاری شریف: ١٥٢/٢. په دې مقام دَ تقریربخاری شریف په حاشیه کښې یوه بله توجیه ذکرده: زما په نیز دَ امام بخاری رحمه الله غرض یوې بارېکې طریقې سره تنبیه کول دی. هغه دا چه په کثرت سره دامضمون راغلې دې چه "لكن عن يساره أو تحت قدمه، أو يفعل هكذا". نوحضرت امام بخاری رحمه الله "إذا بدره البزاق" زیاتولو سره اوخودل چه دا په کپړې سره بلغم مږل دَ لاندې توکلو برابر نه دې لکه چه لفظ "أو" نه معلومیږی. بلکه دا مقید دې "إذا بدره" سره اودَدې درجه دَ لاندې توکلو نه کمه ده او لاندې توکل دَدې فعل ثوب نه وړاندې شوې دې. (کذافی تقریرمولوی احسان).

حديث باب [حديث نمبر ۴۰۷]

۴۰۷- حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ قَالَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ[1] أَنَّ النَّبِي -صلي الله عليه وسلم- رَأَى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ فَحَكَّهَا بِيَدِهِ، وَرُئِيَ مِنْهُ كَرَاهِيَةٌ- أَوْرُئِيَ كَرَاهِيَتُهُ لِذَلِكَ وَشِدَّتُهُ عَلَيْهِ- وَقَالَ «إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ فِي صَلَاتِهِ فَإِنَّمَا يُنَاجِي رَبَّهُ- أَوْرَبُّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قِبْلَتِهِ- فَلَا يَبْزُقَنَّ فِي قِبْلَتِهِ، وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ». ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ فَبَزَقَ فِيهِ، وَرَدَّ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ، قَالَ «أَوْيَفْعَلُ هَكَذَا».

**د حديث ترجمه:** حضرت انس بن مالك رضی الله عنه روايت كوى چه نبى كريم ﷺ د جمات د قبلې والا ديوال باندې بلغم لګيدلې اوليدلو نو حضورپاك هغه په خپل لاس مبارك سره صفا كړو په داسې حال كښې چه د ناخوښئ آثار د حضورپاك په مخ مبارك باندې اوليدلې شو. يا (راوى اوفرمائيل چه) په دغه ديوال د جمات باندې د بلغم د پريوتلو د وجې نه د خفګان آثار د حضورپاك په مخ مبارك باندې اوليدلې شو. بيا حضورپاك اوفرمائيل كله چه تاسو كښې څوك د مانځه د پاره اودريږى نو هغه د خپل رب سره مناجات كوى. يا (داسې ئې اوفرمائيل چه) د هغه رب لكه چه د هغه او د هغه د قبلې په مينځ كښې وى. لهذا هغه دې د قبلې طرف ته نه توكى بلكه خپل كس طرف ته يا د خپلو خپو لاندې دې توكى. بيا حضورپاك د خپل څادر مبارك غاړه اونيوله په هغې كښې ئې اوتوكل اوهغه ئې اومرله او وئى فرمائيل يادې داسې كوى.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول څلور راويان دى:

① مالك بن اسماعيل رحمه الله: دا مالك بن اسماعيل ابوغسان النهدى رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: الماء الذى يغسل به شعرالإنسان، رقم الحديث: ۱۷۰ لاندې تير شوى دى[2].

② زهير رحمه الله: دا زهير بن معاويه بن حُديج جعفى كوفى رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الأيمان لاندې تير شوې دى[3].

③ حميد رحمه الله: دا حميد بن ابى حميد الطويل ابوعبيده بصرى رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهولايشعر د دويم حديث لاندې تير شوى دى.[4]

④ انس بن مالك رضی الله عنه: دامشهور او معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې.

---

[1]) مرتخريجه تحت كتاب الوضوء، باب: البزاق والمخاط ونحوه فى الثوب، رقم الحديث: ۲۴۱.
[2]) كشف البارى، كتاب الوضوء ، باب: الماء الذى يغسل به شعر الإنسان، رقم الحديث: ۱۷۰
[3]) كشف البارى: ۳۶۷/۲.
[4]) كشف البارى: ۵۷۱/۲.

دَ دوی په احوالو باندې تفصيلي كلام كشف البارى، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تير شوی دی.[1]

**دَ حديث شرح:** عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ، فَحَكَّهَا بِيَدِهِ وَرُئِيَ مِنْهُ كَرَاهِيَةٌ: حضرت انس بن مالك رضي الله عنه روايت كوی چه نبی كريم ﷺ دَ جمات دَ قبلې والا ديوال باندې بلغم لګيدلې اوليدلو نو حضورپاك په خپل لاس مبارك سره صفا كړو په داسې حال كښې چه دَ خفګان آثار دَ حضورپاك په مخ مبارك باندې اوليدلې شو.

**قوله:** "وَرُئِيَ مِنْهُ كَرَاهِيَةٌ" حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائی چه قاعده دا ده چه كله يو سړي ښكلې وی نو غم اوخفګان، خوشحالی او راحت دَ هغه په مخ نه ښكاری. اودَ حضورپاك نه زيات حسين اوجميل څوك كيدې شی؟ نه دَ حضورپاك په شان ښكلې څوك پيدا شوې دې او نه به پيدا شی. چنانچه دَ حضورپاك دَ زيات حسن دَ وجې نه به په مخ مبارك باندې چه كومه خبره وه هغه به ښكاره معلوميدله[2].

**قوله:** أَوْ رُئِيَ كَرَاهِيَتُهُ لِذَلِكَ وَشِدَّتُهُ عَلَيْهِ: يا (راوی اوفرمائيل چه) په دغه ديوال دَ جمات باندې دَبلغم دَ پريوتلو دَ وجې نه دَ خفګان آثار دَ حضورپاك په مخ مبارك باندې اوليدلې شو.

"او" نه دَ راوی دَ شك بيان دې او شك په هغه امر كښې دې چه دَ لفظ "كراهية" دَ "هو" ضمير طرف ته اضافت دې كه نه. بعضې نسخو كښې دا لفظ دَ ياء نه بغير او په اضافت سره دې يعنى "كراهته"[3].

**قوله:** "شِدَّتُهُ" مرفوع او مجرور دواړه شان لوستل صحيح دی. دَ مرفوع په صورت كښې به دَدې عطف په "كراهيته" باندې وی اودَ مجرور لوستلو په صورت كښې به دَدې عطف په "ذلك" باندې وی[4].

**دَ روايت دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب كښې دوه اجزاء دی. اول "إذا بدره البزاق" او دويم "فليأخذ بطرف ثوبه". خو په روايت كښې دَ ړومبی هيڅ ذكر نشته دې البته دَ دويم جز ذكر موجود دې اوهغه دادې "ثم أخذ طرف ردائه فبزق فيه، ورد بعضه على بعض" ليكن "إذا بدره البزاق" چه كوم جز وو دَ هغې ذكر په روايت كښې نشته دې. "إذا بدره البزاق" معنى ده چه داسې توكانړې ورته راغلې چه دَهغې غورزول ضروری وی تيرولې نه شی.

نودَدې جواب دادې چه امام مسلم رحمه الله روايت نقل كړې دې: «وإن عجلت به بادرة، فليأخذها

---

[1]) كشف البارى: ۲/ ٤.
[2]) تقرير بخاری شريف: ۲/ ۱۵۲.
[3]) شرح الكرمانی: ٤/ ۷۵.
[4]) شرح الكرمانی: ٤/ ۷۵، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۳/ ۱٦٣، عمدة القاری: ٤/ ۲۳۱.

بطرف ثوبه»[1]) امام بخاري رحمه الله دَدې روايت طرف ته په ترجمة الباب کښې اشاره کول غواړي اودلته هغوی باب کښې دترجمې دغه جز سره متعلق څه حديث نه دې نقل کړې. اوداسې هغه وخت کيږي کله چه هغه حديث دَ امام بخاري رحمه الله دَ شرائطو مطابق نه وی نو بيا امام بخاري رحمه الله هغه دَ خپل ترجمة الباب جز جوړوی. يا دَ هغې طرف ته اشاره کوی.

علامه سندی رحمه الله اوفرمائيل چه امام بخاري رحمه الله دَدې ترجمې په ذريعه دې خبرې طرف ته اشاره کوی چه په باب کښې کوم مطلق حديث دې هغه به دَدې روايت دَ وجې "إذابدرة" سره مقيد وی کوم چه امام صاحب رحمه الله نه دې ذکرکړې او امام مسلم رحمه الله هغه ذکرکړې دې[2].

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلی چه دی داسې روايات صحيح مسلم، سنن ابوداؤد اومصنف ابن ابی شيبه کښې موجود دی[3].

**دَ حديث مبارک نه مستنبط شوی احکام اومسائل:** دَدې حديث شريف نه ډيرزيات مسائل مستنبط کيږي. په کوم کښې چه يو څو لاندې ذکرکولې شي:

① معلومه شوه چه توکانړې ناپاکه نه وی، بلکه پاکې وی[4].

② توکانړې توکل مونځ نه باطلوی[5].

---

[1]) تفصيل وراندې په حاشيه نمبر ۴ کښې راځي.

[2]) حاشية السندی علی الجامع الصحيح: ۱۲۲/۱،الطاف سنز.

[3]) فتح الباري: ۶۶۵/۱.صحيح مسلم کښې دَ مذکوره حديث متعلقه حصه: «ثم مضينا حتى أتينا جابر بن عبدالله في مسجده..... أتانا رسول الله صلى الله عليه وسلم في مسجدنا هذا...... قال [رسول الله صلى الله عليه وسلم]: "فإن أحدكم إذا قام يصلي، فإن الله تبارك وتعالى قبل وجهه، فلا يبصقن قبل وجهه، ولا عن يمينه، وليبصق عن يساره، تحت رجله اليسرى، فإن عجلت به بادرة، فليقل بثوبه هكذا" ثم طوى ثوبه بعضه على بعض......(صحيح مسلم، كتاب الزهد، باب: حديث جابر الطويل وقصة أبي اليسر، رقم الحديث: ۳۰۰۸)». سنن ابی داؤد کښې مذکوره حديث شريف: «عن أبي سعيد الخدري: أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يحب العراجين ولا يزال في يده منها، فدخل المسجد فرأى نخامة في قبلة المسجد فحكها، ثم أقبل على الناس مغضبا فقال: أيسر أحدكم أن يبصق في وجهه، إن أحدكم إذا استقبل القبلة فإنما يستقبل ربه عزوجل والملك عن يمينه، فلا يتفل عن يمينه ولا في قبلته، وليبصق عن يساره أو تحت قدمه، فإن عجل به أمر فليقل هكذا – ووصف لنا ابن عجلان ذلك – أن يتفل في ثوبه ثم يرد بعضه على بعض»(سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، باب: في كراهية البزاق في المسجد، رقم الحديث: ۴۸۰، ۴۸۵).مصنف ابن ابی شيبه کښې مذکوره حديث شريف: «عن أبي سعيد قال دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم وبيده عرجون – وكان يحب العرجون – ، فرأى نخامة في القبلة، فحكها، ثم أقبل على الناس فقال: "أيهاالناس، إن أحدكم إذا قام يصلي استقبله الله، وعن يمينه، ملك، أفيحب أحدكم أن يستقبله الرجل فيبزق في وجهه؟ فلا يبزق أحدكم في القبلة و لا عن يمينه، وليبزق تحت رجله اليسرى أو عن يساره، فإن عجلت به بادرة فليقل هكذا" يعني: في ثوبه. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، من كره أن يبزق تجاه المسجد، رقم الحديث: ۷۵۲۷، ۱۴۴/۵)»

[4]) شرح الكرماني: ۷۵/۴، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۶۳/۳، عمدة القاري: ۲۳۱/۴.

[5]) شرح الكرماني: ۷۵/۴، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۶۳/۳، عمدة القاري: ۲۳۱/۴.

③ دَ قبلې طرف محترم او مكرم كيدل اودا صفا ساتل هم معلوميږي[1].

④ داهم معلوميږي چه دَ مونځ په حالت كښې مونځ گذار دَ خپل رب سره مناجات كښې مشغول وي[2].

⑤ دَدې امر ډيره لويه خطا كيدل هم معلوم شو چه دَ مونځ گذار توجه بواسطه جانب قبله دَ الله تعالى طرف ته وي، په دې وجه دغه طرف ته توكانړې توكل دَ ادب خلاف كيدو دَ وجې نه ممنوع دى[3].

⑥ نبى او كس طرفونو نه دَ نبې طرف افضل كيدل معلوم شو[4].

⑦ جمات دَ ناخوښه څيزونو نه پاك صفا ساتل هم معلوم شو[5].

⑧ دَ جمات دَ امام دَ پاره دَ جمات دَ احوالو كتل او خيال ساتل هم مستحن او مستحب دى[6].

## ۸- بَابٌ: عِظَةِ الإِمَامِ النَّاسَ فِي إِتْمَامِ الصَّلاَةِ، وَذِكْرِ الْقِبْلَةِ

داباب امام له خلقو ته دَ مونځ دَ پوره كولو اودَ قبلې دَ ذكر نصيحت كولو بيان كښې دي

**دَترجمة الباب ماقبل سره مناسبت او مقصد:** علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله فرماني. دَدې باب كښې دلته ابواب سره هيڅ تعلق نه وو په دې وجه هم پخپله امام بخاري رحمه الله "وذكر القبلة" لفظ زيات كړو، چه (دا باب) دَ هغه ابوابو سره مناسب شى[7].

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه زما په نيز ابواب المساجد شروع شو ليكن دَدې باب دَ مسجد سره تعلق نه معلوميږي. بل وړاندې چه كوم دويم جز دَ باب دې يعنى "وذكر القبلة" په دې باندې اشكال پيدا كيږي چه په دې صورت كښې دَدې تعلق باب: استقبال القبلة سره شو، ابواب المساجد سره نه شو. زما رائې داده چه دَ قبلې ذكر تنبيهاً او استطراداً راغلې دې او مقصود اول جز دې او په عام توگه خلق په جمع سره مونځونه په جماتونو كښې كوى په دې اعتبار سره دا ابواب مساجد سره متعلق شو[8].

دَ مسجد مصالح ډير دى دَ هغه ټولو نه يو دا چه جهلاء جمات ته راشى دَ علماؤ عبادت ته په كتلو سره خپل عبادت صحيح كولې شى. وغيره وغيره. دَدې نه يو داهم دې چه امام دې دَ

---

[1]) شرح الكرماني: ۷۵/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ٤٢٢/٥، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۶۳/۳.

[2]) شرح الكرماني: ۷۵/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۶۳/۳.

[3]) شرح الكرماني: ۷۵/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۶۳/۳.

[4]) شرح الكرماني: ۷۵/٤، اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱۶۳/۳، عمدة القاري: ۲۳۱/٤.

[5]) التوضيح لشرح الجامع الصحيح: ٤٢٢/٥، فتح الباري: ۶۶۵/۱، عمدة القاري: ۲۳۱/٤.

[6]) فتح الباري: ۶۶۵/۱، عمدة القاري: ۲۳۱/٤.

[7]) فضل الباري: ۱۲۲/۳.

[8]) حاشيه تقرير بخاري: ۱۵۳/۳.

قوم نګراني کوي او د هغوي په غلطيانو باندې ئې توکي او هغوي دې پوهه کوي. مګر روره دا خو هم ضروري دي چه خپل حالات د مخکښې نه صحيح کړي[1].

علامه انور شاه کشميري رحمه الله فرمائي چه د امام بخاري رحمه الله دا عادت دې چه يوه سلسله روانه وي په مينځ کښې څه خاص فائده د هغه سلسلې د رواياتو نه مستفاد کيږي نو امام بخاري رحمه الله د لږ ساعت د پاره هغه سلسله کټ کړي او په هغه فائده جليله باندې تنبيه کوي.

شاه صاحب رحمه الله فرمائي چه ما د دې نوم "انجاز" کيخودې دې. دلته چونکه د استقبال قبلې سلسله روانه وه په دې کښې يو خاص خبره مينځ کښې راغله په هغې باندې خبرداره کولو د پاره امام بخاري رحمه الله دا ترجمه قائمه کړه[2].

په رومبي باب کښې ئې ادب خودلې وو چه د مونځ په حالت کښې د بلغم د توکلو غلبه وي نو د دې د دفع کولو په وخت د قبلې د طرف عظمت او ادب په خيال کښې اوساته. په دې باب کښې د مونځ د ارکانو پوره شان سره ادا کولو حکم ئې اوخودلو او په دې کښې هم د قبلې طرف ته مخ کولو ذکر ضمناً راغلې دې. لهذا سابقه باب سره ئې مناسبت معلوم دې.

او هم دا توجيه په کلي توګه محقق عيني رحمه الله او په جزوي توګه حافظ ابن حجر رحمه الله ذکر کړې ده. د دې دواړو اکابرو توجيه او مناسبت ابواب لره بعيد او ابعد ګرځولو سره د لامع الدراري دا توجيه مونږ اوجه منلو کښې په تردد کښې يو چه په دواړو ابوابو کښې جمات او د جمعې احکامو باندې دې خبرداړې ورکړې شوې دي ځکه چه نه باب سابق "إذا بدره البزاق فليأخذ بطرف ثوبه" کښې د جمات او جمع ذکر وو او نه په دې باب "عظة الإمام" کښې د اتمام صلوة حکم د جمات او جمع سره مخصوص دې. اتمام صلوة خو په هر مونځ کښې ضروري دې که هغه ځان له وي او که په جمع سره وي، که په جمات کښې وي او که غير د جمات نه وي.

او حضرت شاه ولي الله رحمه الله چه کوم مصالح "حجة الله" کښې ذکر کړې دي هغه هم د مساجد سره خاص نه دي، مطلق د جمع د پاره دي او پخپله امام بخاري رحمه الله هم دلته "ابواب المساجد" عنوان چرته قائم کړې دې؟ کتاب الصلوة لاندې مساجد او غير مساجد د ټولو احکام ئې مختلف عنوانات قائمولو سره بيان کړي دي. والله اعلم. واضحه دې وي چه د شاه ولي الله رحمه الله رساله شرح تراجم ابواب البخاري کښې باب عظة الإمام او د دې نه مخکښې هم د ډيرو ابوابو ذکر نشته دې[3].

---

[1]) الکنز المتواري ۱۰۸/٤، سراج القاري: ۲/٤٦۱.

[2]) فيض الباري: ۲/٥۱.

[3]) انوار الباري: ۱٤/٥.

حديث باب (رومبي حديث) [حديث نمبر ۴۰۸]

٤٠٨- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «هَلْ تَرَوْنَ قِبْلَتِي هَا هُنَا فَوَاللَّهِ مَا يَخْفَى عَلَيَّ خُشُوعُكُمْ وَلَا رُكُوعُكُمْ، إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي».[1]

**دَ حديث ترجمه:** دَ حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دې تاسو څه ګنړئ چه زما قبله هم دې طرف ته ده؟ زه قسم خورم وايم چه زما نه نه ستاسو خشوع پټه ده اونه ركوع، بيشكه زه خو تاسو دَ خپل شا طرف نه هم وينم.

**تراجم رجال:** دَمذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه راويان دى:

① عبدالله بن يوسف رحمه الله: دا عبدالله بن يوسف تنيسى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى په دويم جديث او تفصيلى احوال كتاب العلم، باب: ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوي دي[2].

② مالك رحمه الله: دا امام مالك بن انس رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى په دويم حديث او تفصيلى احوال كتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوي دي[3].

③ ابى الزناد رحمه الله: دا ابوالزناد عبدالله بن ذكوان مدنى قرشى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان لاندې تيرشوي دي[4].

④ الاعرج رحمه الله: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنى قريشى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان لاندې تيرشوي دي[5].

⑤ ابوهريرة رضي الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: امور الإيمان لاندې تير شوى دى[6].

---

[1]) أخرجه البخارى فى صفة الصلاة، باب: الخشوع فى الصلاة، رقم الحديث: ٧٤١، ومسلم فى صحيحه، فى الصلاة، باب: الأمر بتحسين الصلاة واتمامها والخشوع فيها، رقم الحديث: ٤٢٥، وفى جامع الأصول، حرف الصاد، القسم الأول: فى الفرائض وأحكامها وما يتعلق بها، الباب الثانى فى صلاة الجماعة، الفصل الرابع فى أحكام المأموم، الفرع الثالث: فى آداب المأموم، رقم الحديث: ٣٩١٢، ٦٤٣/٥.

[2]) كشف البارى: ٢٨٩/١، ١١٣/٤.

[3]) كشف البارى: ١٨٠/٢، ٢٩٠/١.

[4]) كشف البارى: ١٠/٢.

[5]) كشف البارى: ١١/٢.

[6]) كشف البارى: ٦٥٩/١.

**دَ حدیث شرح:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: هَلْ تَرَوْنَ قِبْلَتِي هٰهُنَا:
دَ حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول اکرم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو تاسو څه ګنړئ چه زما قبله هم دې طرف ته ده؟

**قوله:** "هَلْ تَرَوْنَ" دا استفهام انکاری دې او "ترون" نه مراد حقیقی رؤیت نه دې بلکه دادَ "تظنون" په معنی دې یعنی آیا تاسو دا ګمان کوئی....

**قوله:** "قِبْلَتِي" دې نه مراد اصطلاحی قبله نه ده بلکه دَ مونځ ګذار دَ مخې طرف مراد دې یعنی کوم طرف ته چه ما مخ کړې دې[۱].

**قوله:** "هٰهُنَا" ځکه چه عام قاعده خو دغه ده چه کله یو طرف ته مخ کړې شی نودَ هغې په مقابل طرف ته شاه راځی[۲].

اوس به دَدې جملې مکمل مراد دا شی اې زما صحابه کرامو دا تاسو چه داګنړئی چه په مانځه کښې زما مخ قبلې طرف ته وی وستاسو طرف ته مې شا وی په دې وجه ماته ستاسو دَ افعالو څه خبر نه وی نو ستاسو دا ګنړل صحیح نه دی بلکه زه چه څنګه دَ مخې نه ګورم هم دغه شان دَ شا نه هم ګورم[۳].

**قوله:** فَوَاللّٰهِ مَا يَخْفَى عَلَيَّ خُشُوعُكُمْ وَلَا رُكُوعُكُمْ: زه قسم خورم او وایم چه زما نه نه ستاسو خشوع پټه ده او نه رکوع. په یو روایت کښې "رکوعکم ولاخشوعکم" الفاظ راغلی دی[۴].

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دلته مراد ټول ارکان دی نه چه صرف رکوع اوسجود. او یو احتمال داهم دې چه دَ رکوع ذکرکولوسره سجود مراد اخستې شوې وی، ځکه چه دَ سجدې په حالت کښې دَ پوره درجې خشوع وی. په دې حال کښې چه دَ صحیح مسلم حدیث کښې رکوع سره دَ سجود ذکر په تصریح سره موجود دې[۵]. چه په دې صورت کښې دَ سجود نه مراد ټول ارکان واخستې شی نو بیا به دَ رکوع ذکر دَ تخصیص بعد التعمیم دَ قبیل نه وی یا په دې وجه چه رکوع دَ نورو ارکانو په نسبت یو لوئی رکن دې په دې اعتبار چه امام په رکوع کښې موندونکې دَ رکعت حاصلونکې ګرځولې شوې دې. اودَ رکوع نه پاتې کیدونکې دَ رکعت فوت کونکې ګرځولې شوې دې[۶].

---

[۱]) عمدة القاري: ۲۳۲/٤. شرح العلامة الزرقاني على المواهب اللدنيه بالمنح المحمديه، المقصد الثالث فيما فضله لله تعالى به، الفصل الأول في كمال خلقته وجمال صورته صلى الله عليه وسلم: ۲٦٤/٥.
[۲]) ايضاً
[۳]) اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ۱٦٥/۳، فتح الباري: ٦٦٦/۱ عمدة القاري: ۲۳۲/٤.
[۴]) شرح العلامة الزرقاني على المواهب اللدنيه بالمنح المحمديه، المقصد الثالث فيما فضله لله تعالى به، الفصل الأول في كمال خلقته وجمال صورته صلى الله عليه وسلم: ۲٦٤/٥.
[۵]) فتح الباري: ٦٦٦/۱.
[۶]) عمدة القاري: ۲۳۲/٤، شرح العلامة الزرقاني على المواهب اللدنيه بالمنح المحمديه، المقصد الثالث فيما فضله لله تعالى به، الفصل الأول في كمال خلقته وجمال صورته صلى الله عليه وسلم: ۲٦٤/٥.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه بعضې علماؤ د ركوع لفظ ليدو سره د خشوع تفسير په سجود سره كړې دې مګر زما په نيز اولى دا دى چه خشوع په خپل عموم باندې اوساتلې شى دې د پاره چه د مانځه ټولو افعالو ته شامل شى. ګنې په صورت اولى كښې به صرف د سجدې او ركوع ذكروى د باقى به نه وى. او چه كله د مونځ ټول افعال په خشوع كښې دننه راغلل او بيا په خاص توګه ئې ركوع خكه ذكر كړه چه زيات ګړبړ هم په ركوع كښې كيږى، هم ددې اتمام نه كيږى، سجده خو لږه ډيره بيا هم اوشى خكه چه په سجده كښې سر په زمكه باندې كيخودې شى. په دې وجه هلته لږ ساعت ايساريږى په خلاف د ركوع او ډير خلق خو داسې دى چه د هغوى د تادئې د وجې د هغوى هډو ركوع نه كيږى[1].

په اصل كښې مشهوره خو داده چه د خشوع تعلق د زړه سره دې او د خضوع تعلق د جوارحو سره دې. ليكن حقيقت دادې چه خشوع د زړه سره محدود ګول صحيح نه دى خكه چه د خشوع تعلق خنګه چه زړه سره دې لكه چه د قرآن پاك په دې آيت: ﴿اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ﴾ كښې ذكر دى، هم دغه شان د خشوع تعلق د اصواتو سره هم دې لكه چه: ﴿وَخَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ﴾ او دغه شان د خشوع تعلق د سترګو سره هم دې لكه چه قرآن پاك كښې راغلى دى: ﴿خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ﴾.

**قوله**: إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي: بيشكه زه تاسو د خپل شا طرف نه هم وينم. دا جمله به ماقبل جمله كښې موجود جواب قسم "مايخفى على خشوعكم ولا ركوعكم" بدل يا بيان جوړ شى[2].

**د نبى كريم ﷺ د شاته كتلو مطلب**: د نبى كريم ﷺ شاته ليدل حقيقى كتل وو ادراكى يعنى عقلى نه وو. د اهل سنت والجماعة په نيز هم دغه حق دى چه د كتلو د پاره د يو خاص اندام كيدل يا مخامخ كيدل شرط نه دى[3] او د امام بخارى رحمه الله هم دغه مسلك معلوميږى. زمونږ

---

[1] تقرير بخارى شريف: ١٥٣/٢.

[2] اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٦٥/٢، عمدة القارى: ٢٣٢/٤، شرح العلامة الزرقانى على المواهب اللدنيه بالمنح المحمديه، المقصد الثالث فيما فضله الله تعالى به، الفصل الأول فى كمال خلقته وجمال صورته صلى الله عليه وسلم: ٢٦٤/٥.

[3] قاضى ابوالوليد الباجى رحمه الله فرمائى: بعضې حضرات ددې خبرې طرف ته تلى دى چه "إني لأراكم من وراء لظهرى" معنى "لأعلم بأفعالكم" ده خكه چه رؤيت د علم په معنى كښې هم وى لكه چه د الله تعالى فرمان دې: ﴿اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ﴾ [الفيل: ١] په دې آيت كښې د "الم تر" معنى "الم تعلم" ده. او جمهور ددې خبرې قائل دى چه دې خائى كښې رؤيت حقيقى مراد دى. قاضى ابوالوليد رحمه الله نور فرمائى: زما په نيز صحيح هم دغه ده [كوم چه پورته د جمهورو مسلك بيان شو] خكه چه چرې ددې نه رؤيت علمى مراد واخستې شى نو د رسول الله ﷺ ددې قول "من وراء ظهرى" به هيڅ معنى باقى پاتې نه شى. خكه چه كله ددې نه مراد علم واخستې شى نو شاته كتو او مخې ته كتو كښې به څه فرق باقى پاتې نه شى. بلكه رسول الله ﷺ خو خبر وركړې دې لكه خنګه چه زه تاسو د خپل وړاندې كيدو په حالت كښې وينم هم دغه شان چه كله تاسو شاته شئ نو زه بياهم تاسو وينم. (المنتقى شرح مؤطا مالک، كتاب الصلوة، باب: فى العمل فى جامع الصلاة، رقم الحديث: ٣٩٦، ٣١٨/٢)، عمدة القارى: ٢٣٢/٤.

دَدې خبرې تائيد دَ صحيح مسلم دَهغه روايت نه هم کيږي په کوم کښې چه دي: «إني لأبصر من ورائي كما أبصر من بين يدي»[1]

علامه سيوطي رحمه الله الخصائص الكبري كښې دَجمهورو مذهب هم دا نقل كړې دې[2]. ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي چه څه خلقو تاويلاً دلته "أرى" دَ "أعلم" په معنى اخستې دې لكه چه الله تعالى په قرآن حكيم كښې دَ حضرت شعيب عليه السلام قول: ﴿إِنِّيٓ أَرَىٰكُم بِخَيۡرٖ﴾ نقل كړې دې كوم چه هغوى خپل قوم ته وئيلې وو. دَدې مطلب كتل نه وو بلكه پيژندل وو، چه هغوى اوفرمائيل زه بنه شان سره پوهيږم چه تاسو مالدار يئ. چنانچه په دې صورت كښې به دَحديث مبارك مطلب دا شي چه نبى كريم ﷺ فرمائي چه زه ستاسو دَ خشوع او ستاسو دَ ركوع تماميت پيژنم الله تعالى ستاسو دَ احوالو معرفت زما په زړه كښې اچوى.

ابن عبدالبر رحمه الله دَدې په جواب كښې فرمائي چه په دې دعوى كښې په ظاهر مخالفت كولو سره دَرسول الله ﷺ دا صفت محدود كول دى حالانكه څنګه چه نور خرق عادت امور دى او معجزات نبويه دى دغه شان دا بيان نبوى ﷺ دې هم خرق عادت او معجزه تصور كړې شى اودَ دې هم ظاهرى معنى دې مراد واخستې شي. البته دَدغه كتلو كيفيت به څه وو نودا دَ نبوت دَ اعلامو اومعجزاتو نه يو معجزه كيدو دَ وجې نه پيژندل ممكن نه دى.

دَ ابوبكر الاثرم رحمه الله وينا ده چه ما دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله نه دَ حضورپاك دَدې قول: «أني لأراكم من وراء ظهري» باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى جواب راكړو چه حضورپاك به څنګه خپلې مخې ته كتل هم هغه شان به ئې خپل شاته هم كتل. ما وئيل چه دَ يو انسان نه دا خبره څنګه ممكن ده هغه خو خپلې مخې ته يا خپل ښى اوګس طرف والا ليدلې شى نو په دې باندې هغوى ډيره په مضبوطه طريقه رد اوكړو[3].

دَدې شاته كتو په تشريح كښې بعضې حضراتو وئيلى دى چه دې نه مراد دادې چه دَوحى او الهام په ذريعه به حضورپاك ته دَ هغوى دَحالت علم كيدلو اګرچه چرې هغوى به شاته وو. ليكن دا توجيه ضعيف ده څكه چه دَ وحى او الهام په ذريعه دَهغوى علم كيدل دا خو بيا دَ مونځ سره مخصوص نه دى دَ مانځه نه علاوه هم كيدې شي[4].

بعضې حضراتو وئيلى دى چه دَدې مطلب دادې چه كله تاسو ښى او ګس طرف ته يئ يا

---

[1]) حدثنا أبوكريب محمد بن العلاء الهمداني، حدثنا أبوأسامة، عن الوليد يعني ابن كثير، حدثني سعيد بن أبي سعيد المقبري، عن أبيه، عن أبي هريرة، قال: صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم يوما ثم انصرف فقال: يا فلان! ألاتحسن صلاتک؟ ألا ينظر المصلي إذا صلى كيف يصلي؟ فإنما يصلي لنفسه، إني والله لأبصر من ورائي كما أبصر من بين يدي.(صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: الأمر بتحسين الصلاة وإتمامها والخشوع فيها، رقم الحديث: ٤٢٣).

[2]) الخصائص الكبرى، باب: المعجزه والخصائص في عينيه الشريفتين: ١٠٦/١، فتح الباري: ٦۶۶/١ عمدة القاري: ٢٣٢/٤.

[3]) الاستذكار لابن عبدالبر، كتاب الصلاة، باب: حديث أبي هريرة: "أترون قبلتي هاهنا؟" : ٢٧٤/٦-٢٧٣.

[4]) فتح الباري: ٦۶۶/١ شرح الزرقاني على المؤطا، كتاب الصلوة، العمل في جامع الصلاة: ٣٠٢/١.

شاته پئ نو زه تاسو ته د سترګې د ګوټ نه ګورم اوستاسو کیفیت زمانه پټ نه وي. دا توجیه هم ضعیف ده[١]. لهذا دلته به دا وئیلي شي چه دلته د کوم رؤیت حضورپاك ذکر فرمائی دا رؤیت کشفیه نه دې یا دا رؤیت د سترګې په ګوټ نه دې بلکه دا رؤیت هم داسې دې لکه چه مخامخ څه څیز وي او هغه انسان وینی. حضورپاك فرمائی چه کله تاسو شاته پئ نوماته تاسو هغه وخت هم داسې ښکارئی. امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائیلي دي چه په دې کښې د حیرانتیا هیڅ خبره نشته. د سرې غوږ مخامخ آواز هم اورې، د ښي طرف اود ګس طرف آواز هم اوری او شاته آواز هم اوری. دغه شان د انسان قوت شامه ده دمخې نه یا شانه خوشبوئی یا بدبوئی راځي دهغې هم هغه احساس کوی. د ښي یا ګس طرف نه چه کومه خوشبوئی یا بدبوئی راځي دهغې هم احساس کوی. لکه څنګه چه د قوت سامعه او قوت شامه د پاره مقابل او دمخې طرف ته کیدل ضروری نه دی نو دغه شان څه لرې خبره ده چه الله تعالی رسول الله ﷺ ته هم هغه طاقت ورکړې وی چه دعامو انسانانو قوت سامعه او قوت شامه ته حاصل وي[٢].

نورحضرات دا فرمائی چه په اصل کښې به د رسول اکرم ﷺ د شاته مونځ ګذارو کیفیت منکشف کیدلو. په دې وجه به دهغوی عکس د قبلې په دیوال کښې منعکس کیدلو[٣].

بعضې حضراتو دا وئیلي دی چه دحضورپاك په ملا کښې د سم الخیاط برابر، بعضو وئیلي دی چه یو او بعضو وئیلي دی چه دوه سترګې وې. اود کپړو په مینځ کښې حائل کیدل د ابصار او د رؤیت دپاره مانع نه وو او حضورپاك به د خرق عادت په توګه اود معجزې په توګه په هغه سترګوکومې چه د حضورپاك په شا کښې وې شاته طرف ته مونځ ګذار کتل[٤].

لیکن دا خبره د دلائلو په اعتبارسره قوی نه ده تردې چه علامه قسطلانی رحمه الله داخبره "المواهب اللدنیه" کښې نقل کولوسره وئیلي دی چه که چرې داخبره د حضورپاك نه په صحیح طریقې سره ثابته شی نو بیا به دا قبلولې شی اودا به دخرق عادت د قبیل نه ګرځولې شی. په بل صورت کښې به دا د ظاهر حدیث نه د مخالف کیدو په وجه قبلول صحیح نه وی. شارح المواهب علامه زرقانی رحمه الله هم ددې خبرې تائید کړې دې[٥].

---

[١] المنتقی شرح مؤطأ مالک، کتاب الصلوة، باب: فی العمل فی جامع الصلاة، رقم الحدیث: ٣٩٦، ٣١٨/٢.إکمال إكمال المعلم، كتاب الصلاة، خروج النبی صلى الله عليه وسلم لبنی عمرو بن عوف ليصلح بينهم: ١٧٩/٢-١٧٨، فتح الباري: ٦٦٦/١،عمدة القاري: ٢٣٢/٤.

[٢] شرح العلامة الزرقانی علی المواهب اللدنیه بالمنح المحمدیه، المقصد الثالث فیما فضله لله تعالی به، الفصل الأول فی کمال خلقته وجمال صورته صلی الله علیه وسلم: ٢٦٦/٥.

[٣] فتح الباري: ٦٦٦/١، عمدة القاري: ٢٣٢/٤، شرح الزرقانی علی المؤطأ، کتاب الصلوة، العمل فی جامع الصلاة: ٣٠٢/١.

[٤] فتح الباري: ٦٦٦/١، عمدة القاري: ٢٣٢/٤، شرح الزرقاني على المؤطأ. كتاب الصلوة، العمل فی جامع الصلاة: ٣٠٢/١. الخصاص الکبری، باب: المعجزه والخصائص فی عینیه الشریفتین: ١٠٧/١.

[٥] شرح العلامة الزرقانی علی المواهب اللدنیه بالمنح المحمدیه، المقصد الثالث فیما فضله لله تعالی به، الفصل الأول فی کمال خلقته وجمال صورته صلی الله علیه وسلم: ٢٦٧/٥.

**دمنكرينو اشكالات اوځ هغوی دلائل:** د عقل نه خالي خلقو يو جماعت داحديث شريف رد كړي دي. دهغوي وينا ده چه دا حديث څنګه قبلولي شی حالانكه ددي برعكس احاديث موجود دي. مثلاً د حضرت ابوبكره ﷺ حديث كوم كښي چه دي چه هغوی امام په ركوع كښي ليدو سره د صف نه شاته نيت تړلو سره ركوع كړي وه اوددي نه پس قدم په قدم تلو سره صف ته اورسيدلو. بيا چه كله نبی كريم ﷺ د مونځ نه فارغ شو نورسول الله ﷺ تپوس اوكړو چه هغه څوك سړي دي چه د صف نه شاته اودريدو سره ئی ركوع اوكړه بيا تلو سره په صف كښي شامل شو؟ نو حضرت ابوبكره ﷺ جواب وركړو چه ما. نو نبی كريم ﷺ ورته اوفرمائيل الله تعالى دي ستا په حرص كښي نوره هم اضافه اوكړي خو بيا داسي مه كوه. (بلكه په صف كښي شامليدو سره مونځ شروع كوه)[۱] دغه شان د حضرت انس ﷺ حديث دي په كوم كښي چه هغه د نبی كريم ﷺ نه روايت كوی چه يو سړي تيز تيز راتګ سره راغلو او صف كښي داخل شو، نود هغه سا تيزه چليدله. بيا چه كله هغه په صف كښي داخل شو نو هغه اووئيل: "الحمدلله حمداً كثيراً طيبا مباركا فيه". بيا د مونځ نه فارغيدو باندي نبی ﷺ تپوس اوكړو هغه سړي څوك دي چه دا كلمات ئی اووئيل..... ..([۲])

چنانچه دغه جماعت ددي قسم احاديث نقل كولو نه پس وئيلي دی چه ولي نه ګورئی چه رسول الله ﷺ ته ددي خبري علم اونه شو چه د صف نه شاته ركوع كولو سره صف كښي شامليدونكي څوك دي. تردي چه رسول الله ﷺ ددي باره كښي تپوس اوكړو اود دويم حديث مطابق حضورپاك ته د دغه كلماتو د ويونكی هم علم اونه شو تردي چه حضورپاك تپوس اوكړو چه دا كلمات چا اووئيل. نو بيا دا صحيح كيدل څنګه ممكن كيدي شی چه نبی ﷺ به په مانځه كښي د خپل شاطرف نه هم كتل. كه چري داسي كيدي نود مذكوره دوارو احاديثو په شان واقعه به نه پيښيدله.

**د اشكالاتو جواب:** ددي په جواب كښي ابن عبدالبر ﷫ وائی چه د پورته ولي د اشكال جواب دادي چه په هره يوه راتلونكي لمحه كښي به د نبی كريم ﷺ فضائل په مقابله د سابقه لمحي زياتيدل يعنی په هغي كښي به زياتوالي كيدو. اوداسي د نبی ﷺ د دنيا نه پرده كولو پوري كيدل لكه دا خبره دتولو په مخكښي ده چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه زه د نبوت ملاويدو نه مخكښي يو بنده ووم اود رسول جوړولو نه مخكښي

---

[۱]) عن الحسن أن أبابكرة جاء ورسول الله صلى الله عليه وسلم راكع فركع دون الصف، ثم مشى إلى الصف، فلما قضى النبي صلى الله عليه وسلم صلاته قال: "أيكم الذي ركع دون الصف ثم مشى إلى الصف؟ فقال أبوبكرة: أنا، فقال النبي صلى الله عليه وسلم: "زادك الله حرصا ولا تعدْ. (سنن ابي داؤد، كتاب الصلاة، باب: الرجل يصلي وحده خلف الصف، رقم الحديث: ٦٨٣).

[۲]) عن أنس أن رجلا جاء فدخل الصف وقد حفزه النفس، فقال: "الحمدلله حمداً كثيراً طيبًا مباركا فيه . فلما قضى رسول الله صلى الله عليه وسلم صلاته فقال: "أيكم المتكلم فالكمات؟ . فأرمّ القوم. فقال: "أيكم المتكلم بها؟ فإنه لم يقل بأساً . فقال رجل: جئت وقد حفزني النفس فقلتها. فقال: "لقد رأيت اثنى عشر ملكاً يبتدرونها أيهم يرفعها . (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: ما يقال بين تكبيرة الإحرام والقراءة، رقم الحديث: ١٣٥٧).

يونبې ووم. دغه شان نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه تاسو کښې څوك (زما باره کښې) دا مه وايئ چه زه د حضرت یونس بن متی ﷺ نه بهتر یم. یو سړی حضورپاك ته "یاخیرالبریة" وئیلوسره مخاطب کړو نو حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو "خیرالبریة" خو حضرت ابراهیم ﷺ وو.
دغه شان یو سړی حضورپاك ته "یاسیدابن السادة" یا "یاشریف ابن الشرفاء" وئیلو سره مخاطب کړو نو حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه هغه خو حضرت یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم ﷺ دي. نو د حضورپاك دا مبارك ارشاد په حضورپاك باندې د سورة الفتح د نازلیدو نه دمخکښې وخت دې. بیا چه کله سورة الفتح نازل شو او په هغې کښې دا آیت: ﴿لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ نازل شو په داسې حال کښې چه د حضورپاك نه مخکښې د چا هم سابقه ګناهونه معاف شوي نه وو. الغرض چه کله داسې اوشو نو هغه وخت حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو: «أنا سيد ولد آدم ولا فخر». او هم هغه وخت حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو الله تعالی ښه شان سره پوهیږي چه زه تاسو خلق د شا نه وینم.
الغرض د حضورپاك فضائل ورځ په ورځ زیاتیدلے کمیدل نه. (نو چه کله داسې ده نو دا وئیلي شی چه د معترضینو پیش کړې شوی نظائر به د شروع د دور وی روستو د حضورپاك د طرف نه دا ارشاد مبارك مخې ته راغلو چه زه تاسو د خپل شا طرف نه وینم.)[1]

**د حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله ذکرکړې شوې تشریح:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه په دې روایت کښې د شارحینو حضراتو پنځه اقوال دی. کوم چه مختلفو شراحو جدا جدا ذکرکړی دی. ماته چرته یو ځائی نه دی ملاؤ شوی:

① اول دا چه التفات سره به ئی کتل. مګرپه دې باندې دا اشکال دې چه په دې کې د حضور پاك څه خصوصیت دې؟ د حضورپاك نه علاوه بل څوك خوهم په التفات سره کتلې شی.

② دویم قول دا دې چه د وحی په ذریعه علم شوې وو. دا د اول نه زیات صحیح دې. مګر په دې صورت کښې د "إني لأراكم" وئیلو نه زیات مناسب "إني لأوحى" وو.

③ دریم قول دا دې چه د قبلې دیوال به د حضورپاك د پاره د آئینې په مثال کیدلو. صحابه کرامو رضي الله عنهم چه به څه کول هغه به حضورپاك ته ښکاریدل. عام مشائخو دا اختیارکړې ده.

④ څلورم قول دا دې چه د حضورپاك د سټ شاته دوه سترګې وې په کوم سره چه به حضورپاك کتل کول مګر دا محققینو ردکړې دې. په دې وجه چه کله چرې دا خبره صحیح وې نود حضورپاك په احوالو کښې به خامخا د دې تذکره کیدله.

⑤ او پنځم قول د اوریدو نه مخکښې یو تمهید واورئی هغه دا چه د الله تعالی لیدل په دنیاکښې ممکن نه دی او د اهل سنت والجماعة عقیده ده چه دا څیز به په جنت کښې وی. لیکن معتزلؤ انکارکړې دې. دا ځکه چه په دې سره خودا لا زم راځی چه د الله تعالی د پاره جهت وی. مرئی د رائی مخامخ وی. د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د رؤیت د پاره د

---

[1] الاستذكار لابن عبدالبر، كتاب الصلاة، باب: حديث أبي هريرة: "أترون قبلتي هاهنا؟" : ٦/٢٧٢ – ٢٧٣.

جهت كيدل دذې عالم سره خاص دې د آخرت په عالم كښې به جهت ضروري نه وي. نو لكه څنګه چه به په آخرت كښې تول كسان الله تعالى بغيرد جهت نه ګوري دغه شان څه عجيبه ده چه په دنيا كښې د حضورپاك د پاره په مونځ كښې دا خصوصيت وي چه حضورپاك مقتديان بغيرد جهت نه ګوري. هم دا زما په نيز راجح دي[1].

**دكلام خلاصه:** د پوره بحث نه څه اهم د نتيجې خبرې معلوميږي چه مختصراً لاندې نقل كولې شي:

① علامه سهيلي الشامي رحمه الله ليكلي دي چه قاضي رحمه الله فرمائيلي دي چه حضورپاك ته دذې صفت حاصليدل د معراج د شپې نه په واپسې باندې شوي وو. لكه څنګه چه موسى عليه السلام الله تعالى سره په كوه طور باندې كلام كړې وو نود هغې نه پس د هغوي په بصيرت كښې ډيره زياته اضافه شوې وه. تردې چه هغوي به په توره تياره شپه كښې د لسو فرسخو د فاصلې نه هم تور ميږې ليدلو.[2]

② دا رؤية رؤية ادراك وو او رؤية د اهل حق په نيز د يو اندام، رڼرا يا بل څه څيز مخې ته راتلو سره نه حاصليږي. دا شان د حق تعالى شانه دي. چه هغه دكتلو د پاره نه يو اندام مثلاً ستركه وغيره محتاج دې او نه د هغې د كتلو د پاره د څه رڼرا ضرورت وي اونه د الله تعالى د كتلو د پاره دا ضروري دي چه څوك به د هغه مخې ته راځي نو بيا به د هغه د طرف نه د كتلو فعل صادريږي. لكه انسان چه ترهغه وخته پورې به هغه كتونكې نه يادېږي تركومې پورې چه د هغه مخې ته د مذكوره دريو امورو نه يو امر په وجود كښې رانه شي.

دا خو تفصيل وو د خالق د ليدو، پاتې شو مخلوق نود هغوي كتل خو به هم په دغه دريو څيزونو باندې موقوف وي. چنانچه د چا ستركې خو شته ليكن تياره ده اود هغه د ستركې مخې ته څوك هم نشته نودا نه شي كتلې د خالق په نسبت سره چونكه نبي كريم ﷺ هم مخلوق دي لهذا د هغوي دكتلو صفت به هم په دغه امورو باندې موقوف وي. البته هغه ذات اقدس چه په ستركه كښې بصارت پيدا كولو باندې قادر دې هم هغه په دې خبره باندې هم قادر دې چه د ستركې نه علاوه په بل اندام كښې د ليدو صفت راپيدا كړي. چنانچه د حضورپاك شانه ليدل به هم د خرق عادت په توګه هم د دې قبيل نه وي.[3]

③ قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چه د حضورپاك دا خبرد دې په ظاهر باندې محمول كول اولى دي. څكه چه په دې امر كښې د نبي كريم ﷺ د كرامت او د بزرګۍ په اوچته درجه كښې اظهار دي.[4]

---

[1] تقرير بخاري شريف: ۲/۱۵۳.

[2] سُبل الهدى والرشاد فى سيرة خير العباد، جماع أبواب صفة جسده الشريف صلى الله عليه وسلم، الباب الخامس: فى صفة عينيه وحاجبيه صلى الله عليه وسلم، تنبيهات: ۳٦/۲.

[3] سبل الهدى والرشاد فى سيرة خير العباد، جماع أبواب صفة جسده الشريف صلى الله عليه وسلم، الباب الخامس: فى صفة عينيه وحاجبيه صلى الله عليه وسلم، تنبيهات: ۲/ ۳٦ - ۳۷.

[4] سبل الهدى والرشاد فى سيرة خير العباد، جماع أبواب صفة جسده الشريف صلى الله عليه وسلم، الباب الخامس: فى صفة عينيه وحاجبيه صلى الله عليه وسلم، تنبيهات: ۲/ ۳٦ - ۳۷.

**دَ نبی کریم ﷺ دَ پاره دعلم غیب په ثبوت باندې يو غلط استدلال:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی "من وراء ظهري" بعضې خلقو دې نه علم غيب مراد اخستې دې. ليکن دا بالکل غلطه ده ځکه چه دَدې مطلب دادې چه زه پخپله دَ مونځ ګذارو حالات وينم اوداسې ماته علم کيږی. بل دا حالت کُلی هم نه دې پخپله دَ حضرت ابوبکره رضي الله عنه په روايت کښې دی چه هغه جمات ته راغلو هلته جمع کيدله، هغه هم دَ لرې نه رکوع اوکړه. دَمانځه نه پس حضورپاك ته دا خبره په تپوس کولو سره معلومه شوه.
دغه شان يوروايت کښې دی چه يو سړې سانيولې راغلو اودَ رکوع نه اوچتيدو سره ئې لږ په اوچت آواز سره "حمداً طيباً کثيراً مباركاً" اووئيل. حضورپاك دَ مونځ نه پس تپوس اوکړو نو بيا ورته معلومه شوه چه فلانکې سړې وو. لهذا قاعده کليه نه شوه او بعضې ظاهريه دَ خپل ظاهربين دَ وجې نه داسې وائی چه دَدې ظاهری معنی مراد ده. يعنی دَ حضورپاك په سټ مبارك کښې دوه سترګې لګيدلې وې. ليکن دا صحيح نه ده. که چرې داسې وې نو خامخا به چرته نه چرته يو حديث کښې دَدې تذکره ملاويدله لکه مهر نبوت، په ډيرو احاديثو کښې دَدې ذکردې[1].
علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه دا تنبيه هغه خلقو ته وه چه تر دغه وخته پورې (په ايمان او يقين کښې) پاخه شوی نه وو، څه کمزوری پاتې شوی وو ګنی دَ صحابهٔ کاملين رضي الله عنهم په حق کښې دَ الله تعالى کتل (دَدې دَپاره) کافی وو (چه مونځونه په مکمل خشوع اوخضوع سره اوکړی، ځکه) چه کاملينو ته خو دَ احسان مرتبه حاصله وی. البته قاصرين تردغه وخته پورې چه دَ احسان مرتبې ته نه وو رسيدلی دَهغوی په حق کښې خپل مرشد مثلاً دَ حضورپاك کتل ډير مؤثر دی ځکه چه دَ حضورپاك کتل بالکل مشاهَد، ظاهر او باهر دی.[2]
**ترجمة الباب سره دَ حديث شريف مناسبت:** علامه عينی رحمه الله فرمائی چه دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت به داسې جوړيږی چه په حديث کښې مونځ ګذارو ته نصيحت اوکړې شو. هغوی ته دا وينا کولو سره تنبيه اوکړې شوه چه دَ نبی کريم ﷺ نه دَ مونځ ګذارو رکوع، سجده او دَهغوی خشوع اوخضوع پټه نه پاتې کيږی ځکه چه نبی کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه زه خپل شا طرف ته هم کتلې شم لکه چه وړاندې ګورم[3].
علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه دا شبه کيدې شي چه په حديث باب کښې بيشکه لفظ دَ قبلې راغلو مګر صرف په لفظ راتلو سره خو ترجمة الباب قائميدې نشی؟ دَ ترجمة الباب (لاندې ذکرکړې شوې حديث) کښې خو دَمذکوره عنوان سره متعلق څه مسئله ذکرکيدل پکار دی.

---

[1] حاشيه تقرير بخاري: ۱۵۳/۳.
[2] فضل الباری: ۱۲۲/۳.
[3] عمدة القاري: ۲۳۲/۴.

جواب دادې چه دلته امام بخاري رحمه الله په ډير مزيدار او عجيبه انداز سره دَ يوې مسئلې استنباط کوی کومه چه هم دَ قبلې سره متعلق ده. هغه دا چه انحراف عن القبله چه بعضې وختونو کښې مونځ مفسد کوی په دې انحراف کښې دَ کوم يو اندام اعتبار دې؟ (يعنی دَ کوم يو اندام منحرف عن القبله کيدو سره مونځ فاسديږی.) نو معلومه دې وی چه دَ انحراف درې صورتونه دی:

① يو دا چه په سينې سره انحراف وی يعنی دَمونځ گذار سينه دَ قبلې نه واوړی.

② دويم دا چه صرف په مخ سره انحراف وی (يعنی مخ دَ قبلې نه واوړی).

③ دريم دا چه صرف نظر او سترگه اخوا (يعنی دَ قبلې نه) اخوا شی.

زمونږ فقهاء ليکی چه ړومبې صورت مفسدصلوة دې، دويم مکروه دی او دريم دَ ضرورت په وخت بغيردَ څه کراهت نه جائز دی، بغيردً ضرورت نهدا هم مکروه دې مگر دَدې کراهت دَ دويم (دکراهت نه) کم دې. غالبًا هم دَدې مسئلې طرف ته امام بخاري رحمه الله څه قدرې اشاره کوی چه اوگورئ حضورپاك فرمائی چه زه دَ شانه هم گورم يعنی په مونځ کښې. نو معلومه شوه چه دَانحراف عن القبله په مسئله کښې دَ نظر اوبصر اعتبار نشته (دَدې په منحرف کيدو باندې به مونځ نه فاسديږی) گنی په شاته کتلوسره به دَ حضورپاك مونځ معاذالله فاسد يا مکروه گرځی. نو په انحراف کښې به اعتبار صرف دَ سينې او مخ وی. (الغرض) په حديث کښې دَ قبلې سره متعلق دَ يوې مسئلې طرف ته لطيف اشاره ده، لهذا اوس شبه پاتې نه شوه).[1]

**دَ حديث شريف نه مستنبط شوی امور او احکام:** دَ مذکوره حديث شريف نه ډير احکام مستنبط کيږی دَهغې نه څه لاندې ذکرکولې شی:

① دَدې حديث نه معلومه شوه چه مونځ په ډيره خشوع اوخضوع سره، او ټول ارکان په کاملې طريقې سره ادا کول پکاردی.[2]

② دَ يوې خبرې دَ مؤکد کولودَپاره قسم سره دَ بيانولو گنجائش معلوميږی[3].

③ امام له پکاردی چه دَمقتديانونه په چا کښې دَ دينی امورو سره متعلق څه کمې کوتاهې اوگوری نو هغه خلق دې خبردار کړی او هغوی لره دې دکمال پورې دَ بوتللو کوشش اوکړی[4].

---

[1]) فضل الباري: ۱۲۲/۳.

[2]) شرح النووي، كتاب الصلاة، باب: الأمر بتحسين الصلاة، رقم الحديث: ٤٢٣٠، ١٥٠/٤.

[3]) شرح النووي، كتاب الصلاة، باب: الأمر بتحسين الصلاة، رقم الحديث: ٤٢٣٠، ١٥٠/٤.

[4]) عمدة القاري: ٢٣٢/٤.

حدیث باب (دویم حدیث)[حدیث نمبر ۴۰۹]

۴۰۹- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ[۱] قَالَ صَلَّى بِنَا النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- صَلَاةً ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ، فَقَالَ فِي الصَّلَاةِ وَفِي الرُّكُوعِ «إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَائِي كَمَا أَرَاكُمْ».

**د حدیث ترجمه:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه یوه ورځ نبی کریم ﷺ مونږ ته مونځ راکړو. بیا په منبر باندې تشریف فرماشو اوډ مونځ او رکوع باره کښې ئې اوفرمائیل. زه تاسو ډ شا نه هم داسې وینم لکه څنګه چه (د مخې نه) وینم.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول څلور راویان دی.

① یحیی بن صالح رحمه الله: دا ابوزکریا یحیی بن صالح الوحاظی رحمه الله دې. ډ دوی احوال کشف الباری، کتاب الصلاة، باب: إذا كان الثوب ضيقا، الحديث الأول لاندې تیرشوې دی(۲).

② فلیح بن سلیمان رحمه الله: دا ابویحیی فلیح بن سلیمان بن ابی المغیره الخزاعی رحمه الله دې. ډ دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: من سئل علما وهو مشتغل في حديثه، فأتم الحديث ثم أجاب السائل لاندې تیرشوې دی(۳).

③ هلال بن علی رحمه الله: دا هلال بن علی بن اسامه قرشی رحمه الله دې. ډ دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: من سئل علما وهو مشتغل في حديثه، فأتم الحديث ثم أجاب السائل لاندې تیرشوې دی(۴).

④ انس بن مالک رضی الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دې. ډ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه لاندې تیرشوې دی(۵).

**ډ حدیث شرح:** عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: صَلَّى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً، ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ: حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه یوه ورځ مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ راکړو، بیا په منبر باندې تشریف فرما شو.

---

[۱] ) رواه البخاري أيضا في الصلاة، باب: الخشوع في الصلاة، رقم الحديث: ۷٤۲. وفي كتاب الأيمان والنذور، باب: كيف كانت يمين النبي صلى الله عليه وسلم، رقم الحديث: ٦٦٤٤. ومسلم في صحيحه، في الصلاة، الأمر بتحسين الصلاة، واتمامها والخشوع فيها، رقم الحديث: ٤٢٥. والنسائي في سننه، في الصلاة، في الافتتاح، باب: الأمر باتمام الركوع، رقم الحديث: ۱۰۵۵. وفي جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: في الصلاة، القسم الأول: في الفرائض وأحكامها، الفصل الخامس: في كيفية الصلاة، الفرع الرابع: في الركوع والسجود، النوع الأول: في الركوع والسجود، الاعتدال، رقم الحديث: ۳٤۹۰، ۳٦۳/۵.

[۲] ) كشف الباري، كتاب الصلاة، باب: إذا كان الثوب ضيقا، الحديث الأول، ص: ۳۰٦.

[۳] ) كشف الباري: ۵۵/۳.

[۴] ) كشف الباري: ٦۲/۳.

[۵] ) كشف الباري: ٤/۲.

**قوله:** "صَلّٰى بِنَا" په دې روايت كښې دَ صلى صله "ب" ده خودَ ابوذر، اصيلى او ابن عساكر په روايت كښې دَدې صله "لام" استعمال شوې ده. يعنى "صلي لنا" په دې صورت كښې به معنى دا شى "صلي لاجلنا" چه زمونږ دَ خاطره ئې مونځ اوكړو[1].

**قوله:** فَقَالَ فِي الصَّلَاةِ وَفِي الرُّكُوعِ: «إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَائِي كَمَا أَرَاكُمْ»: اودَ مونځ او ركوع باره كښې ئې اوفرمائيل: زه تاسو ته دَ شانه هم داسې گورم لكه څنګه چه دَ (مخې نه) گورم.

**قوله:** "فَقَالَ فِي الصَّلَاةِ وَفِي الرُّكُوعِ" په دې جمله كښې حذف دې، تقديرى عبارت داسې دې:

"فقال فى شأن الصلاة وفى أمرها" يعنى حضورپاك دَ مونځ او ركوع په باب كښې اوفرمائيل چه زه تاسو ته دَ شانه هم داسې گورم لكه څنګه چه دَمخې نه وينم[2].

دَركوع ذكر خاص په دې وجه اوكړې شو چه ركوع دَ نورو اركانو په نسبت يو لوئى ركن دې په دې توګه چه امام لره په ركوع كښې موندونكې دَركعت حاصلونكې ګرځولې شوې دې. اودَ ركوع نه پاتې كيدونكې دَ ركعت فوت كونكې ګرځولې شوې دې. په دې وجه ئې په دې باندې دَتنبيه كولو دَ پاره جدا دَدې ركن ذكراوكړو[3].

**قوله:** "إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَائِي كَمَا أَرَاكُمْ" په دې حديث كښې چه مطلقًا دا فرمائيلې شوى دى چه زه تاسو دَ شانه ګورم، دَدې دَ اطلاق تقاضادا ده چه دا (دَ شانه كتل دَ مونځ حالت او غيردَ مونځ دواړو ته عام وى. ليكن دَ سياقِ حديث تقاضا داده چه دا كيفيت هم په مونځ كښې وى[4].

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه ظاهر دَ حديث خودا دلالت كوى چه دا كيفيت دې هم دَ مونځ سره خاص وى ليكن دا احتمال موجود دې چه دا كيفيت په ټولو احوالو كښې وى. لكه چه دَ بقى بن مخلد رحمه الله نه نقل دى چه نبى اكرم ﷺ به په تياره كښې هم هغه شان ليدل لكه چه په رڼرا كښې[5]. "مِنْ وَرَائِي" بعضې رواياتو كښې دا كلمه دَ "ي" نه بغيرده يعنى: "من وراء"[6].

**قوله:** "كَمَا أَرَاكُمْ" په دې روايت كښې دَدې فعل مفعول به ذكرَ نه دې خو په نورو رواياتو كښې بالتصريح ذكر دې. اودې سره به عبارت "كما أراكم من أمامي" وى[7].

---

[1] إرشادالسارى: ٧۶/٢.
[2] شرح الكرمانى: ٧٧/٤، عمدة القارى: ٢٤/٤، التوشيح للسيوطى: ٤٩٩/٢.
[3] شرح الكرمانى: ٧٧/٤، عمدة القارى: ٢٤/٤، التوشيح للسيوطى: ٤٩٩/٢،شرح العلامة الزرقانى على المواهب اللدنيه بالمنح المحمديه، المقصد الثالث فيما فضله الله تعالى به، الفصل الأول فى كمال خلقته وجمال صورته صلى الله عليه وسلم: ٥/٢۶٤.
[4] عمدة القارى: ٢٣٤/٤.
[5] فتح البارى: ۶۶٧/١.
[6] شرح الكرمانى: ٧٧/٤، عمدة القارى: ٢٣٤/٤.
[7] التوشيح للسيوطى: ٤٩٩/٤.

دې نه علاوه دَمسلم په روايت كښې خو په تصريح سره دا خبره ده: "إني لأبصر من ورائي كما أبصر من بين يدي" چه زه دَ خپل شا طرف نه هم داسې گورم لكه چه دَخپلې مخې طرف نه[1]. "كما أراكم" كښې كاف دَتشبيه دَ پاره دې. مشبه "لأراكم من ورائي" دې او مشبه به ما بعد والا كلام يعنى "أراكم من أمامي" [2].

نور تول بحثونه دَماقبل حديث شريف لاندې تيرشوى دى.

## ٩ - بَابٌ: هَلْ يُقَالُ: مَسْجِدُ بَنِي فُلاَنٍ؟

دا باب په دې باره كښې دې چه آيا (دَ يو جمات باره كښې) وئيلې شى چه دا جمات دَ فلانكو خلقو دې؟

**دَترجمة الباب دَ ماقبل ابوابو سره مناسبت:** په مخكينو بابونو كښې دَ جماتونو متعلق احكام ذكر وو او په دې باب كښې هم دَ جمات دَ احكامو نه يو حكم (يعنى دَ جمات نسبت دَ يو سړى طرف ته دَ كولو) ذكر دې لهذا دَ دومره مناسبت موجوديدل كافى دى.[3]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَدې باب مطلب دادې چه قرآن پاك كښې: ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ﴾ راغلى دې په دې سره شبه كيږى چه جماتونه خو دَ الله تعالى دى. لهذا دَ يو سړى يا دَ يو قبيلې طرف ته به دَدې اضافت صحيح نه وى؟ په سلفو كښې بعضې حضراتو لكه حضرت ابراهيم نخعى رحمه الله دې ته مكروه وئيلى دى.[4] ليكن حديث باب دا نظر په رد كوى.

امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى چه "مسجد بنى فلان" يا "دَ فلانكى جمات" وئيلو كښې هيڅ حرج نشته دې يعنى دَ جمات نسبت يو قبيلې يا يو كس طرف ته كول جائز دى. پاتې شوه دا خبره كومه چه په قرآن پاك كښې ذكر ده. نو دَدې مطلب دادې چه په حقيقت كښې خو جماتونه هم دَ الله تعالى دَ پاره جوړولې شى ليكن دا چه وئيلى شى چه دا جمات دَ فلانكې قبيلې والو دې يا دا جمات دَ فلانكى سړى دې نو داسې وينا كول صرف دَ پيژندگلو دَ پاره وى، دَ فرق او امتياز دَ پاره وى. دَدې دا مطلب هيڅ كله نه دې چه اسناد يا اضافت حقيقى دَ فلانكې قبيلې او يا فلانكى سړى طرف ته دې[5].

---

[1] حدثنا أبوكريب محمد بن العلاء الهمداني، حدثنا أبوأسامة، عن الوليد يعني ابن كثير، حدثني سعيد بن أبي سعيد المقبري، عن أبي هريرة قال: صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم يوما ثم انصرف فقال: يا فلان! ألا تحسن صلاتك؟ ألا ينظر المصلي إذا صلى كيف يصلي؟ فإنما يصلي لنفسه، إني والله لأبصر من ورائي كما أبصر من بين يدي. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: الأمر بتحسين الصلاة وإتمامها والخشوع فيها، رقم الحديث: ٤٢٣).

[2] عمدة القاري: ٢٣٤/٤.

[3] عمدة القاري: ٢٣٤/٤.

[4] حدثنا هشيم عن مغيرة عن إبراهيم أنه كان يكره أن يقول: "مسجد بني فلان . ولا يرى بأسا أن يقول: "مصلى بني فلان . (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب: في المسجد ينسب إلى قوم، يقال: مسجد بني فلان، رقم الحديث: ٨١٥٤، ٣٤١/٥).

[5] عمدة القاري: ٢٣٤/٤.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه د امام بخاري رحمه الله مقصد د دغه مقولې جواز خودل دی ځکه چه نسبت د تعريف دې نه چه د تخصيص. وړاندې روايت د كتاب الجهاد دې. د حضورپاك په زمانه كښې به جنګ مخامخ كيدلو او د هغې د پاره به د اسونو زغلول كيدل. خير محل د ترجمې صرف دا دې چه په روايت كښې مسجد بنې زريق راځي. د دې نه ثابته شوه چه د فلانكې د خوئی جمات وئيل جائز دی ليكن بيا اشكال پيدا كيږي چه كله دا ثابته ده او د دې د پاره روايت هم پيش كوی چه مسجدبنی فلان وئيل جائز دی نو بيا په ترجمه كښې به "هل" ولې اولګولې شو؟

نو د دې جواب دا دې چه د "هل" مقصد طالبعلمان خبردار كول دی چه خبره خو هم داسې ده ليكن په دې كښې څه نور څه هم دی او هغه دا چه په روايت كښې د مسجد بنی زريق كوم لفظ راغلې دې. د حضورپاك په زمانه كښې هم دا نوم وو او كه د حضورپاك نه پس د صحابه كرامو رضي الله عنهم په زمانه كښې كيخودلې شوې دې؟ په دې كښې لږ شان غور اوكړئي.[1]

حديث باب [حديث نمبر ٤١٠]

٤٢٠- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ[2] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي أُضْمِرَتْ مِنَ الْحَفْيَاءِ، وَأَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ، وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضْمَرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ، وَأَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ فِيمَنْ سَابَقَ بِهَا.

**د حديث ترجمه:** د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه اسونه كوم چه (د جهاد د پاره) تيار كړې شوې وو د مقام حفياء نه تر مقام ثنية الوداع پورې اوزغلول. او چه كوم اسونه تيار كړې شوې نه وو د هغوی منډه ئې د ثنية الوداع نه واخله د مسجد بنی زريق پورې اوكړه او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د هغه خلقو نه وو چا چه په دغه منډه كښې حصه واخستله.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې څلور رجال دی:

① عبدالله بن يوسف رحمه الله: دا عبدالله بن يوسف تنيسي رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال كشف

---

[1] الأبواب والتراجم: ٢١٠/٢، سراج القاري: ٤٦٣/٢.

[2] رواه البخاري أيضًا في الجهاد، باب: السبق بين الخيل، رقم الحديث: ٢٨٦٨، وباب: إضمار الخيل للسبق، رقم الحديث: ٢٨٦٩، وباب: غاية السبق للخيل المضمرة، رقم الحديث: ٢٨٧٠، وفي الاعتصام، باب: ما ذكر النبي صلى الله عليه وسلم وحضّ على اتفاق أهل العلم، رقم الحديث: ٧٣٣٦. ومسلم في صحيحه، في الإمارة، باب: المسابقة بين الخيل وتضميرها، رقم الحديث: ١٨٧٠. وأبوداؤد في سننه، في الجهاد، باب: في السبق، رقم الحديث: ٢٥٧٥. والترمذي في جامعه، في الجهاد، باب: ماجاء في الرهان والسبق، رقم الحديث: ١٦٩٩. والنسائي في سننه، في الخيل، باب: إضمار الخيل للسبق، رقم الحديث: ٣٦١٤. وابن ماجة، في الجهاد، باب: السبق والرهان، رقم الحديث: ٢٨٧٧. وفي جامع الأصول، حرف السين، الكتاب الثالث: في السبق والرمي، الفصل الأول: في أحكامها، رقم الحديث: ٣٠٣٥، ٣٨/٥.

الباري، كتاب بدء الوحي په دويم حديث او تفصيلي احوال كتاب العلم، باب: ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوي دي([1]).

② مالك رحمه الله: دا امام مالك بن انس رحمه الله دی. دَ دوی مختصر احوال كشف الباری، كتاب بدء الوحي په دويم حديث او تفصيلي احوال كتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوي دي([2]).

③ نافع رحمه الله: دا مولی عبد الله بن عمر القرشي رحمه الله دی. دَ دوی احوال كشف الباری، كتاب العلم، باب: ذكر العلم والفتيا في المسجد لاندې تير شوی دی([3]).

④ عبدالله بن عمر رضي الله عنهما: دا مشهور صحابئ رسول حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما دی. دَ دوی احوال كشف الباری، كتاب الإيمان، باب: استثناء في الإيمان كښې تير شوی دی([4]).

دَ حديث شرح: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابَقَ بَيْنَ الخَيْلِ الَّتِي أُضْمِرَتْ مِنَ الحَفْيَاءِ، وَأَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الوَدَاعِ: دَ حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ هغه اسونو کوم چه (دَ جهاد دَ پاره) تيارکړې شوې وو، دَمقام حفياء نه تر مقام ثنية الوداع پورې دَمنډې مقابله اوکړه.

دَمسابقه نه مراد: "سَابَقَ" دا دَ باب مفاعله نه فعل ماضي معروف دې. دَ باب مفاعله خاصه ده چه په دې کښې دَ اشتراك معنی وی. اومصدری معنی ده منډه لګول چنانچه هغه منډه په کوم کښې چه دوه يا دَ دوو نه زيات کسان شريك وی هغې ته به مسابقه وئيلی شی. اودا دَمنډې مقابله دَ اسونو په مينځ کښې اوکړې شوه. په دغه منډه کښې دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم اس هم شريك شوې وو. دَ هغه نوم السكب وو. دَ بنو فزاره نه دا حضورپاك اخستې وو. دَهغوی په نيز دَ ده نوم ضرس وو. عجيبه خبره دا ده چه دا اولنې اس وو کوم چه حضورپاك اخستې وو او هم دا هغه رومبې اس دې په کوم چه کيناستو سره حضورپاك په جهاد کښې شرکت کړې وو. او بيا دا هم چه دغه اس په مقابله کښې شريك شو او ګټه ئې هم اوکړه. چنانچه دَ حضورپاك اس مبارك ته دا فضيلت او درجه حاصله شوه نو په دې سره حضورپاك اودَ حضورپاك صحابه كرامو رضي الله عنهم ته هم خوشحالي اوشوه([5]).

علامه ابي رحمه الله فرمائی دَ "سابق" معنی "أذن في المسابقة" ده. او بعضو "أمر للمسابقة" ذكركړې دې([6]). او بعضو "أمربالسباق" يا "أباحه" معنی ذكركړې ده([7]).

---

[1]) كشف الباري: ١/٢٨٩، ١١٣/٤.
[2]) كشف الباري: ٢/١٨٠/٢٩٠.
[3]) كشف الباري: ٤/٤٥١.
[4]) كشف الباري: ١/٤٣٧.
[5]) عمدة القاري: ٢٣٥/٤.
[6]) إكمال إكمال المعلم للأبي، كتاب الإمارة،باب:الخيل في نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ١٨٧٠، ٢١٧/٥.
[7]) ذخيرة العقبى، كتاب الخيل، غاية السبق للتي لم تضمير، رقم الحديث: ٣٦١٠، ٢٣/٣٠.

**دَ تضمير دَدوو معنو بيان:** "اُضمرت" دَ اضمار مطلب دا وی چه اس باندې زين اچوی او بيا دَ هغې دَ پاسه زَل (څادر) اچولې شي او هغه دغه شان مسلسل په زين کښې ترلې او په زَل (څادر) کښې پټ وی. بنه خولې پرې راځی نودَ هغه دَ بدن پوستوالې ختميږی او دَ هغه بدن دَ اوسپنې په شان سختيږی. ([1])

دَ اضمار يوبله طريقه هم ده چه په اس باندې بنه خوراك کوی او په بنه شان سره دَ هغه خدمت کوی. کله چه هغه بنه چاق او تازه شی نو بيا هغه په يوه کوټه کښې بندوی. چرته چه ډيره گرمی وی. په دغه زمانه کښې په هغه باندې اوچ وابنه خوری. په دې سره دَ هغه په بدن باندې بنه خوله راځی. په کوم سره چه دَهغه په بدن کښې چه غوړ مړه وازگه وی او زياتی غوبنه وی هغه ويلی کيږی او قوت او طاقت ئی باقی پاتې کيږی. دې اسونو ته مضمرونيلی شی اودا عمل اضمار او تضمير يادېږی. ([2])

**حفياء نه مراد:** "الحَفْيَاء": دَحاء فتحه او فاء سکون سره دَ يو ځائی نوم دې. دَ هغه ځائی نه دَ مقام ثنية الوداع فاصله په قول دَ حضرت سفيان ثوری رحمه الله پنځه يا شپږ ميله دې او په قول دَ حضرت موسیٰ بن عقبه رحمه الله په نيز شپږ يا اووه ميله دې. دَدې لفظ استعمال ممدود يعنی "حفياء" او مقصوره يعنی "حفياء" دواړه شان صحيح دې ([3]).

علامه نووی رحمه الله فرمائی چه صاحب دَ مطالع ذکر کړې دې چه بعضې خلقو دا دَ حاء ضمې سره هم لولی هغه په خطا باندې دې. بل دا لفظ دَ ياء تقديم سره "حيفاء" هم لوستلې شی. ليکن دحديث په کتابونوکښې ياء مؤخر کولو سره حفياء لوستل مشهوردی ([4]).

**قوله:** "أَمَدُهَا" همزه او ميم مفتوحه سره دې. دَدې معنی دَ غايت او حد ده. او مطلب دا چه دَمنډې شروع دَمقام حفياء نه اوشوه او ختميدل ثنية الوداع باندې اوشو ([5]).

**دَ ثنية الوداع دَ تسميې وجه او مطلب:** "ثَنِيَّةُ الوَدَاع" دادَ ثاء فتحه نون کسره او ياء تشديد سره مستعمل دې. "ثنية" معنی دَ دوو غرونو مينځ کښې تلونکې لار او "وداع" نه مراد رخصت

---

[1]) عمدة القاري: ۲۳۵/٤.

[2]) معالم السنن للخطابي، كتاب الجهاد، باب: السبق: ۲٤٥/۲. عمدة القاري: ۲۳۵/٤. الكوكب الوهاج والروض البهاج، كتاب الإمارة، باب: الخيل فى نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ۱۸۷۰، ۱۵۵/۲۰.

[3]) إكمال إكمال المعلم للأبي، كتاب الإمارة، باب: الخيل فى نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ۱۸۷۰، ۲۸۵/٦.الديباج على صحيح مسلم للسيوطي، كتاب الإمارة، باب: الخيل فى نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ۱۸۷۰، ٤٦٨/٤.

[4]) المنهاج شرح صحيح مسلم، كتاب الإمارة، باب اخليل فى نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ۱۸۷۰، ۱٤/۱۳. عمدة القاري: ۲۳۵/٤.

[5]) الكوكب الوهاج والروض البهاج،كتاب الإمارة، باب: الخيل فى نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ۱۸۷۰، ۱۵۵/۲۰.

كول دى. چنانچه په دې تناظر كښې د "ثنية الوداع" معنى به دا جوړېږى چه دا د مدينې منورې سره څوك د يو وادئى نوم دې. كوم ځائى پورې چه به د مدينې خلق د رخصت كولو دپاره تلل. هم د دې وجې نه د دې وادئى نوم ثنية الوداع مشهور شو[1].

هم د دې طرف ته په دې شعرونو كښې اشاره ده چه د نبى كريم ﷺ په استقبال كښې د مدينې نه بهر راتلو سره د مدينې ماشومانو جينكو وئيل: طلع البدر علينا من ثنيات الوداع.[2]

دې نه علاوه د دې لفظ وجه تسميه كښې نور اقوال هم دى، مثلاً: كله چه نبى كريم ﷺ د مدينې طرف ته هجرت اوكړو نو هغه وخت دغه مقام نه خپل ځان سره راتلونكى كسان واپس رخصت كړل په دې وجه د دې ځائى نوم ثنية الوداع مشهور شو. بعضې ذكر كړې دې چه دا هغه ځائى وو دكوم ځائى نه چه بعضې لښكرې د جهاد د پاره رخصت كړې او صحيح هم هغه دى كوم چه پورته ذكر شو چه اهل مدينه به د چا د رخصت كولو دپاره د دې مقام پورې تلل[3].

**قوله:** وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضْمَرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ: اوكوم اسونه چه نه وو تيار كړې شوې د هغوى منډه ئى د ثنية الوداع نه واخله تر مسجد بنى زريق پورې ورکړه.

**د بنى زريق مصداق:** "بنى زُرَيْق" دا د تصغير صيغه ده. فُعَيْلٌ په وزن باندې دې. د انصار مدينه مشهور قبيلې خزرج يو ښاخ بنوزريق بن عامر مراد دې. د دغه غير مضمر اسونو د منډې مقابلې ختميدل مسجد بنى زريق باندې شوې وو. علامه ابى مالكى رحمه الله ليكلى دى چه ثنية الوداع او مسجد بنى زريق په مينځ كښې د يو ميل فاصله وه[4].

**قوله:** وَأَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ فِيمَنْ سَابَقَ بِهَا: او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما د هغه خلقو نه وو چا چه په دغه منډه كښې حصه واخستله.

**قوله:** "سَابَقَ بِهَا" كښې د هاء ضمير مرجع الخيل هم كيدې شى او المسابقة هم. يعنى حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما هم په هغه خلقو كښې شامل وو چاچه د اسونو منډه كښې حصه واخستله. د حديث شريف د مذكوره ټكړې باره كښې امكان دې چه دا پخپله هم د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما قول وى چه هغوى د خپل طرف نه په طريق د حكايت نقل كړې وى.[5] او دا هم امكان دې چه دا د هغوى د شاګرد نافع رحمه الله قول وى[6].

---

[1] إكمال المعلم بفوائد مسلم، فى الإمارة، باب المسابقة بين الخيل وتضميرها، رقم الحديث: ١٨٧٠، ٢٨٥/٦. الديباج على صحيح مسلم للسيوطى، كتاب الإمارة، باب: الخيل فى نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ١٨٧٠، ٤٦٨/٤.

[2] ذخيرة العقبى، كتاب الخيل، غاية السبق للتى لم تضمر، رقم الحديث: ٣٦١٠، ٢٣/٣٠.

[3] بذل المجهود، كتاب الجهاد، باب فى السبق: ٧٥/١٢.

[4] إكمال المعلم بفوائد مسلم، فى الإمارة، باب المسابقة بين الخيل وتضميرها، رقم الحديث: ١٨٧٠، ٢٨٥/٦.

[5] عمدة القارى: ٢٣٥/٤، بذل المجهود، كتاب الجهاد، باب فى السبق: ٨٥/١٢.

[6] عمدة القارى: ٢٣٥/٤.

**داسونو زغلولو حکم:** د مذکوره حدیث شریف په رنړا کښې دټولو ائمه حضراتو په نیز د جهاد په نیت سره اسونه تیارول اود هغوی په مینځ کښې مقابله کول جائز دی. البته که په مقابله کښې شرط اولګولې شی نو په هغې کښې څه تفصیل دې. کوم چه به ان شاء الله کتاب الجهاد کښې بیانولې شی[1].

[1]) کشف الباري، کتاب الجهاد، باب: السبق بین الخیل، رقم ا لحدیث: ۲۸۶۸، وباب: إضمار الخیل للسبق، رقم الحدیث: ۲۸۶۹، وباب: غایة السبق للخیل المضمرة، رقم الحدیث: ۲۸۷۰. دلته اختصاراً د اسونو دمقابلې جائز صورتونو حکم نقل کولې شي:

**داسونو د زغلولو جائز صورتونه:** داسونو زغلولو ټولوجائز صورتونوکښې دوه شرطونه لا زمی دی. ① چه ددې مقصد صرف لوبې او تماشې نه وی بلکه قوت جهاد یا جسمانی ورزش وی. ② کوم انعام چه مقرر کړېشی هغه معلوم او متعین وي مجهول یا غیرمتعین نه وی.

**رومبې صورت:** مشروط رقم باندې د اسونو زغلولو جائز صورت یودادې چه فریقین څوك چه خپل خپل اسونه زغلولو سره بازی لګوی په خپل مینځ کښې د یو بل نه اخستل ور کول نه وی، بلکه د حکومت یا دریم سری یا جماعت د طرف نه د انعام په توګه رقم ګټونکی د پاره مقرر وی.

**دویم صورت:** د ګټونکي د پاره رقم یا انعام د فریقینو نه وی مګر چه صرف د یو طرف نه وی دواړو طرفونه شرط نه وی. مثلاً زید اوعمر د اسونو زغلولو کښې بازی لګوی. زید اووائی چه که عمر وراندې شو نو زه به هغه له زر روپې انعام ورکوم. د بل طرف نه یعنې دعمر د طرف نه دا شرط نه وی چه که زید مخکښې شو نوعمربه هغه ته زر روپئی ورکوی. د دوو طرفوشرط صورت دجوارئی دی کوم چه حرام دی.

**دریم صورت:** د دوو طرفو شرط هم په یو خاص صورت کښې جائز دې هغه دا چه فریقین یو دریم په اس سورته مثلاً خالد خپل ځان سره شریك کړی، د کوم چه دوه صورتونه دی. ① چه د شرط صورت دا اوګرځی چه زید وراندې شی نو عمر به زر روپئی هغه ته ورکوی او که عمر وراندې شو نو زید به دومره رقم هغه ته ادا کوی اوکه خالد وراندې شی نوهغه ته څه ورکول د چا په ذمه نشته. ② چه شرط داسې وی چه خالد وراندې شی نو زید اوعمر دواړه به زر زر روپئی ورکوی او زید اوعمر دواړه یا د دوی نه یو که وراندې شو نود خالد په ذمه هیڅ نشته. خوکه په زید اوعمر کښې دواړو نه یو وراندې شی په دواړو کښې به په یوباندې هغه ته زر روپئی ادا کول لا زم راځی. په دې دواړو صورتونو کښې چه کوم دریم سړې شریك کړې شوې دې هغه ته په حدیث کښې محلل وئیلې شوې دې. په یو صورت کښې هم به هغه ته څه ورکول نه وی. دې نه علاوه ددې حدیث د وجې نه داهم ضروری دی چه دریم اس د زید اوعمر اسونو سره یوشان حیثیت لری د کوم په وجه چه د هغه د وراندې کیدو یا روستو پاتې کیدو دواړه احتمال مساوی وی. داسې نه وي چه دکمزورتیا یا عیب د وجې نه د هغه شاته پاتې کیدل عادة یقینی وی یا د زیات قوې او چالاك کیدو د وجې نه دهغه وراندې کیدل یقینی وی.

**د اسونو د زغلولو ناجائز صورتونه:** ① د اسونو دزغلولو بازی صرف لوبه تماشه یا د روپو طمع د پاره وی اود قوت جهاد نیت نه وی. ② دمعاوضه یا انعام شرط فریقین کښې دوطرفه وی او یو دریم فریق (محلل) په مذکوره بالا طریق باندې ورسره نه وی یوځائی کړې. ③ د منډې مروجه شکل چه د اسونو زغلول د یو کمپنئی یا کلب د طرف نه وی. اسونه د کمپنئی ملکیت او سواره هم د کمپنئی نوکران وی او نور خلق د اسونو په نمبر باندې خپل داؤ لګوی دکوم فیس چه هغوی داخلوی. دکوم نمبر اس چه مخکښې لاړو په هغې باندې داؤ لګونکی ته دانعام رقم ملاویږی باقی د ټولو خلقو فیس ضبط کیږی. دا صورت مطلقاً قمار او جوارئ ده اوحرام دې. بیا په دې کښې د جهاد یا بدنی ورزش څه تعلق نشته خکه چه بازی لګونکی نه اسونه ساتی اونه د سورلئی مشق سره دهغوی څه تعلق وی.

**تنبیه:** کوم احکام چه د جائز او ناجائز تفصیل د اسونو په زغلولو کښې لیکلې شوې دې هم دغه حکم د اوښانو په زغلولو او خپې ابله منډې او د نښې ویشتلو هم دې. (ماخوذ از مسائل بہشتی زیور، مفتی عبدالواحد زید مجدہ، باب: قمار اور جوے کا بیان: ۲۶۱/۲-۲۶۰، مجلس نشریات اسلام، کراچی)

**دَ اسونو زغلولو په شرکاوُ کښې دَ نبی کریم ﷺ دانعام تقسیمول:** ابن الملقن رحمه الله التوضیح کښې دَ ابن التين په حواله سره ذکر کړې دي چه نبی کریم ﷺ دَ اسونو زغلول اوکړل. په دې موقعه حضورپاك له دَ يمن نه څڅي وغيره راغلي وې نوحضورپاك په اول نمبر راتلونکی ته درې څڅي ورکړې په دويم نمبر باندې راتلونکی ته دوه او په دريم نمبر راتلونکی ته ئې يو څڅه ورکړه. په څلورم نمبر باندې راتلونکی ته ئې يو دينا ورکړو. پنځم نمبر باندې راتلونکی ته ئې يو درهم ورکړو او په شپږم نمبر راتلونکی ته ئې دَ چاندئی لږه شان حصه ورکړه او ټولو ته ئې دَ برکت دعا اوکړه[1].

**دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذکوره حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت دَ راوی قول "إلى مسجد بنی زریق" کښې دې[2].

**دَ حديث مبارک نه مستنبط شوې فوائد او احکام:** دَمذکوره حديث شريف نه ډيرزيات فوائد او احکام مستنبط کيږي. دَ کوم نه چه يو څو دلته نقل کولې شی:

① علامه نووی رحمه الله فرمائی په دې حديث سره دَ اسونو مينځ کښې دَ زغلولو دَ جواز علم کيږي او دَدې دَ تضمير دَ جواز هم علم کيږي. دا دواړه امور دَ ټولو په نيز اتفاقی دی. ځکه چه دَ جنګ دَپاره دَ تيز صحت منداو کلکو اسونو ضرورت وی. لهذا دَ اسونو په تضمير کښې اودَ هغوی دَ زغلولو په مقابله کولو کښې په اسونو کښې مطلوبه صفتونه پيدا کولې شی[3].

② په دې کښې دليل دې چه دَ پيژندګلو دَپاره جمات دَ هغې دَ جوړونکی يا يو سړی يا دَ قبيلې وغيره طرف ته منسوب کولو سره يادول جائز دی[4].

③ دَ اسونو دَ تضمير جواز معلوميږی[5].

④ دَ يو کار دَحکم ورکونکی طرف ته دَ هغه کار نسبت کول هم صحيح دی. لکه څنګه چه ددې حديث دَ رومبې جملې "سابق" نه معلومه شوه چه حضورپاك خود دغه مقابلې اجازت ورکړې وو يا ئې مباح ګرځولې وه يائې حکم فرمائيلې وو. ليکن انداز دَتعبير دا اختيار کړې شو چه حضورپاك په خپله په مقابله کښې حصه واخسته[6].

[1]) التوضيح لابن الملقن: ٥/٤٢٨.

[2]) التوضيح لابن الملقن: ٥/٤٢٦، عمدة القاري: ٤/٢٣٥.

[3]) المنهاج شرح صحيح مسلم، كتاب الإمارة، باب: الخيل فی نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ١٨٧٠، ١٣/١٤.

[4]) فتح الباري: ١/٦٦٧، عمدة القاري: ٤/٢٣٦، المنهاج شرح صحيح مسلم، كتاب الإمارة، باب: الخيل فی نواصيها الخير إلى يوم القيامة، رقم الحديث: ١٨٧٠، ١٣/١٥.

[5]) عمدة القاري: ٤/٢٣٦، تحفة الأحوزي، كتاب الجهاد، باب: ماجاء فی الرهان والسبق، رقم الحديث: ١٦٩٩، ٥/٣٥٠، ذخيرة العقبى، كتاب الحيل، غاية السبق للتی لم تضمر، رقم الحديث: ٣٦١٠، ٣٠/٢٥.

[6]) فتح الباري: ١/٦٦٧، عمدة القاري: ٤/٢٣٦، تحفة الأحوزي، كتاب الجهاد، باب: ماجاء فی الرهان والسبق، رقم الحديث: ١٦٩٩، ٥/٣٥٠، ذخيرة العقبى، كتاب الحيل، غاية السبق للتی لم تضمر، رقم الحديث: ٣٦١٠، ٣٠/٢٥.

⑤ دَ اسونو دَ زغلولو مقامات ابتداء او انتهاء مقرر کولو دَ مشروعیت هم علم کیږي[1].
⑥ څناورو سره بغیرهَ ضرورتَ نه چه کوم معاملات ناجائز دي مثلاً (اوګي ساتل او هغه دَ ضرورت نه زیات زغلول وغیره) هم هغه معاملات دي چه په وخت دَ ضرورت (مثلاً: دَ جهاد دَ تیاري دَ پاره) جائز کیږي[2].
⑦ څناورو سره دَ هغوی دَ طاقت او قوت په اعتبار سره معامله کولو طریقه معلومیږي. لکه چه په مذکوره حدیث کښې مخې ته راغله چه دَمضمر اسونو منډه تر پنځو یا شپږو میلو پورې او کړې شوه (ځکه چه په دغه اسونو باندې دَمنډې ښه مشق کړې شوې وی) او دَ غیر مضمر اسونو منډه صرف یو میل پورې او کړې شوه (ځکه چه دا اسونه دَ ډیرې زیاتې منډې عادت نه وی او نه دَ مشق)[3].

## ۱۰ - بَابٌ: القِسْمَةِ وَتَعْلِيقِ القِنْوِفِي المَسْجِدِ

دا باب په جمات کښې (دَ یوځیز) دَ سیم او دَ کهجورو غونچه زوړندولو دَ جواز په بیان کښې دې.

**دَ ترجمة الباب مقصد او دَ حضرت ګنګوهی رحمه الله رائې:** لامع الدراری کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چونکه په احادیث مبارکه کښې په جمات کښې دَ عباداتو نه علاوه دَ نورو امورو ممانعت موجود دې. مثلاً دَیو حدیث مفهوم دې چه په دې جماتونو کښې دَ خلقو (دنیا سره متعلق) کارونو نه څه کول جائز نه دی. دَدې حدیث ظاهر خو دا تقاضا کوی چه دَ عبادت نه علاوه دې هیڅ یو کار هم په جمات کښې جائز نه وی. لیکن (دَمذکوره حدیث نه معلومیږی چه په سابقه حدیث کښې دَ ذکر شوی) امورو نه مراد دَ دغه امورو نه علاوه دی دکوم چه هم په جمات کښې ضرورت وی.

حضرت شیخ الحدیث صاحب نورالله مرقده لامع الدراری کښې په دې حدیث باندې دَ حضرت ګنګوهی رحمه الله په دې کلام باندې حاشیه کښې تحریر کوی چه (کوم حدیث چه حضرت ګنګوهی رحمه الله ذکر کړې دې) دَ دغه حدیث معنی مختلف الفاظو سره په احادیثو کښې ذکر دی. مثلاً جمع الفوائد کښې دَ صحیح مسلم یو روایت دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه موجود دې چه کوم کس بل سړي په جمات کښې دَ خپل ورک شوی ځیز اعلان کولو سره واؤری نو هغه ته دې اووائې چه الله تعالی دې تاته ستا ورک شوې ځیز واپس نه کړی ځکه چه دا جماتونه دَدې کارونو دَ پاره نه دی جوړ شوی.

په یو بل حدیث کښې دی چه یو سړی په جمات کښې دَخپل ورک شوی اوښ باره کښې اعلان

---

[1] ) عمدة القاري: ۲۳۶/٤، تحفة الأحوزي، كتاب الجهاد، باب: ماجاء في الرهان والسبق، رقم الحديث: ۱۶۹۹، ۳۵۰/۵، ذخيرة العقبى، كتاب الحيل، غاية السبق للتي لم تضمر، رقم الحديث: ۳۶۱۰، ۳۰/۲۵.
[2] ) التوضيح لابن الملقن: ٤۲۷/۵، عمدة القاري: ۲۳۶/٤، ذخيرة العقبى، كتاب الحيل، غاية السبق للتي لم تضمر، رقم الحديث: ۳۶۱۰، ۲۵/۳۰.
[3] ) ذخيرة العقبى، كتاب الحيل، غاية السبق للتي لم تضمر، رقم الحديث: ۳۶۱۰، ۲۵/۳۰.

کولو نو حضورپاك هغه ته اوفرمائيل چه (الله دې اوکړي چه) ستا اوبې ملاؤ نه شي. دا جماتونه دَدې (قسم اعلانونو) دَ پاره نه دي جوړشوي.
په يوبل حديث کښې حضورپاك په جمات کښې دَ خرڅولو او اخستلو، دَ ورك شوو څيزونو دَ اعلان کولو او اشعار وغيره لوستلو نه منع کړې ده.
په يو بل حديث کښې دي چه دَ طائف دوو کسانو په جمات کښې په اوچت آواز سره خبرې کولې نو حضرت عمر رضي الله عنه هغوی ته اوفرمائيل که چرې تاسو دَدې ښار وئې نو تاسو ته به مې دردناکه سزا درکړې وه. دې نه علاوه يو بل حديث کښې دي چه په جمات کښې خندا کول دَ قبر تياره ده. په يو بل روايت کښې دي چه بغيردَ قرآن، دَ الله تعالى دَ ذکر اودَ خير دَ سوال جواب نه هرقسم خبره اوکار په جمات کښې دتنه فضول دې.
چنانچه دَدې قسم رواياتو په رڼرا کښې امام بخاري رحمه الله په راتلونکو ابوابو کښې په تفصيل سره دَهغه رواياتو ذکر کړې دې په کوم کښې چه دَهغه امورو ذکر دې دَ کوم کول چه دَنبی کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل دي[1].
**دَحضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده رائې:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه دَ حضرت امام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه په جمات کښې دَ يوڅيز تقسيم جائز دې. دارنگ دَ کهجورې غونچې دَ زوړندولو جواز هم ثابتول دي اودَ دويمې مسئلې په خاص توگه سره ضرورت ځکه پيښ شو چه حضرت امام بخاري رحمه الله په دې سره دَ عوف بن مالك اشجعي رضي الله عنه دَ روايت طرف ته اشاره کړې ده. په کوم کښې چه دي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم جمات ته تشريف راوړو وئې کتل چه يو سړی په جمات کښې حشف يعنی دَ ردی کهجورو غونچه زوړنده کړې ده. دَ حضورپاك په لاس مبارك کښې همسا وه. حضورپاك هغه غونچه په همسا باندې وهلوسره اوفرمائيل که چرته صدقه ورکونکې غوښتل نودَدې نه دَ بهتر صدقه ئې هم کولې شوه. او په يو بل روايت کښې دي چاسره چه دومره کهجورې (لس وسق) وې نو هغه دې زکوٰة هم اداکړې اويوه غونچه دې راوړې داصحاب صفه دَپاره دې جمات کښې زوړنده کړي.
او دَ امام بخاري رحمه الله قاعده داده چه دَ روايت طرف ته په ترجمة الباب کښې اشاره فرمائی.
بله دا چه دَ حضرت امام احمد رحمه الله په نيز دَ جمات په مينځ کښې ميوه داره ونه کرل جائز نه دي ځکه چه خامخا به هرقسم خلق ميوې شوکولو له راځي. نودَ هغوی دَدې قول ترديد کول دي.
امام بخاري رحمه الله خو په ترجمه کښې هغه روايت ذکرکړې دې په کوم کښې چه دَ بحرين دَ مال دَ راتلو ذکر دې نودَدې نه خو قسمت ثابت شو ليکن دکهجورې غونچه زوړندول ثابت نه شو. نو دَدې به ئې دلالة النص يا اشارة النص په ذريعه ثابت کړو[2].

---

[1] لامع الدراري مع حواشيه: ۱/۱۶۰.
[2] سراج القاري: ۲/۴۶۶. تقرير بخاري شريف کښې دي: قسمت هم دَ دغه استثناءاتو نه دې دکوم چه په جمات کښې کول جائز دي. او زوړندول دَ کهجورې دَ غونچې دَ ابن بطال رحمه الله په نيز امام بخاري رحمه الله ته غفلت شوې دې اودَدې ئې څه دليل نه دې ذکرکړې. بعضې خلقو دَ امام بخاري رحمه الله دَ طرف نه دا جواب ورکړې دې چه دَهغوی اراده دَ ليکلو وه خو وئې نه ليکلې شو. بياض ئې پريخودې دې........

**دحضرت کشمیری صاحب رحمه الله رائې:** صاحب انوارالباري علامه بجنوري رحمه الله په دې مقام باندې ليکلي دي چه حضرت شاه صاحب رحمه الله اوفرمائيل:[1] امام بخاري رحمه الله ددې ځائې نه د هغه افعالو ذکرشروع کړو کوم چه د جنس مونځ او ذکرونونه خارج دي او بيا هم په جمات کښې اوکړې شو او په دې سره هغه د خپل وسيع مسلك تائيد کول غواړي. چنانچه په دې حديث کښې ئې د مال تقسيم ثابت کړو خو زمونږ فقهاء په جمات کښې دننه کلام طعام وغيره مکروه ګرځوي اود مال تقسيم وغيره هم ځکه چه جماتونه ددې کارونود پاره موزون نه دي. امام بخاري رحمه الله ترلرې پورې داسې احاديث ذکرکوي حالانکه هغه ټول خاص واقعات وو دکوم نه چه فقهاء هم انکار نه کوي او هغوي دا امور صرف په توګه د عادت اختيارول مکروه ګرځوي. که يوځل دوه داسې اوشي نودهغوي په نيز هم جائز دي. لهذا که چرې امام بخاري رحمه الله دې جزوي واقعاتو نه د جمات احکاماتوکښې توسع پيداکول غواړي نو په دې سره دهغه مقصد نه شي پوره کيدې ځکه چه کوم نور افعال چه احياناً ثابت شوي دي. ښکاره خبره ده چه جماتونه ددې د پاره نه دي جوړشوي. بيا د نفل مونځونود پاره هم مستحب دادي چه هغه دې په کورونوکښې اوکړې شي او په جماتونوکښې دې صرف فرائض ادا کړې شي. نود نورو اعمالو اوافعالو د پاره په مستقل توګه باندې د ګنجائش ويستلو کوشش کولو څه موقع ده؟ قضاد احنافو په نيز په جمات کښې هم جائز ده ځکه چه هغه د عبادت په حکم کښې ده. د شافعيه په نيز ممنوع ده. په تدريس کښې هم اختلاف دې. احناف دا په جمات کښې بغير د اجرت جائز او اجرت سره ناجائز ګرځوي. (ځکه چه دا دعبادت په حکم کښې پاتې نه شو).

② حضرت رحمه الله نور فرمائي چه زما په دې امر کښې هم تردد دې چه داموالو تقسيم د بحرين وغيره معاملات جمات کښې پيښ شوې وې ځکه چه علامه سمهودي رحمه الله ذکرکړي دي چه

...... کوم چه کاتبانو ملاؤ کړو. بعضې وائي چه د شرط موافق ورته څه روايت ملاؤ نه شو يا ترې هير شو وغيره وغيره. مګر زما په نيز دالفظ صحيح دي او حضرت امام بخاري رحمه الله د ابوداؤد شريف د يو روايت طرف ته کوم چه کتاب الزکاة کښې دې اشاره کړې ده. په هغه روايت کښې دي چه حضورپاك جمات ته تشريف راوړو وئې کتل چه يو سړي حشف يعنې د ردې کهجورو يوه غونچه په جمات کښې زوړنده کړې ده. د حضوپاك په لاس مبارك کښې همسا وه. حضورپاك هغه غونچه په هغې اووهله او وئې فرمائيل که چرې دې غونچې والا غوښتلې نودې نه ئې بهتر صدقه کولې شوه. په يو روايت کښې دي چه حضورپاك حکم اوفرمائيلو چه دهرباغ نه دې يوه غونچه په جمات کښې د مسکينانودپاره زوړنده کړې شي. اود حضرت امام بخاري رحمه الله قاعده داده چه د رواياتو طرف ته په ترجمة الباب سره اشاره کوي. اوزما رائې داده چه په قياس سره ئې ثابته کړه. ځکه چه په روايت کښې د قسمت الدنانير ذکر دې او دنانير اوکهجورې تقريبا د رنګ او مقدار په اعتبار سره برابر وي. دا قياس هم صحيح دي ځکه چه د حضورپاك په زمانه کښې د تسبيح په وجود باندې د کهجورې د هډوکو والا رواياتو نه استدلال کيدې شي. نو دلته هم شرکت فی التقسيم وغيره نه استدلال کيدې شي او بعضې مشائخ فرمائي چه قسمت اوتعليق قنو چونکه دنفع عامه څيزونه دي په دې وجه څنګه چه قسمت جائز دې تعليق قنو به هم جائز وي. (تقرير بخاري شريف: ۱۵۵/۲).

[1]) انوارالباري: ۱۸/۱٤.

دَمسجد نبوي قبله اول دَ بيت المقدس طرف ته وه بيا چه کله تحويل قبله اوشو نو په بل مقابل طرف کښې شوه اوهغه حصه مسقف شوه او اوله حصه صفه يادېدله. دَ فقهې په کتابونو کښې دا هم دي چه دَ جمات يوه حصه په وخت دَ ضرورت دَدې نه خارج کولې هم شي[1]. لهذا دا ټول توسعات کوم چه امام بخاري رحمه الله ذکر کړي دي. په اوله حصه کښې به شوي وي کومه چه روستو دَ جمات په حکم کښې داخل پاتې نه شوه. راويانو هم توسع کولو سره دې ته هم جمات اووئيل اوعرفًا دَدې ګنجائش هم وو. علامه ذهبي رحمه الله هم ليکلي دي چه صفه دَ اجزاء مسجد نه وه بيا دَدې نه خارج کړې شوي وه.[2] په دې تحقيق باندې دَ امام بخاري رحمه الله مقصد نه پوره کيږي اودَدې دَ پاره به دا اجمالي جواب هرځائې جاري کيږي.

③ دَدې نه علاوه داهم وئيلې شي چه دادَ بحرين مال (چه تقريبًا يو لاکه درهم وو) په جمات کښې دَدې دَ پاره هم جمع کړې شوي وو چه هغه وخت بيت المال نه وو اودا يو صحابي سره کيخودل هم دَ بدګمانئ سبب جوړيدې شو او پخپله حضورپاك هم دَ دنيا دا متاع په خپل کورکښې کيخودل نه خوښول.

---

[1] دَ جمات يوه حصه بالکليه دَ جمات نه خارجول، ويستل شرعًا جائز نه دي. کوم ځائې چه يو ځل شرعي جمات جوړ شو هغه ځائې دَ جمات کيدو نه دَ چا په ويستلو سره هم نه شي وتلې. البته بعضې وخت داسې ممکن دي چه عوام الناس ته دَ لارې دَ تنګيدو وغيره دَ وجې نه په جمات کښې دَ بار بار تيريدو ضرورت پيښيږي او دَ جمات هغه حصه دغه وخت دَمونځ وغيره دَ ضرورت نه زياتي هم وي يعنې دَ جمات باقي حصه دَ مونځ دَ پاره کافي هم وي نو په داسې صورت کښې عوام الناس ته دَ هغوي دَ ضرورت دَ وجې دَ جمات هغه متعلقه حصه دَ لارې په توګه دَ استعمالولو تر هغه وخته پورې اجازت ورکولې شي ترکومې پورې چه دَ متبادل لارې بندوبست اونه شي. ليکن په دغه اجازت سره دَ جمات هغه حصه دَ جمات کيدو نه نه شي وتلې بلکه دَ هميشه دپاره به هم جمات وي. اوګورئ: ردالمحتار، کتاب الوقف، مطلب: في الوقف إذا خرب ولم يمکن عمارته: ٣٧٨/٤، دارالفکر. وفي البحرالرائق، کتاب الوقف: ٢٧٦/٥، دار الکتاب الإسلامي.

[2] دَحضرت شاه صاحب رحمه الله دَ طرف نه چه دَ علامه سمهودي رحمه الله کومه خبره ذکرکړې شوې ده هغه خبره دَهغوي کتاب وفاء الوفاء، کښې ملاؤ نه شوه. معلوميږي دا چه علامه کشميري رحمه الله دهغوي دا خبره صرف دَ بحث په توګه ذکرکړې ده. ځکه چه فيض الباري کښې دَدې قول دَ نقل کولو نه پس کذا ذکره السمهودي وئيلو سره دَ پوره خبرې حواله په هغوي باندې نه اچوله، نه يوازې دا بلکه دَ دغه عبارت دَ نقل کولو نه پس خپله نتيجه ذکرکوي. دَ کوم حاصل چه دا جوړيږي چه دَ نبي کريم صلی الله علیه وسلم په جمات کښې دَ غنيمت مال تقسيمول دَ هغه وخت دَ هنګامي حالت دَ وجې نه شوي وو. ددې عبارت نه معلوميږي چه دَ حضرت کشميري رحمه الله په نيز هم صفه دَ مسجد نبوي حصه ده دَ هغې نه خارج نه ده. که څرې شاه صاحب رحمه الله دَ علامه سمهودي رحمه الله خبره په توګه دَ جواب ذکر کړې وي اودَ حضرت شاه صاحب رحمه الله په نيز صفه شرعي مسجد نه کيدل راجع وي نو په آخره کښې به ئې داسې جواب نه ورکولو دَ کوم مدار چه صفه دَ جمات حصه منلو باندې مبني دي. اوفرض کړه که دا اومنلې شي چه دَحضرت شاه صاحب رحمه الله رائې هم دا وه چه صفه دَ جمات نه خارج کړې شوې وه نو په ظاهر به دَدې نه مراد دا وي چه جمات کيدل خو ئې باقي وو ليکن دَ ضرورت په وجه دَ صفه په حصه کښې ددې کارونو اجازت ورکړې شوې وو کوم چه په عام توګه په جماتونو کښې منع دي. او په دې اعتبار سره به دا وينا کول هم صحيح شي چه دَ دغه تقسيم په وخت صفه دَ عين جمات حصه نه وه. بل دا چه ددې ګنجائش دَ فقهې په کتابونو کښې ملاويږي هم، ځکه چه پورته تير شوي دي. والله اعلم بالصواب.

دَدې ټولو شواهدو او قرائنو په موجود ګئ کښې که چرې حضورپاك هغه ټول مال په مسجد نبوی کښې ډهيرې کړو او فوری توګه باندې ئې تقسيم هم کړو نو آيا دا خبره موزون او مناسب ګرځولې شی چه دا قاعده اوکليه جوړه کړې شی؟ نه بلکه دا په توګه دَ يوې واقعې خاصې جزئيې ګڼړل زيات بهتر دی او هر انصاف خوښونکې به هم دغه فيصله کوی.

**فائده مهمه:** حضرت شاه صاحب رحمه الله اوفرمائيل چه امام بخاری رحمه الله دَ تراجم ابواب دَ وضع په باره کښې سباق غايات دې يعنی دَ هغوی دا قضيلت او مزيت بې مثال دې مګر په دې کښې چه يو طرف ته دَ امت محمديه دَپاره غيرمعمولی منافع او فوائد دی نوبل طرف ته يو دير لوئی مضرت اونقصان هم دې ځکه چه يو حديث دَ يوخاص حادثه په موقع باندې راغلی وی او قرائن ښائی چه هغه وخت حضورپاك کوم حکم او دَ څه وجې نه ورکړې وو. مګر دَ امام بخاری رحمه الله دَ ترجمة الباب او دَ توسع دَ وجې نه بل سرې په مغالطه کښې پريوځی اودغه حکم نبوی حکم مطرد اوعام ګڼړی([1]).

**تعليق او يو وضاحت:** قَالَ أَبُوعَبْدِاللّٰهِ: الْقِنْوُالْعِذْقُ وَالْاِثْنَانِ قِنْوَانِ وَالْجَمَاعَةُ أَيْضًا قِنْوَانٌ مِثْلَ صِنْوٍوَصِنْوَانٍ: ابوعبدالله (امام بخاری) رحمه الله فرمائی چه "قنو"عذق يعنی دَ کهجورې غونچې ته وائی دَدې تثنيه اوجمع دَ قنوان په وزن باندې راځی په شان دَ صنو او صنوان.

دا تعليق مصطفی ديب البغا والا نسخه کښې نشته دې کوم چه په کشف الباری کښې دَمتن په توګه لګولې شی. البته زمونږ په هندی نسخواو شروحاتو کښې دَدې تعليق ثبوت ملاويږی. علامه قسطلانی رحمه الله ليکی چه دا تعليق دَ ابی ذر، ابن عساکر او ابی الوقت په نسخوکښې ملاويږی ليکن دَدې نه علاوه نورو نسخوکښې دا روايت نه ملاويږی.

**دَ تعليق مقصد اوتشريح:** "ابوعبدالله" نه مراد پخپله امام بخاری رحمه الله دې. هغه په ترجمة الباب کښې موجود دَ يو لفظ قنولغوی تشريح کوی. دَ ټولو نه اول دَ قِنو دَ قاف په کسرې سره، معنی ښائی چه دَدې معنی "الِعذق" دَ عين په کسرې سره يعنی دَ کهجورې غونچه ده او نور ئې اوخودل چه دَدې لفظ تثنيه اوجمع دواړو هم په يو وزن دې يعنی قنوان. لهذا کله چه دَدې استعمال دَتثنيه دَ پاره مقصود وی نوهم دا لفظ به وی ليکن دَ نون په کسرې سره او کله چه دَدې استعمال دَ جمع دَ پاره مقصود وی نودَدې اعراب به دَ ضرورت مطابق وی. لکه چه صنو دَدې تثنيه او جمع هم په دې وزن باندې راځی او فرق دَ نون دَ کسرې سره او دکسرې نه بغير سره کولې شی([2]).

[1]) انوارالباری: ۱۹-۲۰/٤۱.

[2]) إرشادالساری: ۷۸/۲.

حديث باب [حديث نمبر ۴۱۱]

-۴۱۱- وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ (۱) عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ (۲) عَنْ أَنَسٍ (۳) -رضي الله عنه- قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ فَقَالَ «انْثُرُوهُ فِي الْمَسْجِدِ». وَكَانَ أَكْثَرَ مَالٍ أُتِيَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-، فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِلَى الصَّلاَةِ، وَلَمْ يَلْتَفِتْ إِلَيْهِ، فَلَمَّا قَضَى الصَّلاَةَ جَاءَ فَجَلَسَ إِلَيْهِ، فَمَا كَانَ يَرَى أَحَدًا إِلاَّ أَعْطَاهُ، إِذْ جَاءَهُ الْعَبَّاسُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعْطِنِي فَإِنِّي فَادَيْتُ نَفْسِي وَفَادَيْتُ عَقِيلاً، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «خُذْ». فَحَثَا فِي ثَوْبِهِ، ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهُ فَلَمْ يَسْتَطِعْ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ إِلَيَّ. قَالَ «لاَ». قَالَ فَارْفَعْهُ أَنْتَ عَلَيَّ. قَالَ «لاَ». فَنَثَرَ مِنْهُ، ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهُ، فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ عَلَيَّ. قَالَ «لاَ». قَالَ فَارْفَعْهُ أَنْتَ عَلَيَّ. قَالَ «لاَ». فَنَثَرَ مِنْهُ، ثُمَّ احْتَمَلَهُ فَأَلْقَاهُ عَلَى كَاهِلِهِ ثُمَّ انْطَلَقَ، فَمَا زَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُتْبِعُهُ بَصَرَهُ حَتَّى خَفِيَ عَلَيْنَا، عَجَبًا مِنْ حِرْصِهِ، فَمَا قَامَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَثَمَّ مِنْهَا دِرْهَمٌ.

**د حديث ترجمه:** د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې د بحرين نه مال راوړلې شو نو حضورپاك اوفرمائيل چه دا جمات كښې واچوئى. دا مال د هغه تولو مالونو نه زيات وو كوم چه تر دغه وخته پورې د حضورپاك په خدمت كښې راليږلې شو. بيا رسول الله ﷺ د مونځ د پاره اووتلو نو دغه مال طرف ته ئې توجه هم اونه كړه. بيا ئې چه كله مونځ ادا كړو نو حضورپاك راغلو او مال سره كيناستو. بيا چه به حضورپاك چاته هم كتل مال به ئې وركولو. په دې كښې حضورپاك له د هغوى تره، حضرت عباس رضي الله عنه تشريف راوړو هغوى اوونيل اې د الله رسول! ماته هم راكړه ځكه چه ما خپله او د عقيل (دواړو) فديه هم اداكړې وه. نو حضورپاك ارشاد اوفرمائيل (څومره چه غواړې) واخله نو حضرت عباس رضي الله عنه په خپله كپړا كښې مال (به شان سره) ډك كړو. بيائې دغه پنډ اوچت كړو نو (د بوج زياتيدو د وجې) ئې اوچت نه كړې شو. نو هغوى اوونيل اې د الله رسول! تاسو

---

(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه مونږ سره چه كومې نسخې دى په هغې كښې د دې راوى "ابراهيم" سره دهغه د پلار نوم يعنى ابن طهمان هم ذكردې او هم دغه صحيح دى. خود دې نسخې نه علاوه كښې دا لفظ "ابراهيم" د خپل پلار د نسبت نه بغيرذكر دې. (فتح البارى: ۱/۶۶۸).

(۲) د دې راوى باره كښې هم حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه زمونږ په نسخوكښې دا لفظ عبدالعزيز بن صهيب دې خود دې نه علاوه نسخوكښې د پلار طرف ته د نسبت نه بغير صرف عبدالعزيز دې. (فتح البارى: ۱/۶۶۸).

(۳) أخرجه البخارى أيضًا فى الجهاد، باب: فداء المشركين، رقم الحديث: ۳۰۴۹. وباب: ما أقطع النبى صلى الله عليه وسلم من البحرين وما وعد من مال البحرين والجزية ولمن يقسم الفيئ والجزية، رقم الحديث: ۳۱۵۶. وفى جامع الأصول، حرف الجيم، الكتاب الأول: فى الجهاد، الباب الثانى: فى فروع الجهاد الفصل الثالث: فى الغنائم والفيئ، الفرع الرابع: فى الفيئ، رقم الحديث: ۱۲۰۷، ۲/۷۱۱.

چاته اووايئ چه «زما امداد اوکړې او ما سره» ئې اوچت کړې. حضورپاك اوفرمائيل نه. نوهغه اووئيل بنه ده بيا تاسو ئې ماته اوچت کړئې. حضورپاك اوفرمائيل نه، پخپله ئې اوچت کړه. په دې باندې هغه دَ هغه پنډ نه څه مال کم کړو بيا ئې «اوچت کړو ليکن دَ بوج دَ وجې اوچت نه کړې شو په دې باندې هغوی بيا» اووئيل اې دَ الله رسوله! تاسو چاته اووايئ چه «زما امداد اوکړې اوما سره دا» اوچت کړې. حضورپاك اوفرمائيل نه، نوهغه اووئيل بنه بيائې تاسو ماته اوچت کړئې. حضورپاك اوفرمائيل نه ته ئې پخپله اوچت کړه. په دې باندې هغه دَ هغه پنډ نه څه نور مال کم کړو اوبيائې په خپله اوګه باندې اوچت کړو او لاړو حضورپاك دَ هغه په مال باندې حرص ليدو سره هغه «تر دَ تللوپه وخت» يو شان کتلو تردې چه هغه زمونږ دَ نظرونو نه غيب شو. بيا چه ترکومې پورې يو درهم هم باقی پاتې شو حضورپاك ترهغه وخته پورې هم هلته حصار وو.

**تراجم رجال:** دَمذکوره حديث شريف په سند کښې ټول درې راويان دی:

① ابراهيم رحمه الله: دا ابراهيم بن طهمان رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الغسل، باب: من اغتسل عريانا وحده فی الخلوة، ومن تستر فالستر أفضل، رقم الحديث: ۲۷۹ لاندې تير شوی دی.[1]

② عبدالعزيز بن صهيب رحمه الله: دا عبدالعزيز بن صهيب بنانی نصرانی رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تير شوی دی.[2]

③ انس رضي الله عنه: دامشهور او معروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوی ده.[3]

**دَ حديث شرح:** عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَالٍ مِنَ البَحْرَيْنِ فَقَالَ: «انْثُرُوهُ فِي المَسْجِدِ» وَكَانَ أَكْثَرَ مَالٍ أُتِيَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عليه وسلم: دَ حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه دَ نبی کريم ﷺ په خدمت کښې دَ بحرين نه مال راوړلې شو نو حضورپاك اوفرمائيل چه دا جمات کښې واچوئې. دا مال دَ هغه ټولو مالونو نه زيات وو چه تردغه وخته پورې دَ حضورپاك په خدمت کښې راليږلې شوې وو.

**دَ بحرين نه څنګه او څومره مال راوليږلې شو؟:**

**قوله: "بِمَالٍ مِنَ البَحْرَيْنِ"** حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلی دی چه ابن ابی شيبه رحمه الله دَ حميد بن هلال په طريق سره دَ يو روايت تخريج کړې دې.[4] چه دا مال يو لاکهـ وو[1] اودا مال خراج يا

---

[1] کشف الباري، کتاب الغسل، باب:من اغتسل عريانا وحده في الخلوة، ومن تستر فالستر أفضل،رقم الحديث:۲۷۹

[2] کشف الباري: ۱۲/۲.

[3] کشف الباري: ۴/۲.

[4] حدثنا أبوأسامة، عن سليمان بن المغيرة، عن حميد بن هلال، قال: بعث العلاء بن الحضرمي إلى .......

دَ جزيې مال وو كوم چه دَ بحرين والو نه وصول كړې شوې وو. وئيلې شوى دى چه دا دَ ټولو نه ړومبې خراج وو كوم چه دَ نبى كريم ﷺ په خدمت كښې راوليږلې شو. او راليږونكې حضرت علاء بن الحضرمى رضي الله عنه وو.

امام بخارى رحمه الله كتاب الجزيه كښې دَ حضرت عمرو بن عوف رضي الله عنه روايت نقل كړې دې.[۲] چه نبى كريم ﷺ دَ بحرين خلقو سره صلح اوكړه او په هغوى باندې ئې حضرت العلاء بن الحضرمى رضي الله عنه امير جوړ كړو او دَهغوى طرف ته ئې حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه اوليږلو چه دَهغه ځائې نه جزيه واخلى او رائې وړى. نو چه كله انصارو ته دَ هغوى دَ راتلو خبر اورسيدو نو هغوى دَسحر مونځ حضور پاك سره اوكړو. كله چه نبى كريم ﷺ هغوى اوليدل

......رسول الله صلى الله عليه وسلم بثمان مائة ألف من خراج البحرين، وكان أول خراج قدم به على رسول الله صلى الله عليه وسلم. فأمر به فنثر على حصير فى المسجد، وأذن المؤذن فخرج إلى الصلاة فصلى. ثم جاء إلى المال فمثل عليه قائما فلم يعط ساكتا ولم يمنع سائلا، فجعل الرجل يجيئ فيقول: أعطني، فيقول: خذ قبضة، ثم يجيئ الرجل فيقول: أعطني، فيقول: خذ قبضتين، ويجيئ الرجل فيقول: أعطيني، فيقول: خذ ثلاث قبضات. فجاء العباس، فقال: يارسول الله! أعطني من هذا المال، فإني أعطيت فداي وفداء عقيل يوم بدر، ولم يكن لعقيل مال، قال: فأخذ يبسط خميصة كانت عليه، وجعل يحثى من المال، فحثا فيها، ثم قام به فلم يطق حمله. فقال: يارسول الله! احمل علي، فنظر إليه النبي صلى الله عليه وسلم فتبسم حتى بدا ضاحكه. وقال: أنقص من المال وقم بقدر ما تطيق، فلما ولى العباس قال: أما إحدى اللتين وعدنا الله فقد أنجز لنا إحداهما. ونحن ننتظر الأخرى. قوله تعالى: ﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّمَن فِي أَيْدِيكُم مِّنَ الْأَسْرَىٰ إِن يَعْلَمِ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا﴾ (الأنفال: ۷۰) إلى آخر الآية. قد أنجزها الله لنا ونحن ننتظر الأخرى. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الأوائل، باب: أول ما فعل ومن فعله، رقم الحديث: ۳۶۹۵۵، ۱۹/۵۳۳-۵۳۲).

[۱] حافظ ابن حجر رحمه الله فتح البارى كښې په حواله دَ المصنف لابن ابى شيبه ليكلى دى چه دَ جزئيې مقدار يو لاكهـ وو. (دراهم وو كه دنانير؟ دَدې تصريح نشته دې.) خو چه په المصنف كښې كوم روايت دې په هغې كښې دَ اتو لاكهو ذكر دې نه چه دَ يو لاكهـ او ابن سعد، يعقوب بن سفيان او امام حاكم رحمهم الله دَ روايت مطابق اتيا زره وو. شيخ عوامه حفظه الله په حاشيه دَ المصنف كښې دا تفصيل ذكر كړې دې. (قوله: "بثمان مائة ألف : كذا فى النسخ، وفى فتح البارى: ۱/۵۱۷ أول الصفحة عن المصنف: "أنه كان مئة ألف"، والذى عند ابن سعد، ويعقوب بن سفيان والحاكم: بثمانين ألف. [حاشية المصنف للشيخ عوامة، كتاب الأوائل، باب: أول ما فعل ومن فعله، رقم الحديث: ۳۶۹۵۵، ۱۹/۵۳۳-۵۳۲]).

[۲] حدثنا أبواليمان أخبرنا شعيب عن الزهرى قال حدثنى عروة بن الزبير عن المسور بن مخرمة أنه أخبره أن عمرو بن العوف الأنصارى وهو حليف لبنى عامر بن لؤى، وكان شهد بدرا، أخبره، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم بعث أبا عبيدة بن الجراح إلى البحرين يأتى بجزيتها، وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم هو صالح أهل البحرين وأمر عليهم العلاء الحضرمى، فقدم أبوعبيدة بمال من البحرين، فسمعت الأنصار بقدوم أبى عبيدة، فوافقت صلاة الصبح مع النبى صلى الله عليه وسلم، فلما صلى بهم انصرف، فتعرضوا له، فتبسم رسول الله صلى الله عليه وسلم حين رآهم، وقال: "أظنكم قد سمعتم أن أبا عبيدة قد جاء بشيئ" قالوا: أجل يارسول الله، قال: "فأبشروا وأملوا ما يسركم، فوالله لا الفقر أخشى عليكم، ولكن أخشى عليكم أن تبسط عليكم الدنيا، كما بسطت على من كان قبلكم، فتنافسوها كما تنافسوها، وتهلككم كما أهلكتهم". (صحيح البخارى، كتاب الجزية، باب: الجزية والموادعة مع أهل الذمة والحرب، رقم الحديث: ۲۹۸۸).

نو مسکي شو او ارشاد ئې اوفرمائيلو چه زما خيال دې چه تاسو د ابوعبيده د بحرين نه د واپس راتلو خبر اوريدلې دې چه هغه څه راوړې راغلې دې...... الحديث.

**قوله:** "انْثُرُوهُ فِي الْمَسْجِدِ" دَدې معنى "صبوه" ده يعنى په جمات کښې ئې واچونى.(١)

**په جمات کښې دَمال ډهيرې کولو وجه:** علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى چه دې وخته پورې باقاعده او مستقل دَ څه بيت المال بندوبست نه وو شوې او حضورپاك عليه السلام په خپل کور کښې مال او دولت کيخودل نه خوښول. بيا دَ بل چا په کور کښې کيخودو سره دَ جنګ جګړې او يو بل نه دَ وړاندې کيدو انديښنه وه. په دې وجه (دامال) په جمات کښې کيخودلې شو(٢).

**قوله:** فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الصَّلاَةِ وَلَمْ يَلْتَفِتْ إِلَيْهِ، فَلَمَّا قَضَى الصَّلاَةَ جَاءَ فَجَلَسَ إِلَيْهِ، فَمَا كَانَ يَرَى أَحَدًا إِلَّا أَعْطَاهُ:

بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ مانځه دَ پاره اووتلو نو دَ هغه مال طرف ته ئې توجه هم اونه فرمائيله. بيائې چه کله مونځ اداکړو نو حضورپاك راغلو اومال سره کيناستو. بياچه به نبى عليه السلام څوك هم ليدل نو هغه ته به ئې مال ورکولو.

**قوله:** إِذْ جَاءَهُ العَبَّاسُ، فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ: أَعْطِنِي، فَإِنِّي فَادَيْتُ نَفْسِي وَفَادَيْتُ عَقِيلًا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خُذْ» فَحَثَا فِي ثَوْبِهِ، ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهُ فَلَمْ يَسْتَطِعْ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اؤْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ إِلَيَّ، قَالَ: «لاَ»:

په دې کښې حضورپاك له (دَحضورپاك تره) حضرت عباس رضى الله عنه تشريف راوړو. هغوى اووئيل اې دَ الله رسوله! ماته (هم) راکړه ځکه چه ما خپله اودَ عقيل (دواړو) فديه اداکړې وه. نوحضورپاك ارشاد اوفرمائيلو (څومره چه غواړې) واخله، نوحضرت عباس رضى الله عنه په خپله کپړا کښې مال (په بنه شان) سره ډك کړو. بيائې دغه پنډ اوچتولو نو (دَ بوج دَ زياتوالى دَ وجې ئې) اوچت نه کړې شو. نوهغه اووئيل اې دَ الله رسوله! تاسو چاته اووايئ (چه زما امداد اوکړى يوځائې به شى دا) راوچت کړو. حضورپاك اوفرمائيل نه.

**دَ حضرت عباس رضى الله عنه دَ سوال کولو وجه:**

**قوله:** "أَعْطِنِي" دَ حضرت عباس رضى الله عنه دا سوال کول دَغربت دَ وجې نه نه وو بلکه دَدې وجه وړاندې راځي چه هغه فديه اداکړې وه(٣).

---

(١) عمدة القارى: ٢٣٨/٤.

(٢) فضل البارى: ١٢٦/٣.

(٣) حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه دَدې مطلب بعضې حضراتو دا بيان کړې دې چه دَ حضورپاك تره حضرت عباس بن عبدالمطلب رضى الله عنه دا فرمائى چه زه غريب شوې يم مګر دا صحيح نه دى ځکه چه کله چرې دامعنى وى نو په دې صورت کښې به دهغه روايت معنى صحيح نه شى په کوم کښې چه دا مضمون دې چه حضورپاك دَ دوو کالو زکاة دَ حضرت عباس رضى الله عنه نه پيشګى اخستې وو. بلکه مطلب دادې چه زما خرچه زياته شوې ده. (لامع الدرارى: ٦١/١، الأبواب والتراجم: ٢١١/٢-٢١٠).

**دَ فديې وركولو مطلب:**

**قوله:** "فَادَيْتُ عَقِيلًا" دا دَ ابوطالب ځوئى وو يعنى دَ حضرت على ﷺ رور وو په غزوه بدركښې حضرت عباس ﷺ اودا قيديان جوړكړې شوى وو. نو حضرت عباس ﷺ خپله اودَ ده فديه ادا كولو سره دَ قيد نه خلاصې حاصل كړې وو.([1])

**قوله:** "يَحْثُو فِي ثَوْبِهِ" كښې دَ حثاء ضمير او دَ ثوبه ضمير دَ حضرت عباس ﷺ طرف ته راګرځى.([2])

**قوله:** قَالَ: فَارْفَعْهُ أَنْتَ عَلَيَّ، قَالَ: «لَا» فَنَثَرَ مِنْهُ، ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، اؤْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ عَلَيَّ، قَالَ: «لَا» قَالَ: فَارْفَعْهُ أَنْتَ عَلَيَّ، قَالَ: «لَا» فَنَثَرَ مِنْهُ، ثُمَّ احْتَمَلَهُ، فَأَلْقَاهُ عَلَى كَاهِلِهِ، ثُمَّ انْطَلَقَ، فَمَا زَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُتْبِعُهُ بَصَرَهُ حَتَّى خَفِيَ عَلَيْنَا - عَجَبًا مِنْ حِرْصِهِ:

نو هغوى اووئيل نبه ده تاسو بيا ماته دا راوچت كړئى. حضورپاك اوفرمائيل نه ته ئى پخپله اوچت كړه. په دې باندې هغه دَ دغه پنډ نه څه مال كم كړو بيائې (اوچتولو خو دَ بوج د وجې نه ئى اوچت نه كړې شو په دې باندې هغه بيا) اووئيل اې دَ الله رسوله! تاسو چاته اووايئ چه (زما امداد اوكړى او دا ماته) راوچت كړى. حضورپاك اوفرمائيل نه. نو هغه اووئيل نبه ده بيا تاسو ماته دا راوچت كړئى حضورپاك اوفرمائيل نه ته ئى پخپله اوچت كړه. په دې باندې هغه دَ دغه پنډ نه لږ نور مال كم كړو بيائى په خپلو اوګو باندې راوچت كړو او لاړو. حضورپاك دَ هغه دَ مال دا حرص ليدلو سره هغه (ته) مسلسل كتل تردې چه هغه زمونږ دَ نظرونو نه غيب شو.

**قوله:** "يُقِلُّهُ" دا دَ باب افعال نه دَ فعل مضارع صيغه ده. دَدې معنى اوچتول دى([3]).

**نبى كريم ﷺ دَ حضرت عباس ﷺ امداد ولې اونه كړو؟** دلته دا سوال پيدا كيږى چه كله حضرت عباس ﷺ نبى كريم ﷺ ته درخواست اوكړو چه چاته اووايئ چه دا پنډ راسره اوچت كړى نو حضورپاك چاته دَ داسې وئيلو نه انكارولې اوكړو؟ بله دا چه حضرت عباس ﷺ بيا نبى كريم ﷺ ته درخواست اوكړو چه نبه ده تاسو چاته نه وايئ نو بيا پخپله ئى

---

[1]) فتح البارى: ۶۶۹/۱ عمدة القارى: ۲۳۸/٤. حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه حضرت عباس ﷺ چه دا څه وئيلى وو چه ماته هم راكړه ځكه چه ما دَ خپل ځان او عقيل بن ابى طالب فديه ادا كړې وه او دوچند مې اداكړې وه. په اصل كښې جنګ بدركښې دا دواړه حضرات دَ قريشو دَ كافر انو دَ طرف نه راغلى وو. كافرانو ته چه كله ماتې اوشوه نود هغوى ۷۰ كسان مسلمانانو قيديان كړى وو. كوم چه روستو دَ فديې په بدله كښې پريخودې شو. حضرت عباس ﷺ مالدار سړې وو اودَ هغه وراره عقيل غريب او نادار وو. په دې وجه دَ دواړو فديه حضرت عباس ﷺ اداكړې وه. اوس دَ دغه واقعې په موقع دواړه مسلمانان شوى وو اودَ حضرت دَ خپلولۍ د وجې دَ غنيمت دَ مالونو نه خمس او فئ كښې دَ دغه خلقو هم حق وو. په دې وجه حضرت عباس ﷺ سوال اوكړو حضورپاك اوفرمائيل واخله. هغه په كپړا كښې دومره مال اوتړلو چه اوچتول ئى ورته ګران شو. (سراج القارى: ۵۰۵/۲).

[2]) فتح البارى: ۶۶۹/۱ عمدة القارى: ۲۳۸/٤.

[3]) قال ابن أثير: "يقال: أقل الشيئ يقله، واستقله يستقله، إذا رفعه وحمله. (النهاية فى غريب الحديث والأثر لابن أثير: ۴۸۷/۲).

را سره اوچت کړه. نو نبی کریم ﷺ ددې نه هم انکار اوکړو ددې څه وجه وه؟
ددې دا جواب ورکړې شوې دې چه ددې انکار وجه داوه چه حضرت عباس رضي الله عنه په دې خبره باندې خبردار شی چه دَمال کثرت څه خوښ کړې شوې څیز نه دې. یا دَ دغه انکار وجه داکیدې شی چه په دې طریقې سره نصیحت کول مقصود وو چه دَ خپل ضرورت مطابق اخستو باندې اکتفاء کوه. یا دَ دغه عمل په ذریعه دَ آخرت دَ معاملې طرف ته توجه ورکول مقصود وو چه صبا به څوك هم دَ چابوج نه اوچتوی[1].

**قوله**: "كَاهِلِهِ" مطلب "بين كتفيه" دې چه په خپله شا باندې ئې دَ اوګو په مینځ کښې واچولو[2]. "يُتْبِعُهُ بَصَرَهُ" دَ حضورپاك ترلرې پورې هغه ته کتل په مال باندې دَ هغه حرص کتلودَ وجې وو.

**قوله**: فَمَا قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَثَمَّ مِنْهَا دِرْهَمٌ: بیاترکومې پورې چه یو درهم هم باقی پاتې وو حضورپاك ترهغه وخته پورې هم هلته حصار وو.

**قوله**: "ثَمَّ" په معنی دَ هناك دې.[3] دا آخرى جمله حال دې چه دَ حضورپاك هلته کښې قیام دَ آخرى درهم ختمیدو پورې باقی وو[4].

**دَ حدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت**: علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په دې باب کښې اودَدې لاندې راتلونکې حدیث سره متعلق که څوك اعتراض اوکړی چه ترجمة الباب خو په دوو خبرو باندې مشتمل دې. یو په جمات کښې څه څیز تقسیمول او دویم په جمات کښې یو څیز زوړندول. خو حدیث باب صرف دَ اولنې خبرې سره متعلق دې او په حدیث کښې دَ دویمې خبرې سره متعلق هیڅ هم نشته دې. نوددې جواب دا دې چه کله داسې هم کیږی چه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې څه امر ذکرکوی لیکن دَ هغوی دَ شرائطو مطابق حدیث نه ملاویدو دَ وجې دَ حدیث ذکر نه کوی. چنانچه په یو حدیث کښې داخبره موجود ده چه نبی کریم ﷺ دَ کهجورو دَ باغ خلقو ته حکم فرمائیلې وو چه غونچې په جمات کښې زوړندې کړئې دې دَ پاره چه چا سره څه څیز نه وی نوهغه به دا اوخوری.
دویم جواب دا دې چه په جمات کښې دَ مال تقسیمولو په شان غونچې په جمات کښې زوړندول هم دی. څنګه چه په جمات کښې مال اچول او هغه تقسیمول دَ حدیث په رڼا کښې جائز اوګرځولې شو دغه شان دَغونچې زوړندول اودَ هغې نه خوړل هم صحیح شو[5].

**دَ حدیث نه مستنبط شوی فوائد اواحکام**: دَ مذکوره حدیث شریف نه ډیر فوائد اواحکام معلومیږی، مثلاً:

---

[1]) عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[2]) عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[3]) فتح الباري: ۶۶۹/۱.
[4]) عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[5]) عمدة القاري: ۲۳۷/٤.

① دَ نبي کريم ﷺ کريم کيدل او دَ مال طرف ته خيال نه کول معلوميږي. که هغه مال ډير وي او که لږ.[1]

② دَوخت دَ امام دَ پاره دا مناسب دی چه مال دَ مستحقينو په مينځ کښې تقسيمولو کښې تاخير اونه کړي[2].

③ دَ وخت امام له په خپل اختيار باندې دَ مال تقسيمول هم معلوميږي[3].

④ دا هم معلوميږي چه کله امام ته دَ خلقو دَ حاجت علم وي نو مال ذخيره کول او ساتل نه دي پکار بلکه دَ خلقو په حاجتونو کښې خرچ کول پکار دي[4].

⑤ په جمات کښې دَ داسې څيزونو کيخودو جواز معلوم شو دَ کوم په استعمال کښې چه خلق مشترك وي[5].

## ۱۱ - بَابٌ: مَنْ دَعَا لِطَعَامٍ فِي الْمَسْجِدِ وَمَنْ أَجَابَ فِيهِ

دا باب دَ هغه سړي باره کښې دې چه په جمات کښې يو سړي دَ خوراك خوړلو دَ پاره راغواړي او دَ هغه سړي باره کښې دې چه په جمات کښې دَغه دعوت قبول کړي.

**دَترجمة الباب تشريح:** په دې ترجمة الباب کښې "في المسجد" لفظ به دَ "دعا" سره متعلق وي. مطلب به دا شي چه څوك جمات ته لاړ شي او هلته موجود سړي ته دَ خوراك دعوت ورکړي.

**قوله: "من أجاب فيه"،** دَ صحيح بخاري په اکثرو نسخو کښې دَ "من أجاب منه" الفاظ دي. دکشميهني په روايت کښې دَ "من أجاب إليه" الفاظ دي.[6]

دَ دواړو روايتونو مطابق څه لويه تبديلي نه راځي. په اول صورت کښې چه "منه" وی نو "ه" ضمير به دَ جمات طرف ته راګرځي او که چرې "إليه" وي نو ضمير به دَ طعام او خوراك طرف ته راګرځي، بهرصورت معنی صحيح ده[7].

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله فرمائي چه دَدې باب مقصد په جمات کښې دَ مباح خبرو اترو جائز کيدل خودل دي. ځکه چه جماتونه دَ عبادتونو دَ پاره جوړولې شي او په حديث کښې دَ دنياوي خبرو اترو نه ممانعت هم موجود دې. لهذا په دې باب سره دغه وهم لرې کړې شوې دې[8].

[1] فتح الباري: ۶۶۹/۱ عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[2] عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[3] عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[4] عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[5] عمدة القاري: ۲۳۹/٤.
[6] فتح الباري: ۶۷۰/۱ إرشادالساري: ۷۹/۲.
[7] عمدة القاري: ۲٤۰/٤، إرشادالساري: ۸۰/۲.
[8] شرح تراجم أبواب البخاري، ص: ۲۱.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چونكه دعوت وغيره دَ ديني امورو نه دي او حديث كښې «إن هذه المساجد لا تصلح لشيئ من هذا البول ولا القذر إنما هي لذكر الله عزوجل والصلاة وقراءة القرآن» وغيره راغلي دي. لهذا امام بخاري رحمه الله دَدې جواز ثابتوي څكه چه په روايت كښې دَدې ثبوت دې.([1])

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دَ امام بخاري رحمه الله دَدې باب نه مقصد دې خبرې طرف ته اشاره كول دي چه دا كارونه په جمات كښې دننه مباح دي. دَدې شمير "امور لغويه ممنوعه في المسجد" كښې نه راځي.([2])

حديث باب [حديث نمبر ۴۱۲]

-٤٢٢ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ سَمِعَ أَنَسًا ([3]) قَالَ وَجَدْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْمَسْجِدِ مَعَهُ نَاسٌ فَقُمْتُ، فَقَالَ لِي «آرْسَلَكَ أَبُو طَلْحَةَ» قُلْتُ نَعَمْ. فَقَالَ «لِطَعَامٍ». قُلْتُ نَعَمْ. فَقَالَ لِمَنْ حَوْلَهُ «قُومُوا». فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ.

**دَ حديث ترجمه:** دَ حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه هغوى اوفرمائيل ما نبي كريم ﷺ په جمات كښې څه خلقو سره اوليدلو. زه اودريدم نو حضورپاك زما نه تپوس اوكړو آيا ته ابوطلحه رالیږلې ئې؟ نوما عرض اوكړو آوجي، حضورپاك تپوس اوكړو دَ خوراك دَپاره ئې (غوښتې يو)؟ ما عرض اوكړو آوجي. نو حضورپاك خپل نيزدې موجود خلقو ته اوفرمائيل پاسئ (اوما سره لاړشئ) بيا حضورپاك روان شو نوزه دَ هغوى ټولو نه وړاندې روان ووم.

**تراجم رجال:** دَمذكوره حديث مبارك سند كښې ټول څلور راويان دي:

① عبدالله بن يوسف رحمه الله: دا عبدالله بن يوسف تنيسي رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف الباري، كتاب بدء الوحي په دويم حديث او تفصيلي احوال كتاب العلم، باب: ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوې دى.([4])

② مالك رحمه الله: دا مشهور امام مالك بن انس رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف الباري،

---

[1]) تقرير بخاري شريف: ٢/٣١٩.

[2]) عمدة القاري: ٤/٢٤٠.

[3]) أخرجه البخاري أيضًا في الأنبياء، باب: علامات النبوة في الإسلام، رقم الحديث: ٣٥٧٨، وفي الأطعمة، باب: من أكل حتى يشبع، رقم الحديث: ٥٢٨١، وباب: من أدخل الضيفان عشرة عشرة، رقم الحديث: ٥٤٥٠، وفي الأيمان والنذور، باب: إذا حلف أن لا يأتدم فأكل تمرا بخبز وما يكون منه الأدم، رقم الحديث: ٦٦٨٨ و في مسلم في صحيحه، في الأشربة، باب: جواز استتباعه غيره إلى دار من يثق برضاه، رقم الحديث: ٢٠٤٠، والترمذي في جامعه، في المناقب، باب: ١١، رقم الحديث: ٣٦٣٤، وفي جامع الأصول، حرف النون، الكتاب الأول: في النبوة، الباب الخامس: في معجزاته ودلائل النبوة، الفصل الثالث: في زيادة الطعام والشراب، رقم الحديث: ٨٩١٠، ١١/٣٥٦.

[4]) كشف الباري: ١/٢٨٩، ٤/١١٣.

کتاب بدء الوحی په دویم حدیث او تفصیلی احوال کتاب الإیمان، باب: من الدین الفرار من الفتن لاندې تیرشوي دی.[1]

۳ اسحاق بن عبدالله رحمه الله: دا اسحاق بن ابراهیم بن مخلد، ابن راهویه رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: فضل مَن عَلِم وعلّم لاندې تیر شوی دی.[2]

۴ انس بن مالك رضي الله عنه: دامشهور اومعروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. دَ دوی تفصیلی حالات کشف الباری، کتاب الایمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیر شوی دی.[3]

دَ حدیث شرح: دَمذکوره حدیث شریف تشریح تقریبًا واضحه ده، څه خاص خبره دَ ذکر قابل په کښې نشته دې. البته په دې حدیث کښې ذکرشوې واقعه په دې مقام باندې ډیره اجمال سره ده. امام بخاری رحمه الله دَ خپل عادت موافق محض ترجمة الباب سره متعلق ټکړا نقل کړې ده. پوره تفصیل به ئې کتاب علامات النبوة کښې راځی.[4]

---

[1]) کشف الباری: ۲/۱۸۰/۲۹۰.

[2]) کشف الباری: ۳/۴۲۸.

[3]) کشف الباری: ۲/۴.

[4]) په دې واقعه باندې مشتمل باب علامات النبوة کښې موجود دَ حدیث خلاصه دلته نقل کولې شی. یوځل ابوطلحه زید بن سهل انصاری رضي الله عنه خپلې بی بی ام سلیم (چه دَحضرت انس رضي الله عنه مور بی بی ده) ته اوونیل ماته نن دَ حضورپاك په آواز کښې ضعف محسوس شو داسې معلومیږي چه هغوی اوږی دی، تاسره دَ خوراك څه شته؟ حضرت ام سلیم رضي الله عنها څه وزې مړې روټۍ راویستلې اودَ خپلې لوپټې په یو پلو کښې ئې راغونډې کړې اودَ حضرت انس رضي الله عنه په ترخ کښې ئې ورددنه کړې اوباقی لوپټه ئې په بنه شان سره دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ لاس نه راتاؤ کړه اودَ حضورپاك خدمت کښې ئې اولیږلو. دَ حضرت انس رضي الله عنه بیان دې چه کله زه لاړم نو حضورپاك مې ۷۰ یا ۸۰ کسانو سره ناست اولیدلو. دې حالت لیدو سره زه اودریدم نو حضورپاك تپوس اوکړو ته ابوطلحه ته رالیږلې ئې؟ ما اوونیل آوجې. تپوس ئې اوکړو دَ خوراك دَ دعوت دپاره؟ ما اوونیل آوجې. نوحضورپاك هغه ټولو خلقو ته اوونیل کوم چه دَ هغوی نه چاپیره ناست وو چه پاسئ روان شئ هغه ټول روان شو نو زه دَهغوی نه مخکښې مخکښې په تیزئی سره کور ته اورسیدم اوحضرت ابوطلحه رضي الله عنه ته مې ټوله خبره اوکړه. هغوی زما مور ام سلیم رضي الله عنها ته اوونیل چه اوس به څه چل کیږی؟ حضورپاك خو پوره ډلې سره تشریف راوړی. هغوی ته خوراك ورکولو دپاره خو مونږ سره دَ خوراك څه نشته دې. ام سلیم رضي الله عنها جواب ورکړو الله اودَ هغه رسول زمونږنه زیات پوهیږی. ابوطلحه رضي الله عنه دَ حضورپاك دَ راوستلو دپاره دَ کور نه بهر اووتلو او په لارکښې ئې ټوله خبره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته بیان کړه. حضورپاك او ابوطلحه رضي الله عنه مخکښې مخکښې او باقی خلق ورپسې شاشاته کورته اورسیدل. حضورپاك اوفرمائیل ام سلیم څه چه تاسره دی هغه راوړه. ام سلیم هم هغه روټۍ وړاندې کړې. روسل الله هغه روټۍ ماتې کړې او چورې ئې کړې. بیا ئې دَ ام سلیم رضي الله عنها دَ تیلو کپۍ په هغې باندې نچوړې کړه اودَ هغې نه ئې ترکاری جوړه کړه. بیا حضورپاك په هغې باندې څه دعاګانې اوونیلې او ابوطلحه رضي الله عنه ته ئې اوفرمائیل چه لسو لسو کسانو له دَ دننه راتلو اجازت ورکوه. لس کسان به راغلل په مړه خیټه به ئې خوراك اوکړو بیا به لاړل. تردې چه هغه ټولو خوراك اوکړو. (صحیح البخاری، کتاب الأنبیاء، باب: علامات النبوة فی الإسلام، رقم الحدیث: ۳۵۷۸).

**دَ حديث دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې. دَ ترجمة الباب دوه اجزاء دي. رومبې "من دعا لطعام في المسجد" او دويم "من أجاب منه" دَ رومبي جز مناسبت به په دې صورت كښې وي چه كله دَ "في المسجد" تعلق دَ دعا سره وي ځكه چه په دې صورت كښې به معنى وي چه كوم سړې جمات كښې راوبلې او كه چرې "في المسجد" تعلق دَ طعام سره شي نو بيابه دَ ترجمة الباب سره مناسبت قائم نه شي ځكه چه په دې صورت كښې به معنى وي چه كوم سړې په جمات كښې دَ خوراك كولو دعوت وركړي يعني خوراك په جمات كښې وي.

او دَ دويم جز مناسبت به داسې قائميږي چه په حديث شريف كښې موجود دي چه حضور پاك خپل ځان سره ناستو صحابه كرامو ته اشاره اوكړه چه پاسئ دَ خوراك دَ پاره روان شئ. نو دَ حضور پاك دا كلام دَ دعوت قبلولو لره مستلزم دې. په دې تقرير سره دَ هغه خلقو اشكال لرې شو ځوك چه دَدې خبرې قائل دي چه دَدې حديث دَ ترجمة الباب سره مناسبت صرف دَ دويم جز سره جوړيږي نه چه اول جز سره.(۱)

**دَ حديث شريف نه مستفاد امور او احكام:** دَ مذكوره حديث شريف نه ډير احكام او آداب مستنبط كيږي. په هغې كښې يو څو دلته ذكر كولې شي:

① دَدې حديث نه دَ خوراك دَ دعوت وركولو دَ جواز علم اوشو اګرچه هغه خوراك دَ وليمې نه وي.(۲)

② خوراك كه لږ شان هم ولې نه وي ډير خلق راغوښتو كښې هيڅ حرج نشته دې.(۳)

③ دعوت قبلونكي ته چه معلومه وي چه زما دَ ځان سره نه راغوښتې شوې خلقو بوتلو سره به راغوښتونكي ته څه قسم خفګان نه وي نو خپل ځان سره نور ځوك هم بوتلل جائز دي.(۴)

④ دَ يو كشر دَ خپل مشر نه مخكښې تګ په غرض دَ لارخودنې جائز دي.(۵)

---

(۱) عمدة القاري: ٤/٢٤٠.
(۲) فتح الباري: ١/٦٧٠، عمدة القاري: ٤/٢٤٠.
(۳) فتح الباري: ١/٦٧٠، عمدة القاري: ٤/٢٤٠.
(۴) فتح الباري: ١/٦٧٠، عمدة القاري: ٤/٢٤٠.
(۵) عمدة القاري: ٤/٢٤٠.

# ١٢ - بَابُ الْقَضَاءِ وَاللِّعَانِ فِي الْمَسْجِدِ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ

دا باب په جمات کښې د سړو او ښځو په مينځ کښې
دَ قضاء او لعان کولو دَ جواز په بيان کښې دې

**دَترجمة الباب تشريح، دَ قضاء لغوى او اصطلاحي تعريف:** "القَضَـاءُ" په لغت کښې دَ قضاء معنى فيصله کول، مضبوطول، دَ يو څيز دَ هغې آخرى ته رسولو وغيره ده.(١) دَ فقهاء کرامو په اصطلاح کښې دَ لازم کولو په توګه دَ يو شرعى حکم خبر ورکولو ته قضاء وائى. علامه شامي رحمه الله ليکلى دى چه په خاص طريقه باندې جګړه ختمول او دَ هغې فيصله کول قضاء ده.(٢)

**په جمات کښې دَ قضاء حکم:** دَ امام ابوحنيفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله او دَ امام احمد رحمه الله په نيز دَ وخت قاضي په جمات کښې کيناستو سره دَ خصوماتو فيصلې کولې شي. بلکه دَهغه دَ پاره هم په جمات کښې کيناستل او فيصلې کول بهتر دى. دې دَپاره چه صاحب حق او حاجت، په آسانئ سره جمات ته راشى او دَ قاضى په مخکښې خپله مدعا بيان کړې شى. بل په جمات

---

(١) النهاية فى غريب الحديث والأثر: ٤٦٧/٢. وفيه أيضًا: وقال الزهرى: القضاء فى اللغة على وجوه، مرجعها إلى انقطاع الشيئ وتمامه، وكل ما أحكم عمله، أو أتم، أو ختم،أو أدى، او أوجب، أو أعلم، او أنفذ، أمضى، فقد قضى، وقدجاءت هذه الوجوه كلها فى الحديث. (المصدر السابق).

(٢) "قوله: (وشرعا فصل الخصومات إلخ)عزاه فى البحر إلى المحيط، ولا بد أن يزاد فيه عله وجه خاص، وإلا دخل فيه نحوالصلح بين الخصمين".(حاشية ابن عابدين، كتاب القضاء: ١٩-٢٠/٨،دارعالم الكتب)."ابواب فقه کښې چه دَ قضاء په موضوع باندې په کوم تفصيل، شرح او بسط سره مستقل کتابونه ليکلى شوى دى او په دې سلسله کښې ئې يو يو جز واضح کړې دې. شايد چه چرته په بله موضوع باندې داسې توجه ورکړې شوې وى. په کوم کښې چه دَ قاضى ابوالحسن ماوردى رحمه الله "ادب القاضى"، دَ ابوبکرخصاف حنفى "ادب القضاء" او په دې باندې دَ صدر الشهيد شرح، اودارنګ هم په دې نوم سره دَ ابن الدم حموى رحمه الله کتاب، دَ علامه قرافى رحمه الله کتاب "الحکام فى تميز الفتاوى عن الأحکام"، دَ ابن فرحون "تبصرة الحکام"، دَ ابن شحنه حنفى "لسان الحکام"، دَ قاضى علاء الدين طرابلسى "معين الأحکام"، او علامه ابوالقاسم سمنانى "روضة القضاء وطريق النجاة" ډير اهم کتابونه دى. دَ قاضى عمادالدين اشورقانى حنفى "صنوان القضاء وعنوان الفتاء" (چه اوس اوس دَ حضرت مولانا قاضى مجاهدالاسلام قاسمى په تحقيق اوتعليق سره چهاپ شوى دې) او دَ فقهې په عامو کتابونوکښې دَ کتاب القضاء لاندې چه کوم مباحث راغلى دى هغه ددې نه علاوه دې. دَ اردو ژبې لمن باوجود د خپل وسعت ددې موضوع نه محروم وه اګرچه چه بعضې مختصر رسائل، دَ قضاء تاريخ، او قضاء سره متعلق بعضې مخصوص مسائلو باندې موجود وې مګر يو داسې کتاب موجود نه وو چه وضاحت او دَ احکامو استيعاب سره دَ اسلام قانون معدلت پيش کړى. دَ مولانامجاهدالاسلام قاسمى قاضى القضاة امارات شرعيه بهار واړيسه کتاب "اسلامى عدالت" (مطبوعه: ١٩٨٨ء)، الحمدلله دا کمې پوره کړې ده. خو بياهم دَ قضاء متعلق نور مباحث، دعوى شهادت، اقرار، صلح وغيره موضوعاتو باندې په اردو ژبه کښې دَ کار ضرورت دې. اميد دې چه دَمذکوره کتاب دَ دويمې حصې په ذريعه باند به دَ دغه ضرورت پوره والې اوشى" وبالله التوفيق وهوالمستعان (قاموس الفقه: ٥٢٢-٥٢٣/٤).

کښې کیناستو سره فیصله کولو کښې یوه فائده داهم ده چه د جمات د تقدس په رڼړا کښې به خلق د دروغو وینا نه کوی.[1]

خو د امام شافعي رحمه الله په نیز د قضاء انعقاد په جمات کښې مناسب نه دي ځکه چه په دې کښې د خصمینو خبرې اترې او شور غوبل سره د جمات د تقدس خرابیدل لا زم راځي. د دې نه علاوه په جمات کښې د فیصلې کولو په غرض به مشرك هم داخلیږي حالانکه هغه نجس دې او د نجس جمات ته داخلیدل جائز نه دی. چنانچه د دې خبرې په رڼړا کښې حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله قاضی تمیم بن عبدالرحمن په جمات کښې د قضاء د انعقاد نه منع کړې وو.[2]

**د لعان لغوی او اصطلاحی تعریف:** لعان د باب مفاعله مصدر دي، د لعنت نه مشتق دې. د لعنت معنی لرېوالې او محرومتیا ده. په دې اعتبار سره د لعان لغوی معنی دا شوه چه د دوو یا زیاتو کسانو په خپل مینځ کښې په یو بل باندې لعنت کول. او په اصطلاح کښې د لعان تعریف داسې دې داسې څلور شهادتونه چه په قسم سره مؤکد وی. خاوند په خپل شهادت سره په خپل ځان باندې لعنت وئیلی وی اوښځې په خپل ځان باندې د الله تعالی د غضب دعا کړې دی، د سړی په حق کښې کواهیانې حدقذف دی او د ښځې په حق کښې حد د زنا.[3]

کیږی داسې چه که چرې یو سړې په خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګوی یا د پیدا کیدونکی بچی د نسب انکار اوکړې اوښځه د دغه تهمت نه انکار اوکړی نو اول په سړی باندې لعان واجب دې او کله چه سړې لعان اوکړی نو بیا په ښځه باندې هم لعان واجب دې.[4]

---

[1] بدائع الصنائع، كتاب القضاء، فصل: وأما آداب القضاء: ١٣/٧. حاشية ابن عابدين، كتاب القضاء: ٤٨/٨-٤٧، دارعالم الكتب. المدونة الكبرى، كتاب القضاء: ١٤٤/١٢. الذخيرة،كتاب القضاء. الباب الرابع في آداب القضاة: ٥٨/١٠. المقنع،مع الشرح الكبير، مع الإنصاف، كتاب القضاء، باب: أدب القاضي، مسألة: ويستعين بالله ويتوكل عليه...... فصل: لا يكره القضاء في الجامع والمساجد....: ٢٣٧/٢٨.

[2] الحاوى فى فقه الشافعي، كتاب القاضى، القول فى حكم القضاء، القضاء فى غيرالمسجدوكراهة القضاء فيه: ٣٠/١٦. جواهر العقود، كتاب القضاء، أدب القاضى: ٣٥٧/٢.

[3] هولغة: مصدر لاعن كقاتل، من اللعن: وهوالطرد والإبعاد، سمى به لا بالغضب للعنه نفسه قبلها، والسبق من أسباب الترجيح. وشرعًا: (شهادات)أربعة كشهودالزنا (مؤكدات بالأيمان مقرونة شهادته) باللعن وشهادتها بالغضب لأنهن يكثراللعن، فكان الغضب أردع لها (قائمة)شهاداته (مقام حد القذف في حقه و) شهاداتها (مقام حدالزنا في حقها)أي: إذا تلاعنا سقط عنه حد القذف وعنها حد الزنا، لأن الاستشهاد بالله مهلك كالحد بل أشد. (الدرالمختار، كتاب الطلاق، باب: اللعان، ص: ٢٤١).

[4] د لعان پس منظر دادې: چه په اسلام کښې د انسانی عزت او ناموس ډیر اهمیت دې. په دې وجه په شریعت کښې چه څومره د زنا سزاسخته کیخودې شوې ده نو د بل یو جرم سزا دومره سخته نه ده. دغه شان که په یو سړی باندې د بدئي تهمت اولګولې شی نودا د اسلام په نظرکښې یو لوئی جرم دې. اودې سزا اتیا (۸۰) کوړې پخپله قرآن مجید مقررکړې ده. (سورة النور: ۵-۴). نوکه په یوه پاکدامنه ښځه یا سړی باندې د زنا تهمت اولګولې شی او د څلورو کسانو په ګواهئ سره دا ثابته نه کړې شی.......

**دَلعان طريقه:** قاضي به دَ تولو نه مخكښې خاوند ته وائي چه څلور ځل داسې اووايه چه زه الله تعالى ګواه جوړوم چه زه په فلانکې ښځه باندې دَ زنا دعوىٰ کښې رښتونې يم او په پنځم ځل دې اووائي که چرې زه په دغه خپله دعوىٰ کښې دروغژن يم نو په ما دې دَ الله تعالىٰ لعنت وي.

دې نه پس به قاضي دغه شان په ښځه باندې څلور ځل داسې اووائي چه زه الله تعالىٰ ګواه جوړوم چه زما خاوند په ما باندې دَ زنا په الزام لګولو کښې دروغژن دې او په پنځم ځل به وائي چه که هغه په خپل الزام لګولو کښې رښتونې وي نو په ما دې دَ الله تعالىٰ غضب وي. دا ټول تفصيل پخپله په قرآن پاك کښې موجود دې. اوکه چرې دواړه دغه شان لعان اوکړي نو دَ دواړو په مينځ کښې به قاضي تفريق يعنې جدائي راولي.(۱)

**قوله:** "بين الرجال والنساء" علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دا الفاظ زياتي واقع شوي دي هم دغه وجه ده چه دَدې الفاظو زيادت صرف دَ مستملي په روايت کښې دي دَبل چا په روايت کښې نشته.(۲)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه شراح اعتراض کوي چه په دې ځائې کښې امام بخاري رحمه الله لغوه کلام کړې دې ځکه چه لعان خو هم دسړي او ښځې په مينځ کښې وي نه چه دَ سړي او سړي په مينځ کښې يا په ښځه او ښځه کښې. نو دَ "بين الرجال والنساء" څه مطلب دې؟ دَ حافظ ابن حجر رحمه الله سره دَ نورو حضراتو هم دغه رائې ده چه دا کلام لغوه دې او هم دغه وجه ده چه بين السطور "هذا حشو" ليکلې شوې دې او دَمستملي نه علاوه بله يوه نسخه کښې هم دا نشته دې.

---

........ نودغه الزام به دروغ ګنړلې شي او هغه ته به اتيا (۸۰) کوړې ورکولې شي. دَ قرآن دا حکم عام وو او په ظاهر دَدې اطلاق په هغه سړو باندې هم کېدو څوك چه په خپله بي بي باندې داسې تهمت اولګوي. چنانچه حضرت هلال بن اميه رضي الله عنه خپله بي بي دَ شريك ابن سحماء سره متهم کړه. حضورپاك دَ عمومي قاعدې مطابق اوفرمائيل چه ګواه پيش کړه ګنې ستا په شا باندې به حد جاري کيږي. حضرت هلال رضي الله عنه عرض اوکړو چه ښه ده مونږ کښې دې څوك سړې خپله بي بي په داسې حال کښې اوګوري او بيا دې ګواه لټوي؟ ليکن حضورپاك مسلسل دَ هغه نه دَ ثبوت اصرار کولو او فرمائيلې ئې ګنې حد به دَرباندې جاري کيږي. تردې چه پخپله په قرآن مجيد کښې دا آيت دَ لعان نازل شو. (سورة النور: ۶-۱۰). بعضې رواياتو کښې دَ حضرت هلال بن اميه رضي الله عنه په ځائې دَ عويمر عجلاني ذکر دې.

چونکه دَ ښځې خاوند معامله دَ خصوصي نوعيت حامل ده اودَ ښځې ګنده کېدل نيغ په نيغه دَ خاوند مفاد او دَ هغه عزت نفس مجروح کوي. بل دَ ګواهانو نه مهيا کېدو دَ وجې که هغه چپ پاتې شي ليکن دَ دغه صورت حال نه خبرېدو نه پس دَ يو شريف سړي او ښځې په مينځ کښې کورنې ژوند مضبوط اودَ خوشحالئ تعلقات په ځائې پاتې کېدل ممکن نه وي. په دې وجه په دې معامله کښې دا خصوصي حکم ورکړې شو چه دَ خاوند او ښځې نه په دې مخصوصو الفاظو سره قسم واخستلې شي او په هغوي باندې دې دَ لعنت او غضب سره دَ خيرو الفاظ اووئيلې شي او بيا دې دا دواړه جدا کړې شي. ځکه چه داسې بې اعتمادئ اوبې اعتبارئ سره دارشته په ځائې ساتل به دَدواړو دَپاره دَ بې آرامئ او اضطراب سبب وي.

(۱) ردالمحتار مع الدر المختار، كتاب الطلاق، باب: اللعان: ۱۵۷/۵.

(۲) عمدة القاري: ۲۴۱/٤، فتح الباري: ۶۷۱/۱.

**قوله:** "عندي: هذا صحيح" په دې توکه چه کوم د "بين" لفظ دې دا د لعان متعلق نه دې بلکه د قضاء متعلق دې او مطلب دا شو چه "باب: القضاء في المسجد بين الرجال والنساء" يعنى په جمات کښې فيصله د سړو او ښځو په مينځ کښې، نو ددې نه د سړو او سړو يا د ښځو او ښځو په مينځ کښې به فيصله په طريق اولى ثابتيږى (۱)

حديث باب [حديث نمبر ۴۱۳]

- ۴۱۳ - حَدَّثَنَا يَحْيَى قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ (۲) أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ وَأَنَا شَاهِدٌ.

**د حديث ترجمه:** د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دې چه يو سړى اوويل يا رسول الله! تاسو اووايئ چه يو سړې خپلې ښځې سره څوك سړې (بدكارى كولو سره) اووينى نو آيا هغه دې قتل كړى؟ بيا دغه دواړو (ښځې خاوند) په جمات كښې لعان اوكړو په داسې حال كښې چه زه هلته موجود ووم.

**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه راويان دى:

① **يحيى رحمه الله:** دا ابو زكريا يحيى بن موسى بلخى رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الحيض، باب: دلك المرأة إذا تطهرت من المحيض، كيف تغتسل، وتأخذ فرصة ممسكة، فتتبع أثر الدم كښې تير شوى دى. (۳)

② **عبدالرزاق رحمه الله:** دا عبد الرزاق بن همام صنعانى رحمه الله دې. د دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان باب: حسن إسلام المرء لاندې تيرشوى دى. (۴)

---

(۱) هامش اللامع: ۱۶۲/۱، الأبواب والتراجم: ۲۱۱/۲، سراج القارى: ۴۷۱/۲.

(۲) أخرجه البخارى أيضا فى التفسير، سورة النور، باب: قوله عزوجل: ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ﴾ رقم الحديث: ۴۷۴۵. وباب: ﴿وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ رقم الحديث: ۴۷۴۶. وفى الطلاق، باب: من جوز طلاق الثلاث، لقول الله تعالى: ﴿الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ﴾ رقم الحديث: ۵۲۵۹. وباب اللعان ومن طلق بعد اللعان، رقم الحديث: ۵۳۰۹. وفى المحاربين، باب: من أظهر الفاحشة واللطخ والتهمة بغير بينة، رقم الحديث: ۶۸۵۴ وفى الأحكام، باب: من قضى ولا عن فى المسجد، رقم الحديث: ۷۱۶۵، ۷۱۶۶. وفى الاعتصام، باب: ما يكره من التعمق والتنازع فى العلم والغلو فى الدين والبدع، رقم الحديث: ۷۳۰۴. ومسلم فى صحيحه، فى كتاب اللعان، رقم الحديث: ۱۴۹۲، وأبوداؤد فى سننه، فى الطلاق، باب: فى اللعان، رقم الحديث: ۲۲۴۵، ۲۲۴۶، ۲۲۴۷، ۲۲۴۸، ۲۲۴۹، ۲۲۵۰، ۲۲۵۱، ۲۲۵۲. والنسائى فى سننه، فى الطلاق، باب: بدء اللعان، رقم الحديث: ۳۴۹۶. وفى جامع الأصول، حرف اللام، الكتاب الثالث: فى اللعان ولحاق الولد، الفصل الأول: فى اللعان وأحكامه، رقم الحديث: ۸۳۸۱ ۷۱۳/۱۰.

(۳) كشف البارى، كتاب الحيض، باب: دلك المرأة إذا تطهرت من المحيض، كيف تغتسل، وتأخذ فرصة ممسكة، فتتبع أثر الدم، ص: ۳۷۴.

(۴) كشف البارى: ۴۲۱/۲.

③ ابن جريج رحمه الله: دا عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج رحمه الله دې. دَ دوی احوال كشف البارى، كتاب الحيض باب: غسل الحائض رأس زوجها وترجيله لاندې تيرشوى دى.[1]

④ ابن شهاب رحمه الله: دا محمدبن مسلم ابن شهاب الزهرى رحمه الله دې. دَ دوی احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى، دريم حديث لاندې تير شوى دى.[2]

⑤ سهل بن سعد رضي الله عنه: دا صحابئ رسول حضرت سهل بن سعد بن مالك بن خالد خزرجى ساعدى رضي الله عنه دې. دَ دوی حالات كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: غسل المرأة أباها الدم عن وجهه لاندې تيرشوى دى.[3]

**دَ حديث شرح: قوله:** "أن رجلا" دَمحدثينو او شارحينو په دې امر كښې اختلاف دې چه دا رجل څوك وو؟ نو دې باره كښې درې نومونه ذكرشوى دى.[4] ① هلال بن اميه ② عاصم بن عدى ③ عويمر عجلانى. صحيح بخارى كښې دَ عويمر عجلانى دَ سائل كيدو تصريح موجود ده.[5]

**قوله:** "أرأيت رجلاً؟" رومبې همزه استفهاميه ده. مطلب دادې چه اې دَ الله رسول ! ماته اووايئ كه يو سړې چرته خپلې ښځې سره پردې سړې اووينى نو آيا هغه به قتلوى كه نه؟[6]

**قوله:** "فتلاعنا" دَ سائل په سوال اودَې جملې په مينځ كښې ډيره زياته خبره محذوف ده. كومه چه دَ نورو روايتونو سره راښكاره كيږى. دَ كوم خلاصه داده چه سائل دا سوال اوكړو

---

[1] كشف البارى، كتاب الحيض باب: غسل الحائض رأس زوجها وترجيله، ص: ۲۰۴

[2] كشف البارى: ۱/۳۲۶.

[3] كشف البارى، كتاب الوضوء، باب: غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.

[4] مصابيح الجامع شرح الجامع الصحيح للإمام البخارى: ۱۲۴/۲، عمدة القارى: ۲۴۲/۴. يوڅلورم نوم حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه هم نقل دې. چه په حيثيت دَ سائل صحيح مسلم كښې ذكر دې. وئى ګورئى: حدثنى عبيدالله بن عمر القواريرى، وأبوكامل فضيل بن حسين الجحدرى، واللفظ لأبى كامل، قالا: حدثنا أبوعوانة، عن عبدالملك بن عمير، عن وراد، كاتب المغيرة، عن المغيرة بن شعبة، قال: قال سعد بن عبادة: لورأيت رجلا مع امرأتى لضربته بالسيف غير مصفح عنه، فبلغ ذلک رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال: أتعجبون من غيرة سعد، فوالله لأنا أغير منه، والله أغيرمنى، من أجل غيرة الله حرم الفواحش، ما ظهرمنها، وما بطن، ولا شخص أغير من الله، ولا شخص أحب إليه العذر من الله، من أجل ذلک بعث الله المرسلين، مبشرين ومنذرين، ولا شخص أحب إليه المدحة من الله، من أجل ذلک وعدالله الجنة. (صحيح مسلم، كتاب اللعان، رقم الحديث: ۱۴۹۹).

[5] صحيح البخارى، كتاب التفسير، سورة النور، باب: قوله عزوجل: ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ﴾ رقم الحديث: ۴۷۴۵، وباب: ﴿وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ رقم الحديث: ۴۷۴۶، وكتاب الطلاق، باب: من جوز طلاق الثلاث: لقول الله تعالى: ﴿الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ﴾ رقم الحديث: ۵۲۵۹، وباب اللعان ومن طلق بعداللعان، رقم الحديث: ۵۳۰۹.

[6] شرح الكرمانى: ۸۲/۴، عمدة القارى: ۲۴۳/۴.

چه هغه لیدونکې سړې ایا خپله ښځه قتل کړي که څه اوکړي؟ بیا الله تعالی د هغه په شان کښې دَ لعان دا حکم رانازل کړو. نو نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه واخله ستا او ستا دَ ښځې باره کښې دَ الله تعالی دَ طرف نه فیصله راغلې ده. بیا په دواړو باندې په جمات کښې لعان اوکړې شو. راوی وائی چه زه هم دغه وخت په جمات کښې موجود ووم.[۱]

**دَ حدیث مبارک دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** په مذکوره حدیث شریف کښې ذکر شو چه حضورپاک دَ سړی او دَ ښځې دَ دواړو په مینځ جمات کښې لعان اوکړو او په ترجمة الباب کښې هم دغه ذکرشوی دی.[۲]

## ۱۳- بَابٌ: إِذَا دَخَلَ بَيْتًا يُصَلِّي حَيْثُ شَاءَ أَوْ حَيْثُ أُمِرَ وَلَا يَتَجَسَّسُ

داباب په دې باره کښې دې چه کله دَ چا کورته لاړشي نو چه په کوم ځائی کښې غواړې مونځ دې اوکړي، یا ‹دَ مالك مكان دَ طرف نه، چه هغه ته په کوم ځائی کښې دَ مونځ کولو دَ پاره اووئیلې شی، هم هلته دې اوکړي او تجسس دې نه کوی›

**دَترجمة الباب مقصد:** ترجمة الباب کښې دکلمه "او" په ذریعه دوه خبرې ذکردی: ① دَ چا کورته تلونکې که هلته مونځ کول غواړی نوهغه ته اختیار دې چه بغیرتپوس نه چرته چه غواړی مونځ دې اوکړي. اوکه غواړی نو دَ کور والا نه دې معلومه کړي چه دَ مونځ اداکولوځائی کوم یو دې. بیا دې هلته مونځ اداکړي. البته ډیر تجسس او اخوا دیخوا کتل وغیره دې نه کوی. ② دویم دا چه په ترجمة الباب کښې سوال کولې شی چه دَ چا کورته تلونکې که هلته مونځ ادا کول غواړی نو څه به کوی؟ هلته په خپله مرضئ چه هر چرته وی مونځ دې اداکړي یا دَ کور والو نه دې دَ مونځ دَ ځائی معلومات کولوسره مونځ اداکړي؟ نوددې سوال جواب دَ حدیث باب نه ملاویږی چه هغه دې دَ کور دَ خلقو نه تپوس اوکړي هغوی چه چرته دَ مونځ کولو اَووائی هم هلته دې مونځ اداکړي. او په دې صورت کښې هم دَ تجسس نه ځان ساتل پکاردی.[۳]

---

[۱] عمدة القاری: ۲۴۳/۴.

[۲] ایضاح البخاری: ۲۰۸/۳.

[۳] حضرت مولانا محمدانورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دَ بخاری شریف شارحینو دواړه صورتونه دَ امام بخاری رحمه الله مقصد خودلې دې چه کوم غواړی اختیاردې کړی. مګر زه ګنړم چه دَترجمې مقصد حسب امر صاحب الدارخودې مګر بیا دا خیال کولوسره چه دَ شارع علیه السلام حکم هم په دې باندې منحصر اونه ګنړلې شی، دویم صورت ئې هم ذکرکړو. احقر عرض کوی چه کیدې شی هم ددې دَ پاره تجسس منع کړې شو ځکه چه چرته غواړی مونځ کولو کښې دا هم کیدې شي چه هغه ئې په داسې ځائی کښې کول غواړی چرته چه دَ کور والو خوښه نه وی. یا دَ پردې او ستر خلاف وی یا په هغه ځائی کښې داسې کورنې سامان وی کوم چه هغه ته خودل نه غواړی وغیره. او دا خبره ده که چرته دَ کورمالك عام اجازت ورکړې چه چرته غواړی مونځ دې اوکړی بیا څه باك نشته. داخو عام خبره شوه لیکن که یو سړې څوك ولې یا بزرګ راوغواړی دَ خپل کور څه حصه بابرکته جوړولو دَ پاره یا دَ مونځ دپاره یو ځائی مقررکول غواړی نو بهتر هم دغه ده چه هغه بزرګ ځائی معلوم کړی لکه چه حضورپاك معلوم کړو. والله اعلم. په دې حدیث سره دَ صالحینو په آثارو سره دَ برکت حاصلولو ثبوت معلوم شو او سلفی حضرات.......

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله ليکي چه دعام شراحو رائې داده چه د ترجمې دوه جزه دي. يو "يصلى حيث شاء" او دويم "حيث أمر" اوس اختلاف په "لايتجسس" کښې پيدا کيږي چه د څه متعلق دې؟ د اول جز که د دويم سره. د شارحينو رائې داده چه د دويم جز سره متعلق دې او مطلب دادې چه چرته حکم ورکړې شي هم هلته دې مونځ اوکړي. تجسس دې نه کوي او اخوا ديخوا دې نه ګوري. اود حضرت شاه ولى الله محدث دهلوى رحمه الله رائې داده چه د دواړو سره متعلق کيدې شي.

اوس دلته دا واؤرئی چه دلته د روايت نه صرف "حيث أمر" کيدې شي ځکه چه حضورپاک تپوس کړې وو چه چرته مونځ اوکړم؟ په دې باندې حضرت عتبان رضي الله عنه اووئيل چه فلانکی ځائی کښې، دا حيث أمر شو. او د حيث شاء په روايت کښې چرته ذکر نشته. حضرت شاه ولی

........ کوم چه دا کارونه بې حيثيت ګرځوی په هغې رد اوشو. حرمين شريفين کښې دهغه تبرکاتو نښې نردې چه د نبی کريم د پيدا کيدو ځائی اود حضرت خديجه رضي الله عنها کور ئې معطل او بې نښې کړې دې اودې ته د خالص توحيد نوم ورکولې شي. يعنې د هغه يوځوک کسانو نه علاوه د ټولې دنيا د کروړونو عام مسلمانان او علماؤ ټول د توحيد په مقابله کښې ناخالص دی. مګر ولې هم دغه حديث د بخاری شريف د دې خبرې کامل ثبوت نه دې چه د حضورپاک چرته په يو ځائی باندې صرف نفل مونځ کولوسره به صحابه کرامو هغه ځائی خومره د برکت ګنړلو. آيا دا ځوک وئيلې شی چه هغه ځائی حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه د بت پرستو په شان د عبادت ځائی جوړکړې وو؟ بيا څه وجه ده چه په کوم کور مبارك کښې د حضورپاك پيدائش شوې دې په کالونو حضورپاك په هغې کښې عبادت کړې دې، شپې ورځې ئې تيرې کړې دی. اود حضرت خديجه رضي الله عنها په کورکښې به ځوځل د الله تعالی د طرف نه وحی نازل شوې وی او په هغې کښې حضورپاك په سوونو نوافل بلکه فرائض هم ادا کړې وی. بيا دا چه د ديارلسو سوو کالو پورې د هر دور حجاج او زائرينو د دغه مبارکو مقاماتو زيات کولو اود حضرت عتبان رضي الله عنه په شان هلته ئې د برکت د حاصلولو د پاره نفل مونځونه هم کول. خوارلسمه صدی راتللو سره دغه مقدس مقامات صرف يو د وهم خطره جوړولو په وجه چه خلق به هلته شرك کوی دهغې نښې ئې هم ختمې کړې يا ئې هغه بندې کړې آيا هلته هم د نورو جماتونو اومدينې طيبې په شان د سپاهيانو ځوکئ کينولو سره صرف دمزعوم شرك بندول نه شو کيدې. د نورو صحابه کرامو دير واقعاتو نه استبراك ثابت دې نو آيا د هغوی نه زيات دا خلق د څه خالص توحيد منونکی دی؟ زما دعاجزئی درخواست د موجوده د نجد د علماؤ او امراؤ ته دې چه هغوی دې د تلافی مافات طرف ته دير زر توجه اوکړی. علامه ابن قيم رحمه الله د زادالمعاد هم په شروع کښې د حضرت اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها حديث د مسلم شريف نه نقل کړې دې چه هغې جبه مبارکه راويستله او وئې فرمائيل چه دا د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها سره ترآخره پورې وه د هغې د وفات نه پس ماله راغله. چونکه نبی کريم صلى الله عليه وسلم به دا اچوله په دې وجه مونږ دا وينځو او بيمارانو له هغه اوبه ورکوو او هغوی ته شفا ملاويږی. او حضرت ابو ايوب انصاری رضي الله عنه چاسره چه حضورپاك په مدينه منوره کښې تر اووه مياشتو پورې ميلمه اوسيدلو، د حضرت ابوايوب رضي الله عنه او بی بی ئې دا معمول وو چه دواړه وخته به ئې حضورپاك له خوراك راوړو او څه چه به حضورپاك ته پاتې شو هغه به ئې خوړلو. ځوك نجدی مزاج داسې وئيلې شی چه داسې خو ټول کوی مګر اوس نور اوګورئی چه حضرت ابوايوب رضي الله عنه به د برکت حاصلولو د پاره هم هلته ګوتې لګولې چرته چه به ئې د حضورپاك د ګوتو نښې ليدلې. (زرقانی، وفا الوفاء، حاکم، اصابه) افسوس دې چه زمونږ نجدی رونړه اودهغوی په شان خيال لرونکی داسې خبرې مهمل ګنړی. (انوارالباري: ۴۸/۱۴).

Maktaba Tul Ishaat.com

الله ﷺ فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله د اصولو نه دادی چه د روایت دویم طریق طرف ته اشاره فرمائی نو دلته امام بخاری رحمه الله یو بل طریق طرف ته اشاره اوکړه په کوم کښې چه تخییر موجود دې. اودویم قول دادې چه دلته "هل" مقدر دې او مطلب دادې چه "إذا دخل بیتا هل یصلی حیث شاء أو حیث أمر" او د روایت نه دَدې جواب معلوم شو "أی: یصلی حیث أمر" او بعضې حضرات فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه مسئله محل د غور اوفکر ده ځکه چه د روایت د لفظ نه امر ثابتیږی او راغوښتل دلیل دې د دې خبرې چه اختیار دې چرته چه غواړې مونځ دې اوکړی.[1]

**د چاکورته د تلو ادب:** "ولایتجسس" د دې لفظ نه معلومیږی چه یو سړې د چا کور ته لاړشی نو د هغه د پاره مناسب او بهتر هم دغه ده چه هغه د تجسس او تفتیش په نظر سره کورکښې اخوادیخوا نه ګوری راګوری بلکه خپل کارسره دې کار لری او د هغه ځائی نه دې واپس راشی.[2]

حدیث باب [حدیث نمبر ۴۱۴]

- ۴۲۴ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ عَنْ عِتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ[3] أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَتَاهُ فِي مَنْزِلِهِ فَقَالَ «أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ لَكَ مِنْ بَيْتِكَ». قَالَ فَأَشَرْتُ لَهُ إِلَى مَكَانٍ، فَكَبَّرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَصَفَفْنَا خَلْفَهُ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ.

**د حدیث ترجمه:** د حضرت عتبان بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د هغه کور ته تشریف راوړو او وئی فرمائیل ته په خپل کور کښې چرته خوښوې چه زه هغه ځائی کښې

---

[1] تقریربخاری شریف: ۱۵۶/۲.

[2] فیض الباری: ۵۵/۲.

[3] أخرجه البخاری أیضًا فی المساجد، باب: المساجد فی البیوت، رقم الحدیث: ۴۲۵. وفی الجماعة، باب: الرخصة والمطر والعلة أن یصلی فی رحله، رقم الحدیث: ۶۶۷. وباب: إذا زار الإمام قومًا فأمهم، رقم الحدیث: ۶۸۶ وفی صفة الصلاة، باب: یسلم حین یسلم الإمام، رقم الحدیث: ۸۳۸. وباب: من لم یرد السلام علی الإمام، واکتفی بتسلیم الصلاة، رقم الحدیث: ۸۴۰ وفی التطوع، باب: صلاة النوافل جماعة، رقم الحدیث: ۱۱۸۶. وفی المغازی، باب: شهود الملائکة بدراً، رقم الحدیث: ۴۰۰۹، ۴۰۱۰. وفی الأطعمة، باب: الخزیرة، رقم الحدیث: ۵۴۰۱. وفی الرقاق، باب: العمل الذی یبتغی به وجه الله، رقم الحدیث: ۶۴۲۳ وفی استتابة المرتدین، باب: ماجاء فی المتأولین، رقم الحدیث: ۶۹۳۸. ومسلم فی صحیحه، فی الإیمان، باب: الدلیل علی أن من مات علی التوحید، رقم الحدیث: ۳۳. وفی المساجد، باب: الرخصة فی التخلف، رقم الحدیث: ۲۶۳. والنسائی فی سننه، فی الإمامة، باب: إمامة الأعمی، رقم الحدیث: ۷۸۹. وباب: الجماعة للنافلة، رقم الحدیث: ۸۴۵ وفی السهو، باب: تسلیم المأمون حین یسلم الإمام، رقم الحدیث: ۱۳۲۸. وفی جامع الأصول، حرف الصاد، الکتاب الأول: فی الصلاة، القسم الأول: فی الفرائض وأحکامها، الباب الأول: فی الصلاة وأحکامها، الفصل السادس: فی شرائط الصلاة، الفرع الرابع: فی أمکنة الصلاة، النوع الرابع: فی أحادیث متفرقة، رقم الحدیث: ۳۶۸۶، ۴۸۴/۵.

مونځ اوکړم؟ د هغه وينا ده چه ما د يو ځائي طرف ته اشاره اوکړه نو نبي کريم ﷺ تکبير اووئيلو او مونږ حضورپاك پسې شاته صف جوړ کړو نو حضورپاك مونږ ته دوه رکعته مونځ راکړو.

**تراجم رجال:** دَمذکوره حديث شريف ټول رجال پنځه دي:

① عبدالله بن مسلمه رحمه الله: دا عبد الله بن مسلمه بن قعنب حارثي بصري رحمه الله دي. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب من الدين الفرار من الفتن لاندې تير شوی دی. (1)

② ابراهيم بن سعد رحمه الله: دا ابو اسحاق ابراهيم بن سعد بن ابراهيم قرشي مدني رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: تفاضل أهل الإيمان في الأعمال او تفصيلي احوال کتاب العلم، باب: ما ذکر موسى عليه السلام في البحر إلى الخضر لاندې تير شوی دی. (2)

③ ابن شهاب رحمه الله: دا محمدبن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب الزهري رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحي، دريم حديث لاندې تير شوی دی. (3)

④ محمود بن الربيع رحمه الله: دا محمود بن الربيع بن سراقه خزرجي انصاري رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب، باب: متى يصح سماع الصغير لاندې تير شوی دی. (4)

⑤ حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه: دَدوی پوره نوم عتبان بن عمرو بن عجلان بن زيد دې. دوی انصاري دی. دَ دوی مور بی بی دَ قبيله مزينه نه وه. دَ دوی واده دَ ليلى بنت رتاب ابن حنيف بن رتاب بن اميه سره شوې. دَ چانه چه ئې يو ځوئې عبدالرحمن پيدا شو. قبا سره نيزدې (يعني مدينې نه دوه درې ميله فاصله باندې) دَ دوی کور وو. دَ خپلې قبيلې سردار اودَ دوی امام وو.

دَ دوی دَ جمات او کور په مينځ کښې يوه وادی وه. کله چه به باران کيدو نو په هغې کښې به اوبه جمع کيدې. دَ نظر دَ کمزورئې دَ وجې نه په دغه اوبو کښې تيريدل او جمات ته تلل به ئې ډير سخت محسوسول. نو هغوی دَ حضورپاك نه اجازت اوغوښتو چه ماته په جمع کښې دَ شرکت په ځائې هم په کور کښې دَ مونځ کولو اجازت راکړه. حضورپاك تپوس اوکړو چه ته دَ اذان آواز اورې عرض ئې اوکړو چه آوجی، نو حضورپاك دوی ته اجازت ورنه کړو.

دَ عبدالواحد بن ابي عون رحمه الله نه روايت دې چه رسول الله ﷺ دَ هغوی او حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په مينځ کښې رورولي قائمه کړې وه. هغوی په غزوه بدر، غزوه احد او غزوه خندق کښې شرکت کړې دې. باقي غزواتو کښې ئې دَ نابينا کيدو دَ وجې نه شرکت اونه کړې شو.

---

1) کشف الباري: ۸۰/۲.
2) کشف الباري: ۳۳۳/۳.
3) کشف الباري: ۱/۳۲۶.
4) کشف الباري: ۲۹۳/۳.

د جمهورو په نيز د بدري صحابه کرامو نه وو. ليکن ابن اسحاق رحمه الله د بدر په شرکاؤ کښې د دوی ذکر نه دې کړې. هم په دې زمانه کښې د دوی نظر لاړو نو دوی نبی کریم ﷺ ته درخواست اوکړو چه تاسو زما کورته تشریف راوړئی او زما په کور کښې چرته يو ځائی کښې مونځ اداکړئی دې د پاره چه زه هغه ځائی د ځان د پاره د مونځ ځائی جوړکړم. نو حضورپاک هم داسې اوکړه.

د محمد بن عمر رحمه الله بيان دې چه ترننه پورې خلق مدينه کښې د دوی په کور کښې د برکت د حاصلولو د پاره هغه ځائی کښې مونځ کوی. دوی د حضرت معاويه بن ابی سفيان رضی الله عنه د خلافت په دوران کښې تقريبًا ۵۲ھ کښې وفات شوی دوی وخت کښې د دوی څه اولاد هم موجودنه وو.(۱)

**د حديث شرح:**

**قوله: عَنْ عِتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُ فِي مَنْزِلِهِ:** د حضرت عتبان بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ د هغوی کورته تشريف راوړو.

**نبی کريم ﷺ پخپله راغلو؟ يا حضورپاک راغوښتې شوې وو؟:** د دې روايت نه معلوميږی چه نبی کريم ﷺ پخپله تشريف راوړې وو. خو په حقيقت کښې په دې روايت کښې ډير اختصار دې. په تفصيلی روايت کښې دا خبره ملاويږی چه حضرت عتبان بن مالك رضی الله عنه د جمعې په ورځ د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه اې د الله رسوله! زه غواړم چه تاسو زما کور ته تشريف راوړئی. نو حضورپاک د هفتې په ورځ د دوی کور ته تشريف يوړو. او حضورپاک سره حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما هم وو.

(۲)بعضې رواياتو کښې دی چه هغه پخپله هم نه دې راغلې بلکه هغه د حضورپاک په خدمت کښې يو سړې پيغام ورکولو سره ليږلې وو. ابن حبان رحمه الله په خپل صحيح کښې دا روايت نقل کړې دې.(۳)

---

(۱) أسد الغابة: رقم الترجمة: ۳۵۳۵. معرفة الصحابة: رقم الترجمة:۲۳۳۳،ص: ۲۲۲۵. الطبقات الكبرى لابن سعد: رقم الترجمة:۲۶۰، ۵۰۹/۳.

(۲) عن محمود بن الرابيع الأنصاری أخبرنی عتبان بن مالك: أنه كان إمام قومه وقد شهد بدراً، فقال للنبی صلى الله عليه وسلم أنه لما ساء بصری شقت على إجازة الوادی إذا سال بينی وبين مسجد قومی، فقال للنبی صلى الله عليه وسلم يوم الجمعة: رأيتنی يارسول الله! لوأتيتنی، فصليت فی مكان من بيتی، أتخذه مصلى؟ فقال له:سأفعل، فغدالنبی صلى الله عليه وسلم يوم السبت ومعه أبوبكرو عمر رضی الله عنهما، فدخل، فما جلس حتى قال: أين تحب أن أصلی فی بيتك؟ فأشرت إلى الناحية التی أردت، فصلى فيها ضحى، وحبسناه على خزيرة يصنع له. (المعجم الكبير للطبرانی، عتبان بن مالك، رقم الحديث: ۱۴۷۶۱، ۳۱/۱۸).

(۳) عن أبی هريرة رضی الله عنه أن رجلا من الأنصار عمی، فبعث إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم أن تعال، فاخطُط فی داری مسجداً أتخذه مصلى، فجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم واجتمع اليه قومه، وبقی رجل منهم فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم:"أين فلان؟"، فغمزه بعض القوم: إنه وإنه، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "أليس قد شهد بدراً؟"، قالوا بلى يارسول الله! ولكنه كذا وكذا، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم:".........

**قوله: فَقَالَ: «أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ لَكَ مِنْ بَيْتِكَ؟»**: او وئې فرمائيل چه ته په خپل کور کښې چرته خوښوې چه زه هغه ځائې کښې مونځ ادا کړم؟

دَمستملی په روايت کښې صرف دَ "أن يصلي لك" الفاظ دی. دَ "من بيتك" الفاظ په کښې نشته دی. او دَ کشميهنی په روايت کښې دَ "من بيتك" په ځائې دَ "لي بيتك" الفاظ دی. (١)

علامه عينی رحمه الله دې ځائې کښې يو سوال او دَ هغې جواب نقل کړې دې چه مونځ خو دَ الله تعالی دَ پاره اداکيږی بيا دلته دَ حضورپاک دا فرمائيل چه زه ستا دَپاره مونځ اوکړم دا به څنګه صحيح وی؟ نو ددې جواب دا ورکړې شوې دی چه نفس مونځ خو دَ الله تعالی دَپاره دې او ادا کول هغه ځائې کښې وو کوم چه دَ مانځه دَ پاره خاص کول وو. لکه چه حضورپاک دا اوفرمائيل چه کوم ځائې ته دَ مونځ دَ اداکولو دَپاره مخصوص کول غواړې هغه اوښايه چه زه په هغه ځائې کښې مونځ اوکړم. (٢)

**قوله: قَالَ: فَأَشَرْتُ لَهُ إِلَى مَكَانٍ، فَكَبَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَصَفَفْنَا خَلْفَهُ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ.** دَ هغه وينا ده چه ما دَ يو ځائې طرف ته اشاره اوکړه نو نبی کريم ﷺ تکبير اووئيلو، او مونږ دَ حضورپاک شاته صف جوړ کړو، نو حضورپاک مونږ ته دوه رکعته مونځ راکړو.

په دې عبارت کښې دَ بعضې رواياتو مطابق دَ "فصففنا" لفظ دې دَ "وصففنا" په ځائې. او بعضې نسخو کښې دَ "صففنا" په ځائې دَ "فصفنا" لفظ دې. په اول صورت کښې به مطلب دا وی چه مونږ صف جوړ کړو او دويم صورت کښې به مطلب دا وی چه نبی کريم ﷺ دَ خپل ځان شاته زمونږ صف جوړ کړو. (٣)

**دَ نوافلو دَ جمع حکم**: دَ مذکوره حديث شريف نه دا خبره مخې ته راځی چه نبی کريم ﷺ دَ نفل مونځ جمع اوکړه. نو پوهيدل پکاردی چه دا دَ نبی کريم ﷺ دَ هميشه معمول نه وو او نه ډيره لوئې جمع وه، او نه ددغه جمع دَ پاره څه باقاعده دعوت ورکړې شوې وو. بلکه دلته خو حضرت عتبان رضي الله عنه صرف حضورپاک ته درخواست کړې وو چه حضورپاک تشريف راوړی او زما په کورکښې مونځ اوکړی چه ماته په دغه ځائې کښې برکت حاصل شی او بيا زه هم هغه ځائې کښې مونځ کوم. هغه خو راتلوسره پخپله نبی کريم ﷺ ځان سره سيدنا صديق اکبر او فاروق اعظم رضي الله عنهما راوستل او په کور کښې ئې مونځ ادا کړو نو دا تول بغير دَ څه دعوت نه اوشو. دې نوعيت لره مخې ته ساتلوسره ائمه کرام په دې مسئله کښې مختلف شو.

**دَ احنافو مسلک**: دَ احنافو په نيز که چرې دَ نوافلو دَ فرائضو په شان اهتمام اوکړې شی او دَ اذان او دَ اقامت يا په بل څه طريقه خلق راوُغوښتې شی نو جمع کول مکروه تحريمی دی.

---

...... لعل الله اطلع على أهل بدر، فقال: اعملوا ما شئتم فقد غفرت لكم". (صحيح ابن حبان، كتاب الجهاد، باب الخروج وكيفية الجهاد، رقم الحديث: ٤٧٩٨، ١١/١٢٣).

(١) فتح الباري: ٦٧٢/١، عمدة القاري: ٢٤٥/٤.

(٢) عمدة القاري: ٢٤٥/٤.

(٣) عمدة القاري: ٢٤٥/٤.

که چرته کله کله اذان او اقامت یا دَ تداعی (رابللو) نه بغیر دَ امام نه علاوه یو، دوه یا دري کسان دَ جمات په یو کوټ کښې نفل مونځ په جمع سره اوکړی نو څه حرج نشته. او که چرته دَ امام نه علاوه څلور کسان دَ هغه سره په جمع کښې شریك وی نو په دې کښې اختلاف دې. دَ صحیح قول مطابق دا مکروه تحریمی دی. او په دې باره کښې دَ رمضان او غیر رمضان څه تفریق هم نشته دې. (۱) زمونږ دَ استاذانو نه دَ حضرت مولانا سید حسین احمد مدنی رحمه الله ذاتی خیال او رائې په رمضان کښې دَ نوافلو په جمع سره دَ کولو دَ جواز وه لیکن دا دَ حضرت اقدس ذاتی رائې وه دَ جمهورو احنافو نه دَدې په خلاف قول نقل دی. والله تعالی اعلم بالصواب. (۲)

---

[1] أن التطوع بالجماعة إذا كان على سبيل التداعي يكره في الأصل للصدر الشهيد. أما إذا صلوا بجماعة بغير أذان وإقامة في ناحية المسجد لا يكره، وقال شمس الأئمة الحلواني: إن كان سوى الإمام ثلاثة لا يكره بالاتفاق، وفي الأربع اختلف المشايخ، والأصح أنه يكره ا هـ. كذا في شرح المنية. وقال ابن عابدين في منحة الخالق تحت قوله: أما إذا صلوا بجماعة إلخ" لا محل لهذه الجملة هنا، وإنما محلها فيما بعد عند ذكر حكم تكرارها. (البحرالرائق، كتاب الصلاة، باب: الإمامة: ۱/۶۰٤،۶۰۶ دارالكتب العلمية). أن الجماعة في التطوع ليست بسنة إلا في قيام رمضان، وفي الفرض واجبة أو سنة مؤكدة، ......... لأن الجماعة من شعائر الإسلام، وذلك مختص بالفرائض أو الواجبات دون التطوعات. (البدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل: فيما يفارق التطوع الفرض: ۳۰۱/۲). وكذا في الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة، الباب الخامس في الإمامة، الفصل الأول في الجماعة: ۱/۸۳.

[2] حضرت مولانا مفتی محمدتقی عثمانی رحمه الله په خپله یوه مقاله کښې دَ حضرت اقدس مولانا سید حسین احمد مدنی قدس سره په دې مسئله کښې دلائل دَ هغې جوابونه او دَ جمهور فقهاء احناف مسلك په ډیر تفصیل سره ډیر په مدلل انداز کښې لیکلی دی. کوم چه فقهی مقالات، دویم جلد او فتاوی عثمانی اول جلد کښې موجود دی. دَدې طرف ته مراجعت به فائده مند وی. دَ مذکوره مسئلې باره کښې دَ انوارالباري څلورم جلد کښې هم ډیر تفصیلی بحث موجود دی کوم چه دَ کتلو قابل دی. په دې کښې په دغه باره کښې دَ اکابر علماء دیوبند چه کوم معمول نقل کړې شوې دې دَ عام فائدې په خاطر صرف هغه ذکر کولې شی:

په دې سلسله کښې دَ اکابرعلماء دیوبند نه دَ حضرت مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله چه به دغه ډله کښې دَ حدیث اوفقهې دواړو مسلم امام وو ارشاد دی: "دَ نوافلو جمع بغیردَ هغه موقعو نه کوم چه دَ حدیث نه ثابت دی که چرې تداعی سره وی نو په فقه کښې مکروه تحریمی دی اودَ تداعی نه مراد دَ څلورو مقتدیانو موجودیدل دی، لهذا صلوة کسوف، تراویح او استسقاء صحیح دی. باقی ټول مکروه دی. (کذافی کتب الفقه، فتاوی رشیدیه، ص: ۱۲۸/۱)".

بل ځائې کښې ئې فرمائیلی دی: "دَ نوافلو جمع که تهجد وی او که غیر تهجد، سوا دَ تراویح، کسوف او استسقاء نه که چرته څلور مقتدیان وی نو دَ احنافو په نیز مکروه تحریمی ده. برابره خبره ده که پخپله راجمع شوی وی او که دَ چا په راغوښتو سره راغلي وي اودَ دریو په صورت کښې اختلاف دې. البته په دوو کښې کراهت نشته. (کذافی کتاب الفقه، ص: ۶۶/۲)".

دَ حضرت شیخ الهند مولانا محمودالحسن صاحب رحمه الله په رمضان کښې دَ احیاء لیالي او دَ قرآن مجید اوریدو ډیر شوق وو په دې وجه ئې اول دا معمول وو چه بغیردَ تداعی به ئې په تهجد کښې قرآن مجید اوریدو، خاص میلمنو به شرکت کولو چه دَ دوه یا دَ څلورو نه به زیات نه وو. دَ مکان دَ بهر دروازه به ئې بندوله. حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب دیوبندی، صدر مفتی دارالعلوم دیوبند دام ظلهم لیکلی دی: چه زما په نیز په زیر بحث کښې فتوی هم دغه ده چه دَ تراویح نه علاوه په ........

...... رمضان كښې بل څه د نفل مونځ په جمع صحيح نه دي. جمهور محدثين او فقهاء هم په دې بانډې دی او هم په دې بانډې د اکابر علماء دیوبند عمل دې سیدي و سندي حضرت شيخ الهند قدس سره د چا معمول چه په پوره رمضان كښې د شپې د بيدارئى او په نفلونو كښې د قرآن د اوريدو وو. كله چه خلقو په دغه جمع كښې د شريكيدو خواهش ښكاره كړو نو ددې اجازت ئې ورنه كړو. د كور دروازه ئې بنده كړه. د حافظ كفايت الله صاحب په اقتداء كښې به ئې قرآن مجيد اوريدو او په كور كښې به جمع كيده په كومه كښې به چه ۴۰/۵۰ كسان شريكيدل. دا احقر بخپله هم د حضرت رحمه الله د مالتيا د قيد كيدو نه مخكښې دوه كاله هم په دغه جمع كښې شريك شوې نه دې. كوم چه د تراويح جمع وه. د نفل او تهجد جمع حضرت رحمه الله كله هم نه ده برداشت كړې. د حضرت مدنى اوچت شان او علمى مقام په خپل ځائې دې ليكن چه كله جمهور احنافو د محقق ابن همام رحمه الله تفردات د عمل قابل اونه ګڼړلو، او د حضرت شاه ولى الله رحمه الله او مولانا اسماعيل شهيد رحمه الله تفردات ئې معمول جوړ نه كړل نود روستو راتلونكو علماؤ معامله اهون ده.

والله سبحانه وتعالى اعلم. بنده محمد شفيع عفاالله عنه (دارالعلوم كراچى ۱/ ۴ شوال ۱۳۷۸هـ).

دغه پورتني چهاپ شوې عبارت "فتوى متعلقه جماعت تهجد و رمضان" نه نقل كړې شوې دې. كوم چه ادارة المعارف لسبيله چوك كراچئ نه چهاپ شوې دې. په دې كښې د مفتى محمد سهول صاحب سابق صدر مفتى دارالعلوم ديوبند فتوى هم د كراهت متعلق د تهجد په جمع درج ده. په كوم كښې چه تفصيلى دلائل پيش كړې شوى دى:

حكيم الامت حضرت علامه تهانوى رحمه الله چه په حديث او فقه كښې د يو سمندر په شان عالم وو امداد الفتاوىٰ جلد اول كښې د نوافلو جمع علاوه د تراويح نه مكروه ګرځولې ده. مګر دا چه صرف دوه مقتديان وى او په دريو كښې ئې اختلاف ليكلې دې. بلكه دا چه دويم ځائې كښې ئې د شبينه رمضان په سلسله كښې ليكلى دى كه چرې دا د تراويح نه پس په نوافلو كښې وى نو په وجه د ډيرې جمع مكروه ده.

مولانا خليل احمد صاحب سهارن پورى مهاجر مدنى قدس سره حافظ وو او په تهجد كښې به ئې د قرآن مجيد تلاوت كولو او دوه حافظانو مقتديانو به اوريدو. د مولانا اسد الله صاحب مدظله بيان دې چه يوه شپه زه هم مقتدى جوړ شوم نو حضرت د مونځ نه پس زما غوږ اونيولو او جدا ئې كړم.

د حضرت شاه صاحب رحمه الله د علم او تبحر به څه وايئ، په درس د بخارى شريف كښې "باب : طول السجود فى قيام الليل" بانډې ئې عجيبه تحقيق كړې دې چه دلته د ذكر قابل دې. وئې فرمائيل چه دلته په حديث كښې د حضورپاك د اوږدو سجدو اندازه خودلې شوې ده. لكه څومره وخت كښې چه څوك ۵۰ آياتونه اووائى په دې وجه چه حضورپاك خپل صحابه كرامؓ د خپل ځان سره د تهجد په مونځ كښې د اقتداء كولو نه منع كړى وو ځكه چه په دې كښې د فرض مونځونو په شان د ضعيفانو او مريضانو رعايت نه شو كولې. بيائى اوفرمائيل چه دې نه دا هم معلوم شو چه د تهجد مونځ ځان له بغير د جمع كولو خيز دې او هم ددې طرف ته په قرآن مجيد كښې اشاره موجود ده. الله تعالىٰ دې ته ﴿ نَافِلَةً لَّكَ ﴾ فرمائيلو سره د پنځو فرض مونځونو نه جدا كړلو كوم ئې چه: ﴿أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ﴾ سره بيان كړې وو. ددې پنځو مونځونو دپاره ئې د اقامت حكم اوفرمائيلو د كوم منشاء چه دا ده چه په اوچت آواز سره په جماتونو كښې په اذان او اقامت سره ادا كړې شي. بيا ئې د تهجد ذكر اوفرمائيلو نو ﴿ وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ﴾ كښې ئې دا په ﴿نَافِلَةً﴾ سره تعبير كړه ځكه چه په دې كښې د جمع شركت نشته دې. او په پنځو فرض مونځونو كښې نور ټول مقوى سره شريك دى لكه څنګه چه به په مال غنيمت كښې حصې ملاويدې او نفل (په خاص توګه عطيه كښې) د ټولو څه حق نه وو. دغه شان د تهجد مونځ د حضورپاك د پاره نافله دې لهذا نور خلق به حضورپاك سره په مونځ كښې داخل نه وى. نو دا د حضورپاك يو جدا حالت او د حضورپاك ځان له وظيفه ده. په حقيقت كښې هم په دې امورو بانډې نظر ساتلو سره زمونږ امام اعظم رحمه الله دا فيصله اوكړه چه د شپې په نوافلو كښې تداعى مكروه ده او زما په نيز د تداعى نه مراد هم هغه معنى ده كومه چه په عام عرف كښې ګڼړلې شى چه خلق ددې د پاره راوغوښتې شي. ........

**دَ تداعي نه مراد:** تداعي يو فقهي اصطلاح ده دَ كوم لغوي مطلب دا دي چه: بعضي كسان بعضي نورو ته دَ يو كار دعوت وركړي او دَ هغې دَ پاره ئې راوغواړي.[1] او په اصطلاح كښې دَدې اطلاق په هغه جمع باندې كيږي په كومه كښې چه دَ امام نه علاوه څلور كسان شريك وي يا دَ څلورو نه زيات. اوكه چرې دَ څلورو نه كم وي نو بيا تداعي نه ده.[2]
واضحه دې وي چه دا خبره دَ فقهې په كتابونو كښې ذكرخو ده ليكن په كتاب او سنت كښې دَدې په تحديد باندې څه اصل نه ملاويږي. لهذا دَعرف په اعتبار سره صحيح خبره دا معلوميږي چه كله دَ يو نفل مونځ دَ جمعې دَ پاره نورو ته دعوت وركړې شي نو هغې ته به تداعي وئيلې شي اودَدې په خلاف كه دَ جمعې دَ پاره دعوت ورنه كړې شي نو بيا به دا تداعي نه وي. حضرت علامه كشميري رحمه الله فيض الباري كښې هم دې طرف ته خپل ميلان ښكاره كړې دې.[3]
**دَمالكيؤ مذهب:** دَ مالكيؤ په نيز نفل په جمع سره ادا كولو كښې مختلف صورتونه ممكن دي. مثلاً كه دَ نوافلو جمع په جمات كښې اوكړې شي، يا په جمع كښې ډير كسان شريك وي، يا جمع په داسې مكان كښې قائم كړې شي چه هلته دَ خلقو تګ راتګ عام وي نو په دې دريوارو صورتونو كښې به دَ نوافل جمع مكروه وي. اوكه چرته په دغه جمع كښې كسان كم وي اوداسې ځائې كښې اداكړې شي چه هلته دَ خلقو تګ راتګ بغيرد منع كولو نه ممكن نه وي نو بياداسې ځائې كښې دَ نوافلو جمع كولو كښې هيڅ حرج نشته. كه غور اوكړې شي نو دَ احنافو او مالكيؤ په مذهب كښې څه خاص فرق نشته دې.[4]
**دَ حنابلؤ مذهب:** دَ حنابله په نيز دَ نوافلو جمع مباح ده.[5]

........ او دا كومو مفتيانو صاحبانو چه دوه يا درې مقتديان ليكلي دي هغه ئې په غرض دَ تحديد عمل ليكلي دي دَدې دَ پاره نه چه دغه دَ صاحب مذهب نه نقل دي.
دغه شان حضرت شاه صاحب رحمه الله دَ "باب صلاة النفل" په درس كښې اوفرمائيل چه دَ احنافو په نيز دَ نفلو جمع مكروه ده بغيردَ رمضان نه. بعضې خلقو دا اوګڼړل چه په رمضان كښې دَ هر نفل جمع جائز ده حالانكه دَ فقهاؤ مراد دَدې نه صرف دَ تراويح نوافل وو. نور هيڅ نه وو. بيائې اوفرمائيل په دې ځان په ښه شان سره پوهه كړئې خكه چه علم ډير تحقيق، پوخ نظر، كوشش او تجربې نه پس حاصليږي. (تفصيل دَپاره اوګورئې: انوارالباري: ۲۴۶/۴-۲۳۸)

[1] المغرب، المادة: د ع و: ۲۸۹/۲.
[2] البحرالرائق، كتاب الصلاة، باب: الإمامة: ۶۰۴، ۶۰۶/۱دارالكتب العلمية، وكذا في الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة، الباب الخامس في الإمامة، الفصل الأول في الجماعة: ۸۳/۱.
[3] "ثم التداعي على عرف اللغة، ولا تحديد في أصل المذهب وإن عينه المشائخ".(فيض الباري، كتاب الصلاة، باب: إذا دخل بيتا يصلي حيث شاء، أو حيث أمر، ولا يتجسس: ۶۳/۲).
[4] حاشية الدسوقي على الشرح الكبير، كتاب الصلاة، فصل: في بيان حكم صلاة الجماعة: ۳۲۰/۱. شرح منح الجليل على مختصر العلامة خليل، كتاب الصلاة، فصل في بيان حكم فعل الصلاة في جماعة: ۲۱۱/۱. مواهب الجليل، كتاب الصلاة، فصل في صلاة الجماعة: ۳۹۵/۲.
[5] ولا بأس بالجماعة فيه، قال في الفروع: ويجوز جماعة، وأطلقه بعضهم. قلت: منهم الشيخ في المغني، الكافي، والشارح، و شرح ابن رزين والرعايتين، والحاوي الصغير. وقيل: ما لم يتخذ عادة وسنة، قطع به ........

**د شافعيوٌ مذهب:** د شوافعو په نيزد نوافل جمع که هرڅومره لويه وي جائز ده. د هيڅ قسم څه كراهت نشته. ليكن جمع مستحب هم نه ده. مذكوره حديث شريف شوافع د خپل دليل په توګه باندې پيش كوي. خود احنافو په نيز په دې حديث شريف كښې بغيرد تداعى د جمع د مونځ صورت جوړشوې دې لهذا هم ددې مطابق به د دغه جمع حكم وى د كوم تفصيل چه پورته ذكركړې شوې دې.[١]

**د سلف صالحينو په اثار سره د تبرک حکم:** ددې حديث شريف نه يو مسئله د انبياء كرامو عليهم الصلوات والتسليمات په آثارو سره د بركت حاصلولو هم مخې ته راځي چه حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه حضورپاك ته درخواست اوكړو چه تاسو زما كور ته تشريف راوړو سره دوه ركعته مونځ اوكړئى دې د پاره چه زه بيا هم هغه ځائى كښې مونځ اداكوم او په هغې سره زه بركت حاصل كړم. د جمهور اهل سنت والجماعة عقيده هم دغه ده چه په دغه آثارو سره بركت حاصلول جائز دى. په دې باره كښې ډير بهترين تفصيل د علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله په تقرير بخاري شريف كښې موجود دې. هغوى د سعودى بادشاه په وړاندې ډيرى مدلل خبرې كړې وې دكوم په اوريدو سره چه هغه هم لاجواب شوې وو.[٢]

..........لمجد في شرحه، ومجمع البحرين. وقيل: يستحب. اختاره الآمدي. وقيل: يكره. (الإنصاف في معرفة الراجح من الخلاف على مذهب الإمام أحمد بن حنبل، كتاب الصلاة، باب: صلاة التطوع: ١٨٦/٢). الكافي لموفق الدين، كتاب الصلاة، باب: صلاة التطوع: ٣٥٤/١، المغني، كتاب الصلاة، صلاة التطوع، رقم المسألة: ٢٣٩، ٥٦٧/٢.

[١] الثامن: قد سبق أن النوافل لا تشرع الجماعة فيها إلا في العيدين والكسوفين والاستسقاء، وكذا باقي النوافل كالسنن الراتبة مع الفرائض والضحى والنوافل المطلقة فلا تشرع فيها الجماعة. أي: لا تستحب. لكن لو صلاها جماعة جاز، ولا يقال: أنه مكروه، وقد نص الشافعي رحمه الله في مختصري البوطي والربيع على أنه لا بأس بالجماعة في النافلة، ودليل جوازها جماعة أحاديث كثيرة...... إلخ. (المجموع شرح المهذب، كتاب الصلاة، باب: صلاة التطوع: ٥٤٨/٣). الوسيط في المهذب، كتاب الصلاة، الباب السابع في صلاة التطوع: ٢١٥/٢، حاشية قليوبي وعميرة على منهاج الطالبين، كتاب الصلاة، باب: صلاة النفل: ٢١٠/١.

[٢] د مذكوره موضوع د اهميت په رڼا كښې د علامه عثماني رحمه الله د تقرير بخارى "فضل الباري" نه هغه مكمل بحث لفظ په لفظ نقل كولې شي:

**د صالحينو په اثارو د تبرک مسئله:** دا كوم چه حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه حضورپاك ته عرض اوكړو چه "وددت يا رسول الله، انك تأتيني، فتصلي في بيتي، فأتخذه مصلى" داهم تبرك بالآثار وو حضورپاك په دې باندې انكار اونه كړو بلكه وعده ئى اوكړه چه "سأفعل إن شاء الله" اوبيا هغه پوره هم كړه. نودا حديث شريف يو ډير لوئى اصل دې د تبرك بآثار الصالحين د ثبوت د پاره، لكه څنګه چه امام نووى رحمه الله غوندې لوئى لوئى محققينو حضراتو تصريح كړې ده. بلكه ددې نه زيات ددې (حديث) نه طلب التبريك منهم (يعنى د بزرګانو نه د هغوى د يو څيزنه د بركت حاصلولو درخواست كول) هم ثابتيږي. څكه چه حضرت عتبان رضي الله عنه طلب اوكړو اوحضورپاك صلى الله عليه وسلم انكار اونه كړو بلكه د هغه درخواست قبلولو سره ئى هغه ته عزت وركړو.

**د حجاز د بادشاه، شاه ابن سعود په خصوصى جلسه كښې په مذكوره مسئله باندې اوږدې خبرې اترې:** زه (حضرت عثماني رحمه الله) په كال ١٣٤٤ هـ كښې د جمعيت علماء هند د طرف نه د ملك الحجاز ابن سعود په دعوت باندې مؤتمر العالم الاسلامى كښې شريك شوې ووم. هلته د ټولې دنيا مشاهير بللې.......

......... شوی وو. نو یوه ورځ یوه خاص جلسه اوشوه په کومه کښې چه بادشاه هم شریك وو. هغه وخت په یو څو مسئلو باندې ما خبرې اترې اوکړې په کومو کښې چه یوه مسئله د کتاب په شروع کښې د هرقل د حدیث لاندې په عنوان د "شرك جلي او شرك خفی" اود سجود تعظیم متعلق تیر شوی دی. هم د دغه مسئلو نه یوه مسئله دا "تبرك بآثار الصالحین" هم وه. په دغه خاص جلسه کښې مسلسل پوره ګهنټه تقریر ما اوکړو په کوم سره چه بادشاه ډیر متأثر شو او وئې فرمائیل زه عالم نه یم په دې وجه زه ستا خبره نه رد کولې شم او نه ئې قبلولې شم. تاسو زمونږ علماؤ سره په دې خبرې اترې اوکړئ. بیا چه د بحث نه پس څه فیصله وی دځپل ستې طرف ته ئې اشاره کولوسره اووئیل چه د عبدالعزیز دا ستې د هغې فیصلې لاندې دې. ما وئیل ډیره ښه ده. چنانچه بیایوه ورځ شیخ الاسلام عبدالله بن بلیهد نجدی سره په خصوصی توګه خبرې اترې اوشوې.

دغه خلقو خود حضورپاك ډیر آثار قدیمه لکه د حضرت خدیجه رضی الله عنها کور اود حضورپاك د پیدائش ځائی وغیره بالکل ختم کړی وو اود کومو د ختمولو نه چه عاجز پاتې وو لکه غار ثور، غارحرا وغیره هلته ئې د خلقو تګ راتګ بند کړو او څوکئ ئې پرې کینولې ځکه چه هغه خلق داسې تبرك بالآثار بدعت او ناجائز ګڼړی.

**د تبرک بالآثار په ثبوت باندې د ټولو نه قوی او صریح دلیل:** دې مسئلې متعلق چه کوم دلائل هلته ما پیش کړی وو او په هغې کښې د ټولو نه زیات قوی او صریح هم دغه د عتبان بن مالك رضی الله عنه حدیث وو. خیال کوئی چه د عتبان بن مالك رضی الله عنه مصلی په کوم باندې چه حضورپاك په ټول عمر کښې یو ځل دوه رکعته مونځ کړې وو په دې وجه که چرې دغه مصلی متبرك کیدې شی نو د خدیجه رضی الله عنها کورچرته چه حضورپاك په کلونو شپې ورځې د الله تعالی عبادت کړې وو اوغارحرا په کوم کښې چه حضورپاك علیه السلام په میاشتو خاص کیفیت سره د عبادت د پاره قیام فرمائیلې وو اوچرته چه شپه ورځې حضورپاك علیه السلام په عبادت کښې مشغول پاتې شوې وونو آیا دا ټول مقامات زمونږ د پاره د برکت ځایونه نه شی کیدې؟

**دویم دلیل:** دویم دلیل کوم چه ما پیش کړی وو هغه د صحیح بخاری: "باب المساجد بین المکة والمدینة" کښې د ابن عمر رضی الله عنهما یو اورد حدیث دې په کوم کښې چه دا ذکرکړې شوی دی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د مکې اومدینې په مینځ لاره کښې چه د حضورپاك کوم مآثر او موضع صلوة دی (په کوم کښې چه حضورپاك علیه السلام مونځ کړې وو) هغه به ئې ښه په اهتمام او کوشش سره لټولو او هم هلته به ئې مونځ کولو. دې نه علاوه چه په کوم ځائی کښې کوم یو کار هم حضورپاك کړې وو حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به هم هغه کار هلته کولو. دا مقامات چرته چه حضورپاك اتفاقی توګه باندې یو ځل دوه مونځ کړې وو یا یو ځل نیم ئې تشریف اوړې وو نو په دې وجه دغه مقامات د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د پاره متبرك کیدې شی نونن د امت د پاره د خدیجه رضی الله عنها کور اوغارثور وغیره مقامات څنګه متبرك کیدې نه شی؟

**دریم دلیل:** بیا په آخره کښې ما اووئیل چه پریږدئ داخبرې د لیلة الاسراء یو اورد تفصیلی حدیث دې په هغې کښې دا اجزاء هم ذکر دی چه : "مربأرض ذالت نخل، فقال له جبریل: انزل فصل، فنزل نصلی، فقال: صلیت بیثرب" (یعنی د حضورپاك علیه السلام تیریدل په یوداسې تکړه د زمکې باندې اوشو چرته چه ډیرې زیاتې د کهجورو ونې وې جبرائیل علیه السلام اوفرمائیل دلته راکوز شه او مونځ اوکړه، حضورپاك علیه السلام مونځ ئې اوکړو نوجبرائیل علیه السلام اوفرمائیل چه تاسو د یثرب یعنی د مدینې په زمکه باندې مونځ ادا کړو) بیا وراندې تلو نه پس جبرائیل علیه السلام اوفرمائیل "انزل فصل، فنزل فصلی، فقال: صلیت بطور سیناء حیث کلم الله موسی" (دلته هم راکوز شه اومونځ اوکړه، حضورپاك علیه السلام راکوز شو مونځ ئې اوکړو نو جبرائیل علیه السلام اوفرمائیل چه تاسو په طور سیناء کښې مونځ اوکړو چرته چه موسی علیه السلام ته الله د خبرو کولو په توګه عزت ورکړې وو). ........

.......... جبل طور په کوم چه الله تعالى حضرت موسى عليه السلام سره خبرې كړې وې كه هغه جبل طور دَ نبي آخر الزمان ﷺ دَ پاره متبرك كيدې شي، ترڅو چه په هغه خاص سفركښې چه كله نبي عليه السلام ته دعوت وركړې شوې وو اوملا اعلى اوخاص دَ الله تعالى دربار ته ئې تشريف اوړلو په لاره كښې حضورپاك عليه السلام كوزول او هلته پرې مونځ اوكړې شو نو ولې هغه غارحرا په كوم كښې چه الله تعالى په سيدالانبياء عليه الصلاة والسلام باندې دَ تولونه غوره كتاب (قرآن كريم)، اوخپل قديم كلام نازلول شروع كړل نن هغه زمونږ ګناهګارانو اُمتيانو دَ پاره متبرك كيدې نه شي چه مونږ يو وخت لاړ شو او هلته دوه ركعته مونځ خاص دَ الله تعالى دَ پاره اوكړو؟

بيا وراندې تلوسره حضرت جبرائيل عليه السلام اووئيل "انزل، فنزل فصلى، قال: صليت ببيت اللحم حيث ولد عيسى" دلته كوز شه حضورپاك راكوز شو او مونځ ئې اوكړو نو حضرت جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل تاسو په بيت لحم كښې مونځ اوكړه دې چرته چه دَ حضرت عيسى عليه السلام پيدائش شوې وو. دا بيت لحم چه دَ حضرت عيسى عليه السلام دَ پيدا كيدو ځائې دې كه چرته دا دَ حضورپاك غوندې هستئ دَ پاره متبرك كيدې شي نوڅه وجه ده چه دَ حضورپاك دَ پيدائش هغه مبارك مقام نن مونږ امتيانو دَ پاره متبرك كيدې نه شي؟

بيا وراندې تلو سره حضرت جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل: "انزل فصل، فنزل فصلى، قال: صليت بمدين، مسكن شعيب عليه السلام كه دَ شعيب عليه السلام مسكن اودَ موسى عليه السلام مورد (چرته چه ئې الله تعالى سره خبرې شوې وې) دَ سيد المرسلين په حق كښې دومره اندازه باندې متبرك ګرځيدې شي نو پخپله دَ سيدالمرسلين مسكن اومكان دَ هغوى دَ امتيانودَ پاره ولې نه شي متبرك كيدې؟ زما مراد دَ دغه مسكن نه دَ حضرت خديجه رضي الله عنها كور دې په كوم كښې چه حضورپاك په كلونو باندې اوسيدلو اودَ الله تعالى دَ وحى سلسله شپه، ورځ جارى وه. مناسك كښې ملاعلى قارى رحمه الله دَ طبرانى رحمه الله نه نقل كړې دى چه هغه په دې باندې دَ اجماع دعوىٰ كوى چه په مكه كښې دَ حرم شريف نه پس هيڅ يو مكان دَ حضرت خديجه رضي الله عنها دَ كور نه غوره نه دې.

دَ مذكوره حديث حواله اودَدې درجه: كله چه ما دلا نل بيانول نو شيخ الاسلام (عبدالله بن بليهد) په يوه خبره باندې هم هيڅ اونه وئيل، صرف په دې اخيرى دليل حديث اسراء باندې هغه تپوس اوكړو چه دا روايت چرته دې؟ نو ما په حيرانتيا سره اووئيل چه تاسو خو فرمائيل چه الحمدلله ماته دَ حديث په كتابونو وغيره كافى علم حاصل دې. په دې وجه ما حواله وركول ضرورى اونه ګڼړل. داحديث دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح البارى كښې موجود دې. او حافظ رحمه الله دَدې نقل كولو نه پس خاموشى اختيار كړې ده. هيڅ كلام ئې نه دې كړې دا دليل دې دَدې خبرې چه دا حديث دَ حسن نه كم نه دې ځكه چه حافظ رحمه الله په مقدمه دَ فتح البارى كښې تصريح كړې ده. چه په كوم روايت باندې زه خاموشى اختياركړم نو په هغې هيڅ كلام مه كوئى هغه به زما په نيز دَ حسن د درجې نه كم نه وى.

**تبرك باثارالصالحين باندې دَ مخالفينو شبهات اودَ هغې جواب:** دَدې دلا ئلو په مقابله كښې شيخ الاسلام هيڅ دليل رانوړلې شو صرف دَ سير چه كوم يو روايت دې چه حضرت عمر رضي الله عنه شجرة الرضوان پرې كړې وه. رواها ابن سعد فى الطبقات من طريق نافع عن عمر، دائې وړاندې كړو. مګر اول خو په دې كښې يوه ډيره لويه خبره داده چه هغه ونه كومه چه حضرت عمر رضي الله عنه پرې كړې وه او كومه چه خلقو شجرة رضوان متعين كړې وه اودَ هغې نه ئې تبرك حاصلولو دَ هغې په واقع كښې شجرة متبركه كيدل دَ كوم لاندې چه دَصحابه كرامو رضي الله عنهم نه بيعت رضوان اخستې شوې ووهم دغه څيز متيقن توګه باندې ثابت نه دې. چنانچه په صحيح بخارى كښې يو صريح روايت دې دَ حضرت مسيب رضي الله عنه چه پخپله په دغه بيعت رضوان كښې شريك وو هغه وائې چه دَ بيعت رضوان نه يو كال پس مونږ هلته لاړو نو هغه ونه مونږ ته ياده نه وه چه كومه يوه وه يعنى په تعيين سره مونږ ته پته اونه لګيده. نوخامخا يو غير متعين موهوم څيز متبرك او معظم ګرځول، دا خوك هم جائز نه ګڼرى. مونږ چه دَ تبرك بالآثار قائل يو نوځكه ..........

او زمونږ په دې تقرير كښې هم په دې موضوع باندې مخكښې هم خبره شوې ده. [1]

**دَ حديث دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عيني رحمه الله ذكر كړې دی چه دَ ترجمة الباب دوه اجزاء دي يو "يصلي حيث شاء" او دويم "حيث أمر" دَ دواړو اجزاؤ سره به دَ حديث شريف مطابقت هله جوړيږي چه كله معطوف عليه "يصلي حيث شاء" كښې دَ "يصلي" نه مخكښې همزهٔ استفهام محذوف زاااو ويستلې شي گنی مطابقت به صرف دَ دويم جز سره وي. [2]

**دَ حديث شريف نه مستفاد امور اواحكام:** داحديث شريف دلته مختصر دې تفصيلي روايت به وړاندې باب كښې راځي. نودَ حديث شريف سره متعلق اهم امور او احكام به هم په وړاندې باب كښې ذكركولې شي دې دَ پاره چه تكرار لا زم رانه شي.

---

......... قائل يو چه كله دَ يو څيز متبرك كيدل يعنی دَ يو نيك مثلاً دَ حضورپاك سره دَ څه قسم نسبت لرل په متعين اوِ متيقن توگه باندې ثابت شي. اوكه چرته چا هسې بغيردَ دليل او بغيردَ سند وغيره نه دعوی اوكړه چه دَ حضورپاك قميص مبارك دې يا نعل شريف دی نو مونږ هغه متبرك نه گڼړو لكه څنگه چه دا نن صبا اهل هوا يوه پيشه گرځولې ده، هيڅ كله نه.

(بهرحال) مونږ داسې وهابيان هم نه يو چه دَ يو څيز متبرك كيدل ثابتيدو نه پس هم دَ هغې تعظيم اونه كړو او نه ئې په خپل سر او سترگو باندې كيږدو او داسې بدعتيان هم نه يو چه موهوم، بې ثبوت، بې دليل او بې سند څيزونه متبرك او معظم اوگڼړو. نو ممكن ده چه دغه شجره (اونه) حضرت عمر رضي الله عنه هم په دې وجه پرې كړې وی چه كله تيقن سره متعين نه ده چه داهم هغه شجرة رضوان ده نو بيا ددې دومره تعظيم او تبرك بې اصل دې. باقي پاتې شو دَ حضرت خديجه رضي الله عنها كور، غار حرا او غارثور وغيره مآثر قديمه، دا ټول خو تواتر په شان قرآن دَ تواتر طبقه نه ثابت دی چه مفيد للقطع واليقين دې په اتفاق سره، لكه چه دَ كتاب الايمان په شروع كښې دَ تواتر دَ اقسامو تحقيق كړې شوې. والله اعلم

**دويم جواب** دويم دا چه داروايت دَ سير دې بيا منقطع دې. (ځكه چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه دا واقعه بيانونكې حضرت نافع رحمه الله دې) اودَ حضرت نافع رحمه الله دَ حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاقات نه دې شوې.

**دريم جواب:** بيا دا څه مرفوع څيز نه دې بلكه صرف دَ حضرت عمر رضي الله عنه رائې وه. دا څيز دَ هغه دلائلو په مقابله كښې هيڅ وزن نه لري كوم چه (پورته) ذكركړې شو. په كوم كښې چه بعضې دَ صحيحينو متفق عليه، بعضې دَ بخاری او بعضې دَ نورو كتابونودَ حديث قابل احتجاج روايات دی.

**څلورم جواب:** بيا په دې كښې يو څيز بل دې چه حضرت عمر رضي الله عنه كوم څه كړې وو هغه ئې دَ وخت دَ يو مصلحت دَ وجې نه كړې وو او هغه مصلحت هم دغه "سد ذرائع وحسم مادته" (يعنی دا انديښنه وه چه چرته دَ دغه ونې نه تبرك حاصلولوكښې غلو اونه شي او تبرك دَ شرك حد ته اونه رسي. هم دَ دغه انديښنې دَ وجې نه ئې هغه ونه پرې كړه. چه راتلونكې وخت كښې كله دَ شرك سبب جوړيدې شو) هغه څه دَ شرعي مسئلې په وجه باندې نه وو (يعنی دَ هغې وجه دا نه وه چه تبرك په خپل اصل اعتبار سره شرعاً منع دې). كه چرې تاسو هم دَ مصلحت متعلق څه وئيل غواړئ نوغور اوكړئ. دا تاسو چه دغه مآثر سره كوم سلوك كړې په دې كښې مصلحت شوې دې كه دَ مصلحت خلاف شوی دې؟ ستاسو په دې كار كولو سره ډهر طرف په مسلمانانو كښې يو كشمكش پيدا شو چه اوگورئ دَ ابن سعود حكومت څه اوكړل په كوم سره چه دَ حج غوندې شعائر اسلام له راتلونكی خلق شك شبه كوی. نودا څنگه مصلحت شو؟

**دَ شيخ عبدالله بن بليهد اخر اعتراف:** په دې باندې شيخ الاسلام هيڅ اونه وئيلې شو. په آخره كښې ئې منلو سره صرف دومره اووئيل چه څه اوكړم زمونږ قوم نه منی. (فضل الباري: ۱۲۶/۳-۱۲۹)

[1] كشف الباري، كتاب الصلاة، باب: الصلاة فی الثوب الأحمر. ص: ۵۵۸-۵۵۱.

[2] عمدة القاري: ۲۴۴/۴.

# ۱۴- بَابٌ: المَسَاجِدِ فِي البُيُوتِ

دا باب په کورونو کښې د جماتونو جوړولو په جواز کښې دې

**د ترجمة الباب وضاحت**

**په کورونو کښې د جماتونو جوړولو مطلب:** په کورونو کښې دننه جماتونه داسې جوړولې شي چه د کور يوه کوټه يا يو ګوټ د خپل عبادت د پاره مخصوص کړې شي. هلته پوزګې يا د لرګي تخت وغيره خور کړې شي. او د کور خلق هم دغه ځائې کښې نوافل وغيره اداکوي. دا جمات به اصطلاحي جمات نه وي او نه به وقف وي. دلته د مونځونو د پاره اذان کول هم ضروري نه دي. چنانچه دا ځائې به د کور د مالك په وراثت کښې هم جاري وي. خو په دغه ځائې کښې به هغه ثواب نه ملاويږي کوم چه په اصطلاحي جمات کښې ملاويږي. دغه شان جماتونه په کورونو کښې جوړول مسنون او مستحب دي.

په سنن ابوداؤد کښې يو روايت دې: (۱) په کوم کښې چه په صراحت سره دا خبره ذکر ده چه رسول الله ﷺ مونږ ته حکم راکړو چه مونږ په خپلو کورونو کښې جماتونه جوړ کړو، يعنې د عبادت د پاره ځائې خاص کړو. شارحينو د دې دوه مطلبونه بيان کړي دي (۲). چه په خپلو کورونو کښې جماتونه جوړ کړئ او دويم دا چه په خپله محله کښې جماتونه جوړ کړئ. خو د ابوداؤد شريف دا حديث چونکه د امام بخاري رحمه الله د شرائطو مطابق نه وو په دې وجه ئې دا د ترجمة الباب لاندې رانه وړو. البته د خپلې مدعي د اثبات د پاره هغوي د حضرت عتبان رضي الله عنه دا حديث ذکر کړې دې.

**په کورونو کښې د جمع کولو حکم:** د څه عذر د وجې په کور کښې په جمع سره مونځ ادا کول صحيح دي. مثلاً کله په څه وجه باندې د جمات په جمع کښې حاضر نه شي نو کور کښې محرم ښځې وغيره يو ځائې کولو سره په جمع سره مونځ ادا کول صحيح دي. ليکن بغير د عذر نه د دې عادت جوړول ښه نه دي. بلکه د داسې سړي باره کښې سخت وعيد هم دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې زما زړه غواړي چه يو خو ځوانانو ته حکم ورکړم چه هغوي ډير زيات خشاك راجمع کړي، بيا زه هغه خلقو له لاړ شم چه بغير د عذر نه په کورونو کښې مونځونه کوي او د هغوي کورونه او سوزوم. (۳)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله په خپله رساله فضائل نماز کښې پوره يو فصل په دې

---

(۱) عن عائشة قالت: أمر رسول الله صلى الله عليه وسلم ببناء المساجد في الدور، وأن تنظف وتطيب. (سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، باب: اتخاذ المساجد في الدور، رقم الحديث: ٤٥٥). وأيضًا: حدثني خبيب بن سليمان عن أبيه سليمان بن سمرة، عن أبيه سمرة قال: إنه كتب إلي بنيه: أما بعدا فإن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يأمرنا بالمساجد أن نصنعها في دورنا، ونصلح صنعتها و نطهرها.(أيضًا، رقم الحديث: ٤٥٦).

(۲) بذل المجهود، كتاب الصلاة، باب: اتخاذ المساجد في الدور، رقم الحديث: ٤٥٥، ٢٩٢/٣

(۳) عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لقد هممت أن أمر فتيتي، فيجمعو الى حزما من حطب، ثم آتي قوماً يصلون في بيوتهم، ليست بهم علة، فأحرقها عليهم (صحيح مسلم، كتاب المساجد، باب: ماروى في التخلف عن الجماعة، رقم الحديث: ١٤٨١).

باره كښې قائم كړې دې په كوم كښې چه ئې هغه احاديث راجمع كړي دي كومو كښې چه د جمع په پرېښودو باندې راغلې وعيدونو ذكر دې. هغه فصل خاص توګه باندې او پوره رساله بالعموم دَ كتلو لا ئق ده. فقهاؤ ليكلي دي چه په كور كښې جمع كولو سره به دَ جمع ثواب ملاؤ خو شى ليكن په جمات كښې دَ ادا كړې شوي دَ جمع ثواب به نه ملاويږي. دَ مونځ په موضوع باندې ليكلې شوي دَ ټولو نه تفصيلي كتاب منية المصلى كښې دَدې تفصيل كتلي شي.[1]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه عينى رحمه الله فرمايى چه دا باب او سابقه باب په حقيقت كښې هم يو دى. په دې وجه امام بخارى رحمه الله دواړو ابوابو كښې هم يو حديث دَ حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه راوړې دې. او هم دغه حديث امام صاحب په بخارى شريف كښې په څو مقاماتو كښې ذكر كړې دې، چرته مختصر او چرته مفصل او دَدې ټولو نه مقصود مختلف تراجم قائمول دى.[2]

امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب مطلق ساتلې دې حالانكه زمونږ دَ خيال مطابق په دې كښې دَمعذورانو دَپاره قيد لګول پكار وو. نو هر كله چه داسې نه ده نو مطلب به دا شى چه دَ امام بخارى رحمه الله په نيز دَ معذور او غير معذور دواړو په كور كښې جمات جوړول او هلته مونځ كول صحيح دى. يعنى چه دَ عذر قيد وې نو مطلب به دا مخې ته راتلو چه هغوى معذورانو ته په كور كښې دَ مونځ كولو اجازت وركول غواړي. خو چه كله هغوى دَ قيد نه بغيردا اوفرمائيل چه په كور كښې دَ جمات جوړولو بيان، نو مطلب دا شو چه بغير دَ عذر او بغير دَ قيد نه كور كښې دَ جمات دَ جوړولو او دَ مونځ كولو بيان. په دليل كښې هغوى دَ حضرت براء بن عازب رضي الله عنه تعليق هم بيان كړې دې. دليل داسې چه هغه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم يو جليل القدر صحابى دې. هغه ته څه عذر هم نه وو دَدې باوجود هغه دَ جمات جمع پرېښودو سره په كور كښې مونځ اوكړو نو كه په دې كښې څه نقصان يا ممانعت وې نو هغه به داسې ولې كول؟

كه چرې دا ټول صحيح فرض كړې شى نو دَدې جواب به دا وركولې شى چه دَدې خبرې قوى احتمال موجود دې چه هغوى به داسې هغه وخت كړي وى كوم وخت چه دَ هغوى نه په جمات كښې جمع فوت شوې وى او هغوى به په كور كښې دَ كور خلق راجمع كولو سره په جمع مونځ اداكړې وى چه دَ جمع دَ مونځ ثواب حاصل شى. چنانچه دَدې نه استدلال كولو سره په كور كښې بغيردَ عذر نه هم جمات جوړولو سره مستقل توګه باندې په كور كښې دَ مونځ كولو جواز نه شى راوتلې. اودَ حديث باب نه استدلال هم ممكن نه دې ځكه چه په دې كښې دَ حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه رخصت دَ هغه دَعذر دَ وجې نه وو لكه چه حديث باب كښې

---

[1] وإن أقيمت فى المسجد بجماعة وتخلف عنها رجل من أفراد الناس وصلى فى بيته فقد ترك الفضيلة. وإن صلى فى بيته بالجماعة لم ينالوا فضيلة الجماعة فى المسجد وهكذا فى المكتوبة. (منية المصلى، كتاب الصلاة، صلاة التراويح، ص: ١٤٥، مكتبة طيبة، كوئته).

[2] عمدة القارى: ٢٤٥/٤.

تفصيل راځي.

**تعليق:** وَصَلَّى الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ: «فِي مَسْجِدِهِ فِي دَارِهِ جَمَاعَةً»:

**دَ تعليق تخريج:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله فرمائي چه ابن ابی شيبه رحمه الله په خپل مصنف کښې دَدې اثر هم معنې يوه قصه ذکر کړې ده.[1]

**دَ تعليق رجال:** دَ تعليق راوي حضرت براء عازب رضي الله عنه دې. دَ دوی ذکر کشف الباری کښې تيرشوې دې.[2]

**دَ تعليق ترجمه او تشريح:** حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دَ خپل کور په جمات (دَ مانځه دَ پاره مقرر کړې شوی ځائي) کښې په جمع سره مونځ ادا کړو.

"جماعةً" دلته دا لفظ په نصب سره دې خود کشميهني روايت کښې دې نه مخکښې "في" حرف جر دې. يعني "في جماعة".[3]

**دَ تعليق مقصد:** دَ تعليق مقصد واضح دې چه ترجمة الباب ثابتول مقصود دی.

**دَ تعليق دَ ترجمة الباب سره مناسب:** ترجمة الباب هم دغه دې چه په کورکښې دې جماتونه جوړ کړې شي. يعني په کورونو کښې دې دَ عباداتو او مونځونو وغيره دَ پاره ځايونه متعين کړې شي. او په مذکوره تعليق کښې هم دا امر ذکر دی چه حضرت براء بن عازب رضي الله عنه په خپل کورکښې دَمونځ دَ پاره مقرر کړې شوی ځائی کښې مونځ اداکړو.

حديث باب [حديث نمبر ٤١٥]

٤٢٥- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيُّ أَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ ([4])- وَهُوَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنَ الْأَنْصَارِ- أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَدْ أَنْكَرْتُ بَصَرِي، وَأَنَا أُصَلِّي لِقَوْمِي، فَإِذَا كَانَتِ الْأَمْطَارُ سَالَ الْوَادِي الَّذِي بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ، لَمْ أَسْتَطِعْ أَنْ آتِيَ مَسْجِدَهُمْ فَأُصَلِّيَ بِهِمْ، وَوَدِدْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَّكَ تَأْتِينِي فَتُصَلِّيَ

---

[1] فتح الباري: ٦٧٢/١، عمدة القاري: ٢٤٦/٤. راقم وائی چه سره دَ کوشش المصنف لابن ابی شيبة کښې دَ حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دغه مذکوره يا دَدې دَمعنې والا څه اثر ملاؤ نه شو. تردې چه هم دَ حافظ صاحب رحمه الله تصنيف تغليق التعليق اوکتلو نو هلته هم دَدې تعليق دَ تخريج په مقام باندې بياض وو. يعنی نه حافظ رحمه الله بخپله دَدې تخريج کړې دې او نه محشي حضراتو دَدې تخريج کړې دې. وګورئ: تغليق التعليق: ٨٢/٢. البته په المصنف کښې دَ حضرت ابوالمجلز معمول ذکردې چه هغوی به په خپل کورکښې جمات جوړکړې وو او په کوم کښې چه به اکثر وختونو کښې خپل دکور خلق او غلامان راجمع کول او په جمع سره به ئې مونځ اداکولو. وګورئ: حدثنا زيد بن حباب، عن مطهر بن جويرية قال: "رأيت أبامجلز، وله مسجد في داره، فربما جمع أهله وغلمانه". (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب: في الرجل يؤم النساء، رقم الحديث: ٦٢١٠).

[2] كشف الباري، كتاب الإيمان، باب: الصلاة من الإيمان: ٣٧٥/٢.

[3] فتح الباري: ٦٧٢/١، عمدة القاري: ٣٤٦/٣.

[4] مر تخريجه تحت الحديث السابق الرقم: ٤١٤.

فِي بَيْتِي، فَأَتَّخِذَهُ مُصَلًّى. قَالَ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «سَأَفْعَلُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ. «قَالَ عِتْبَانُ فَغَدَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَأَبُو بَكْرٍ حِينَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ، فَاسْتَأْذَنَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَذِنْتُ لَهُ، فَلَمْ يَجْلِسْ حَتَّى دَخَلَ الْبَيْتَ ثُمَّ قَالَ «أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ». قَالَ فَأَشَرْتُ لَهُ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ الْبَيْتِ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَكَبَّرَ، فَقُمْنَا فَصَفَّنَا، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ، قَالَ وَحَبَسْنَاهُ عَلَى خَزِيرَةٍ صَنَعْنَاهَا لَهُ. قَالَ فَثَابَ فِي الْبَيْتِ رِجَالٌ مِنْ أَهْلِ الدَّارِ ذَوُو عَدَدٍ فَاجْتَمَعُوا، فَقَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ أَيْنَ مَالِكُ بْنُ الدُّخَيْشِنِ أَوِ ابْنُ الدُّخْشُنِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ ذَلِكَ مُنَافِقٌ لاَ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لاَ تَقُلْ ذَلِكَ، أَلاَ تَرَاهُ قَدْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. يُرِيدُ بِذَلِكَ وَجْهَ اللَّهِ». قَالَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ فَإِنَّا نَرَى وَجْهَهُ وَنَصِيحَتَهُ إِلَى الْمُنَافِقِينَ. قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «فَإِنَّ اللَّهَ قَدْ حَرَّمَ عَلَى النَّارِ مَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. يَبْتَغِي بِذَلِكَ وَجْهَ اللَّهِ». قَالَ ابْنُ شِهَابٍ ثُمَّ سَأَلْتُ الْحُصَيْنَ بْنَ مُحَمَّدٍ الأَنْصَارِيَّ - وَهْوَ أَحَدُ بَنِي سَالِمٍ وَهْوَ مِنْ سَرَاتِهِمْ - عَنْ حَدِيثِ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ، فَصَدَّقَهُ بِذَلِكَ.

**د حديث ترجمه:** د ابن شهاب رحمه الله نه روايت دي چه ماته محمود بن ربيع انصاري خبر راکړو چه حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه چه د هغه انصاري صحابه کرامو نه دي کوم چه بدر کښې شريك وو. د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړواې د الله رسول! زما نظر کمزورې شوې دې او زه د خپل قوم خلقو ته جمع ورکوم. کله چه باران وی نو په دغه وادئ کومه چه زما د کور او هغه خلقو په مينځ کښې راځي، کښې اوبه راځي د کوم په وجه چه زه د هغوی جمات ته نه شم رسيدې چه هغوی ته جمع ورکړم. يارسول الله! زما زړه غواړي چه تاسو زما کور ته تشريف راوړئ او زما په کور کښې مونځ اوکړئ نو زه به هغه ځائ د ځان دپاره د خپل مونځ ځائ جوړ کړم.

راوی وائی چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه ان شاء الله ډير زر به زه داسې اوکړم. حضرت عتبان رضي الله عنه اوفرمائيل چه په دويمه ورځ کله ورځ روښانه شوه نو رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رضي الله عنه تشريف راوړو (اوکور کښې د داخليدو) اجازت ئې اوغوښتلو نو ما اجازت ورکړو. رسول الله ﷺ چه کله کور ته داخل شو نو تشريف ئې کينخودو او وئې فرمائيل چه ته په خپل کور کښې کوم ځائ غواړې چه زه مونځ اوکړم؟ حضرت عتبان رضي الله عنه وائی چه ما حضورپاك ته د کور د يو کوټ طرف ته اشاره اوکړه نو حضورپاك اودريدو او (د مونځ شروع کولو د پاره ئې تکبير يعني) الله اکبر اووئيلو مونږ هم اودريدو او رسول الله مونږ (خپل ځان پسې شاته يو) صف کښې اودرولو. حضورپاك دوه رکعته اوکړل او سلام ئې اوګرځولو.

حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه وائی چه ما حضورپاك د حليم (خوراك) دپاره ايسار کړو چه مونږ په (خاص توګه سره) د حضورپاك د پاره تيار کړې وو.

حضرت عتبان رضي الله عنه اووئيل چه بيا د محلې څوکسان زما کور ته راغلل او جمع شو. بيا په

هغوی کښې یو وینا کونکی اووئیل چه مالك بن دخیشن یا مالك بن دخشن چرته دي؟ نو د هغوی نه چا اووئیل چه هغه خو منافق دي، الله اوډ هغه رسول ﷺ سره محبت نه لري نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل داسې مه وایئ آیا تاسو نه ګورئ چه هغه صرف د الله د رضا د پاره لا اله الا الله وائی. نوهغه سړي اووئیل چه الله اوډ هغه رسول ﷺ ښه پوهیږي. موږ خو د هغه توجه اوهمدردی د منافقانو سره ګورو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی په هر هغه سړي باندې دوزخ حرام کړې دې کوم چه د الله تعالی د راضی کولو په غرض لا اله الا الله وائی.

ابن شهاب رحمه الله وائی چه بیا ما حصین بن محمد انصاری نه چه د قبیله بنو سالم یو کس اوډ هغوی د سردارانو نه دې، محمود بن ربیع رضي الله عنه د دې حدیث باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی د دې تصدیق اوکړو.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث مبارك په سند کښې ټول شپږ راویان دی.

① **سعید بن عفیر رحمه الله:** دا سعید بن کثیر بن عفیر رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین لاندې تیرشوی دی.[1]

② **اللیث رحمه الله:** دا لیث بن سعد بن عبد الرحمن رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.[2]

③ **عقیل رحمه الله:** دا عقیل بن خالد بن عکرمه رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی د دریم حدیث لاندې او تفصیلی احوال کتاب العلم، باب: فضل العلم لاندې تیرشوی دی.[3]

④ **ابن شهاب رحمه الله:** دا محمدبن مسلم، بن عبید الله، بن عبد الله بن شهاب الزهری رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیر شوی دی.[4]

⑤ **محمود بن الربیع الانصاری رضي الله عنه:** دا محمود بن ربیع بن سراقه بن عمرو خزرجی رضي الله عنه دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: متی یصح سماع الصغیر لاندې تیرشوی دی.[5]

⑥ **عتبان بن مالك رضي الله عنه:** دا صحابئ رسول حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه دې. د دوی احوال د کشف الباری هم په دې جلد کښې تیر شوی دی.[6]

---

[1]) کشف الباري: ۳/۲۷٤.

[2]) کشف الباري: ۱/۳۲٤.

[3]) کشف الباري: ۱/۳۲۵، ۳/٤۵۵.

[4]) کشف الباري: ۱/۳۲۶.

[5]) کشف الباري: ۱/۳۲۶.

[6]) کشف الباري.

**د حديث شرح:**

**قوله:** عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ الأَنْصَارِيُّ، أَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ وَهُوَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنَ الأَنْصَارِ أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ أَنْكَرْتُ بَصَرِي

د ابن شهاب رحمه الله نه روايت دې چه ماته محمود بن ربيع انصاري رضي الله عنه خبر راكړو چه حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه چه د هغه انصاري صحابه كرامو نه دې كوم چه بدر كښې شريك شوى وو. د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو چه اې د الله رسول! زما نظر كمزورې شوې دې.

**قوله:** عتبان، دا نوم د عين فتحې او كسرې دواړو سره استعماليږى.(١)

**قوله:** أنه أتى، دې نه معلوميږى چه حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه پخپله د حضورپاك په خدمت كښې حاضر شو. حالانكه په صحيح مسلم كښې د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت نقل دې په كوم كښې چه دى چه د حضورپاك په خدمت كښې ئې څوك قاصد اوليږلو چه راوئى غواړى.(٢). ددې تعارض په حل كولو كښې شارحينو حضراتو دوه احتمالات ذكر كړى دى:

① دلته پخپله د حاضريدو خبره مجازاً كړې شوې ده ګنې هم قاصد ئې ليږلې وو.

② داسې دوه ځل شوى وو يو ځل پخپله حاضر شو او په دويم ځل ئې قاصد اوليږلو او قاصد ليږلو كښې هم دوه احتمالات دى چه هغه ابتداء كور ته د تشريف راوړلو مطالبه اوكړه او دويم دا چه مطالبه خو حضرت عتبان رضي الله عنه پخپله كړې وه او قاصد صرف د ياداشت د پاره لاړو.(٣)

طبرانى رحمه الله د ابى اويس رحمه الله په طريق سره يو روايت نقل كړې دې په كوم كښې چه دى كله چه حضرت عتبان رضي الله عنه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم كورته د راوستو خبره اوكړه نو په هغه ورځ د جمعې مباركې ورځ وه. او هم په دغه روايت كښې داخبره ده چه حضورپاك د هفتې په ورځ د هغه كورته تشريف يوړو.(٤)

---

(١) فتح البارى: ۶۷۳/۱ اوعلامه ابن الملقن رحمه الله د عين ضمه سره استعماليدل خودلى دى. (التوضيح لابن الملقن: ٤٤٢/٥)

(٢) حدثنا شيبان بن فروخ، حدثنا سليمان يعني ابن المغيرة، قال: حدثنا ثابت، عن أنس بن مالك، قال: حدثني محمود بن الربيع، عن عتبان بن مالك، قال: قدمت المدينة، فلقيت عتبان، فقلت: حديث بلغني عنك، قال: أصابني في بصري بعض الشيء، فبعثت إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، ومن شاء الله من أصحابه، فدخل وهو يصلي في منزلي وأصحابه يتحدثون بينهم، ثم أسندوا عظم ذلك وكبره إلى مالك بن دخشم، قالوا: ودوا أنه دعا عليه فهلك، ودوا أنه أصابه شر، فقضى رسول الله صلى الله عليه وسلم الصلاة، وقال: أليس يشهد أن لا إله إلا الله، وأني رسول الله؟ قالوا: إنه يقول ذلك، وما هو في قلبه، قال: لا يشهد أحد أن لا إله إلا الله، وأني رسول الله، فيدخل النار، أو تطعمه، قال أنس: فأعجبني هذا الحديث، فقلت لابني: اكتبه فكتبه. (صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب: من لقى الله بالإيمان وهو غير شاك فيه دخل الجنة وحرم النار، رقم الحديث: ٥٤)

(٣) فتح البارى: ۶۷۳/۱، عمدة القارى: ٧٤٢/٤.

(٤) فتح البارى: ۶۷۳/۱.

**حضرت عتبان بن مالک رضی الله عنه نابینا وو که کم نظر والا؟:**

**قوله: "قد أنكرت بصري"** دَدې جملې معنی دا ده چه زما نظر کمزورې شوې دې اوس دَ مخکښې په شان نه دې.(۱)، په یو روایت کښې دَ "قد أنكرت بصري" الفاظ دی. په بل روایت کښې "أنا رجل ضرير البصر" الفاظ دی.(۲)، هم دَ صحیح بخاری په روایت کښې دی "أن عتبان بن مالك كان يؤم قومه وهو أعمى".(۳)

دَ صحیح مسلم په یو روایت کښې "إن بصري قد ساء" الفاظ دی.(۴)او په بل روایت کښې "أصابني في بصري بعض الشيء" الفاظ دی.(۵) دَ طبرانی په یو روایت کښې "وأن بصري قد ذهب" الفاظ دی.(۶)او په بل روایت کښې "لما ساء بصري" الفاظ دی.(۷)

خلاصه دا چه دَ اختلاف روایت دَ وجې نه یو تعارض پیداکیږی چه دَ یو روایت مطابق هغه نابینا وو او دَ نورو روایاتو مطابق دَ نظر کمزوری معلومیږی. نو په ټولو کښې تطبیق کول

---

(۱) صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب: الرخصة في المطر، رقم الحديث: ۶۳۶

(۲) صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب: الرخصة في المطر، رقم الحديث: ۶۶۷

(۳) صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب: الرخصة في المطر، رقم الحديث: ۶۳۶

(۴) وحدثنا إسحاق بن إبراهيم، أخبرنا الوليد بن مسلم، عن الأوزاعي، قال: حدثني الزهري، عن محمود بن الربيع، قال: إني أعقل مجة مجها رسول الله صلى الله عليه وسلم من دلو في دارنا، قال محمود: فحدثني عتبان بن مالك، قال: قلت: يارسول الله! إن بصري قد ساء، وساق الحديث إلى قوله، فصلى بنا ركعتين، وحبسنا رسول الله صلى الله عليه وسلم على جشيشة صنعناها له، ولم يذكر ما بعده من زيادة يونس، ومعمر. (صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: الرخصة في التخلف عن الجماعة بعذر، رقم الحديث: ۲۵۶).

(۵) حدثنا شيبان بن فروخ، حدثنا سليمان يعني ابن المغيرة، قال: حدثنا ثابت، عن أنس بن مالك، قال: حدثني محمود بن الربيع، عن عتبان بن مالك، قال: قدمت المدينة، فلقيت عتبان، فقلت: حديث بلغني عنك، قال: أصابني في بصري بعض الشيء، فبعثت إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم أني أحب أن تأتيني فتصلي في منزلي........ (صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب: من لقي الله بالإيمان، رقم الحديث: ۳۳).

(۶) حدثنا علي بن عبدالعزيز، ثنا عارم أبوالنعمان، ثنا حماد بن زيد، ثنا علي بن زيد، قال: كنا عند أنس بن مالك فقال لابنه أبي بكر حدثهم حديث عتبان بن مالك الأنصاري، فحدثنا أبوبكر، وأنس، شاهد فقال: خرجت مع أبي إلى الشام فلما أقبل من الشام مشى معنا محمود بن الربيع الأنصاري فشيعنا حتى إذا أراد أن يفارقنا قال: ألا أحدثكم بحديث عتبان بن مالك؟ قلنا: بلى! قال: فإنه حدثني أنه ذهب بصره على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: يارسول الله! فلو أتيت منزلي، فبوأت لي فيه مسجدا، وصليت فيه، فأتخذه مسجدا، وإن بصري قد ذهب، وضعفت عن الخروج إلى المسجد.....(المعجم الكبير للطبراني،عتبان بن مالك الأنصاري، رقم الحديث: ۱۴۷۵۴).

(۷) حدثنا العباس بن الفضل الأسفاطي، ثنا إسماعيل بن أبي أويس، حدثني أبي، أخبرني ابن شهاب، عن محمود بن الربيع الأنصاري، أخبرني عتبان بن مالك، أنه كان إمام قومه وقد شهد بدرا فقال للنبي صلى الله عليه وسلم: أنه لما ساء بصري شقت على إجازة الوادي إذا سال بيني وبين مسجد قومي، ........ (المعجم الكبير للطبراني، عتبان بن مالك الأنصاري، رقم الحديث: ۱۴۷۶۱).

داسې ممکن دی چه دَ اعمی نه مراد حقیقي نابینا کیدل نه دی بلکه مراد دادې چه هغه نابینا کیدو ته نیزدې شوې وو لکه څنګه چه دَ بل روایت نه دَ نظر کمزوری ثابتیږی. بله دا چه دَ صحیح بخاری په کوم روایت کښې چه "اعمٰی" ذکردې په هغې کښې دا احتمال هم کیدې شی چه کله دَ راوی پورې دا حدیث راورسیدو نو هغه وخت حضرت عتبان رضی الله عنه پوره نابینا شوې وو. یعنی په شروع کښې ئې نظر کمزورې شوی وو بیا زیاتیدو زیاتیدو سره پوره نابینا شو.[1]

**قوله:** وَأَنَا أُصَلِّي لِقَوْمِي فَإِذَا كَانَتِ الأَمْطَارُ سَالَ الْوَادِي الَّذِي بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ، لَمْ أَسْتَطِعْ أَنْ آتِيَ مَسْجِدَهُمْ فَأُصَلِّيَ بِهِمْ، وَوَدِدْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَّكَ تَأْتِينِي فَتُصَلِّيَ فِي بَيْتِي، فَأَتَّخِذَهُ مُصَلًّى:

اودَ خپل قوم خلقو ته مونځ ورکوم. کله چه باران وی نو هغه وادی کومه چه زما دَ کور او دَ دغه خلقو په مینځ کښې ده، هغې کښې اوبه راځی دَ کوم په وجه چه زه دَ هغوی جمات ته نه شم رسیدې چه هغوی ته مونځ ورکړم. یارسول الله! زما زړه غواړی چه تاسو زما کور ته تشریف راوړئی اوزما په کور کښې مونځ اوکړئی نو زه به هغه ځائی دَ خپل ځان دَ پاره دَ مونځ ځائی جوړ کړم.

**قوله:** سَالَ الْوَادِي، دَدې مطلب دادې چه په وادئی کښې اوبه بهیږی، په دې جمله کښې دَ محل اطلاق په حال باندې کړې شوې دې.[2]

د صحیح مسلم [3] او طبراني [4]. روایت کښې دَدې جملې په ځائی "إذاكانت الأمطار سالت الوادى الذى بينى وبينهم، ولم أستطيع أن آتي مسجدهم" الفاظ هم راغلی دی چه کله بارانونه وی نوهغه وادی کومه چه زما او زما دَ قوم په مینځ کښې ده هغه دَ اوبو نه ډکیږی دَ کوم په وجه

[1] فتح البارى: ٦٧٣/١، عمدة القارى: ٧٤٢/٤.

[2] عمدة القارى: ٢٤٧/٤.

[3] حدثنى حرملة بن يحيى التجيبى، أخبرنا ابن وهب، أخبرنى يونس، عن ابن شهاب، أن محمود بن الربيع الأنصارى، حدثه أن عتبان بن مالك - وهو من اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم ممن شهد بدرا من الأنصار - أنه أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال: يارسول الله! إنى قد أنكرت بصرى، وأنا أصلى لقومى، وإذا كانت الأمطار سال الوادى الذى بينى وبينهم ولم أستطع أن آتى مسجدهم فأصلى لهم، وددت أنك يارسول الله! تأتى فتصلى فى مصلى، فأتخذه مصلى، قال: فقال: رسول الله صلى الله عليه وسلم: سأفعل إن شاء الله......(صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب: الرخصة فى التخلف عن الجماعة بعذر، رقم الحديث: ٢٥٦).

[4] حدثنا مطلب بن شعيب الأزدى، ثنا عبدالله بن صالح، حدثنى الليث، عن عقيل - ح - وحدثنا عمرو بن أبى الطاهر بن السرح المصرى، ثنا محمد بن عزيز الأيلى، ثنا سامة بن روح، عن عقيل، أخبرنى محمد بن مسلم، أن محمود بن الربيع الأنصارى، أخبره أن عتبان بن مالك، وهومن أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم ممن شهد بدرا من الأنصار أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: يارسول الله! إنى قد أنكرت بصرى وإنى أصلى بقومى، فإذا كانت الأمطار سال الوادى بينى وبينهم، فلم أستطع أن آتى مسجدهم فأصلى لهم...... (المعجم الكبير للطبرانى، عتبان بن مالك، رقم الحديث: ١٤٧٥٩)

چه زه دَ جمات پورې د راتلو قدرت نه لرم.

**قوله:** بيني وبينهم، دَ اسماعيلي په روايت کښې دي: "بين مسكني وبين مسجد قومي". [١]

**قوله:** وددتُ، دَ دال کسره او فتحه دواړه شان مستعمل دي. هم دغه شان دَدې مصدر "وُدّ" او "وَدّ" هم دواړه شان يعنى دَ واؤ فتحې او ضمر سره مستعمل دې. [٢]

**قوله:** فتصلي:، او "فأتخذه" دواړه مجزوم او منصوب لوستل جائز دی. [٣]

**قوله:** قَالَ: فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «سَأَفْعَلُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ» قَالَ عِتْبَانُ: فَغَدَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ حِينَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ، فَاسْتَأْذَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَذِنْتُ لَهُ:

راوى وائى چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ان شاء الله ډير زر به زه داسې اوکړم. حضرت عتبان رضي الله عنه فرمائى چه په دويمه ورځ چه کله ورځ رڼا شوه نو رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رضي الله عنه تشريف راوړو او (کور ته دَ داخليدو) اجازت ئې اوغوښتلو نو ما اجازت ورکړو.

**دَ ان شاء الله وئيلو مقصد:**

**قوله:** سَأَفْعَلُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، په دې جمله کښې لفظ ان شاء الله نه مقصود تبريک نه دې بلکه تعليق دې چه که دَ الله تعالى رضا ماسره شوه نو زه به راځم. دويم قول دادې چه لفظ ان شاء الله هم دَ برکت حاصلولو دَپاره دې نه چه دَ تعليق دَپاره، دا معنى به په هغه صورت باندې محمول وى چه دَ الله تعالى دَ طرف نه حضورپاک ته خبر ورکړې شو چه زر به تاسو دا کار کوئى. [٤]

**قوله:** قال عتبان: فغدا، دَدې نه دَمخکښې پورې عبارت دَمحمود رحمه الله راوى وو اودَدې پس مکمل روايت هم دَ حضرت عتبان بن مالک رضي الله عنه په خله دې، په دې اعتبار سره دَ اوس نه دَ مخکښې پورې روايت به دَ هغوى په مراسيلو کښې شميرلې شى ځکه چه ظاهر هم دغه دى چه هغوى به دا هم دَ حضرت عتبان رضي الله عنه نه اوريدلې وى مګر بيان ئې دَ حوالې نه بغير اوکړو. [٥]

**نبى کريم ﷺ سره څومره صحابه کرامو تشريف راوړو؟:**

**قوله:** فَغَدَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ، په دې روايت کښې رسول الله ﷺ سره صرف حضرت ابوبکر رضي الله عنه تشريف راوړې وو. تردې چه دَ اوزاعى رحمه الله دَ روايت مطابق حضرت عتبان رضي الله عنه داخبره بيانولو سره دَدغه دواړو حضراتو دَپاره دَتثنيې صيغه او هم دَ تثنيې

---

[١] فتح البارى: ١/٦٧٣ عمدة القارى: ٤/٢٤٧.
[٢] فتح البارى: ١/٦٧٣ عمدة القارى: ٤/٢٤٧.
[٣] فتح البارى: ١/٦٧٤ عمدة القارى: ٤/٢٤٧.
[٤] فتح البارى: ١/٦٧٤ عمدة القارى: ٤/٢٤٧.
[٥] فتح البارى: ١/٦٧٤.

ضمير استعمال كړو، يعنى "فاستأذنا فأذنت لهما" (١) ليكن په نورو رواياتو كښې دَ حضرت عمر ﷺ هم دَتشريف راوړلو ذكرملاويږى. (٢)

دَ طبرانى په روايت كښې "فى نفر من أصحابه" الفاظ دى. (٣) په يو بل روايت كښې "فأتاه ومن شاء الله من أصحابه" الفاظ دى. (٤)

په دې مختلفو رواياتو كښې شارحينو داسې تطبيق كړې دې چه په شروع كښې دَحضورپاك سره صرف هم حضرت ابوبكر ﷺ وو بيا ورسره حضرت عمر ﷺ او بعضې نور صحابه كرام هم يوځائى شو. (٥)

**قوله**: فَلَمْ يَجْلِسْ حَتَّى دَخَلَ الْبَيْتَ، ثُمَّ قَالَ: «أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ» قَالَ: فَأَشَرْتُ لَهُ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ الْبَيْتِ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَبَّرَ، فَقُمْنَا فَصَفَّنَا فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ:

رسول الله ﷺ چه كله كورته ورداخل شو نو تشريف ئى كينخودو او معلومات ئى اوكړو چه

---

(١) فتح البارى: ١/٦٧٤ عمدة القارى: ٤/٢٤٧.

(٢) حدثنا مطلب بن شعيب الأزدى، ثنا عبدالله بن صالح، حدثنى الليث، عن عقيل – ح – وحدثنا عمرو بن أبى الطاهر بن السرح المصرى، ثنا محمد بن عزيز الأيلى، ثنا سلامة بن روح، عن عقيل، أخبرنى محمد بن مسلم، أن محمود بن الربيع الأنصارى، أخبره أن عتبان بن مالك، وهومن أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم ممن شهد بدرا من الأنصار أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: يارسول الله! إنى أنكرت بصرى وإنى أصلى بقومى، فإذا كانت الأمطار سال الوادى بينى وبينهم، فلم أستطع أن آتى مسجدهم فأصلى لهم،فوددت يارسول الله! أن تصلى فى مصلى أتخذه مصلى، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: سأفعل إن شاء الله فقال عتبان: فغدا رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبوبكر وعمر حيث ارتفع النهار.....(المعجم الكبير للطبرانى، عتبان بن مالك، رقم الحديث: ١٤٧٦٢)

(٣) حدثنا محمدبن العباس المؤدب، ثنا محمد بن بكير الحضرمى، ثنا عامر بن يساف، عن سعيد بن أبى عروبة، عن قتادة، عن النضر بن أنس، عن أنس قال: لما أصيب عتبان بن مالك فى بصره، بعث إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، أحب أن تأتينى فتصلى فى بيتى، وتدعولنا بالبركة، فقام رسول الله صلى الله عليه وسلم فى نفر من أصحابه، فدخلوا عليه، فتحدثوا بينهم فذكروا مالك بن الدخشم، فقال بعضهم: يارسول الله! ذاك كهف المنافقين ومأواهم، فأكثروا فيه، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: أوليس يصلى؟ قالوا: نعم يا رسول الله! صلاة لا خير فيها، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: نهيت عن قتل المصلين، مرتين. (المعجم الكبير للطبرانى، عتبان بن مالك الأنصارى، رقم الحديث: ١٤٧٥٣).

(٤) حدثنا شيبان بن فروخ، حدثنا سليمان يعني ابن المغيرة، قال: حدثنا ثابت، عن أنس بن مالك، قال: حدثنى محمود بن الربيع، عن عتبان بن مالك، قال: قدمت المدينة، فلقيت عتبان، فقلت: حديث بلغنى عنك، قال: أصابنى فى بصري بعض الشيئ، فبعثت إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم أنى أحب أن تأتينى فتصلى فى منزلى،فأتخذه مصلى، قال: فأتى النبى صلى الله عليه وسلم، ومن شاء الله من أصحابه، فدخل وهو يصلى فى منزلى وأصحابه يتحدثون بينهم، ثم أسندوا عظم ذلك وكبره إلى مالك بن دخشم، قالوا: ودوا أنه دعا عليه فهلك، ودوا أنه أصابه شر، فقضى رسول الله صلى الله عليه وسلم الصلاة،....... (صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب: من لقى الله بالإيمان، رقم الحديث: ٣٣).

(٥) فتح البارى: ١/٦٧٤ عمدة القارى: ٤/٢٤٧.

نه په خپل كور كښې كوم خاني غواړې چه زه مونځ اوكړم؟ حضرت عتبان رضي الله عنه اوفرمائيل چه ما حضورپاك ته د كور يو گوټ طرف ته اشاره اوكړه نورسول الله ﷺ اودريدو او مونځ شروع كولو د پاره ئې تكبير يعنې الله اكبر ئې اووئيلو. مونږ هم اودريدو او حضورپاك مونږ (خپل شاته يو) صف كښې اودرولو. حضورپاك دوه ركعته مونځ اوكړو او سلام ئې اوگرځولو.

**په دوو مختلفو مقاماتو كښې د نبي d مختلف عمل:**

**قوله:** فَلَمْ يَجْلِسْ، د حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه كور ته تشريف راوړلو واقعه كښې دى چه حضورپاك د هغه په كوركښې كينه ناست بلكه كور ته رسيدو سره ئې تپوس اوكړو چه وايه د كور په كومه حصه كښې په ما باندې مونځ كول غواړې. او حضورپاك ﷺ يو ځل داسې د حضرت ام سليم رضي الله عنها په كور كښې هم مونځ اداكړې وو نو هلته رسيدو سره ئې مونځ نه وو اداكړې بلكه هلته ئې اول خوراك اوكړوبيائې مونځ كړې وو.

نو په دواړو واقعاتو كښې د عمل د فرق وجه دا معلوميږي چه د حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه كور ته د تشريف راوړلو مقصد هلته صرف هم مونځ اداكول وو. لهذا هلته په رسيدو سره ئې اصلي مقصد پوره كړو هغې نه پس ئې ورسره خوراك هم اوكړو. او د حضرت ام سليم رضي الله عنها د طرف نه خو دعوت هم د خوراك ملاؤ شوې وو لهذا د هغې كورته په رسيدو سره ئې اول خوراك اوكړو او بيا ئې دې سره سره د هغې په درخواست باندې د بركت د پاره مونځ هم اداكړو.(١)

**حضرت عبدالله بن ام مكتوم رضي الله عنه ته خو په كوركښې د مونځ كولو اجازت نه وو ملاؤ شوې بيا ده ته څنګه ملاؤ شو؟:** دلته يو سوال پيدا كيږي چه ابن ام مكتوم رضي الله عنه هم حضورپاك نه په كوركښې د مونځ اداكولو اجازت غوښتې وو او حضرت عتبان رضي الله عنه هم اجازت اوغوښتو ليكن حضورپاك ابن ام مكتوم رضي الله عنه ته اجازت ورنه كړو او ده ته ئې اجازت وركړو، د دې فرق څه وجه ده؟

نو د دې جواب دادې چه ابن ام مكتوم رضي الله عنه پيدائشي نابينا وو او داسې بنده حسيات ډير تيز وى د هغه د پاره تلل راتلل مشكل نه وو، آسان وو، په دې وجه ئې هغه ته اجازت ورنه كړو په خلاف د ده چه دې پيدائشي نابينا نه وو اول ئې نظر كمزورې شو بيا دغه د نظر كمزورى زياتيدله نو د هغه د پاره زيات مشقت وو په دې وجه هغه ته اجازت ملاؤ شو.

دويم جواب دادې چه ابن ام مكتوم رضي الله عنه د مسجد نبوى نه د تخلف اجازت غوښتې وو او دوى د محلې د جمات نه د تخلف اجازت اخستې وو.

دريم جواب دا دې چه د ابن ام مكتوم رضي الله عنه تعلق د نبى كريم ﷺ سره په نسبت د حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه زيات وو په دې وجه هغه ته اجازت ملاؤ نه شو.

څلورم جواب دادې چه د سورت عبس د نازليدلو نه پس به حضورپاك د ابن ام مكتوم رضي الله عنه ډير زيات خيال ساتلو هم د دې په وجه ئې هغه د خپل ځان نه لرې كول مناسب نه ګڼړل.

---

(١) فتح البارى: ٦٧٤/١ عمدة القارى: ٢٤٧/٤.

پنځم جواب دادې چه ابن ام مكتوم ﷺ ته ئې په عزيمت باندې د عمل كولو دعوت وركړو او حضرت عتبان ﷺ ته ئې په رخصت باندې د عمل كولو اجازت وركړو.

**قوله:** حَتّٰى دَخَلَ: دا د كشميهني روايت دې په نورو روايا تو كښې د "حين دخل" الفاظ هم ملاويږي. په دې صورت كښې به معنى دا شى چه حضورپاك د هغه په كور كښې داخليدو پورې چرته به څائى كښې كينه ناستو بلكه نيغ ئې د هغه كور ته تشريف يوړو.(١)

**قوله:** قَالَ وَحَبَسْنَاهُ عَلٰى خَزِيرَةٍ صَنَعْنَاهَا لَهُ: حضرت عتبان بن مالك ﷺ اووئيل چه ما حضورپاك د حليم (خوړلو) د پاره ايسار كړو چه مونږ په (خاص توګه) د حضورپاك د پاره تيار كړې وو.

**قوله:** وَحَبَسْنَاهُ: د دې معنى ده چه مونږ حضورپاك د واپس كيدو نه منع كړو.(٢)

**د خَزِيرَة معنى:** خَزِيرَةٍ، د خاء په فتحې او زاء كسرې سره د عربو د يو قسم خوراك نوم دې. د كوم د پخوولو طريقه دا وه چه د غوښې به وړې وړې ټكړې جوړې كړې شى او بيا به ئې هغه په اوبو كښې پخولې چه كله به ښه پخې شوې نود پاسه به ئې پرې اوړه دوړول.(٣)

**قوله:** قَالَ: فَثَابَ فِي الْبَيْتِ، رِجَالٌ مِنْ أَهْلِ الدَّارِ ذَوُو عَدَدٍ، فَاجْتَمَعُوا، فَقَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ: أَيْنَ مَالِكُ بْنُ الدُّخَيْشِنِ أَوِابْنُ الدُّخْشُنِ؟ فَقَالَ بَعْضُهُمْ: ذٰلِكَ مُنَافِقٌ لَا يُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ:

حضرت عتبان ﷺ اووئيل چه بيا د محلې يو څو كسان راغله راجمع شو بيا په هغوى كښې يو وينا كونكى اووئيل چه مالك بن دخيشن يا مالك بن دخشن چرته دې؟ نو په هغوى كښې چا اووئيل چه هغه خو منافق دې د الله او د هغه رسول ﷺ سره محبت نه لري.

**قوله:** فَثَابَ فِي الْبَيْتِ، رِجَالٌ، په عام توګه دستور دا وى چه يو بزرګ چرته تشريف راوړى نو خلق د هغه د زيارت، مصافحې او ملاقات د پاره حاضريږي. نو دلته هم داسې اوشو چه د حضرت عتبان ﷺ په كور كښې خلق راجمع شو او ولې به نه راجمع كيدل؟ هلته خود صحابه كرامو محبوب ترين هستى رسول الله ﷺ تشريف راوړې وو.

**قوله:** فَثَابَ، معنى جمع كيدل او راتلل دى.(٤)

**قوله:** مِنْ أَهْلِ الدَّارِ، د دې نه مراد محله ده لكه څنګه چه په يو بل حديث شريف كښې هم د "دار" نه محله مراد اخستې شوې ده.(٥)

**قوله:** فَقَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ، دا وينا كونكې څوك وو؟ دې باره كښې وضاحت نه ملاويږي.

---

[١] ) فتح الباري: ١/٦٧٤ عمدة القاري: ٤/٢٤٧.
[٢] ) فتح الباري: ١/٦٧٤ عمدة القاري: ٤/٢٤٧.
[٣] ) فتح الباري: ١/٦٧٥ عمدة القاري: ٤/٢٤٧.
[٤] ) عمدة القاري: ٤/٢٤٩.
[٥] ) عمدة القاري: ٤/٢٤٩.

صحيح لفظ "الدخيشن" نه بلكه "الدخيشم" دي:

**قوله:** ابن الدُّخَيْشِنِ أَوابنَ الدُّخْشُنِ؟ ، دَدې دواړو اسمونو په مينځ کښې دَ کلمې او مطلب دادې چه راوئ حديث ته شك شوې دې چه دا اسم تصغير سره "الدُّخَيْشِن" دې يا تصغير نه بغير "الدُّخشُنِ". نو په دې باره کښې خان پوهه کړئی چه په دې اسماء کښې دواړه لغات صحيح نه دی ځکه چه صحيح لفظ "ابن الدُّخَيْشِم او ابنُ الدُّخشُم" دې. يعنی دَ نوم په آخره کښې ميم دې نه چه نون. لکه چه دَ صحيح مسلم په روايت کښې مالك بن دخشم ذکر دې. او امام طبرانی رحمه الله هم دَ احمدبن صالح رحمه الله نه نقل کړی دی چه صحيح په ميم سره دې.يعنی دخشم.[1]

**قوله:** فَقَالَ بَعْضُهُمْ، دَدغه قائل باره کښې داخبره ملاويږی چه دا دَ حديث راوی حضرت عتبان رضی الله عنه وو. علامه ابن عبدالبر رحمه الله په التمهيد کښې دا خبره ذکر کړې ده چه هغه سړې چاچه نبی کريم ﷺ سره دَ منافقانو نه دَ يوسړی دَ قتل کولو باره کښې غوږ کښې پټه خبره اوکړه هغه عتبان وو. اوهغه سړې دَ کوم طرف ته چه دَ نفاق اشاره اوکړې شوه هغه مالك بن دخشن وو.[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ابن عبدالبر رحمه الله دَدې خبرې دَ ذکرکولو نه پس دَ حضرت عتبان رضی الله عنه مذکوره حديث شريف ذکرکوی. حالانکه دَ هغوی په دې دعوئ چه نبی کريم ﷺ سره غوږ کښې پټه خبره کونکې سړې عتبان وو، باندې هيڅ دليل نشته دې.[3]

ابن حجر رحمه الله نور فرمائی چه المغازی لابن اسحاق کښې داخبره ذکر ده چه نبی کريم ﷺ مالك (بن دخشم) او معن بن عدی رضی الله عنهما مسجد ضرار سوزولو دَ پاره ليږلی وو. حضورپاك دغه دواړه حضرات دَمنافقانو جوړکړې شوی جمات ته اور لګولو دَ پاره ليږل دَدې خبرې دليل دې چه دا دواړه حضرات دَنفاق دَ تهمت نه بری دی. يا چه دَ کوم نفاق دَ هغوی طرف ته تهمت لګولې شوې وو هغه نفاق دکفر والا نفاق نه وو نو بيا صحابه کرامو رضی الله عنهم هغوی داسې ځکه ګڼړلې وو چه دوی منافقانو سره څه تعلقات لرل دَ کوم په وجه چه هغوی هم دَ منافقانو په صف کښې شامل اوګڼړلې شول. حالانکه په مدينه کښې اوسيدونکی منافقان دَ قبيلهٔ اوس اوخزرج نه وو نو هغوی سره دَمعاشرتی تعلقات خو ئی وو. دَدې نه علاوه دَ يوې بلې خبرې احتمال هم دې چه هغه وخت دَ هرمنافق سړی حالت دَ نفاق په تولو باندې ښکاره نه وو لهذا عين ممکن ده چه دَحضرت مالك بن دخشم چه دَ چا سره تعلقات وو هغه دَ دوی په نظر کښې منافق نه وو اودَ نورو په نظرکښې منافق وو.[4]

---

[1] ) فتح الباري: ٦٧٥/١ عمدة القاري: ٢٤٩/٤.

[2] ) وأما الرجل الذى سار رسول الله صلى الله عليه وسلم فهو عتبان بن مالك، الرجل المتهم بالاتفاق والذى جرى فيه هذا الكلام هومالک بن الدخشم. (التمهيد لابن عبدالبر، تابع حرف الميم، تابع لمحمد بن شهاب الزهرى، الحديث السابع والثلاثون: ١٤٩/١٠).

[3] ) فتح الباري: ٦٧٥/١ عمدة القاري: ٢٤٩/٤.

[4] ) فتح الباري: ٦٧٥/١.

ابن حجر رحمه الله يو بل جواب ليكلې دې چه ممكن ده د دغه تعلقاتو په حواله د هغه حاطب (بن ابى بلتعه) طرف ته څه عذر وى. (١)

الغرض دا خبره يقينى ده چه حضرت مالك بن دخشم رضي الله عنه منافق نه وو گنى نبى كريم صلى الله عليه وسلم به د هغه براءت نه كولو.

**قوله**: فَقَالَ رَسُولُ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَاتَقُلْ ذٰلِكَ، أَلَاتَرَاهُ قَدْقَالَ: لَاإِلٰهَ إِلَّا اللّهُ، يُرِيدُ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّهِ" قَالَ: اللّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: فَإِنَّانَرَي وَجْهَهُ وَنَصِيحَتَهُ إِلَى الْمُنَافِقِينَ، قَالَ رَسُولُ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَإِنَّ اللّهَ قَدْحَرَّمَ عَلَى النَّارِمَنْ قَالَ: لَاإِلٰهَ إِلَّا اللّهُ، يَبْتَغِي بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّهِ:

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل داسې مه وايئ آيا تاسو نه گورئى چه هغه صرف د الله تعالى د رضا د پاره لا اله الا الله وائى. نو دغه سړى اووئيل چه الله او د هغه رسول ډير ښه پوهيږى مونږ خو د ده توجه او همدردى د منافقانو سره گورو. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالى په هر هغه سړى باندې جهنم حرام كړې دې چه د الله تعالى د راضى كولو د پاره لا اله الا الله اووائى.

**قوله**: فَإِنَّانَرَي وَجْهَهُ: په دې جمله كښې د "وجهه" نه مراد توجه ده. يعنى مونږ د هغه توجه د

---

(١) فتح البارى: ٦٧٥/١. حافظ ابن حجر رحمه الله په خپل دې قول كښې د حاطب بن ابى بلتعه چه د كوم عذر طرف ته اشاره كړې ده د هغې نه مراد هغه قصه ده په كوم كښې چه حاطب بن ابى بلتعه د غزوه احد په موقع د مكې د مشركانو طرف ته د جنگ خبر رسولو كوشش كړې وو. بيا چه كله حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اجازت اوغوښتو چه اې د الله رسوله! د ده سټ دې والوزولى شى نو حضور پاك اوفرمائيل چه نه دا د اصحاب بدر نه دې. د چا چه ټول گناهونه الله تعالى معاف كړى دې. او هغه په خبر وركولو كښې داعذر بيان كړې وو چه اې د الله رسوله! دا وجه هيڅ كله نه ده چه په الله او د هغه په رسول باندې زما ايمان باقى پاتې نه وو بلكه زما مقصد صرف دومره وو چه په قريشو به زما دا يو احسان اوشى د كوم په وجه چه به هغوى هلته زما د بال بچ حفاظت كوى. نو نبى كريم صلى الله عليه وسلم د هغه د دې قول تصديق اوكړو او هغه ئې برى كړو. پوره قصه د عام فائدې د خاطره دلته نقل كولې شى: عن على رضى الله عنه قال بعثنى رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبا مرثد الغنوى والزبير بن العوام وكلنا فارس، قال: انطلقوا حتى تأتوا روضة خاخ، فإن بها امرأة من المشركين معها كتاب من حاطب بن ابى بلتعة إلى المشركين ، فأدركناها تيسير على بعير لها حيث قال رسول الله صلى الله عليه وسلم فقلنا: الكتاب؟ فقالت: ما معنا كتاب، فأنضناها، فالتمسنا، فلم نر كتاباً، فقلنا: ماكذب رسول الله صلى الله عليه وسلم، لتخرجن الكتاب أو لنجردنک،فلما رأت الجد أهوت إلى حجزتها وهى محتجزة بكساء، فأخرجته فانطلقنا بها إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال عمر: يارسول الله! قدكان الله ورسوله والمؤمنين، فدعنى فلأضرب عنقه، فقال النبى صلى الله عليه وسلم ماحملک على ماصنعت؟ قال حاطب: والله ما بى أن لا أكون مؤمنا بالله ورسوله صلى الله عليه وسلم، أردت أن يكون لى عندالقوم يد يدفع الله بها عن أهلى ومالى وليس أحد من أصحابک إلا له هناک من عشيرته من يدفع الله به عن أهله وماله، فقال النبى صلى الله عليه وسلم: صدق، ولا تقولوا له إلا خيرا، فقال عمر: أنه قد خان الله ورسول له والمؤمنين، فدعنى فلأضرب عنقه، فقال: أليس من أهل بدر، فقال: لعل الله اطلع إلى أهل بدر، فقال: ا عملوا ما شئتم، فقد وجبت لكم الجنة أو فقد غفرت لكم، فدمعت عيناعمر، وقال: الله ورسوله أعلم. (صحيح البخارى، كتاب المغازى، باب: فضل من شهدبدرا، رقم الحديث:٣٩٨٣).

منافقانو طرف ته ګورو.(١)

**قوله**: وَنَصِيحَتَهُ إِلَى الْمُنَافِقِينَ: علامه كرماني رحمه الله ليكلى دى چه كه چرته دلته څوك اشكال اوكړى چه په دې جمله كښې د "نصيحته" صله "إلى" صحيح نه ده ځكه چه د دې صله لام استعماليږى إلى نه نو د دې جواب دا دې چه نصح په دې مقام باندې د إلى معنې ته متضمن دې.(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه كرماني جواب نقل كولو نه پس ليكلى دى چه دا جمله "إلي المنافقين" د "وجهه" سره متعلق كړې شى نو بيا هيڅ اشكال نشته، ځكه چه د "وجهه" صله "إلي" استعماليږى او په دې صورت كښې كه د "نصيحته" صله محذوف اوګڼلې شى نو خبره به صحيح شى.(٣)

په دې باندې علامه عينى رحمه الله په حافظ صاحب باندې هم رد كولو سره دا فرمائى چه دومره خبره كافى ده چه په دې جمله كښې "إلى المنافقين" د "وجهه" سره متعلق كړې شى او په دې باندې "نصيحته" عطف كړې شى د دې نه پس د نورې وينا كولو ضرورت نشته چه "نصيحته" صله محذوف اوګڼلې شى نو خبره به صحيح شى. ځكه چه معطوف خو د معطوف عليه په حكم كښې وى د دې وجې نه د معطوف د پاره د جدا صلې محذوف راويستلو حاجت نشته دې.(٤)

شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده فرمائى كه چرې دې حضراتو د هغه په نه راتلو باندې د غصې په وجه دا خبره اوكړه نو په دې كښې هيڅ خبره نشته، په غصه كښې داسې كيږى او كه چرې غصه نه وه بلكه په واقع كښې ئې داسې ګڼړلو سره دا اووئيل نو هغوى ته به معلومه نه وه او حضورپاك ته به د وحى په ذريعه معلومه شوې وى. په دې وجه حضورپاك "لا تقل ذلك، ألا تراه قد قال: لا إله إلا الله، يريد بذلك وجه الله" اوفرمائيل.(٥)

**قوله**: قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: ثُمَّ سَأَلْتُ الْحُصَيْنَ بْنَ مُحَمَّدٍ الْأَنْصَارِيَّ - وَهُوَ أَحَدُ بَنِي سَالِمٍ - وَهُوَ مِنْ سَرَاتِهِمْ، عَنْ حَدِيثِ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيِّ: «فَصَدَّقَهُ بِذَلِكَ»:

ابن شهاب رحمه الله اووئيل چه بيا ما د حصين بن محمد انصارى نه چه د قبيله بنو سالم يو كس او د هغوى د سردارانو نه دې د محمود بن ربيع د دې حديث باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى د دې تصديق اوكړو.

**قوله**: قَالَ ابْنُ شِهَابٍ، د دې نه د يو نوى تعليق بيان نه دې بلكه دا قول په سابقه سند سره

---

(١) فتح البارى:١/٦٧٦ عمدة القارى: ٤/٢٥٠.
(٢) شرح الكرمانى: ٤/٨٥.
(٣) فتح البارى: ١/٦٧٦.
(٤) عمدة القارى: ٤/٢٥٠.
(٥) تقرير بخارى شريف: ٣/١٥٨.

هغوی ارشاد کړي دي.(١) ليکن دَ علامه عيني رحمه الله خيال دې طرف ته دې چه دا تعليق دې
څکه چه دَ "قال ابن شهاب" شروع دَ حرف عطف نه بغير ده.(٢)

**قوله:** قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: ثُمَّ سَأَلْتُ، شيخ الحديث مولانا محمد زکريا کاندهلوی رحمه الله فرمائي چه دَ سوال وجه داده چه دَ روايت نه په ظاهره اهمال عمل په پوهه کښې راځي او نورو روايتونه عمل غواړي نو هغوی سوال اوکړو چه آيا دا صَحيح محفوظ دې يا دَ نسيان طريان شوي دې.(٣)

**قوله:** مِنْ سَرَاتِهِمْ، داجمع ده دَدې واحد "سری" دې، دَدې معنی "من خيارهم" يعنی دَ قوم دَ سردارانو نه يو.(٤)

په روايت باب کښې دَ محمود بن الربيع رحمه الله دَ حضرت عتبان بن مالک رضي الله عنه نه دَ سماع صراحت نشته دې. په دې وجه امام بخاری دويم سند راوړلو سره دَ محمود بن الربيع تصديق اوکړو. دَ صحيحين نه علاوه دَدې حديث په دويم طريق کښې دَ محمود بن الربيع دَ حضرت عتبان بن مالک رضي الله عنه نه دَ سماع تصريح شته.(٥)

**دَ روايت دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَمذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت اومطابقت پوره شان سره واضح دې چه ترجمة الباب او روايت دواړو کښې په خپل کور کښې په قائميدونکي جمات کښې په جمع سره دَ مونځ ادا کولو ذکر دې.(٦)

**دَ حديث شريف نه مستنبط شوی فوائد او احکام:** دَمذکوره حديث شريف نه ډيرزيات فوائد او احکام معلوميږي په کوم کښې چه څه دلته لاندې نقل کولې شي:

① دَ عذر دَ وجې دَ جمع نه پاتې کيدل او په کورکښې خپل مونځ کول جائز دی.(٧)
② په نيکانو خلقو په يو ځائی کښې په مونځ کولو سره برکت حاصلول جائز دی.(٨)
③ دَ برکت دَ حاصلولو په غرض څوک خپل کور ته راوغوښتې شی نو هغه له هم پکاردی چه دَده دعوت قبول کړی.(٩)
④ دَ مذکوره حديث نه دَ وعدې پوره کولو او سرته دَ رسولو هم علم کيږی.(١٠)

---

(١) فتح الباري: ٦٧٦/١.
(٢) عمدة القاري: ٢٥٠/٤.
(٣) تقرير بخاري شريف: ١٥٨/٢.
(٤) فتح الباري: ٦٧٦/١ عمدة القاري: ٢٥٠/٤.
(٥) عمدة القاري: ٢٥١/٤.
(٦) عمدة القاري: ٢٤٦/٤.
(٧) شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥١/٤.
(٨) شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٤٢/٥ عمدة القاري: ٢٥١/٤.
(٩) شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٤٢/٥ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
(١٠) شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.

⑤ کله چه کور ته څوك نيك بنده يا عالم وغيره راوغوښتې شي نو دَ هغه دَ خوراك څښاك په څه خيز سره اكرام هم كول پكاردي .[1]

⑥ داهم معلوميږي چه دَ حاكم په وړاندې دَ يو فاسق وغيره باره كښې خبر وركول جائز دي.[2]

⑦ دا هم معلومه شوه چه كله دَ جمعې وخت وي اودَ مونځ گذارو نه څوك چرته غيب وي نو امام له پكاردي چه دَ هغه باره كښې تپوس پوښتنه او كړي.[3]

⑧ داهم معلومه شوه چه دَ يو كشر دَپاره خپل مشر دَ څه مصلحت په غرض خپل خوا له په راغوښتلو كښې څه بې ادبي يا حرج نشته دي.[4]

⑨ دَ كور والو په رضا او اجازت سره دَمیلمه دَ كوربه په كور كښې په جمع مونځ كول جائز دي.[5]

⑩ دَ چاكورته دَ داخليدو اجازت اخستل پكاردي اگرچه راتلونكې سړې دَ هغوى په رابللو راغلې وى.[6]

⑪ داهم معلومه شوه چه چرته يو بزرگ شخصيت راځى نو دَ هغه دَ زيارت وملاقات دَ پاره حاضريدل پكاردي.[7]

⑫ په كوركښې دننه يو ځائى دَ مونځ دَ پاره مستقل كولو كښې هيڅ حرج نشته. په خلاف دَ جمات چه هلته دَ يو مونځ گذار يو ځائى مستقل كول مكروه دي.[8]

⑬ دَ كوم سړى مرگ چه په توحيد باندې وى هغه به هميشه په دوزخ كښې نه وى.[9]

⑭ دَ نابينا سړى دَ امامت جواز هم معلوميږي.[10]

⑮ دَ جمات نسبت دَ قوم طرف ته دَ كولو جواز هم معلوميږي.[11]

⑯ دَ يو سړى په خپل ځان باندې دَ واقع كيدونكې مصيبت خبر وركول په شكايت كښې داخل نه دى.[12]

---

[1] شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[2] شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٥٥/٥ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[3] شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٥٥/٥ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[4] شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٤٦/٥ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[5] شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٥٣/٥ عمدة القاري: ٢٥١/٤.
[6] شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٤٦/٥ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[7] شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[8] شرح الكرماني: ٨٦/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤٥١/٥ عمدة القاري: ٢٥١/٤.
[9] شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[10] شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥١/٤.
[11] شرح الكرماني: ٨٦/٤ عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[12] عمدة القاري: ٢٥١/٤.

⑤ په کور کښې جمات جوړول مباح دي ليکن دا جوړشوې جمات به شرعي جمات نه وي، لهذا دَدې خرڅول به جائز وي.[1]

## ۱۵ - بَابٌ: التَّيَمُّنِ فِي دُخُولِ الْمَسْجِدِ وَغَيْرِهِ

داباب په جمات کښې ښې خپې سره دَ داخليدو او (جمات ته دَ داخليدو نه علاوه) دَنورو کارونو دَ ښې طرف نه دَ شروع کولو باره کښې دې.

**دَترجمة الباب تشريح:** دَ ترجمة الباب تشريح کولو سره علامه کرماني رحمه الله ليکلي دي چه دَ لفظ "غيره" عطف به په "دخول" باندې وي نه په "مسجد" باندې او دغه شان "التيمن" باندې به هم عطف نه وي.[2] حافظ ابن حجر رحمه الله هم دَ علامه کرماني رحمه الله والا قول اختيار کړې دې.[3] علامه عيني رحمه الله دَ دواړو حضراتو تحقيق ذکر کولو نه پس فرمائي چه دَدې خبرې هيڅ وجه نشته دې چه دَ لفظ "غيره" عطف په مسجد باندې اونه کړې شي بلکه دَدې عطف خو په مسجد باندې صحيح دې. نو اوس به مطلب دا شي چه که مسجد وي او که غير مسجد يعني کور وغيره هر دواړو ځايونو کښې دخول هم په ښې خپې سره کول پکار دي.[4]

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله هم دغه خبره ارشاد فرمائي: **قوله: وغيره،** دَدې عطف په دخول باندې دې او په مسجد باندې هم دَدې عطف کيدې شي. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په دخول باندې عطف کول زيات مفيد دي. حضرت شيخ صاحب رحمه الله فرمائي چه زما په نيزدويم احتمال (په مسجد باندې عطف کول) راجح دې او غرض دا چه دَ حضور پاک دَ ټولو امورو عموم کښې مسجد ته تلل هم شامل دي. مطلب دا چه دَمسجد نه علاوه په نورو متبرک ځايونو کښې هم دَ ښې طرف خيال ساتل پکار دي.[5]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه ما په شروع کښې بيان کړې وو چه امام بخاري رحمه الله ۵۵ ابواب دَمساجد ذکر کړي دي او په دغه ابوابو کښې هغوی درې څيزونه ذکر کوي. يو هغه افعال کوم چه په جمات کښې کول جائز دي. دويم دَ مسجد آداب او دريم هغه امور دکومو چه په جماتونو کښې کول دَ احترام خلاف دي. نو حضرت امام بخاري رحمه الله دلته دا ادب ذکر کړو چه جمات ته دَ داخليدو ادب دادې چه اول دې ښې خپه داخله کړې او دَدې وجه داده چه جمات متبرک ځائې دې او ښې خپه مکرم ده. لهذا دَ متبرک دَ پاره دې مکرم استعمال کړې شي او دَ جمات نه وتلو کښې دَدې خلاف يعني گسه خپه دې اول اوباسي.[6]

---

[1] ) التوضيح لابن الملقن: ٤٤٢/٥.
[2] ) شرح الكرماني: ٨٦/٤.
[3] ) فتح الباري: ٦٧٨/٢.
[4] ) عمدة القاري: ٢٥٢/٤.
[5] ) الأبواب والتراجم: ٢١٢/٢.
[6] ) تقرير بخاري شريف: ١٥٨/٢ سراج القاري: ٧/٣.

تعليق: وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ: «يَبْدَأُ بِرِجْلِهِ الْيُمْنَى فَإِذَا خَرَجَ بَدَأَ بِرِجْلِهِ الْيُسْرَى»

**دَ تعليق ترجمه:** حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به جمات كښې دَ داخليدو په وخت اول خپله ښي خپه دننه كيخودله او كله چه به وتلو نو اول به ئې ګسه خپه بهر راويستله.

**دَتعليق تخريج:** امام بخاري رحمه الله مرفوعا هيڅ يوروايت نه دې پيش كړې. البته دَ صحابي عمل ئې دَدې عمل دَ پاره ذكر كړې دې. اوحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما چه به په سنت باندې په خومره سختئ سره عمل كونكې وو هغه دَنمر په شان ښكاره ده. البته دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَدې فعل تائيد دَ المستدرك للحاكم دَ يو روايت نه كيږي.([1]) په كوم كښې چه حضرت انس رضي الله عنه دا فرمائي چه داعمل سنت دې چه كله ته جمات ته داخليږې نو دَ ښي خپې داخليدوسره شروع كوه او كله چه راوځې نو په ګس قدم سره دَ وتلو شروع كوه.

اوس هم دا روايت ولې امام بخاري رحمه الله پيش نه كړو. نودَدې جواب دادې چه داحديث دَهغوي دَ شرائطو مطابق نه وو. په دې وجه هغوي دَدې په ځائې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما اثر پيش كولو باندې اكتفاء كړې ده.([2])

شارحينو په خپلو كتابونو كښې داخبره ليكلې ده چه دَ صحابي رسول "من السنة كذا" وئيل دَ نبي عليه السلام نه مرفوعاً ثبوت باندې محمول وي.([3])

**دَ تعليق مقصد:** خپله مدعا ثابتولو دَپاره چونكه امام بخاري رحمه الله سره دَ هغه دَ شرائطو مطابق څه مرفوع حديث نه وو په دې وجه هغوي دا اثر دَ صحابي ذكركولو سره دَ خپلې قائم كړې شوې ترجمې اثبات كړې دې.

**دَ تعليق دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَتعليق او دَ ترجمة الباب مطابقت دَ دواړو دَ مضمون نه بالكل ښكاره دى چه په دواړو كښې جمات ته داخليدل ښي خپې سره كيدل ذكر دى.([4])

حديث باب [حديث نمبر ۴۱۶]

| ۴۲۶- حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ([5]) كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ فِي طُهُورِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَتَنَعُّلِهِ. |
|---|

**دَ حديث ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه څومره به ممكن كيدې شوه دومره به رسول

---

[1]) حدثنا أبوحفص عمر بن جعفر المفيد البصري ثنا أبوخليفة القاضي ثنا أبوالوليد الطيالسي ثنا شداد أبوطلحة قال سمعت معاوية بن قرة يحدث عن انس بن مالك أنه كان يقول: "من السنة إذا دخلت المسجد أن تبدأ برجلك اليمنى، وإذا خرجت أن تبدأ برجلك اليسرى" هذا حديث صحيح على شرط مسلم. (المستدرك على الصحيحين، كتاب الصلاة، رقم الحديث: ۷۹۱، ۲۱۸/۱).

[2]) فتح الباري: ۶۷۸/۱.

[3]) فتح الباري:۶۷۸/۱عمدة القاري: ۲۵۲/٤.

[4]) عمدة القاري: ۲۵۲/٤.

[5]) مرتخريجه تحت الحديث، الرقم: ۱۸۶، كشف الباري، كتاب الوضوء، باب: التيمن في الوضوء والغسل.

الله ﷺ په هرکارکښې دَ ښی طرف نه شروع خوښوله. مثلاً طهارت حاصلولو کښې، ګمنزه کولو کښې او پیزار اچولو کښې.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول شپږ رجال دی:

① **سلیمان بن حرب** رحمه الله: دا سلیمان بن حرب بن بجیل بصری رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی ذکر کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من کره أن یعود فی الکفر کما یکره أن یلقی فی النار من الإیمان کښې تیرشوې دې.(۱)

② **شعبه** رحمه الله: دا شعبه بن الحجاج رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی ذکر کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من سلم المسلمون من لسانه ویده کښې تیرشوې دې.(۲)

③ **الأشعث بن سلیم** رحمه الله: دا الاشعث بن سلیم رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی ذکر کشف الباری، کتاب الوضوء باب: التیمن فی الوضوء والغسل دَ دویم حدیث لاندې تیرشوې دې.(۳)

④ **أبیه** رحمه الله: دا سلیم بن الاسود المحاربی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی ذکر کشف الباری، کتاب الوضوء باب: التیمن فی الوضوء والغسل دَ دویم حدیث لاندې تیرشوې دې.(۴)

⑤ **مسروق** رحمه الله: دا مسروق بن الاجدع بن مالك همدانی کوفی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی ذکر کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: علامة النفاق، الحدیث الثانی کښې تیرشوې دې.(۵)

⑥ **عائشه** رضی الله عنها: دا ام المؤمنین حضرت عائشه بنت ابی بکرصدیق رضی الله عنهما ده. دَدوی تفصیلی ذکر کشف الباری، کتاب بدء الوحی دَ دویم حدیث لاندې تیرشوې دې.(۶)

**دَ حدیث شرح:**

**قوله:** عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ، فِي طُهُورِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَتَنَعُّلِهِ»:

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه څومره به ممکن کیدې شوه روسل الله ﷺ به دومره خپل هرکار دَ ښی طرف نه شروع کول خوښول. (مثلاً) طهارت حاصلولو کښې، ګمنزل کولو کښې او پیزار اچولو کښې.

دَ مذکوره حدیث شریف تفصیلی شرح کتاب الوضوء، باب: التیمن فی الوضوء والغسل دَدویم حدیث لاندې تیره شوې ده. هلته مراجعت او کړئ. دلته څه ضروری تشریح ذکرکولې شی.

---

(۱) کشف الباری: ۱۰۵/۲.
(۲) کشف الباری: ۶۷۸/۱.
(۳) کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: التیمن فی الوضوء والغسل.
(۴) کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: التیمن فی الوضوء والغسل.
(۵) کشف الباری: ۲۸۱/۲.
(۶) کشف الباری: ۲۹۱/۱.

**قوله:** يُحِبُّ التَّيَمُّنَ، دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها چونكه حضورپاك سره ډير زيات محبت وو په دې وجه هغې ته دَ نبى اكرم ﷺ دَ محبوب عادت معلوميدل قرين قياس دى. اوس داعلم څنګه اوشو؟ نودَدې جواب دادې چه دا علم پخپله دَ نبى كريم ﷺ په خودلوسره كيدل هم ممكن دى اودَ هغوى قرائنو نه اندازې لګولو په ذريعه هم ممكن دى. والله اعلم بالصواب.[1]

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دَدې روايت دَ عموم نه تيمن فى دخول المسجد باندې استدلال كړې دې چه كله ئې په هر څيز كښې ښى طرف خوښولو نو جمات ته دننه داخليدل كوم چه يو متبرك عمل دې په دې كښې به ئې په درجهٔ اولى دا خوښولو.[2]

**قوله:** مَا اسْتَطَاعَ، دَكلمهٔ ما باره كښې، علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا موصوله هم كيدې شى اودَ تيمن نه بدل هم كيدې شى اودَ مَا دام په معنى هم كيدې شى.[3]

ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دې لفظ سره دا احتمال راوځى چه مقصود دَهغه څيزونونه احتراز كول دى كوم چه كول په شرعى توګه په ښى لاس سره صحيح نه دى. مثلاً دَ جمات نه وتل، ليټرين كښې داخليدل وغيره. دغه شان ناخوښه كارونه هم په ښى لاس سره نه شى كولې لكه استنجاء كول، دَ پوزې نه بلغم صفا كول وغيره.[4]

**قوله:** فِي شَأْنِهِ: دَدې جار مجرور تعلق به التيمن سره وى داهم ممكن ده چه دَ المحبة سره متعلق وى او دَدې هم احتمال دې چه دواړو سره متعلق وى، دَتنازع په توګه.[5]

**قوله:** طُهُورِهِ: دا لفظ دَ طاء په ضمې سره دې. دَدې معنى طهارت حاصلول دى. يعنى اودس كول. او "ترجُّله" معنى ويښتو كښې ګمنزل كول دى. او "تنعُّله" معنى په خپو پيزار اچول دى. "طُهوره" په تركيبى اعتبار سره دَ "شأنه" نه بدل دې. بدل البعض من الكل دَ قبيل نه.

علامه عينى رحمه الله په دې تركيبى احتمال باندې يو سوال او دَهغې جواب هم نقل كړې دې. كه چرې دا بدل البعض من الكل دَ قبيل نه اوګرځولې شى نو په دې سره بعضې امورو كښې دَ ښى طرف اهتمام كول مستحب كيدل ثابت شى. حالانكه دَ "فى شأنه" دَ دې تاكيد "كله" تقاضا داده چه استحباب دې په ټولو امورو كښې وى نه چه په بعضې امورو كښې. نودَدې جواب دادې چه دا تخصيص بعد التعميم دې. او په دې دريو كارونو كښې دَ ښى طرف نه شروع كول

---

[1] فتح البارى: ۶۷۸/۱ علامه عينى رحمه الله دا خبره دَ سوال او جواب په انداز كښې ذكركړې ده چه محبت خو امرباطنى دې. نوحضرت عائشه رضي الله عنها په دغه امر باطنى څنګه خبر شوه؟ نودَدې ئې هم هغه جواب ذكركړې دې كوم چه پورته ذكرشو. (عمدة القارى: ۲۵۳/۴)

[2] الكنزالمتوارى: ۱۲۵/۴ الأبواب والتراجم: ۲۱۲/۲ تقرير بخارى شريف: ۱۵۸/۲.

[3] عمدة القارى: ۲۵۳/۴.

[4] فتح البارى: ۶۷۸/۱

[5] عمدة القارى: ۲۵۳/۴.

دَدې شرف او دَدې دَ اهميت دَ وجې نه دې. بل بدل دى بدل الكل من الكل او گرځولې شى نو بيا هم صحيح دې. په دې توګه چه "طهور" دَ ټولو عباداتو كنجى ده. "ترجل" يعنى دګمنزلو تعلق دَ سر سره دې او دَ "تنعل" تعلق دَ خپو سره دې او دَ انسان ټول احوال يا خو دَده دَ پورته حصې سره متعلق وى يا لاندې حصې سره يا دَ اطرافو سره، نو په دې كښې ئى دَ هر حالت سره متعلق هم دَهغې په شان لفظ ذكر كړو. دې دَ پاره چه دَ ټولو احوالو احاطه اوشى.[1]

**دَ حديث مبارک دَ ترجمة الباب سره ربط:** دَدې حديث دَ ترجمة الباب سره ربط دَدې حديث شريف دَعموم په وجه دې ځكه چه لى شأنه كله كښې نورو كارونو سره جمات ته داخليدل هم دى.[2]

## ١٦ - بَابٌ: هَلْ تُنْبَشُ قُبُورُ مُشْرِكِي الجَاهِلِيَّةِ، وَيُتَّخَذُ مَكَانُهَا مَسَاجِدَ

لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَعَنَ اللَّهُ اليَهُودَ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ»

[ر: ١٣٢٤]

وَمَا يُكْرَهُ مِنَ الصَّلاَةِ فِي القُبُورِ، وَرَأَى عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يُصَلِّي عِنْدَ قَبْرٍ، فَقَالَ: «القَبْرَ القَبْرَ» وَلَمْ يَأْمُرْهُ بِالإِعَادَةِ

داباب په دې باره كښې دې چه آيا دَ جاهليت دَمشركانو قبرونه كنستل او دَ هغې په ځائى جماتونه جوړول جائز دى؟ ځكه چه نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چه دَ الله تعالى لعنت دې وى په يهوديانو باندې، ځكه چه هغوى دَ خپلو انبياؤ په قبرونو باندې جماتونه جوړكړل. او (دا باب په دې باره كښې دې چه) په قبرستان كښې مونځ كول صحيح نه دى. چنانچه يو ځل حضرت عمر رضي الله عنه حضرت انس رضي الله عنه (دَ لاعلمئ دَ وجې) دَ قبر سره په مونځ كولو باندې اوليدلو نو قبر قبر وئيلو سره ئى هغه خبردار كړو خو دَ مونځ دَ واپس راګرځولو حكم ئى ورته اونه كړو.

**دَ ترجمة الباب تشريح:** امام بخارى رحمه الله باب قائم كړې دې: هل تنبش قبور مشركى الجاهلية ويتخذ مكانها مساجد، آيا دَ جاهليت دَ مشركانو قبرونه به وران كړې شى او دَ هغې په ځائى جماتونه جوړولى شى؟ "هل تنبش" ئى فرمائيلى دى او هل دَ استفهام دَپاره راځى دكوم معنى چه به داسې شى آيا داسې كيدلى شى؟ جواب به وى آوجى داسې كيدې شى. ليكن په عام توګه دَ شارحينو رائې داده چه دلته هل دَ قد په معنى دې. سوال جوړول او بيا دَ هغې جواب راويستل، دَدې ضرورت نشته دې.

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى: ﴿هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ﴾ په دې آيت كښې چه ځنګه

[1]) عمدة القارى: ٢٥٣/٤.
[2]) عمدة القارى: ٢٥٢/٤.

هل په معنی د قد دي دغه شان دلته هم هل د قد په معنی دي.(١) حضرت ابن عباس رضي الله عنهما، امام زجاج، امام فرا او امام مبرد رحمهم الله ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ﴾ په دې آيت كښې هل د قد په معنى گرځولې دې.(٢) دلته هم دا د قد په معنى اخستې شي. اوس به د دې مطلب دادې چه وى مشركانو به د جاهليت قبرونه به ورانولى شى او هلته به جماتونه جوړولې شى.

ليکن حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه د شارحينو رائې داده چه "هل" د قد په معنی دې او د دې وجه داده چه په روايت کښې د مسجد نبوی د جوړولو ذکر دې او په دې کښې تصريح ده چه د مشرکانو د قبرونو نبش کړې شوې وو نو بيا هل په خپل اصلی معنی اخستل غلط دی. په دې وجه دا د "قد" په معنی دې او زما په نيز قد په خپله اصل معنی دې لکه چه وړاندې به ئې بيان کړم.(٣)

**قوله:** لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَعَنَ اللَّهُ الْيَهُودَ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ»:(٤)

ترجمة الباب کښې يوه خبره ذکر کولو نه پس امام بخاری رحمه الله "لقول النبی صلى الله عليه وسلم: "لعن الله اليهود، اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد" فرمائيلی دی.

په دې سلسله کښې حافظ ابن حجر، علامه قسطلانی او د دوی نه مخکښې علامه کرمانی رحمهم الله تقرير د استدلال دا کړې دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د لعنت تخصيص کړې دې د انبياء عليهم الصلاة والسلام په قبرونو باندې د جماتونه جوړونکو سره. د دې نه معلومه شوه چه که د انبياؤ علهم السلام قبرونه نه وی بلکه د نورو قبرونه وی مثلاً د کافرانو قبرونه دی نو د نبش نه پس هلته جمات جوړولو کښې به هيڅ قباحت نه وی.

د انبياؤ عليهم السلام په قبرونو باندې که چرې جمات جوړ کړې شی نو د دوؤ حالاتونه به خالی نه وی يا خو به قبرباقی ساتلو سره جمات جوړولې شی نو إفضاء إلى الشرك به لازم شی.

---

(١) إرشادالساري: ٨٦/٢.

(٢) تنوير المقباس من تفسير ابن عباس، سورة الإنسان، رقم الآية:١، ٤٩٥/١. معاني القرآن وإعرابه للزجاج، سورة الإنسان، رقم الآية:١، ٢٥٧/٥. معانى القرآن للفراء، سورة الإنسان، رقم الآية:١، ٢١٣/٣دارالنصريه. و"هل" تخرج من حدالمسألة فتصير بمنزلة "قد" نحو: قوله عزوجل ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا﴾ المقتضب للمبرد، هذا باب أم، وأو، ٢٨٩/٣، وزارة الأوقاف لجنة إحياء التراث الإسلامی.

(٣) تقرير بخاری شريف: ١٥٨/٢.

(٤) دا تعليق امام بخاری رحمه الله په نورو مقاماتو کښې موصولاً نقل کړې دې، وئی گورئی:
حدثناموسى بن إسماعيل، حدثنا أبوعوانة، عن هلال هو الوزان، عن عروة، عن عائشة رضى الله عنها قالت:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم فى مرضه الذى لم يقم منه: لعن الله اليهود والنصارى اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد. لو لا ذلک أبرزقبره غير أنه خشى – أو خشى – أن يتخذ مسجدا: (صحيح البخاري، كتاب الجنائز، باب: ماجاء فى قبرالنبى صلى الله عليه وسلم، رقم الحديث: ١٣٩٠) وأيضاً بهذا السند حدثنا الصلت بن محمد، حدثنا أبوعوانة، عن هلال الوزان، عن عروة بن الزبير، ؤ عن عائشة رضى الله عنها، قالت:........ (صحيح البخاري، كتاب المغازي، باب: مرض النبى صلى الله عليه وسلم ووفاته، رقم الحديث): ٤٤٤١).

او که چرې د انبیاء کرامو علیهم الصلوة والسلام د قبرونو نبش اوکړې شي نو هغه به ورانولې شي نو سپکاوې به لازم شي په خلاف د کافرانو او مشرکانو د قبرونو چه د هغې په نبش کښې د سپکاوی هیڅ سوال نشته. هغه د احترام مستحق نه دی. لهذا د کافرانو او مشرکانو د قبرونو په ځائې د نبش نه پس جمات جوړولو کښې هیڅ بدیت نشته دې. او صالحین چونکه د انبیاؤ علیهم الصلاة والسلام سره ملحق دی لهذا د انبیاؤ په قبرونو باندې هم او د صالحینو په قبرونو باندې هم جمات جوړونکی به د لعنت مستحق وی.(۱)

**د لعنت په سبب کښې د علامه نووی رحمه الله تشریح:** علامه نووی رحمه الله فرمائی چه د علماء کرامو د بیان مطابق د دې ممانعت مقصد دا دې چه چرته د قبر په تعظیم کښې مبالغه اونه کړې شی او خلق په خپله عقیده کښې خلل پیدا کولو سره په فتنه کښې پرېنوځی. ځکه چه بیا هم دغه څیز کفر ته رسوی لکه ځنګه چه په پخوانو امتونو کښې دا سې شوی دی.(۲)

**د لعنت په سبب کښې د ملاعلی قاری رحمه الله تشریح:** ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه د لعنت سبب خو یا دا وو چه یهودیانو به د انبیاؤ په قبرونو باندې تعظیمی سجدې کولې کوم چه شرك جلي وو. یا دا وو چه هغوی به د الله تعالی مونځ د انبیاء په قبرونو کښې د هغوی قبرونو طرف ته توجه کولو سره ادا کولو چه عبادت د الله او تعظیم د انبیاؤ دواړه په یو ځائې سر ته اورسوی کوم چه شرك خفی وو ځکه چه په دواړو کښې حدود د اذن خداوندی نه متجاوز شوې وو. دا زمونږ ائمو کښې بعضې شارحینو ذکرکړی دی.(۳)

**د لعنت په سبب کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله تشریح:** لیکن حضرت ګنګوهی رحمه الله چه د استدلال کوم تقریر فرمائیلې دې هغه دا دې چه حضور پاك لعنت فرمائیلې دې د تشبه بعبادة الأصنام د وجې نه. او تشبه به هله لازمیږی چه کله به قربانی کیږی. لهذا چه د صالحینو او انبیاؤ قبرونه وی او هغه برابر کړې شي یا دا چه د هغوی عظام راویستلی شی او په ادب او احترام سره چرته بل مقام کښې دفن کړی شی نو بیا هلته جمات جوړول هم جائز دی او ترکومې چه تعلق دې د مشرکانو د قبرونو نو په هغې کښې نبش متعین اومقرردې. د هغوی هډوکی به راویستې شي او غورزولې به شی او په هغه ځائې به جمات جوړولې شی.(۴)

علامه طحطاوی رحمه الله د مراقی الفلاح په حاشیه کښې دا لیکلی دی چه د میزاب رحمت لاندې د حجر چه کوم ځائی دې هلته د حضرت اسماعیل علیه السلام قبر دې او د حجر اسود او مقام ابراهیم په مینځ کښې د ۷۰ انبیاؤ علیهم الصلاة والسلام قبرونه دی. لیکن چونکه زمکه برابر کړې شوې ده او د قبر نشان باقی پاتې نه دې لهذا هلته جمات دې او په دې کښې څه

---

(۱) شرح الکرمانی: ۸۸/٤ فتح الباری: ۶۷۹/۱ إرشادالساری: ۸۷/۲.

(۲) شرح النووی علی صحیح مسلم، کتاب المساجد ومواضع الصلوة،باب: النهی عن بناء المسجد علی القبور واتخاذ الصور: ۱۳/۵.

(۳) مرقاة المفاتیح، کتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة: ۳۸۹/۲.

(۴) لامع الدراری: ۱۶۵/۱.

حرج او مضائقه نشته دي.[1]

**د لعنت په سبب کښې د کشمیری رحمه الله تشریح:** دې نه علاوه حضرت مولانا محمد انورشاه کشمیری صاحب د نکتې یوه خبره ذکرکړې ده چه ومایکره من الصلوة في القبور کښې "ما" موصوله او که چرې "من" بیانیه دی نو د دې مطلب به داوی چه په قبرستان کښې مونځ مکروه دې. لیکن "من" که چرته تبعیضیه واخستلې شي نوبیا به د دې مطلب دا وی چه امام بخاری د صلوة في القبر کراهت بیانوی. که چرې بالکل مخامخ وی نو کراهت به ډیر سخت وی او که چرې قبر ښې طرف ته وی نو د مخامخ کیدو په مقابله کښې به کم کراهت وی او چه گس طرف ته وی نو د ښی طرف په مقابله کښې به نور هم کم کراهت وی. او که چرې شاته وی نوبیابه هډو کراهت نه وی.[2]

**د لعنت په سبب کښې د علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله تشریح:**

**قوله:** لعن الله اليهود، بعضې روایتونو کښې د نصاری هم ذکرراغلې دې. هلته اشکال راځی چه د نصاراؤ د نبی یعنی د عیسی علیه السلام خو قبر نشته دې بیا په هغوی باندې "اتخذوا قبور انبيائهم....." څنگه صادق علیه السلام لعنت اوکړو؟ چا دا جواب ورکړو چه یهودو چه د کوم انبیاؤ سابقین مثلاً ابراهیم علیه السلام وغیره منل نصاری هم نیزدې نیزدې هغه ټول منل نو د هغوی د قبرونو سره به ئې داسې کول.

لیکن صحیح جواب دادې چه د مسلم په روایت کښې یو لفظ زائد دې. "قبور انبيائهم وصلحائهم" نو اوس هیڅ اشکال باقی پاتې نه شو. آخر صالحین د هغوی په نیز هم وو هغوی سره به ئې دا معامله کوله. والله اعلم.[3]

**د لعنت په سبب کښې د حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله تشریح:** د دې نه استدلال داسې دې چه حضورپاك د انبیاء کرامو قبرونه جماتونه جوړونکو باندې لعنت فرمائیلې دې نو د مشرکانو به څه حال وی؟ لهذا که چرته هلته د جمات د جوړولو ضرورت وی نو د مشرکانو د قبرونو نبش به کولې شی.[4]

**د قبرمخامخ د مونځ کولو حکم:**

**د احنافو مذهب:** د احنافو په نیز په قبرستان کښې که چرته د مونځ د پاره جدا څه ځائی جوړکړې شوې وی یعنی متعین کړې شوې وی او هغه ځائی کښې څه قبر نه وی، نه څه پلیتی وی او نه د مونځ کونکی مخې ته څه قبر وی یعنی د مونځ گذار قبله د قبر طرف ته نه

---

[1] ) حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح.ص: ٣٥٧-٣٥٦ وكذافي مرقاة المفاتيح. كتاب الصلاة. باب المساجد ومواضع الصلاة: ٣٨٩/٢.

[2] ) فيض الباري: ٣٨/٢.

[3] ) فضل الباري: ١٤٠/٣-١٣٩.

[4] ) تقريربخاري شريف: ١٥٨/٢.

وي نو داسې ځائې کښې مونځ کول مکروه نه دي. او که قبر نشي، ګس يا شاته وي يا چه قبر مخې ته وي او دې د ستري مخې ته مونځ او کړې نو بيا هم څه کراهت نشته دې. او بغير د څه حائل د قبر مخې ته مونځ کول صحيح نه دي.(۱)

**د مالکيو مذهب:** د مالکيو په نيز په قبرستان کښې مونځ ادا کول جائز دي که هغه قبرستان آباد وي که آباد نه وي، بلکه وران شوې وي د هغې نه مړي راويستلې شوې وي که نه وي راويستلې شوي، که هغه قبرستان د يو مسلمان وي او که د مشرکانو، په هرصورت کښې مونځ کول جائز دي.(۲)

**د حنابلو مذهب:** د حنابلو په نيز په قبرستان کښې مونځ کول جائز نه دي که قبرستان زوړ وي او که نوې، د هغه ځائې نه مړي ويستلې شوي وي او که نه وي ويستلې شوي. د دوي نه نقل دي چه د قبرونو نه چاپيره چه کوم ځائې هم د قبرستان د نوم لاندې راځي هلته مونځ ادا کول جائز نه دي.

**د حنابلو په نيز د قبرستان تعريف:** البته د قبرستان په تعريف کښې د حنابلو نه نقل دي چرته چه د دريو نه زيات قبرونه وي هغې ته به قبرستان وئيلې شي ليکن که قبرونه د دريو نه کم وي نو هغې ته به د قبرستان نوم نه شي ورکولې. او هلته به مونځ ادا کول هم جائز وي. دغه شان که په کور کښې دننه مړي ښخ کړې شوې وي نو هلته هم مونځ ادا کول جائز دي اګرچه هلته د دريو نه زيات قبرونه وي ځکه چه دې ته هم د قبرستان نوم نه شي ورکولې.(۳)

**د شوافعو مذهب:** د شوافعو په نيز په دې مسئله کښې لږ تفصيل دې. د هغوي په نيز که د قبرستان نه مړي ويستلې شوي وي نو دغه ځائې کښې مونځ کول په اتفاق (عندالشوافع) صحيح نه دي. ځکه چه زمکې سره د مړو پيپ وغيره شامل شوې وي. دا حکم په هغه صورت کښې دې چه کله په دغه د قبرستان والا زمکه باندې څه کپړا خورولو نه بغير مونځ ادا کړې شي. او که چرته څه کپړا وغيره خورولو سره مونځ ادا کړې شي نو د کراهت سره به مونځ ادا شي. او که د قبرستان نه مړي نه وي ويستلې شوي نو د هغوي په نيز بغير د څه اختلافه په دغه زمکه باندې مونځ ادا کول صحيح دي. البته مکروه تنزيهي دي. د جواز وجه داده چه په

---

(۱) ردالمحتار، كتاب الصلاة، مطلب في تعريف الإعادة: ۴۲۵/۲ دارعالم الكتب. البحرالرائق، كتاب الجنائز، فصل: السلطان أحق بصلاته: ۳۴۱/۲. فتاوى قاضي خان على هامش الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة: ۲۹/۱. الموسوعة الفقهية الكويتية، حرف الميم، المقبرة، الصلاة في المقبرة: ۳۴۶/۳۸. فضل البارى: ۱۳۹/۳.

(۲) المدونة الكبرى، كتاب الصلاة، الصلاة في المواضع التي تكره فيها الصلاة: ۱۸۲/۱. مناهج التحصيل ونتائج لطائف التأويل في شرح المدونة وحل مشكلاتها، كتاب الصلاة، المسألة التاسعة في المواضع الذي تجوزفيه الصلاة وما تكره فيه الصلوات: ۳۳۰/۱-۳۲۹. الموسوعة الفقهية الكويتية، حرف الميم، المقبرة، الصلاة في المقبرة: ۳۴۶/۳۸.

(۳) الكشاف القناع عن متن الاقناع، كتاب الصلاة، باب: اجتناب النجاسة ومواضع الصلاة، فصل: في بيان المواضع التي نهي عن الصلاة فيها: ۲۹۸، ۲۸۹/۱. الإنصاف في معرفة الراجح من الخلاف للمرداوي، كتاب الصلاة، الأماكن التي لا تصح الصلاة فيها كالمقبرة ونحوها: ۴۹۱/۱-۴۸۹. نيل المآرب بشرح دليل الطالب، كتاب الصلاة، باب: شروط الصلاة، الموضع المنهي عنها: ۱۲۸/۱. الموسوعة الفقهية الكويتية، حرف الميم، المقبرة، الصلاة في المقبرة: ۳۴۶/۳۸.

كومه زمكه باندې مونځ اداكولې شي هغه پاكه ده او د كراهت وجه داده چه مونځ په قبرستان كښې اداكيږي كوم چه د نجاست د دفن كولو ځائې دې.
او كه چرې معامله مشكوك وي چه آيا دَدې قبرستان نه مړي ويستلې شوي دي كه نه. نو د اصح قول مطابق مونځ به سره د كراهت نه صحيح شي. ځكه چه په زمكه كښې اصل دَدې پاكيدل دي د شك په وجه په دې د نجاست حكم نه شي لګولې كيدې. د اصح قول په مقابله كښې يو بل قول دادې چه مونځ نه صحيح كيږي ځكه چه د بنده په ذمه اصل د دې فرض باقي پاتې كيږي او دَدې په ساقط كولو كښې كه چرې شك وي نو شك سره به فرض ساقط نه شي.(١)

**قوله: وَمَا يُكْرَهُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْقُبُورِ:** دَدې جملې باره كښې علامه كرماني رحمه الله دا فرمائيلي دي چه دَدې عطف "هل ينبش قبور مشركي الجاهلية" باندې دې او دا د ترجمې دويم جز دې.
په دې باندې دا اشكال اوكړې شو چه "مايكره من الصلوٰة في القبور" جمله خبريه ده او "هل ينبش قبور مشركي الجاهلية" جمله انشائيه ده. استفهام په دې كښې راځي نو بيا به دا عطف څنګه صحيح شي؟ نو دَدې جواب علامه كرماني رحمه الله دا وركړې دې چه "هل" چونكه هلته د "قد" په معنى دې لهذا هغه هم جمله خبريه ده او "مايكره من الصلوٰة في القبور" هم جمله خبريه ده لهذا په عطف كښې هيڅ مضائقه نشته دې.
او نور شراح هم دا فرمائي چه د "مايكره من الصلوٰة في القبور" عطف په "هل ينبش قبور مشركي الجاهلية" باندې دې. او دا د ترجمې دويم جز دې ليكن دَدې جز ثبوت د حديث شريف نه نه كيږي كوم چه امام بخاري رحمه الله وړاندې بيان كړې دې. په دې وجه شراح فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دَدې جز ثابتولو د پاره د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه اثر نقل كړې دې:

**قوله: وَرَأَى عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يُصَلِّي عِنْدَ قَبْرٍ، فَقَالَ: «الْقَبْرَ الْقَبْرَ»** چه د قبر نه جدا شه دَدې طرف ته مخ كولو سره مونځ مه كوه.

**قوله: ولم يأمره بالإعادة:** ليكن حضرت عمر رضي الله عنه حضرت انس رضي الله عنه ته د مونځ د راګرځولو حكم ورنه كړو. دَدې نه معلومه شوه چه مونځ خو كيږي ليكن مكروه دي دا رائې د شراحو ده.(٢)

**د حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله رائې:** ليكن د حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله رائې دَدې برعكس ده هغوى فرمائي چه دا د ترجمة الباب جز دې او د باب لاندې داخل

---

(١) الحاوى الكبير فى فقه مذهب الإمام الشافعى رحمه الله للماوردى المعروف بشرح مختصر المزنى، كتاب الصلاة، باب: الصلاة بالنجاسة ومواضع الصلاة: ٢٦١/١-٢٦٠. فتح العزيز شرح الوجيز للرافعى رحمه الله مطبوع تحت المجموع شرح المهذب، كتاب الصلاة، الباب الخامس فى شرائط الصلاة: ٣٦/٤. المجموع شرح المهذب، كتاب الصلاة، باب: مواقيت الصلاة، باب: طهارة البدن وما يصلى فيه وعليه: ١٥٨/٣-١٥٧. الموسوعة الفقهية الكويتية، حرف الميم، المقبرة الصلاة فى المقبرة: ٣٤٦/٣٨.

(٢) شرح الكرمانى: ٨٨/٤ فتح البارى: ٦٧٩/١ إرشاد السارى: ٨٧/٢.

دي او په دي باندې دَ عطف نشان هم لګيدلې دې. اوس سوال دا دې چه دَ كراهة صلوة فى المقابر امام بخارى رحمه الله څه روايت نه دې ذكر كړې شراح دَدې جواب دا وركوى چه اثر انس بن مالك رضي الله عنه باندې اكتفاء اوكړې شوه اودَ حضرت انس رضي الله عنه دَ اثر نه استدلال داسې دې چه حضرت عمر رضي الله عنه قبرونو سره په مونځ كولو باندې اوتوكلو او دَ واپس راګرځولو حكم ئې ورنه كړو نومعلومه شوه چه مكروه خو دې ليكن مونځ به اوشي. كه چرې مونځ نه صحيح كيدو نو دَ واپس راګرځولو حكم به ئې وركولو.

اوس اشكال دا دې چه امام بخارى رحمه الله دَدې نه پس يو مستقل باب كراهية الصلوة فى المقابر ترې لهذا ترجمه مكرر شوه اودا خبره په اصولو كښې معلومه شوې ده چه كه چرې دَ تراجم غرض يو وى او الفاظ ئې بدل شى نو دا به تكرار وى. اوكه چرې الفاظ يو وى ليكن اغراض ئې جدا جدا وى نودا به تكرار نه وى. ليكن دلته دَ دواړو بابونو غرض هم يو دې.
شراح دَدې جواب دا وركوى چه دلته دا باب تبعًا دې او راتلونكې باب قصداً دې. مګر زما په نيز په دې باندې اشكال دې چه دَ قصد اوتبع وئيلو ضرورت خو به هغه وخت پيښيږى چه كله چرته بل صورت نه وى اودلته دَدې نه علاوه يو صورت بل هم شته هغه دا چه زما په نيز هل په خپل اصل معنى دې او مطلب دا دې چه آيا دَ جاهليت دَ مشركانو دَ قبرونو نبش اوكړې شى او په هغې جماتونه جوړ كړې شى؟ ځكه چه حضورپاك دَ انبياؤ قبرونه جماتونه جوړونكو باندې لعنت وئيلې دې. نودَ مشركانودَ قبرونو به څه حال وى؟ اودا ځكه چه صلوة فى المقابر مكروه دى نوزما په نيز "ومايكره من الصلوة" دَترجمې جز نه بلكه دَ لام لاندې داخل دې او په قول باندې عطف دې اوداهم يو علت دې، زما دَ قول مطابق چه كله دا په ترجمه كښې داخل نه دې نودَ روايت ضرورت پاتې نه شو. په دې وجه دَ اثر نه دَ ثابتولو هم ضرورت نشته او نه تكرار شو دكوم دَ لرې كولو چه كوشش اوكړې شى؟
اوس دلته اشكال دا دې چه هل په خپل اصل معنى ځنګه صحيح كيدې شى؟ حالانكه دَ مسجد نبوى دَتعمير په وخت دَمشركانودَ قبرونو نبش شوې دې. ددې جواب دا دې چه امام بخارى رحمه الله يو څو ابوابه پس باب: الصلوة فى مواضع الخسف والعذاب ترې. په هغې كښې دا دى چه حضرت على رضي الله عنه په بابل كښې دَ موضع عذاب كيدو په سبب مونځ كول مكروه اوګڼړلو نودَ حضرت على رضي الله عنه كراهت دَموضع عذاب كيدو په سبب وو. اوچرته چه مشركان ښخ شوى وى هغه پخپله موضع عذاب دې. لهذا دَدې طرف ته اشاره كولو دَپاره ئې په ترجمه كښې لفظ هل راوړلو. او كه څوك دا اووائى چه دَ قبرونو دَ نبش نه پس هلته څه پاتې شو؟ نودَدې جواب دا دې چه په بابل كښې كله خسف واقع شوې وو، اوس هلته څه پاتې شوې وو؟ بالكل نه. لهذا لكه ځنګه چه هلته باوجود دَ كراهت دَ موضع عذاب كيدو دَ وجې نه وو، نوداهم موضع عذاب شوې دې.[1]

[1] تقرير بخارى شريف: ١٥٩/٢.

**د حضرت عمر** رضي الله عنه **د اثر تخريج:** حضرت ابن ابى شيبه رحمه الله او عبد الرزاق رحمه الله په خپل خپل مصنف كښې او امام بيهقى رحمه الله په السنن الكبرى كښې په څه اندازه مختلف الفاظو سره دَدې اثر تخريج كړې دې. دَ المصنف لابن ابى شيبه روايت دادې: ((حدثنا حفص، عن حميد، عن أنس، قال أبصرني عمر وأنا أصلي إلى قبر، فجعل يقول: يا أنس! القبر، فجعلت أرفع رأسي أنظر إلى القمر، فقالوا: إنما يعني: القبر)). [1]

المصنف لابن عبد الرزاق كښې دَ موجود اثر الفاظ دادى: ((عبد الرزاق، عن معمر، عن ثابت البناني، عن أنس بن مالك قال: رآني عمر بن الخطاب وأنا أصلي عند قبر، فجعل يقول: القبر، قال: فحسبته يقول: القمر، قال: فجعلت أرفع رأسي إلى السماء، فأنظر، فقال: إنما أقول، القبر، لا تصل إليه، قال ثابت: فكان أنس بن مالك يأخذ بيدي إذا أراد أن يصلي فيتنحى عن القبور)) [2]

السنن الكبرى كښې دَموجود اثر الفاظ دادى: ((أخبرنا محمد بن موسى بن الفضل حدثنا أبو العباس، محمد بن يعقوب حدثنا محمد بن هشام حدثنا مروان بن معاوية حدثنا حميد عن أنس قال: قمت يوما أصلي وبين يدي قبر لا أشعر به، فناداني عمر: القبر القبر، فظننت أنه يعني: القمر، فقال لي بعض من يليني: إنما يعني: القبر، فتنحيت عنه)). [3]

**دَ صالحينو دَ مزاراتو سره نيزدې دَ جماتونو حكم.** نن صبا هرطرف ته دا په كتلو كښې راځى چه كوم يو ځائى كښې هم چه دَ الله والا قبر وى نو هغې سره نيزدې يو جمات هم وى نو دا سې كولو كښې هيڅ حرج نشته دې، صحيح دى. چنانچه علامه عينى رحمه الله په دې باره كښې تحرير فرمائى چه كه چرته دَ يو نيك صالح انسان قبر سره دا سې جمات جوړ شى چه قبر دَ جمات نه بالكل جدا وى. مزار سره نيزدې دَ جمات جوړولو مقصود صرف دَ بركت حاصلول وى، په مونځ كښې دَ صاحب قبر تعظيم يا دَ هغه طرف ته توجه نه وى نو په دې كښې بديت نشته دې دا به په مذكوره وعيد كښې داخل نه وى [4]

---

[1] المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، الصلاة بين القبور، رقم الحديث: ۳۷٥۳۲، ١٤٠/١٤.

[2] المصنف لابن عبدالرزاق، كتاب الصلاة، باب الصلاة على القبور، رقم الحديث: ١٥٨١،٤٠٤/١.

[3] السنن الكبرى للبيهقي، كتاب الصلاة، باب النهي عن الصلاة إلى القبور، رقم الحديث: ٤٤٥٠. تغليق التعليق، كتاب الصلاة، باب: هل تنبش قبور مشركي الجاهلية ويتخذ مكانها مساجد لقول النبي صلى الله عليه وسلم: لعن الله اليهود، اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد، وما يكره من الصلاة في القبور. ورأى عمر أنس بن مالك يصلي عندالقبر، فقال: القبر القبر، ولم يأمره بالإعادة: ٢٢٨-٢٢٩/٢. مسندالفاروق لابن الكثير، كتاب الصلاةباب في مواطن السجود، رقم الحديث: ٧٨، ١٨٧/١. المطالب العالية بزوائد المسانيد الثمانية، كتاب الصلاة، باب: مايصلى إليه وما لا يصلى إليه، رقم الحديث: ٣٣٩، ٤١٧/٣. سلسلة الآثار الصحيحة أو الصحيح المسند من أقول الصحابة والتابعين، كتاب الصلاة، الصلاة عندالقبر: ٢٧٧/٢.

[4] فأما من اتخذ مسجدا في جوار صالح وقصد التبرك بالقرب منه لا للتعظيم له، ولا للتوجه إليه، فلا يدخل في الوعيد المذكور. عمدة القاري: ٢٥٨/٤.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د يو صالح سړي قبر سره (دغه پورته تفصيل سره) جمات جوړول په وعيد كښې شامل نه دي. [1]
ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه پاتې شوه داخبره چه كه چرې د صالحينو نه د چا مزار سره نيزدې جمات جوړكړې شي يا په مقبره كښې مونځ اوكړي او د هغه د روح نه د تقويت حاصلولو يا د هغه د عبادتونو د اثراتو نه د فائدې اوچتولو اراده وي، په مونځ كښې د هغه تعظيم يا د هغه طرف ته توجه نه وي نو دغه جمات جوړولو كښې هيڅ حرج نشته دې. [2]
خلاصه دا چه د صالحينو مزاراتو سره نيزدې د شرائطو خيال ساتلو سره جمات جوړول جائز دي.

حديث باب [حديث نمبر ۴۱۷]

۴۲۷- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ وَأُمَّ سَلَمَةَ [3] ذَكَرَتَا كَنِيسَةً رَأَيْنَهَا بِالْحَبَشَةِ فِيهَا تَصَاوِيرُ، فَذَكَرَتَا لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ « إِنَّ أُولَئِكَ إِذَا كَانَ فِيهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَمَاتَ بَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ مَسْجِدًا، وَصَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الصُّوَرَ، فَأُولَئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

**د حديث ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه حضرت ام حبيبه او حضرت ام سلمه رضي الله عنهما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په وړاندې د يوې ګرجې ذكر اوكړو چه هغوى په حبشه كښې ليدلې وه. په كومه كښې چه تصويرونه لګيدلې وو. نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د هغه خلقو دا دستور وو چه كله به د هغوى څوك نيك سړې وفات شو نو هغوى به د هغه په قبر باندې د عبادت خانې جوړولو او په هغې كښې به ئې د هغوى بتان كيخودل. (بيائې اوفرمائيل چه) د قيامت په ورځ به داسې كونكې خلق د الله تعالى په نيز په مخلوق كښې بدترين خلق وي.
**تراجم رجال:** د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه راويان دي.

---

[1] فتح الباري: ۶۸۰/۱ د سلفي حضراتو په فتح الباري باندې اعتراض اودهغې رد: د فتح الباري دارالسلام نسخې (د كوم چه حواله وركړې شوې ده) حاشيه كښې په دې مقام باندې د محشي طرف نه دا حاشيه "هذا غلط واضح، والصواب تحريم ذلك، ودخوله تحت الأحاديث الناهية عن اتخاذ القهور مساجد. فانتبه واحذر، والله الموفق" موجود دى كوم چه صحيح نه دې. ځكه چه د ماقبل تفصيل نه داخبره واضحه ده چه د ممانعت تعلق د منكراتو سره دې د دې نه بغيرسره نه دي. او د حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله ذكركړې شوي تفصيل د منكراتو نه د بچ كيدو سره د جماتونه جوړولو سره مقيد دي. فلااشكال.

[2] أما من اتخذ مسجدا في جوار صالح أو صلى في مقبرة وقصدالا ستظهار بروحه أو وصول أثر ما من أثر عبادته اليه لا للتعظيم له والتوجه نحوه، فلا حرج. (مرقاة المفاتيح، كتاب الصلاة، باب المساجد ومواضع الصلاة: ۳۸۹/۲).

[3] أخرجه البخاري أيضا في الصلاة في البيعة، رقم الحديث: ۴۳۴، وفي الجنائز، باب: بناء المسجد على القبر، رقم الحديث: ۱۳۴۱، وفي فضائل أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم، باب: هجرة الحبشه، رقم الحديث: ۳۸۷۸، ومسلم في صحيحه، في المساجد، باب: النهي عن بناء المسجد على القبور، رقم الحديث: ۵۲۸. والنسائي في سننه، في المساجد، باب: النهي عن اتخاذ القبور مساجد، رقم الحديث: ۷۰۵. وفي جامع الأصول، حرف الزاء، الكتاب الثالث: في الزينة، الباب السابع: في الصور والنقوش والستور، الأحاديث الواردة في ذم المصورين، رقم الحديث: ۲۹۶۱، ۸۰۲/۴

① محمد بن المثنى رحمه الله: دا حضرت محمد بن المثنى بن عبيد عنزى بصرى رحمه الله دي. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: حلاوة الإيمان لاندې تير شوى دى.[1]

② يحيى رحمه الله: دا يحيى بن سعيد بن فروخ القطان تميمى رحمه الله دي. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تير شوى دى.[2]

③ هشام رحمه الله: دا هشام بن عروه بن زبيربن العوام قرشى اسدى مدنى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى په دويم حديث او تفصيلى احوال كتاب الإيمان، باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوى دى.[3]

④ ابى رحمه الله: دا عروه بن زبير بن العوام قرشى اسدى مدنى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى په دويم حديث او تفصيلى احوال كتاب الإيمان، باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوى دى.[4]

⑤ عائشه رضي الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما ده. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب بدء الوحى، دويم حديث لاندې تير شوى دى.[5]

دَ حديث شرح:

**قوله:** عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ، وَأُمَّ سَلَمَةَ ذَكَرَتَا كَنِيسَةً رَأَيْنَهَا بِالْحَبَشَةِ فِيهَا تَصَاوِيرُ:
حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حضرت ام حبيبه او حضرت ام سلمه رضي الله عنهما دَنبى كريم ﷺ په وړاندې دَ يوې ګرجې ذكر اوكړو چه هغوى په حبشه كښې ليدلې وه. په كومه كښې چه تصويرونه لګيدلى وو.

**قوله:** كَنِيسَةً: دَ عيسايانو عبادت خانې ته كنيسه وائى.[6] دَ دغه كنيسه نوم ماريه خودلې شى.[7]

**قوله:** ذَكَرَتَا: دَ تثنيه دَدې صيغې ضمير حضرت ام حبيبه او حضرت ام سلمه رضي الله عنهما طرف ته راګرځى. دَمستملى اوحموى په نسخو كښې دا لفظ "ذكرا" دَمذكر صيغه ده چه دَ اصل خلاف دې. ظاهر دا معلوميږى چه دا به دَ نسخې ليكونكو نه غلطى نه وى شوې.[8]

[1] كشف البارى: ۲/۲٥.
[2] كشف البارى: ۲/۲.
[3] كشف البارى: ۱/۲۹۱، ۲/٤۳۲.
[4] كشف البارى: ۲/٤۳٦.
[5] كشف البارى: ۱/۲۹۱.
[6] شرح الكرمانى: ٤/۸۸.
[7] فتح البارى: ۱/٦۸۰ عمدة القارى: ٤/۲٥۷.
[8] عمدة القارى: ٤/۲٥۷.

**قوله:** رَأَيْنَا: دالفظ دَ جمع صيغې سره استعمال شوې دې حالانکه کتونکې دوه وې، نو دې به جواب کښې وئيلې شي چه دَ جمع نسبت صرف دَ دغه دوو طرف ته نه بلکه دَدغه دواړو سره نور کوم کسان هم چه شريك وو هغه ټول په دې روايت کښې شامل کړې شوي دي. دويمه خبره دا اقل دَ جمع دوه وي لهذا په دې اعتبار سره هم دَ اشکال څه خبره نشته دې.

دريمه خبره دا چه بعضې نسخو کښې مثلاً دَ کشميهنی او اصيلی په نسخه کښې "رأتا" لفظ هم ملاويږي. فلا اشکال.([1])

**قوله:** فَذَكَرَتَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «إِنَّ أُولَئِكَ إِذَا كَانَ فِيهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَمَاتَ، بَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ مَسْجِدًا، وَصَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الصُّوَرَ، فَأُولَئِكَ شِرَارُ الخَلْقِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ القِيَامَةِ»

نونبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دَ هغه خلقو دا رواج وو چه کله به دَ هغوی څوك نيك سړې وفات کيدو نو هغوی به دَ هغه په قبر باندې عبادت خانه جوړوله او په هغې کښې به ئې دَ هغه سړي بتان کيخودل. (بيائې اوفرمائيل چه) دَ قيامت په ورځ به دا سې کونکې دَ الله تعالی په نيز په مخلوق کښې بدترين خلق وي.

**قوله:** فَأُولَئِكَ: په يو بل روايت کښې دَ فاء په ځائې واؤ يعنې وأولئك دې.([2])

**قوله:** فَمَاتَ: دَدې عطف به په کان باندې وي. او وړاندې دَ بنوا جمله به دَ إذا دَ پاره جواب شي.([3])

**دَ بت پرستئ شروع څنګه شوې ده؟:**

**قوله:** وَصَوَّرُوا فِيهِ: قاضی عياض مالکی رحمه الله ليکلی دی چه دا دَ بت پرستئ شروع وه يعنې بت پرستی په دې طريقه درجه په درجه شروع شوه.([4])

علامه قرطبی رحمه الله ليکلی دی چه دَ هغوی طريقه دا وه چه کله به نيکان خلق وفات کيدل نو دَ هغوی تصويران به ئې جوړول او هغه به ئې زوړندول او دَ هغوی مقصد به دا وو چه دغه تصويرانو ته په کتلو دَ هغوی زړونه تسلی او سکون حاصل کړي او دَ هغوی نيکا اعمال ياد کړي او بيا هم دَ هغوی په شان په عبادت کښې سعی اوکوشش اوکړي او دَ هغوی قبرونو سره به خواکې دوي مونځونه کول ليکن قبرونه به ئې خپلې مخې ته نه ساتل. دغه رومبنی چه فوت شو او دَ هغوی نه پس روستو جانشين دَ هغوی په ځائې راغله نو هغوی دَ دغه رومبنو او متقدمينو مقصد خو فوت کړو او شيطان دَ هغوی په زړونو کښې دا وسوسه واچوله چه ستاسو بزرګانو خو به دَ قبرونو عبادت کولو لهذا تاسو هم دَ دوی عبادت کوئی. نو روستو راتلونکو دَ قبرونو عبادت شروع کړو.

[1]) شرح الکرمانی: ٤/٨٨ فتح الباری: ١/٦٨٠ عمدة القاری: ٤/٢٥٧.
[2]) عمدة القاری: ٤/٢٥٧.
[3]) فتح الباری: ١/٦٨٠.
[4]) إکمال المعلم بفوائد مسلم، کتاب: فی المساجد، باب النهی عن بناء المساجد علی القبور، رقم الحدیث: ٥٢٨، ٢/٤٥٠.

په دې باندې حضورپاك دا نكير اوفرمائيلو چه دَ حضورپاك امت دا طريقه اختيار ولو سره په شرك كښې اخته نه شي او هم دَدې دَ پاره حضورپاك دا ارشاد اوفرمائيلو چه زما نه پس زما قبر سره دا معامله اونه كړې شي.(١)

**دَ شرار لغوى تحقيق:**

**قوله: فَأُولَٰئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:** شرار دَ شين په كسرې سره جمع ده دَ شر او دَ بعضو په نيزدَ شرير جمع ده.(٢)

**دَ شرار الخلق مصداق كوم خلق دى؟:** علامه كرمانى رحمه الله په دې ځائى يو اشكال كړې دې چه حضورپاك خو "فَأُولَٰئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" فرمائيلى دى، دَدې نه خو په ظاهره دا معلوميږى چه دَ قبر طرف ته مونځ كول حرام دى او علماء دې ته صرف مكروه وائى؟ بيائى هم پخپله دَدې جواب وركړو چه په اصل كښې دَ كراهت نه كراهت تحريمى مراد دې لهذا دَ شرار الخلق په اطلاق كښې هيڅ اشكال نشته. دَدې اطلاق تقاضا دا وه چه قبر مخې ته وى نو مونځ حراميدل پكار دى او علماء كرامو چه دې ته مكروه تحريمى اووئيل نو دا په حكم كښې هم دَ حرام دې.

علامه كرمانى رحمه الله دويمه خبره دا فرمائى چه كه چرې دَ كراهت نه كراهت تنزيهى مراد واخستې شى نو بيا به دَدې مطلب داوى چه حضورپاك دَ تصوير په مذمت كښې "فَأُولَٰئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" فرمائيلى دى. په دې باندې علامه رحمه الله اشكال كړې دې چه كه چرې دَ تصوير په مذمت كښې ئى "فَأُولَٰئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" فرمائيلى دى نو تصوير خو صرف معصيت دې او شرار الخلق كيدو نه دا لا زميږى چه هغوى دې كافر اوګرځولې شى. نودَ ګناه په كولو سره دَ كافر اطلاق څنګه اوكړې شو؟

دَدې جواب بيا هغه وركړې دې چه په اصل كښې دوى ته شرار الخلق څكه اووئيلې شو چه هغوى به دَ تصوير عبادت كولو اوكافران هم وو په دې وجه په دې اطلاق كښې څه اشكال نشته.(٣)

يوه بله خبره ئى داهم كړې ده چه دَ شرار الخلق اطلاق به په كفر باندې هله اوشى چه كله شرار الخلق على الاطلاق مراد وى. هسې دَ شر لفظ دَ خير په مقابله كښې هم راځى او شرار دَ خيار په مقابله كښې استعماليږى. لكه څنګه چه په حديث شريف كښې دَ رسول الله ﷺ

---

(١) المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: تحويل القبلة من الشام إلى الكعبة، والنهى عن بناء المساجد على القبور وعن التصاوير فيها، رقم الحديث: ١٢٥، ٥٤/٥.

(٢) عمدة القاري: ٢٥٧/٤.

(٣) شرح الكرماني: ٨٩/٤.

ارشاد دي: «إن شر الناس عندالله منزلة من تركه الناس اتقاء شره»[1] دلته دَ شر الناس مطلب كافر نه دي. دغه شان په بل حديث كښې حضورپاك فرمائي: «ألا أخبركم بشر الناس؟ رجل يسأل بالله ولا يعطي به»[2] چه دَ الله تعالى واسطه وركولو سره دَ هغه نه سوال اوكړې شي او دَ دغه واسطې باوجود هم هغه وركړه اونه كړي هغه شرالناس دي. دغه شان په حديث كښې راځي حضورپاك فرمائي: «إن شر الناس ذوالوجهين الذي يأتي هؤلاء بوجه وهؤلاء بوجه»[3] دا هم دَ كفر دَ وجې نه نه دي وئيلې شوې. غرض دا چه دَ شرار اطلاق دَ اخيار په مقابله كښې هم كيږي لهذا دا هم وئيلې شي چه دلته نبي ﷺ دَ تصوير دَ وجې هغوى ته شرار الخلق وئيلې دي دا نې في مقابلة الأخيار وئيلې دي.

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دَدې حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت دَترجمې جز "لعن الله اليهود" په وجه دي. په دې اعتبار سره چه په دې قول كښې داخبره ده چه نبي ﷺ په يهودو باندې ځكه لعنت اووئيلو چه هغوى دَ انبياؤ قبرونه دَ سجدو ځايونه جوړكړي وو. او په دې حديث كښې دَ نصاراؤ په داسې طريقې سره مذمت اوكړې شو چه دَ لعنت نه هم زيات دي. په وجه دَدې خبرې چه په هغوى كښې دا دستور پيدا شوې وو چه كله به دَ هغوى څوك نيك سړې وفات شو نو دَ هغه په قبر باندې به ئې جمات جوړولو او په هغې كښې به ئې دَ هغه سړي تصويرونه زوړندول.[4]

علامه شبير احمد عثماني رحمه الله فرمائي دلته شارحين حيران دي چه په دعوىٰ او دليل كښې

---

[1] حدثناعمزو بن عيسى، حدثنامحمد بن سواء، حدثنا روح بن القاسم، عن محمد بن المنكدر، عن عروة، عن عائشة: أن رجلا استأذن على النبى صلى الله عليه وسلم، فلما رآه قال: بئس أخوالعشيرة، وبئس ابن العشيرة، فلما جلس تطلق النبى صلى الله عليه وسلم فى وجهه وانبسط إليه، فلما انطلق الرجل قالت له عائشة: يارسول الله! حين رأيت الرجل قلت له كذا وكذا، ثم تطلقت في وجهه وانبسطت إليه؟ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ياعائشة! متى عهدتنى فحاشا، إن شرالناس عندالله منزله يوم القيامة من تركه الناس اتقاء شره. (صحيح البخاري، كتاب الأدب، باب لم يكن النبى صلى الله عليه وسلم فاحشا ولا متفحشا، رقم الحديث: ٦٠٣٢).

[2] حدثنا قتيبة، قال: حدثنا ابن لهيعة، عن بكير بن عبدالله بن الأشج، عن عطاء بن يسار، عن ابن عباس، أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: ألا أخبركم بخير الناس؟ رجل ممسك بعنان فرسه فى سبيل الله، ألا أخبركم بالذى يتلوه؟ رجل معتزل في غنيمة له يؤذى حق الله فيها، ألا أخبركم بشرالناس؟ رجل يسأل بالله ولا يعطى به، هذا حديث حسن غريب من هذا الوجه، ويروى هذاالحديث من غير وجه، عن ابن عباس، عن النبى صلى الله عليه وسلم. (جامع الترمذي، فضائل جهاد، أى الناس خير، رقم الحديث: ١٦٥٢).

[3] حدثنا قتيبة، حدثنا الليث، عن يزيد بن أبى حبيب، عن عراک، عن أبى هريرة، أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم، يقول: إن شرالناس ذوالوجهين، الذى يأتى هؤلاء بوجه، وهؤلاء بوجه. (صحيح البخاري، كتاب الأحكام، باب: ما يكره من ثناء السلطان وإذا خرج قال غير ذلک، رقم الحديث: ٧١٧٩).

[4] عمدة القاري: ٢٥٦/٤.

څه مناسبت دې؟ په دعوىٰ كښې يعني ترجمة الباب كښې دَمشركانو دَ قبرونو (ذكر) دې او دليل يعنى حديث دَ انبياء كرامو دَ قبرونو متعلق دې. او په دعوىٰ كښې دَ قبرونو دَ نبش (ذكر) دې او په دليل كښې دَ قبرونو دَ جماتونو جوړولو نفى ده. (الغرض دعوىٰ داده چه دَ مشركانو قبرونه كنستلو سره په هغه ځائى جماتونه جوړول جائز دى او په دې باندې دليل دادې چه حضورپاك دَ انبياؤ قبرونونه جماتونه جوړولونه منع فرمائيلې ده. نو په دې دواړو كښې څنګه مناسبت راغې؟). (فرمائى) زما په نيز دلته مناسبت داسې دې چه (دلته) دوه مسئلې دى:

① يوه مسئله خو (په قبر باندې دَ جمات جوړولو سره متعلق ده. اودَدې دوه صورتونه دى (اول صورت) دا چه دَ قبرونو په موجودګئ كښې په هغې جمات جوړول، دَچاهم چه قبر وى دَ انبياؤ اولياؤ يا دَيو كافر او فاسق. بل صورت دا چه قبر نبش كړې شى (يعنى هغه ورانولو سره برابر كړې شى) بيا دغه ځائى كښې جمات جوړ كړې شى. دَدې متعلق فقهاؤ ليكلى دى چه دَ قبرونو په موجودګئ هلته جمات جوړول صحيح نه دى دَ چا هم چه قبر وى كه هغه دَ نبى وى او كه دَ يو كافر وى. اودَممانعت علت دَ قبرونو موجودګى ده. اوس كه قبرونه وران كړې شى او برابر كړې شى چه نښه ئى باقى پاتې نه شى (اوبيا هلته جمات جوړ كړې شى) نو ددې حكم امام بخارى رحمه الله خودل غواړى.

② دويمه مسئله داده چه دَ كومو قبرونو نبش جائز دې؟ دَدې متعلق مسئله داده چه دَ انبياؤ او صالحينو بلكه بغيردَ ډير سخت ضرورت نه دَ عام مؤمنانو دَ قبرونو نبش هم جائز نه دې. دَ مشركانو او كافرانو دَ قبرونو نبش جائز دې. ﴿أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ﴾.

نو اوس امام بخارى رحمه الله دَ اولنئ مسئلې دويم صورت (قبر ورانول او بيا جمات جوړولو) متعلق حكم بيانول غواړى چه دَ قبرونو ورانولو نه پس هلته جمات جوړول جائز دى. لقول النبى......... (وجه دَ استدلال دا ده چه) ګورئى حضورپاك لعنت په هغه صورت كښې كړې دې كله چه قبرونه موجود وى او په هغې باندې جمات جوړكړې شى (چنانچه) دَ يهودو فعل په كوم چه آقا عليه السلام لعنت كړې دې هم داسې وو چه دَ انبياؤ قبرونه ئى باقى ساتلو سره تعظيما جماتونه جوړول. (نوكله چه لعنت، قبرونه باقى ساتلو سره په هغې باندې دَ جماتونو جوړولو په صورت كښې دې نو معلومه شوه چه قبرونه ورانولو سره په هغه ځائى جمات جوړول جائز دى). نو دعوىٰ سره دَ دليل مناسبت پيدا شو.

باقى پاتې شوه دويمه مسئله چه دَ كومو قبرونو نبش جائز دې؟ دَ انبياؤ دَ قبرونو نبش جائز دې كه نه؟ دَدې سره متعلق دلته هيڅ بحث نشته. چونكه دَ مشركانو دَ قبرونو نبش جائز وو په دې وجه ئى په ترجمه كښې دا بالتخصيص ذكركړو. اصل مقصودخو دا مسئله بيانول دى چه دَ قبرونو نبش كولو سره هلته جمات جوړول جائز دى كه نه؟ نو دائى ثابت كړل چه دَ نبش نه پس جائز دى.[1]

---

[1] ) فضل البارى: ۳/۱۳۹-۱۳۸.

**دَ حديث شريف نه مستنبط شوي فوائد او احكام:** ① معلومه شوه چه كه يو سړي دَ عجائباتو نه دَ ځه ځيز مشاهده اوكړي نو دَ نورو خلقو په مخكښې دَ هغې دَ بيانولو ګنجائش شته.[1]

② دَ كوم سړي په وړاندې چه ځوك ځه خبره بيانوي اوهغه سړي دَ دغه خبرې حكم پيژندونكي وي نو په هغه باندې دَ هغه خبرې حكم بيانول او په محرماتو كښې دَ اخته كيدو مذمت كول واجب دي.[2]

③ دا هم معلومه شوه چه په احكامو كښې اعتبار دَ شريعت دې نه چه دَ عقل.[3]

④ دَدې حديث نه په قبرستان كښې دَمونځ اداكولو دَ كراهت علم هم اوشو. برابره ده چه قبر سره متصل وي، دَ قبر دَ پاسه وي اوكه دَ قبر مخې ته اودريدو سره وي.[4]

⑤ دَدې حديث نه دَ تصوير حرمت خصوصاً دَ نيكانو صالحانو كسانو دَ تصوير حرمت معلوم شو.[5]

حديث باب (دويم حديث)[حديث نمبر ۴۱۸]

- ۴۲۸ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسٍ[6] قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - الْمَدِينَةَ فَنَزَلَ أَعْلَى الْمَدِينَةِ، فِي حَيٍّ يُقَالُ لَهُمْ بَنُو عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ. فَأَقَامَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِيهِمْ أَرْبَعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً، ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى بَنِي النَّجَّارِ فَجَاءُوا مُتَقَلِّدِي السُّيُوفِ، كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى رَاحِلَتِهِ، وَأَبُو بَكْرٍ رِدْفُهُ، وَمَلأُ بَنِي النَّجَّارِ حَوْلَهُ، حَتَّى أَلْقَى بِفِنَاءِ أَبِي أَيُّوبَ، وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يُصَلِّيَ حَيْثُ أَدْرَكَتْهُ الصَّلاَةُ، وَيُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ، وَأَنَّهُ أَمَرَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ، فَأَرْسَلَ إِلَى مَلإٍ مِنْ بَنِي النَّجَّارِ فَقَالَ « يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُونِي بِحَائِطِكُمْ هَذَا ». قَالُوا لاَ وَاللَّهِ، لاَ نَطْلُبُ ثَمَنَهُ إِلاَّ إِلَى اللَّهِ. فَقَالَ أَنَسٌ فَكَانَ فِيهِ مَا أَقُولُ لَكُمْ، قُبُورُ الْمُشْرِكِينَ، وَفِيهِ خَرِبٌ، وَفِيهِ نَخْلٌ، فَأَمَرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِقُبُورِ الْمُشْرِكِينَ فَنُبِشَتْ، ثُمَّ بِالْخَرِبِ فَسُوِّيَتْ، وَبِالنَّخْلِ فَقُطِعَ، فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ، وَجَعَلُوا عِضَادَتَيْهِ الْحِجَارَةَ، وَجَعَلُوا يَنْقُلُونَ الصَّخْرَ، وَهُمْ يَرْتَجِزُونَ، وَالنَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - مَعَهُمْ وَهْوَ يَقُولُ « اللَّهُمَّ لاَ خَيْرَ إِلاَّ خَيْرُ الآخِرَهْ فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَهْ »

**د حديث ترجمه:** د حضرت انس بن مالك ﷺ نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو حضورپاك چه دَ مدينې برنئ علاقې په كومه محله كښې قيام اوكړو هغه دَ بنو عمرو بن عوف وه. دلته نبى كريم ﷺ خوارلس شپې قيام اوكړو. بيا حضورپاك بنو نجار ته پيغام اوليږلو او راوئى غوښتل نو هغه خلقو تورې زوړند وې او په خدمت

[1]) فتح الباري: ۶۸۰/۱ عمدة القاري: ۲۵۷/٤.
[2]) فتح الباري: ۶۸۰/۱ عمدة القاري: ۲۵۷/٤.
[3]) فتح الباري: ۶۸۰/۱ عمدة القاري: ۲۵۷/٤.
[4]) فتح الباري: ۶۸۰/۱.
[5]) عمدة القاري: ۲۵۷/٤.
[6]) مرتخريجه في البخاري. كتاب الوضوء. باب: أبوال الإبل والدواب والغنم ومرابضها. رقم الحديث: ۲۳٤.

كښې حاضر شو (د راوي حديث بيان دې) لكه چه هغه نظاره زما مخې ته ده چه زه نبى كريم ﷺ په خپله سورلۍ باندې ناست وينم. حضرت ابوبكر ﷺ حضورپاك پسې شاته په سورلۍ ناست دې او د بنونجار يو جماعت د حضورپاك نه چاپيره دى. په دې حال كښې نبى ﷺ حضرت ابوايوب ﷺ د كور مخې ته خپل سامان راكوز كړو. حضورپاك به دا خبره خوښوله چه حضورپاك ته به چرته هم د مونځ وخت راتلو هم هلته به ئې مونځ كولو. (ترديې چه) حضورپاك د چيلو په باړه كښې هم مونځ ادا كړې دې. حضورپاك په هغه ځائى كښې د جمات جوړولو حكم اوكړو. حضورپاك بنونجار راؤغوښتل او ورتى فرمائيل اې بنو نجار! تاسو دَدې خپلې زمكې قيمت واخلئ. هغوى عرض اوكړو نه، په الله قسم چه نه، مونږ به تاسو نه دَدې قيمت نه اخلو، مونږ به دَدې بدله صرف د الله تعالى نه اخلو.

حضرت انس ﷺ اوفرمائيل لكه څنګه چه زه تاسو ته وايم چه دلته د مشركانو قبرونه وو. په دې زمكه كښې يو شاړ ځائى وو او د كهجورو ونې وې. نو نبى كريم ﷺ د مشركانو د قبرونو د ورانولو حكم وركړو او د هغه شاړ ځائى د برابرولو حكم ئې وركړو او ونې پرې كړې شوې. خلقو دغه ونې د جمات د قبلې طرف ته خورې كړې او د كاڼړو په ذريعه ئې هغه مضبوطې كړې. صحابه كرامو ﷺ به كاڼړى اوچتولو سره رجزيه اشعار وئيل او نبى كريم ﷺ هم هغوى سره وو او دائې فرمائيل اې الله! د آخرت د ښيګړې نه علاوه بل هيڅ ښيګړه (د توجه قابل) نه ده نو د انصارو او مهاجرينو مغفرت اوكړې.

**تراجم رجال:** دَمذكوره حديث شريف په سند كښې ټول څلور راويان دى.

① **مسدد** رحمه الله: دا مسدد بن مسرهد الاسدى البصرى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر احوال كشف البارى كتاب الإيمان باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه، او تفصيلى احوال كتاب العلم باب: :من خص بالعلم قوما دون قوم كراهية أن لا يفهموا لاندې تيرشوې دى. [1]

② **عبدالوارث** رحمه الله: دا عبدالوارث بن سعيد التميمى رحمه الله دې. دَدوى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة والعلم كى لاينفروا لاندې تير شوى دى. [2]

③ **ابى التياح** رحمه الله: دا ابوالتياح يزيد بن حميد الضبعى رحمه الله دې. دَدوى احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعة والعلم كى لاينفروا لاندې تير شوى دى. [3]

④ **انس** ﷺ: دامشهور صحابئ رسول حضرت انس بن مالك ﷺ دې. دَ دوى تذكره كشف البارى، كتاب الايمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيره شوى ده. [4]

---

[1]) كشف البارى: ٥٨٨/٤.

[2]) كشف البارى: ٢٥٨/٣.

[3]) كشف البارى: ٢٦١/٣.

[4]) كشف البارى: ٤/٢.

**دَ حدیث شرح:**

**قوله:** عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ فَنَزَلَ أَعْلَى الْمَدِينَةِ فِي حَيٍّ يُقَالُ لَهُمْ بَنُو عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ:

دَ حضرت انس بن مالك ﷺ نه روایت دې چه نبی اکرم ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو نوحضورپاك دَ مدینې دَ برنۍ علاقې په کومه محله کښې چه قیام کړې وو هغه دَ بنوعمروبن عوف وه.

**دَ نبی کریم ﷺ مدینې ته راتګ کله شوې وو؟:**

**قوله:** قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ: امام حاکم رحمه الله ذکرکړې دې چه اخبار تواتر ته رسیدلی دی په دې خبره باندې چه کله نبی کریم ﷺ قباء ته تشریف راوړو نودَ ربیع الاول اتم تاریخ وو اودَ اتوار ورځ وه.

ابن سعد رحمه الله په الطبقات الکبری کښې داخبره ذکرکړې ده چه نبی اکرم ﷺ دَ غار نه راؤوتلو دَ ربیع الاول څلورم تاریخ او دَ اتوار شپه وه. او یو قول داهم دې چه دَ ربیع الاول دولسم تاریخ وو.(۱)

**قوله:** أَعْلَى الْمَدِينَةِ: په یو روایت کښې صرف دَ المدینة لفظ دې. دَ "أعلی" نه بغیر. (۲)

خودَ سنن ابی داؤد په روایت کښې دَ "أعلی" په ځائی دَ "علو" لفظ دې داهم دَ "أعلی" په معنی دې.(۳)

**قوله:** فَأَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِمْ أَرْبَعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً: دلته نبی اکرم ﷺ څوارلس شپې قیام اوکړو. بعضې نورو نسخو (دَ مستملی او حموی په نسخو) کښې څلیریش شپې دَ قیام کولو ذکر دی. حافظ ابن حجر رحمه الله دَ څوارلسو شپو دَ قیام والا خبره راجح ګرځولې ده.(۴)
علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله هم دَ څوارلسو شپو قیام اختیارکړې دې.(۵)
حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله څلیریش شپو ته ترجیح ورکړې هغه تقریر هم دَ کتلو لائق دې.(۶)

(۱) للطبقات الکبری لابن سعد، ذکر خروج رسول الله صلی الله علیه وسلم وأبی بکر إلی المدینة للهجرة: ۱۷۹/۱.
(۲) عمدة القاری: ۲۵۹/۴.
(۳) حدثنا مسدد، حدثنا عبدالوارث، عن أبی التیاح، عن أنس بن مالک، قال: قدم رسول الله صلی الله علیه وسلم المدینة، فنزل فی علوا لمدینة فی حی یقال: لهم بنوعمرو بن عوف، فأقام فیهم أربع عشرة لیلة، ثم أرسل إلی بنی النجار، فجاءوا متقلدین سیوفهم.........(سنن أبی داؤد، کتاب الصلاة، باب: فی بناء المساجد، رقم الحدیث: ۴۵۳)
(۴) فتح الباری: ۶۸۰/۱.
(۵) فضل الباری: ۱۴۲/۳.
(۶) قوله: أربعا وعشرین لیلة ،دادَ حضورپاك دَ هجرت واقعه ده. په دې کښې مختلف روایات دی چه حضورپاك په قباء کښې څومره ورځې قیام کړې دې؟ په دې روایت کښې ۲۴ ورځې معلومیږی او پخپله دَ بخاری شریف په یو روایت کښې ۱۴ ورځو دَ قیام ذکر دې. ښکاره خبره ده چه په دې کښې به یو خلاف واقعه وی. نودَ دې نه معلومه شوه چه دَ بخاری شریف دَ روایاتو دَ صحیح کیدو نه دا نه لازمیږی .......

بهرحال كه قيام ٢٢ ورځې وي او كه ١٤ ورځې دَدې نه دا ثابتيږي چه جمعه في القرىٰ جائز نه ده.
ځكه چه په دې خبره باندې اتفاق دې چه حضورپاك مدينې منورې طرف ته دَ راتلونه پس جمعه په قباء كښې نه ده ادا كړې. بلكه چه بنو سالم كښې حضورپاك مدينې منورې ته اورسيدو نو بيا ئې جمعه ادا كړه. په دې باندې دَ فريقينو اتفاق دې او دا خبره هم متعين ده چه جمعه دَ هجرت نه مخكښې واجب شوې وه. حضورپاك چونكه مكه مكرمه كښې اوسيدو سره جمعه ادا كولو باندې قادر نه وو په دې وجه هلته خو حضورپاك جمعه ادا نه كړه ليكن چه كله حضورپاك مدينې ته راغلو نو هلته په راتلو باندې ئې جمعه ادا كړې ده.

**دَ جمعې فرضيت مكه كښې شوې وو:** حافظ جلال الدين السيوطي رحمه الله په اتقان كښې [١] ابن حجر مكي رحمه الله په شرح المنهاج كښې [٢] او امام شوكاني رحمه الله نيل الاوطار كښې [٣] دا خبره منلې ده چه په حضورپاك باندې جمعه دَ مكې مكرمې په قيام كښې فرض شوې وه ليكن دَ عدم قدرت دَ وجې نه حضورپاك هلته (مكه كښې) نه وه ادا كړې او دَ هجرت نه پس چه كله حضورپاك تشريف راوړو نو په قباء كښې دَ څوارلسو ورځودَ قيام باوجود هلته حضورپاك دَجمعې مونځ نه وو كړې. بلكه مدينې منورې ته په راتلو ئې كړې دې.

........ چه ټول روايات دې هم دَ واقعه مطابق هم وي. نو احناف هم دَدې قاعدې مطابق وائي. چه بخاري كښې دَ رفع يدين تذكره راتللو سره دا لازم نه دي چه هغه دې دَ واقعه مطابق هم وي. يعنې دَ حضورپاك آخري فعل دې هم وي. اوس دلته دواړه روايات مشكل دي. ځكه چه ټول محدثين او مؤرخين په دې خبره باندې متفق دي چه حضورپاك دَ پير په ورځ قباء ته اورسيدو او هم دَ پير په ورځ دَ مكې نه تلې وو. نو پير له روان شو او هم پير له قبا ته اورسيدو او مدينې ته ئې په ورځ دَ جمعه تشريف يوړو. او دَ ټولو نه اول جمعه ئې بنو سالم كښې وركړه نو په دې دواړو باندې اتفاق دې چه دَ پير په ورځ قبا ته اورسيدو او دَ جمعې په ورځ ئې دَ قبا نه مدينې ته تشريف يوړو. اوس دوه قسمه روايات دي يو دَ ٢٤ او بل دَ ١٤ ورځو اوو دواړو نه يو هم دَدې اقوالو په رنړا كښې صحيح كيږي نه. ځكه چه كه ١٤ واخستې شي نو پير له حضورپاك قبا ته تشريف راوړو او دَ پير نه بل پير پورې اته او دريم پير پورې ١٥ ورځې جوړيږي لهذا څوارلسمه ورځ يكشنبه باندې راځي حالانكه په دې باندې اتفاق دې چه دَ جمعې په ورځ مدينې ته لاړو. او دَ ٢٤ والا روايت هم نه جوړيږي ځكه چه دَ پير نه بل پير پورې اته، او دريم پير پورې پنځلس او څلورم پير له ٢٢ ورځې جوړيږي او نهي له ٢٣ او چارشنبې له ٢٤ ورځې جوړيږي. نو بيا هم دَ جمعې په ورځ ٢٤ ورځې نه جوړيږي. اوس دا دواړه خو صحيح نه شو لهذا زما رائې داده چه دَ ٢٤ روايت صحيح دې او دَدې صورت دادې چه راوي يوم الدخول او يوم الخروج نه دې شميرلې نو پير خو يوم الدخول في قباء وو او جمعه يوم الخروج منه وه اوس چه دواړه اوباسي نو ٢٤ صحيح كيږي. او دَ قول متفق سره تعارض هم نه راځي. په دې وجه به اوس شمير دَ نهې دَ ورځ نه كيږي ځكه چه پير خو تړي اووتلو. نو دَ نهي نه دَ نهې پورې اته، او دَ دريمې نهې پورې پنځلس او دَ څلورمې نهې پورې ٢٢ او چارشنبه ٢٣ او جمعرات ٢٤ جوړيږي.
او جمعه چه يوم الخروج ده هغه هم خارج ده لهذا اوس بالكل صحيح شوه. اوس په دې سره زما يو تائيد اوشو هغه دا چه حضورپاك په قباء كښې دَ دريو جمعو پورې قيام كړې او يوه جمعه ئې هم دَ كلي كيدو دَ وجې نه نه ده ادا كړې كنې بله څه خبره وه. (تقرير بخاري شريف: ٢/١٦٠)

[١] الاتقان فى علوم القرآن، النوع الثانى عشر ماتأخر حكمه عن نزوله وما تأخر نزوله عن حكمه: ١٣٤/١.
[٢] تحفة المحتاج فى شرح المهاج لابن حجر الهيثمى، كتاب الصلاة، باب: صلاة الجمعة: ٤٠٥/٢.
[٣] نيل الأوطار للشوكاني، كتاب الجمعة، باب: انعقاد الجمعه بأربعين وإقامتها فى القرى: ٢٧٤/٣.

**قوله:** ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى بَنِي النَّجَّارِ، فَجَاءُوا مُتَقَلِّدِي السُّيُوفِ: بیا حضورپاك بنونجار ته پیغام ولیږلو سره راؤغونښتل نو هغه خلقو توري زوړندې کړې وې او په خدمت کښې حاضر شو. بنونجار دَ حضورپاك ماماخیل وو.(١)

**توري زوړندولو سره دَ راتلو څه مقصد وو؟:**

**قوله:** مُتَقَلِّدِي السُّيُوفِ، دا په اصل کښې متقلدین السیوف وو دَ اضافت دَ وجې نه نون پریوتلو. دا مرکب دَ "جاؤوا" دَ ضمیر نه حال جوړیږی.(٢) علامه برماوی رحمه الله فرمانی چه دَهغوی داسې راتلو کښې حکمت دا وو چه په دې سره ئې یهودیان ویرول مقصود وو دې دَ پاره چه هغوی اوګوری چه دَمدینې انصار دَ حضورپاك دَ امداد او نصرت دَپاره څنګه تیاری کړې دی.(٣)

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه داد هغه زمانې دستور وو چه کله به دَ چا دَ استقبال دَ پاره تلل نو توره وغیره به ئې ځان سره اوړل لکه څنګه چه نن صبا دَ شیروانی اچولو رواج دې.(٤)

**قوله:** كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَاحِلَتِهِ، وَأَبُو بَكْرٍ رِدْفُهُ وَمَلَأُ بَنِي النَّجَّارِ حَوْلَهُ حَتَّى أَلْقَى بِفِنَاءِ أَبِي أَيُّوبَ:

(دَ راوی حدیث بیان دې چه) لکه هغه نظاره زما مخې ته وی چه زه نبی اکرم ﷺ په خپله سورلئ باندې سور وینم، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه حضورپاك پسې شاته په سورلئ ناست دې. اودَ بنونجار یو جماعت دَ حضورپاك نه چاپیره دې. هم په دې حال کښې نبی مکرم ﷺ دَ حضرت ابوایوب رضی الله عنه دَ کور مخې ته خپل سامان راکوز کړو.

**قوله:** رَاحِلَتِهِ: دَ اوښ سورلئ ته راحلة وائې. برابره ده که اوښ نر وی اوکه ماده لیکن هغه وخت حضورپاك په اوښه باندې سور وو دَ کومې نوم چه قصواء وو.(٥)

**قوله:** أَبُو بَكْرٍ رِدْفُهُ: ردیف هغه سړی ته وائی چه اصل سور پسې شاته هم په هغه سورلئ ناست وی.(٦)

**دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه دَ نبی کریم ﷺ دَ ردیف جوړیدو وجه:** دَ روایت مطابق حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه سره خو خپله اوښه هم وه بیا دَ حضورپاك ردیف ولې جوړشو؟

نو په دې باره کښې شراحو لیکلی دی چه ممکنه ده دَ څه مرض وغیره دَ وجې نه هغوی خپله اوښه قبیلهٔ عمرو بن عوف کښې یا چرته بل ځائی پریخودې وه. یا هغه اوښه ئې واپس کور ته لیږلې وه. دې دپاره چه کور والا ئې استعمال کړی. یا یوه بله وجه ده چه ډیره بهتر

(١) التوضیح لابن الملقن: ٤٦٧/٥ عمدة القاری: ٢٥٩/٤.
(٢) عمدة القاری: ٢٥٩/٤.
(٣) اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ١٧٦/٣.
(٤) تقریر بخاری شریف: ١٦٠/٢.
(٥) النهایة فی غریب الحدیث والأثر، باب: الراء مع الحاء: ٦٤٥/١ عمدة القاری: ٢٥٩/٤.
(٦) معجم الصحاح، ردف، ص: ٤٠١، ردفه، المرتدف، أی یرکب خلف الراکب. (اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ١٨٦/٣).

معلومیږي چه دَ هغوی اوښه هم ورسره وه لیکن هغه په دې سور نه شودې د پاره چه د نبی اکرم ﷺ دَ ردیف جوړیدو شرف حاصل کړي. او په دې کښې دې خبرې طرف ته هم اشاره کیدې شي چه دَ حضورپاک نه پس هم هغوی دَ حضورپاک خلیفه جوړیدل وو.[١]

**قوله: وَمَلَأُبَنِي النَّجَّارِ حَوْلَهُ:** الملاء نه مراد دَ قبیلې معزز او سرداران خلق دی. دې نه علاوه دَملاء نه مراد جماعت هم وی.[٢]

**قوله: أَلْقَى:** دې ځائی کښې دَدې فعل مفعول محذوف دې کوم چه رحله دې، يعنى خپله کجاوه ئې واچوله.[٣]

**قوله: بِفِنَاءِ:** دې نه مراد دکور مخې ته خالی ځائې دې.[٤]

**اوښه دَ الله تعالی دَ طرف نه مامور وه:** په انصارو کښې هرسړی دَدې نیک بختئ تمنا لرله چه حضورپاک دَ هغه سره قیام اوکړي. حضورپاک اوښه پریخوده او وئې فرمائیل "إنها مأمورة" هغه اوښه دَ حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه دَ کورمخې ته په خالی ځائی کښې کیناسته. بعضې روایاتو کښې دا هم راځی چه په اول ځل کیناسته بیا پاسیده دوه څلور قدمه تلو سره دوباره هم هلته کیناسته.

**دَدې واقعې سره متعلق دَ سیر یو عجیبه روایت:** علامه نیسابوری رحمه الله خپل کتاب "شرف مصطفی صلی الله علیه وسلم" کښې یوه واقعه نقل کړې ده دکوم مفهوم چه څه داسې دې. یو صحابی وو جبار بن صخر رضی الله عنه دَ هغه کور دَ حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه دَ کور نه لرِ شان وراندې وو هغه غوښتل چه (اوښه) لرِ شان وراندې خوئیدو سره زما دَ کور مخې ته اودریږی هغه په پتَه باندې اوښه باندې څکوندئی اولګوله. حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه چه دا اوکتل نو غصه کښې راغلو وئې وئیل والله که چرته نن اخوت اسلامی یعنی اسلامی رور ولی نه وې نو ما به ستا سټ الوزولې وو. ته زما نه دا سعادت په زور اخلې او خپل کور ته ئې بوتلل غواړې کوم چه الله تعالی په خپل فضل سره ماته راکړې دې.[٥]

---

[١] التوضیح لابن الملقن: ٤٦٨/٥ عمدة القاري: ٢٥٩/٤.
[٢] النهاية في غريب الحديث والأثر، باب: الميم مع اللام: ٦٧٢/٢ عمدة القاري: ٢٥٩/٤.
[٣] اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٨٦/٣ عمدة القاري: ٢٥٩/٤.
[٤] النهاية في غريب الحديث والأثر، باب: الفاء مع النون: ٢/٣٩٧ عمدة القاري: ٤/٢٥٩.
[٥] قال لما دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينة قام إليه المنذر بن عمرو وأبو دجانة وجماعة من أشرافهم يقولون: هلم يا رسول الله إلى العز والثروة، وجعل رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: بارک الله عليكم، خلوا سبيلها فإنها مأمورة، حتى جاء إلى باب أبي أيوب فبركت ناقته هناک، فجاء جبار بن صخر فنخسها بالرحل، فقال أبوأيوب: أعن منزلي تنحيها، فما؟ والذي بعثه بالحق لولا الإسلام لضربتک بالسيف. (مناحل الشفا ومناهل الصفا بتحقيق كتاب شرف المصطفى صلى الله عليه وسلم للنيسابوري، باب: ذكر مقدم النبي صلى الله عليه وسلم قباء وبناء المسجد: ٣٦٥/٢). دَدې کتاب محقق الشيخ ابوالقاسم عبدالكريم بن هوازن القشيري دا واقعه نقل کولو نه پس ليکلي دی چه په دې قصه کښې نکارت دې وئی ګورئی. وفي السياق نكارة، لأن جبار بن صخر هذا كان ممن أسر يوم بدر فيما ذكره أصحاب المغازي والسير، ومحمدبن الحسن ممن يضعف في الحديث، وانظر التعليق التالي (حواله بالا).

**دَ حضرت ابوايوب انصاري رضي الله عنه دَ كور تاريخ:** علامه زرقاني رحمه الله نقل كړي دي چه دَ يمن دَ بادشاهانو لقب "تبع" دې اودا مشهوره خبره ده. دَ حضورپاك دَ هجرت كولو نه اته سوا كاله وړاندې دَ يمن يو بادشاه جنګ كول ترډې چه مدينې پورې راؤ رسيدو. كله چه هغه مدينې ته راؤرسيدو نو يو يهودي عالم هغه ته اووئيل چه ته دلته جنګ مه كوه. دادَ خاتم النبيين ﷺ دَ هجرت ځائې دې. حضورپاك به دلته راځي او قيام به كوي. لهذا دَ ادب تقاضا داده چه دلته جنګ اونه كړې شي. دغه دَيمن بادشاه چه دَ يهودي عالم خبره واوريدو نو هلته ئې جنګ بند كړو اونه يوازې دا چه جنګ ئې بند كړو بلكه هغه هلته يو مكان جوړ كړو او وئې وئيل په دا دَ نبي آخرزمان دَ پاره دې او څه نور مكانات ئې هم جوړ كړل چه دَ يهوديانو احبارو ته ئې وركړل. اودَې نه پس هغه دَ حضورپاك په نوم باندې يو خط اوليكلو په هغې كښې ئې دا اوليكل چه دامكان كوم چه مادَ نبي آخرزمان دَ پاره جوړ كړې دې. كله چه هغوى تشريف راوړي نو هغوى ته دې پيش كړې شي. په دغه خط كښې هغه داهم اوليكل چه زه په هغه باندې ايمان راوړم او دا وعده كوم كه چرې ماته دَ هغه زمانه ملاؤ شوه نو زه به دَ هغه خادم جوړشم. هغه په دغه خط كښې يو شعر هم اوليكلو:

شهدت على أحمد أنه رسول من الله بارى النسم

فلو مد عمري إلى عمره لكنت وزيرا له وابن عم

يعني كه چرې ما هغه زمانه اوموندله نو زه به دَ هغه خادم، وزير او دَ تره ځوئې جوړشم.
چنانچه علامه زرقاني رحمه الله فرمائي هغه خط او كور منتقل كيدو سره حضرت ابوايوب انصاري رضي الله عنه ته اورسيدو. چنانچه كله چه حضورپاك تشريف راوړو نوحضرت ابوايوب رضي الله عنه هغه خط حضورپاك ته پيش كړو اودَ حضورپاك اوښه كومه چه دَ مدينې منورې دَ رسيدو نه پس دَ حضرت ابوايوب رضي الله عنه دكور مخې ته رامنع شوه دا په حقيقت كښې دَ الله تعالى دَ وحي اثر وو لكه څنګه چه دَ حديبيه په مقام باندې كله حضورپاك مكه مكرمه كښې داخليدل غوښتل نو اوښه كيناسته او دَ تلو نه ئې انكاركړې وو، هغه هم دَ وحي اثر وو. كله چه حضورپاك اوفرمائيل كه چرې كافرانو اومشركانو زما سره څه داسې معاهده اوكړه په كوم كښې چه هغوى دَ شعائر الله احترام كونكي وي نو زه به هغه منظور او قبوله كړم. او حضورپاك مكې مكرمې ته دَ تلو او ښار كښې دَ داخليدو اراده روستو كړه نو هغه اوښه فورې اودريده او حضورپاك دَ حديبيه مقام ته تلو سره هلته ايسار شوې وو. دغه شان دلته هم دَ حضرت ابوايوب انصاري رضي الله عنه دَ كور مخې ته راغله اوكيناسته. يوځل كيناسته اودې نه پس پاسيده اخوا ديخوا تلو راتلو سره بيا واپس هم هلته راغله اوكيناسته دا دَ الله تعالى حكم سره اوشو.(١)
دې نه پس علامه زرقاني ليكي چه حضورپاك دَ حضرت ابوايوب انصاري رضي الله عنه په كوركښې ايسار شو نو دا هم دَ حضورپاك كور وو چه هم دَ حضورپاك دَ پاره جوړ كړې شوې وو

(١) شرح العلامه الزرقاني على المواهب اللدنية للقسطلاني، باب: هجرة المصطفى وأصحابه إلى المدينة، خاتمة: في وقائع متفرقة حصلت في الهجرة: ١٦٣/٢.

حضورپاك دَ بل چا په كور كښې قيام نه دې كړې.[1]

پاتې شوه دا خبره چه اوښې ته وحی، نو دا څه داسې خبره نه ده ﴿ وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ ﴾ دَ قرآن مجيد آيت دې چه الله تعالى دَ شاتو مچئى ته وحى كړې ده.

**قوله:** وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يُصَلِّيَ حَيْثُ أَدْرَكَتْهُ الصَّلَاةُ، وَيُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ: حضورپاك دا خبره خوښوله چه چرته هم په هغوى دَ مونځ وخت راغلې هم هلته مونځ ادا كړى. (تر دې چه حضورپاك دَ چيلو په باړه كښې هم مونځ اداكړې دې.

**قوله:** وَيُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ: دَ ويصلى عطف په يحب باندې دې نه چه په يصلى باندې.[2]

**قوله:** مَرَابِضِ: دَ چيلو دَ ايساريدو ځائى ته مَربض وائى اودَ دې جمع مرابض استعماليږى.[3] دَ چيلو په باړه كښې دَ مونځ دَ مباح كيدو په بيان كښې مستقل يو باب وړاندې راروان دې.

**قوله:** وَأَنَّهُ أَمَرَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ، فَأَرْسَلَ إِلَىٰ مَلَإٍ مِنْ بَنِي النَّجَّارِ فَقَالَ: «يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُونِي بِحَائِطِكُمْ هَذَا»، قَالُوا: لَا وَاللَّهِ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهُ إِلَّا إِلَى اللَّهِ:

چنانچه حضورپاك په هغه ځائى كښې دَ يو جمات جوړولو حكم وركړو. چنانچه حضوپاك بنونجار راؤغوښتل او ورته ئې اوفرمائيل اې بنونجار! تاسو دَ دې خپل ځائى قيمت واخلئ، هغوى عرض اوكړو نه، په الله قسم چه نه، مونږ به تاسو نه دَ دې قيمت نه اخلو مونږ خو به دَ دې اجر صرف دَ الله تعالى نه اخلو.

**قوله:** وَأَنَّهُ أَمَرَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ: يو روايت كښې دا كلام دَ إن نه شروع كيږى په دې وجه چه دا مستقل كلام دې چه حضورپاك دَ جمات جوړولو حكم وركړو.[4] او په يو بل روايت كښې "أَمَرَ" دَ معروف په ځائى "أُمِرَ" مجهول صيغه ده.[5] په دې صورت كښې به دَ "أنه"، "هو" ضمير، ضمير شان وى.

**قوله:** ثَامِنُونِي بِحَائِطِكُمْ: علامه كرمانى رحمه الله دَ دې جملې ترجمه "تبيعونيه بالثمن" سره كړې ده چه تاسو ما باندې دَزمكې دا ټكړه دَ قيمت په بدله خرڅه كړئى.[6] بعضې حضراتو دَ دې مطلب

---

[1] (فعلى هذا) المذكور من أن تبعًا بنى للمصطفى – صلى الله عليه وسلم – دارًا (إنما نزل فى منزل نفسه لا فى منزل غيره.. كذا حكاه فى تحقيق النصرة) فى تاريخ دارالهجرة لقاضيها الشيخ زين الدين بن الحسين المراغى من مراغة الصعيد من فضلاء طلبة الجمال الإسنوى. (شرح العلامة الزرقانى على المواهب اللدنية للقسطلانى، باب: هجرة المصطفى وأصحابه إلى المدينة، خاتمة: فى وقائع متفرقة حصلت فى الهجرة: ١٦٤/٢).

[2] اللامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ١٨٦/٣.

[3] معجم الصحاح، رب ض، ص: ٣٨٦، النهاية فى غريب الحديث والأثر، باب: ربض: ٦٢٦/١.

[4] عمدة القارى: ٢٦١/٤.

[5] مصابيح الجامع بشرالجامع الصحيح البخارى: ١٣٥/٢، عمدة القارى: ٢٦١/٤.

[6] شرح الكرمانى: ٩٠/٤.

"اذكروالى ثمنه" ذكر كړې دي. دكوم مطلب چه دادې چه تاسو ماته دَدې قيمت اوښايئ.([1])

علامه ابن الملقن رحمه الله "قد رواثمنه لأشتريه منكم وبايعوني فيه" سره دَدې ترجمه كړې ده، چه تاسو دَدې قيمت مقرركړئ چه زه تاسو نه دازمكه واخلم او تاسو په دغه قيمت دا زمكه په ما خرڅه كړئ.([2])

دَدې ټولو معانيو نه پس علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دَدې ټولو مطلبونو نه يو هم دَدې مادې/صيغې "ثامنوني" دَ تفسير جوړيدو صلاحيت نه لرى اګرچه دا ټولې معانى په مقصود باندې دلالت كوى. ليكن دَدې صحيح تفسير هغه دې كوم چه ما په شرح ابوداؤد كښې كړې دې چه كله يو سړې دَ بل نه څه څيز اخستلو دَ پاره بيع وغيره كوى نو هغه وخت دَ ثامنوني لفظ استعمالولې شى. نو دلته به هم دا مراد وى چه ماته دَدې زمكې دَ ټكړې قيمت اوښايه چه زه تانه دَ زمكې دا ټكړه واخلم.([3])

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه دا دَ دوو يتيمانو زمكه وه حضورپاك هغوى ته اوفرمائيل چه تاسو دَدې زمكې قيمت اوښايئ. هغوى اووئيل چه مونږ خودا بغيردَ قيمت نه دركوو مګر حضورپاك دا منظوره نه كړه او هم په قيمت ئې ترې زمكه واخستله. ځكه چه دغه دَ يتيمانو مال وو. دلته روايت مختصر دې په ابواب هجرت كښې به پوره شى.([4])

**قوله:** بِحَائِطِكُمْ: دَ حائط نه مراد باغ دې صرف ديوال نه دې. دَدې دليل وړاندې راتلونكې قول "وفيه نخل" دې.([5])

**قوله:** لَاوَاللهِ: دا اجمال دې وړاندې قول "لانطلب ثمنه إلا إلى الله" دَدې اجمال نه پس تفصيل دې. او دَ اجمال تفصيل اوقع فى النفس وى لكه ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾.

**قوله:** إِلَى اللهِ: كښې كلمه "إلى" دَ من په معنى ده. دَ لغت علماؤ ليكلى دى چه "إلى" دَانتهاء غايت بيانولو دَپاره راځى.([6]) لهذا "لانطلب ثمنه إلا إلى الله" كښې بنونجارو حضورپاك ته عرض اوكړو چه زمونږ انتهاء غايت دَ الله تعالى نه طلب دَ اجر دې. دَ الله تعالى دَ رضا طلب دې مونږ ته قيمت نه دې پكار. اودا بالكل داسې ده لكه چه حضرت عيسى عليه السلام فرمائيلې وو: ﴿مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ ۖ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ﴾ (آل عمران: ۵٤)

---

[1] علامه عينى رحمه الله دلته بعضې حضرات وئيلو سره ذكركړې دې خودَدې قائل حافظ ابن حجر رحمه الله دې. وئې ګورئې: فتح البارى: ۶۸۱/۱ اوحافظ صاحب رحمه الله هم داجمله دَ علامه دَمامينى رحمه الله نه دَ هغوى طرف ته دَ نسبت كولو نه بغير نقل كړې ده. اوګورئې: مصابيح الجامع شرح الجامع الصحيح البخارى: ۱۳۵/۲.

[2] التوضيح لابن الملقن: ٤۷۱/۵.

[3] عمدة القارى: ۲۶۱/٤.

[4] تقريربخارى شريف: ۱۶۰/۲.

[5] التوضيح لابن الملقن: ٤۷۱/۵عمدة القارى: ۲۶۱/٤.

[6] معجم الصحاح، المادة: ا ل، ص: ٤۹.

دلته حضرت عيسى عليه السلام مبتدا خپل ذات جوړ کړو او منتهى نى د الله تعالى ذات جوړ کړې وو. حوارينو جواب ورکړو: ﴿نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ﴾ (١) مبتدا هغوى غائب کړه او صرف د منتهى هغوى رعايت اوکړو. هلته هم "إلى" د منتهاء غايت د بيانولو د پاره دې.

علامه کرمانى رحمه الله چه د دې جملې کومه معنى بيان کړې ده د هغې حاصل دا دې چه مونږ د هغه زمکې قيمت نه اخلو کومه چه به د الله تعالى په لار کښې استعماليږى.

بيا سوال دا پيدا کيږى چه هغوى د دغه زمکې بدل اخستل نه غوښتل نو د لفظ ثمن استعمال ئې په کوم بنياد اوکړو؟ جواب دا دې چه دا لفظ د مشاکلت په توګه استعمال کړې شو. مطلب دا چه کله نبى کريم ﷺ دا فرمائيلي وو چه د دې د قيمت په بدله کښې په ما خرڅه کړئې نو په جواب کښې هم هغوى هغه لفظ استعمالولو سره اووئيل چه مونږ به د دې قيمت هم د الله تعالى نه وصول کوو. بيا علامه کرمانى رحمه الله يو اشکال او د هغې جواب نقل کړې دې چه که څوك دا اعتراض اوکړى چه د "الطلب" د مصدر صله خو "مِن" استعماليږى دکوم تقاضا چه داده چه دا وئيلي شوي وې "إلا من الله" نه چه "إلا إلى الله".

نو د دې جواب دا دې چه په دې جمله کښې به په معنوى توګه دا مقدر منلې شى: "لانطلب من أحد لكنه مصروف إلى الله". (٢)

علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه د دې نه معلوميږى چه سړې چرته د اوسيدو اهتمام اوکړى، کوم ځائى چه خپل وطن جوړ کړى نو هلته دې جمعه او د جمع د قائمولو او د شعائر اسلام د اظهار په خاطر جمات قائم کړى. (په دې کښې دا ضرورى دى چه د مخکښې نه هلته جمات نه وى بيا وى خو، ليکن د آبادئې په اعتبار سره ناکافى وى). (٣)

**قوله:** فَقَالَ أَنَسٌ: فَكَانَ فِيهِ مَا أَقُولُ لَكُمْ قُبُورُ الْمُشْرِكِينَ، وَفِيهِ خَرِبٌ وَفِيهِ نَخْلٌ: حضرت انس رضى الله عنه اوفرمائيل لکه څنګه چه زه تاسو ته وايم چه دلته د مشرکانو قبرونه وو. په دې ځائى کښې يو شاړ ځائى وو او د کهجورو ونې وې.

**قوله:** فَكَانَ فِيهِ: د ضمير مرجع "الحائط" ده په کوم کښې چه مکان جوړ شوې وو. (٤)

**قوله:** قُبُورُ الْمُشْرِكِينَ: دې نه وړاندې راوى اووئيل: "ما أقول لكم" چه په دې ځائى کښې هغه وو کوم چه زه تاسو ته بيانوم. د دې نه پس به دا جمله د بدل په توګه يا به د بيان په توګه وى. (٥)

---

(١) ايضاً.

(٢) شرح الكرمانى: ٤/٩٠.

(٣) المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبى صلى الله عليه وسلم: ٢/١٢١.

(٤) فتح البارى: ١/٦٨١.

(٥) عمدة القارى: ٤/٢٦٢.

**قوله:** خِرَبٌ: دا د جمع صيغه ده دکوم واحد چه خَرِبَة دي.لکه د کَلِمَة جمع کَلِم ده.[1]

**قوله:** فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُورِ الْمُشْرِكِينَ، فَنُبِشَتْ، ثُمَّ بِالْخَرِبِ فَسُوِّيَتْ، وَبِالنَّخْلِ فَقُطِعَ، فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ وَجَعَلُوا عِضَادَتَيْهِ الْحِجَارَةَ:
نونبی کريم ﷺ دمشرکانو د قبرونو د ورانولو حکم ورکړو او د شار خائی د برابرولو حکم ئی ورکړو. او وني ئی پرې کړې. خلقو دغه ونې د جمات د قبلې طرف ته خورې کړې او د کانړو په ذريعه ئې د هغې دوه ستنې جوړې کړې.

**قوله:** فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُورِ الْمُشْرِكِينَ، فَنُبِشَتْ: نبی کريم ﷺ د مشرکانو د قبرونو د ورانولو حکم ورکړو نوهغه وران کړې شو.

**په وخت د ضرورت د مشرکانو قبرونو ورانولو جواز:** قبرونه ورانول، هغه وخت چه کله د مشرکانو ، کافرانو وی، مړی خاورې شوې وی، د غصب په خائی کښې خښ کړې شوې وی، جائز دی. د قبر احترام ددې خبرو نه علاوه صورت کښې دې. خلاصه دا چه داسې کول د ضرورت په وخت جائز دی. ليکن دمسلمانانو قبرونو سره په داسې معامله نه شی کولې.[2]

**قوله:** ثُمَّ بِالْخَرِبِ فَسُوِّيَتْ: د بالخرب عطف په بقبور المشركين باندې دې. مطلب دا چه په زمکه کښې جوړې شوو کندو وغيره باره کښې ئی حکم اوفرمائيلو چه دا دې برابر کړې شی يعنی ډکې دې کړې شی دې دپاره چه زمکه هواره شی بنکته پورته يا بې ترتيبه پاتې نه شی.

**قوله:** وَبِالنَّخْلِ: دې نه مراد هم دغه دې چه د کهجورو اونو د پرې کولو حکم ئی ورکړو.[3]
علامه قرطبی رحمه الله ليکلی دی چه ددې نه معلوميږی چه ميوه دارې ونې هم د ضرورت اوحاجت په وخت پرې کولې شی.[4]

**قوله:** فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ: علامه سمهودی رحمه الله ددې قول په تشريح کښې دا فرمائيلی دی چه دغه ونې د قبلې طرف ته د ديوال نه جدا د ستنو په توګه اودرولې شوې.[5]
علامه سهيلی رحمه الله د ابن اسحاق په واسطه د يونس بن بکير رحمه الله روايت نقل کړې دې چه د جمات د قبلې والا طرف په خښتو باندې پوخ کړې شو بلکه وئيلی شوی دی چه هغه ديوال په کانړو سره داسې پوخ کړې شو چه يو کانړې په بل کانړی کښې داخل وو.[6]

---

[1] الخرب: يجوز أن يكون بكسر الخاء، وفتح الراء، جمع خَرِبة، كَنِقْمة، ونِقَم. أو يجوز أن تكون، جمع خِرْبة – بكسرالخاء ، وسكون الراء على التخفيف – كنِعمة ونِعَم، ويجوز أن يكون: الخَرِب، بفتح الخاء، وبكسرالراء، كَنَبِقة، ونَبِق، وكلمة، وكَلِم، وقد روى بالحاء المهملة، والثاء المثلثة، يريد به: الموضع المحروث، للزراعة. (النهاية في غريب الحديث والأثر: خ ر ب: ١/٤٧٧).

[2] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم،كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبى صلى الله عليه وسلم:٢/١٢٢.

[3] عمدة القارى: ٢٦٢/٤.

[4] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبى صلى الله عليه وسلم: ٢/١٢٢.

[5] خلاصة الوفاء بأخبار دار المصطفى صلى الله عليه وسلم، عمارة النبى صلى الله عليه وسلم مسجدالمدينة: ٢/٨.

[6] الروض الأنف: ٢٤٨/٢.

دَ قبلة المسجد نه مراد دَ قبلې طرف دې، نه چه دَ نن صبا دور کښې موجوده قبله.[1]

**قوله: وَجَعَلُوا عِضَادَتَيْهِ الْحِجَارَةَ:** عضاد واحد دې او عضادتيه تثنيه ده دَدې معنی ده دَ لارې اړخ، دَ تالاب غاړې، کله چه هغه په کانړو سره مضبوط کړې شی، دَ چوکاټ دواړه درشلې مضبوطول، دې ځائ کښې مراد دوه ستنې اودرول دی، کومې چه دَ کانړو وې.[2]

**دَ حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه دَ شهادت خبر:** په دې موقع چه دَ مسجد نبوی آبادې کيده نبی اکرم صلى الله عليه وسلم او ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې آبادی کښې حصه واخستله نو هغه وخت حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه دَ جمات دَ آبادی دَ پاره دوه دوه خښتې اوچتولې او راوړلې ئې. يوه خښته دَ خپل طرف نه او دويمه دَ نبی کريم صلى الله عليه وسلم دَ طرف نه. هغه وخت نبی کريم صلى الله عليه وسلم هغه ته ارشاد اوفرمائيلو چه دَ ټولو دَ پاره يو اجر دې اوستا دَ پاره دوه اجرونه دی. (اواې عمار!) په دې دنيا کښې به ستا آخری خوراك دَ پيو ګوټ وی او تا به يو باغی ډله شهيد کړی.[3]

**قوله: وَجَعَلُوا يَنْقُلُونَ الصَّخْرَ وَهُمْ يَرْتَجِزُونَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُمْ:** صحابه کرامو رضي الله عنهم به کانړی اوچتولو سره رجزيه شعرونه وئيل او نبی کريم صلى الله عليه وسلم هم دَ هغوی سره وو.

**دَ نبی کريم صلى الله عليه وسلم او دَ صحابوُ ز شعرونه وئيل:**

**قوله: يَرْتَجِزُونَ:** رجز ئې وئيلو.[4]

---

[1] التوضيح لشرح الجامع الصحيح لابن الملقن: ۴۷۵/۵.

[2] المعجم الوسيط، ص: ۶۰۶.

[3] الجامع للإمام معمر بن راشد ومعه المصنف لابن عبدالرزاق، باب أصحاب النبی صلی الله عليه وسلم. رقم الحديث: ۲۰۴۲۶، ۱۱/۲۴۰-۲۳۹.

[4] علامه احمد رضا خان بجنوری رحمه الله ليکی چه حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائيلی دی چه داخفش (امام نحو) رائې ده چه رجز دَ بحور اشعار نه نه دې نو علماء دَ نحو ئې هم ددې نه منی. مګر زما په نيز دَ اخفش رائې مضبوطه او ژوره ده رجز دَ اردو فقرې بندی وتک بندی په شان دې او شعر او رجز مقابل ګڼړلې شی. چنانچه دَ تباع يمن سره به راجز هم وو اوشاعران هم، اودَ ټولو شاعرانو نه پس به راجز اوريدلې کيدو، لهذا رجز دَ شعر نه علاوه دې. بيا چه کوم خلق رجز په شعر کښې داخل ګڼړی هغوی هم په دې کښې قصد او اراده ضروری ګڼړی او وائی چه دَ حضورپاك نه خو انشاء دَ شعر چرته ثابت نه دې يعنی حضورپاك پخپله شاعری نه ده کړې، نه ئې چرته څه شعر وئيلی دې ځکه چه دَ حضورپاك دَ لوئی شان سره مناسب او موزون نه وو. البته دَ نورو شعرونه او رجز ئې وئيلې دې او په اشعارو کښې به ئې هم نه په قصد سره وزن ماتولو. په کوم باندې چه به حضرت ابوبکر رضي الله عنه فرمائيل هم چه حضرت داسې نه دې او حضورپاك به په جواب کښې فرمائيل چه زه شاعر نه يم. دَ حضورپاك نه دا شعر وئيل ثابت دی دَ کوم په اسناد کښې چه ائمه نحو دی:

تفاءل بما تهوى يكن فلقلما يقال لشيئ كان الا تحقق

په اصل شعر کښې "تحققا" په الف سره وو کوم چه حضورپاك مات کړو. العرف الشذی او فيض الباري کښې تحققا چهاپ شوې دې کوم چه غلط دې ځکه چه سنن بيهقی ص: ۴۲ ج ۷ کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه حضورپاك کله هم پوره شعر نه دې وئيلې مګر يو او بيائی هم دغه پورتنې شعر ذکر کړو. دې نه پس امام بيهقی رحمه الله اوفرمائيل چه دَ رجز وئيلو ثبوت دَ حضورپاك نه ........

په دې خبره کښې د ماهرينو اختلاف دې چه رجز د شعر د قسمونونه دې که نه؟ د اکثرو عروضيينو او د اهل ادبو اتفاق دې چه رجز شعر نه دې ځکه چه نبي اکرم ﷺ هم دا وئيلي دي. که چرې دا شعر وې نو نبي عليه السلام ته به د شعر علم کيدل لا زم شي حالانکه په قرآن حکيم کښې دي. ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ﴾ [۱] الله تعالى فرمائيلي دي چه مونږ نبي عليه السلام ته شعر نه دې خودلې. ليکن دا قول صحيح نه دې ځکه چه يو نيم شعر وئيلو سره يا کله کله شعر وئيلو سره څوك شاعر نه جوړيږي او نه دا سې سړې ته د شاعر نوم ورکولې کيږي. او نه هغه شعرونه د دغه سړي طرف ته منسوب کولې شي. [۲]

صحيح قول هم دغه دې چه رجز هم د شعر يو قسم دې، ځکه چه شعر هغه موزون کلام ته وائي په کوم کښې چه د قافيه رعايت اوکړې شي او رجز هم دغه شان دې. [۳]

علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه په دې کښې دا سې هيڅ دليل نشته دې چه نبي کريم ﷺ به اشعار وئيل بلکه ظاهره خبره خودا ده چه صحابه کرامو رضي الله عنهم به رجز وئيلو او نبي کريم ﷺ به هلته موجود وو ځکه چه واؤ حاليه دې او جمله "النبي صلى الله عليه وسلم معهم" د حال په ځائي دې. او دويم احتمال دا هم دې چه د دې جملې "النبي صلى الله عليه وسلم معهم" عطف د "يرتجزون" په ضمير باندې دې. په دې صورت کښې اشعار ويونکو کښې صحابه رضي الله عنهم او نبي عليه السلام ټول وو. [۴]

**د سماع په مباح کيدو باندې استدلال:** علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه صوفياء کرامو د نبي عليه السلام او صحابه کرامو رضي الله عنهم د دې شعرونو وئيلو نه د سماع په مباح کيدو باندې دليل نيولې دې. ليکن په موجوده دور کښې په دې کښې غلو شوې ده، د جواز د حد نه ئې تجاوز کړې شوې دې، د موسيقۍ آلات جائز ګرځولې شوي دي حالانکه دغه حرام دي، ګډا کانې جائز ګڼړلې شي، دا خود ليونو، اهل باطل او فاسقانو خلقو کارونه دي. کوم چه هغوي په دين کښې داخل کړي دي حالانکه دا د دين نه نه دي. الله تعالى دې په خپل فضل او احسان سره مونږ د دې نه محفوظ اوساتي، آمين. [۵]

---

........ ضرور شوې دې او بيائې په سندونو سره وئيلې شوي د ډيرو رجزونو ذکر ئې اوکړو. بيا دا اختلاف دې چه د قرآن مجيد نه شعر کښې اقتباس جائز دې که نه؟ مثلاً

| ايها الناس اتقوا ربكم | زلزلة الساعة شيئ عظيم |
|---|---|
| ومن يتق الله يجعل له | ويرزقه من حيث لا يحتسب |

دلته ئې يو يو لفظ کمولو سره شعر جوړ کړې دې دا سې د شافعيؤ په نيز جائز دي مګر زمونږ په نيز جائز نه دي او دې نه خو زما هسې ويره ده که چرې بغير د کمولو اوشي نو خير دې. (انوار الباري: ۱۴/۴۰-۳۹).

[۱] يس: ۶۹.

[۲] عمدة القاري: ۲۶۳/٤.

[۳] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبي صلى الله عليه وسلم: ۱۲۳/۲.

[٤] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبي صلى الله عليه وسلم: ۱۲٤/۲.

[٥] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبي صلى الله عليه وسلم: ۱۲٤/۲.

قوله: وَهُوَ يَقُولُ:

«اللَّهُمَّ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَةْ فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةْ»

او دائی فرمائیل اې الله، دَ آخرت دَ ښیګړې نه علاوه بله هیڅ ښیګړه (دَ توجه قابل) نه ده، نو دَ انصارو او مهاجرینو مغفرت اوکړه.

قوله: وَهُوَ يَقُولُ: دا جمله حال ده دَ النبي نه. (١)

قوله: اللَّهُمَّ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَةْ: هم دَ صحیح بخاری یو روایت او دَ صحیح مسلم یو روایت کښې "اللَّهُمَّ إِنَّهُ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَةْ" دي. په دې کښې دَمعنې په اعتبار سره څه خاص فرق نشته دې. چه اې الله! اصل خیر خو هم دَ آخرت خیر دې.(٢) دې نه علاوه په یو بل روایت کښې دَ "اللَّهُمَّ إِنَّ الْخَيْرَ خَيْرُ الْآخِرَةْ" الفاظ هم نقل دی.(٣)

---

(١) عمدة القاري: ٤/٢٦٤.

(٢) حدثنا مسدد، حدثنا عبدالوارث، ح وحدثنا إسحاق بن منصور، أخبرنا عبدالصمد، قال: سمعت أبى يحدث، حدثنا أبوالتياح يزيد بن حميدالضبعي، قال: حدثنى أنس بن مالک رضى الله عنه، قال: لما قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينة، نزل فى علو المدينة، فى حى يقال لهم بنوعمرو بن عوف، قال: فأقام فيهم أربع عشرة ليلة، ثم أرسل إلى ملا بنى النجار، قال: فجاءوا متقلدى سيوفهم، قال: وكأنى أنظر إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم راحلته وأبوبكر ردفه، وملأ بنى النجار حوله، حتى ألقى بفناء أبى أيوب، قال: فكان يصلى حيث أدركته الصلاة، ويصلى فى مرابض الغنم، قال: ثم إنه أمر ببناء المسجد، فأرسل إلى ملا بنى النجار فجاءوا، فقال: يابنى النجار! ثامنونى حائطكم هذا فقالوا: لا والله، لا نطلب ثمنه إلا إلى الله، قال: فكان فيه ما أقول لكم، كانت فيه قبور المشركين، وكانت فيه خرب، وكان فيه نخل، فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم بقبورالمشركين فنبشت، وبالخرب فسويت، وبالنخل فقطع، قال: فصفوا النخل قبلة المسجد، قال: وجعلوا عضادتيه حجارة، قال: قال: جعلوا ينقلون ذاک الصخر وهم يرتجزون، ورسول الله صلى الله عليه وسلم معهم، يقولون: اللهم إنه لا خير إلا خير الآخره، فانصر الأنصار والمهاجره. (صحيح البخارى، كتاب مناقب الأنصار، باب: مقدم النبى صلى الله عليه وسلم وأصحابه المدينة، رقم الحديث: ٣٩٣٢). حدثنا يحى بن يحى، وشيبان بن فروخ، كلاهما عن عبدالوارث، قال يحيى: أخبرنا عبدالوارث بن سعيد، عن أبى التياح الضبعى، حدثنا أنس بن مالک، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قدم المدينة، فنزل فى علوالمدينة، فى حى يقال لهم بنوعمروبن عوف، أقام فيهم أربع عشرة ليلة، ثم إنه أرسل إلى ملأ بنى النجار، فجاءوا متقلدين بسيوفهم، قال: فكأنى أنظر إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم راحلته، وأبوبكر ردفه، وملأ بنى النجار حوله، حتى ألقى بفناء أبى أيوب، قال: فكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلى حيث أدركته الصلاة، ويصلى فى مرابض الغنم، ثم إنه أمر بالمسجد، قال فأرسل إلى ملأ بنى النجار فجاءوا، فقال: يابنى النجار، ثامنونى بحائطكم هذا قالوا: لا، والله! لا نطلب ثمنه إلا إلى الله، قال أنس: فكان فيه ما أقول: كان فيه نخل وقبورالمشركين وخرب، فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم بالنخل فقطع، وبقبور المشركين فنبشت، وبالخرب فسويت، قال: فصفوا النخل قبلة، وجعلوا عضادتيه حجارة، قال: فكانوا يرتجزون، ورسول الله صلى الله عليه وسلم معهم، وهم يقولون: اللهم إنه لا خير إلا خير الآخره، فانصر الأنصار والمهاجره. (صحيح مسلم، كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبى صلى الله عليه وسلم، رقم الحديث: ٥٢٤).

(٣) حدثناعمرو بن على، حدثنا خالد بن الحارث، حدثنا حميد، عن أنس رضى الله عنه: ........

**قوله: فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ:** په دې روايت كښې "للأنصار" دې خودَ مستملي او حموي په روايت كښې دَ لام حرفِ جر نه بغير "الأنصار" دې. (١) اودَ سنن ابى داؤد په روايت كښې دَ "فاغفر" په ځائې "فانصر" دې يعنى "فانصر الأنصار". (٢)

**دَ انصارو دَ تسميه وجه:** انصار جمع دَ نصير ده لكه شريف جمع دَ أشراف ده. دې ډلې ته انصار په دې وجه وائى چه هغوى دَ نبى كريم ﷺ امداد اونصرت كړې دې اودَ حضورپاك ﷺ نى دَ هغوى دَ دښمنانو نه حفاظت كړې دې. دا جماعت په خپل دې صفت كښې داسې ممتاز شو چه دَ هغوى نوم انصار شو. اوداسې معروف او مشهور شو لكه چه دَ يوې قبيلې نوم انصار دې. (٣)

**دَ مهاجرينو دَ تسميه وجه:**

**قوله: وَالْمُهَاجِرَةْ:** دې نه مراد هغه جماعت دې چاچه دَ نبى كريم ﷺ په محبت كښې اودَ آخرت دَ كاميابۍ په طلب كښې مكه مكرمه پريخودو سره دَ مدينې منورې طرف تـه هجرت اوكړو. دَ هجرت اصل يوڅيز پريخودل او ترك كول دى. بيا دا لفظ يوه زمكه پريخودو سره دَ بلې زمكې طرف ته دَتلو دَ پاره استعمال شو اودَ رومبې معنې استعمال متروك شو. (٤)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه كله دا شعر دَ شعر په انداز كښې وئيلې شى نو لفظ "آخرة" او

---

........ خرج النبي صلى الله عليه وسلم، فى غداة باردة، والمهاجرون والأنصار يحفرون الخندق، فقال:

اللهم إن الخير خير الآخره فاغفر للأنصار والمهاجره

فأجابوا:

نحن الذين بايعوا محمدا على الجهاد ما بقينا أبدا

(صحيح البخاري، كتاب الأحكام، باب: كيف يباع الإمام الناس، رقم الحديث: ٧٢٠١).

(١) فتح الباري: ٦٨١/١ عمدة القاري: ٢٦٤/٤.

(٢) حدثنا مسدد، حدثنا عبدالوارث، عن أبي التياح، عن أنس بن مالك، قال: قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينة فنزل فى علوالمدينة فى حى يقال: لهم بنوعمرو بن عوف فأقام فيهم أربع عشرة ليلة، ثم أرسل إلى بنى النجار فجاءوا متقلدين سيوفهم، فقال أنس: فكأنى أنظر إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم على راحلته، وأبوبكر ردفه، وملأبنى النجار حوله حتى ألقى بفناء أبى أيوب، وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلى، حيث أدركته الصلاة، ويصلى فى مرابض الغنم، وإنه أمر ببناء المسجد، فأرسل إلى بنى النجار فقال: يا بنى النجار، ثامنونى بحائطكم هذا فقالوا: والله لا نطلب ثمنه إلا إلى الله عزوجل قال أنس: وكان فيه ما أقول لكم، كانت فيه قبورالمشركين، وكانت فيه خرب، وكان فيه نخل، فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم بقبور المشركين، فنبشت وبالخرب فسويت وبالنخل فقطع، فصفوا النخل قبلة المسجد، وجعلوا عضادتيه حجارة، وجعلوا ينقلون الصخر، وهم يرتجزون والنبى صلى الله عليه وسلم معهم، وهو يقول: اللهم لا خير إلا خيرالآخره فانصر الأنصار والمهاجره. (سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، باب: فى بناء المسجد، رقم الحديث: ٤٥٣ ).

(٣) المحكم والمحيط الأعظم لابن سيده، المده: ن ص ر: ٢٩٩/٨. لسان العرب، فصل النون: ٢١٠/٥.

(٤) عمدة القاري: ٢٦٤/٤.

"المهاجرة" باندې په وقف كولوسره لوستلې شي ليكن نقل دادي چه نبى كريم ﷺ دا شعر د شعر د وزن نه ويستو سره تاء متحركه سره لوستلې وو [1]

**د حديث مبارك د ترجمة الباب سره مناسبت:** د مذكوره حديث شريف د ترجمة الباب سره مناسبت بالكل ښكاره دې ځكه چه په ترجمه كښې هم او په حديث شريف كښې هم د مشركانو د قبرونو د ورانولو ذكر دې. [2]

**د حديث مبارك نه مستفاد امور او احكام:** د دې حديث شريف نه ډير احكام او آداب مستنبط كيږي په هغې كښې څه دلته ليكلې كيږي.

① هم په يوه سورلئ باندې سور پسې شاته د بل بنده د كينولو جواز معلوميږي. [3]

② د چيلو د تړلو ځائى كښې د مونځ د ادا كولو د جواز علم اوشو. [4]

③ د هبه يا بيع د وجې نه چه څوك د قبرستان مالك جوړ شوې وى په هغه قبرستان كښې د تصرفات كولو د جواز علم اوشو. [5]

④ دا هم معلوم شو چه د مشركانو قبرونه ورانول جائز دى ځكه چه هغه د احترام قابل نه دى [6]

⑤ دا هم معلومه شوه چه كله په قبر كښې د مرى هډوكى ختميدو سره خاورې شى نو په هغه زمكه باندې مونځ كول صحيح دى. [7]

⑥ دا هم معلومه شوه چه تازه ميوه دارې ونې په وخت د ضرورت پرې كول او استعمالول هم صحيح دى. [8]

⑦ د ذهنونو د تازه ساتلو د پاره د شعرونو ونيلو د جواز هم معلوم شو. [9]

⑧ د علامه قرطبى رحمه الله قول مخكښې تيرشوې دې هغوى فرمائى: د دې نه معلوميږى چه سړې چرته د اوسيدو اهتمام اوكړى او هغه خپل وطن جوړ كړى نو هلته دې جُمعه او جمع قائمولو او د شعائر اسلام د اظهار په خاطر جمات قائم كړى. (په دې كښې دا ضرورى دى چه د مخكښې نه هلته جمات موجود نه وى يا وى خو صحيح ليكن د آبادئى په اعتبار سره ناكافى وى). [10]

[1] شرح الكرمانى: ٩٠/٤.
[2] عمدة القارى: ٢٥٨/٤.
[3] عمدة القارى: ٢٦٤/٤.
[4] عمدة القارى: ٢٦٤/٤.
[5] فتح البارى: ٦٨١/١ عمدة القارى: ٢٦٤/٤.
[6] أعلام الحديث فى شرح صحيح البخارى للخطابى: ٣٩١/١. فتح البارى: ٦٨١/١. عمدة القارى: ٢٦٤/٤.
[7] التوضيح لابن الملقن: ٧٤٧/٥. عمدة القارى: ٢٦٥/٤.
[8] التوضيح لابن الملقن: ٧٤٧/٥. عمدة القارى: ٢٦٥/٤.
[9] عمدة القارى: ٢٦٥/٤.
[10] المفهم لما أشكل من تخلخيص كتاب مسلم، كتاب الصلاة، باب: ابتناء مسجد النبى صلى الله عليه وسلم: ١٢١/٢.

## ١٧ - بَابٌ: الصَّلاَةِ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ

داباب دې دَ چيلو دَ ترلو په ځائى کښې دمونځ کولو باره کښې

**قوله**: مرابض: ماده ده ر ب ض، دَ کوم معنى چه دَ يو ځائى کښې ايساريدل. دا جمع دَ مَرِبض ده دَ ميم په فتحې او باء په کسرې سره. ربَض، يَربِضُ دَ باب ضرب يضربُ نه اسم مکان دې. دکوم معنى چه دَ چيلو دَ اوسيدو ځائى دې کوم ته چه باړه او کنداؤ هم وائى. (١) بعضې حضراتو دا لفظ مِربَض په کسرې دَميم ونيلې دې. ليکن دا علامه عينى رحمه الله غلط گرځولې دې. (٢)

**دَترجمة الباب مقصد**: حضرت شيخ الحديث مولانا محمدزکريا کاندهلوى رحمه الله فرمائى چه نورو ځناورو مثلاً غوا، ميخه، اس او اوښ وغيره په مقابل په چيلو کښې مسکنت يعنى عاجزى وى. په دې وجه به حضورپاک دَ نورو ځناورو مقابله کښې دَ چيلو په باړه کښې مونځ کول خوښول. (٣)

دارنګ هغوى اوفرمائيل چه دَ امام بخارى رحمه الله مقصود دَدې ترجمې نه دا دې چه دَ مسجد نبوى دَ جوړيدو نه مخکښې دَ حضورپاک په مرابض غنم يعنى دَ چيلو ځائى کښې مونځ کول څه اتفاقى امر نه وو بلکه قصداً وو. (٤)

حديث باب [حديث نمبر ٤١٩]

| |
|---|
| ٤١٩- حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسٍ (٥) قَالَ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ، ثُمَّ سَمِعْتُهُ بَعْدُ يَقُولُ كَانَ يُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ قَبْلَ أَنْ يُبْنَى الْمَسْجِدُ. |

**دَ حديث ترجمه**: حضرت ابوالتياح رحمه الله دَ حضرت انس رضى الله عنه نه نقل کوى چه هغوى اوفرمائيل چه نبى کريم صلى الله عليه وسلم به دَ چيلو په باړه کښې مونځ اداکولو. بيا دَدې نه پس ما هغوى داسې وينا کولو سره واؤريدل چه حضورپاک به دَ مسجد نبوى جوړيدو نه مخکښې دَ چيلو په باړه کښې مونځ کولو.

**تراجم رجال**: دَ مذکوره حديث شريف په سند کښې ټول څلور راويان دى:

① سليمان بن حرب رحمه الله: دا ابوايوب سليمان بن حرب بن بجيل ازدى واشحى بصرى رحمه الله دې. دَدوى تفصيلى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من كره أن يعود فى الكفر كما يكره أن يلقى فى النار من الإيمان کښې تيرشوى دى. (٦)

---

(١) المحكم والمحيط الأعظم، المادة: رب ض: ١٩٤/٨. الصحاح للجوهرى، المادة: ر ب ض: ١٠٧٦/٣.
(٢) عمدة القارى: ٢٦٥/٤.
(٣) الأبواب والتراجم: ٢١٤/٢. الكنزالمتوارى: ١٣٣/٤.
(٤) سراج القارى: ١٤/٢.
(٥) مرتخريجه تحت رقم الحديث: ٢٣٢، كتاب الوضوء، باب: أبوال الإبل والدواب والغنم ومرابضها.
(٦) كشف البارى: ١٠٥/٢.

④ شعبہ رحمہ اللہ: دا شعبہ بن الحجاج بن الورد واسطی بصری رحمہ اللہ دی. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من سلم المسلمون من لسانه ویده کښې تیرشوی دی.(۱)

⑤ ابی التیاح رحمہ اللہ: دا ابوالتیاح یزید بن حمید الضبعی رحمہ اللہ دی. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم کی لاینفروا لاندې تیر شوی دی.(۲)

⑥ انس رضی اللہ عنہ: دامشهور صحابئ رسول حضرت انس بن مالك رضی اللہ عنہ دی. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الایمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې تیر شوی دی.(۳)

دَ حدیث شرح: دَ مذکوره حدیث شرح په تفصیل سره کتاب الوضوء باب: أبوال الإبل والدواب والغنم ومرابضها کښې تیره شوې ده.(۴)

دَدې حدیث خلاصه داده چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم دَ الله تعالی دَ حکم دَ وجې امت محمدیه علی صاحبها الصلوة والتسلیم دَپاره دَ آسانئ او سهولت والا معامله کولو سره ټول مخ دَ زمکې دَ مونځ او طهارت ځائی جوړ کړې دی. دَ کوم تقاضا چه داده چه په چا باندې کوم ځائی کښې هم دَ مونځ وخت راشی هغه دې دَ ځائی دَ پاکوالی لحاظ ساتلو سره هلته مونځ ادا کړی. دا دَدې امت امتیازی صفت دی. دَدې په عمومیت کښې دَ چیلو په باړه کښې اداشوې مونځ هم شامل دی.

دویمه خبره داده چه دَ روایت مطابق دَ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم دا عمل دَ مسجد نبوی دَ جوړېدو نه مخکښې وو او دَ مسجد نبوی دَ آبادېدو نه پس دَ حضورپاك معمول په جمات کښې دَ مونځ ادا کولو وو یعنی دَ چیلو په باړه کښې مونځ مطلوب او محمود نه دی بلکه دَ ضرورت په وخت داسې ځائی کښې مونځ ادا کول جائز دی.

قوله: ثم سمعته بعدُ: دَدې قول قائل څوك دی؟ په دې باره کښې علامه برماوی رحمہ اللہ داخبره اختیار کړې ده چه دَدې قائل ابوالتیاح دی چا چه دَ حضرت انس رضی اللہ عنہ نه داخبره اورېدلې ده.(۵) او حافظ ابن حجر رحمہ اللہ داخبره اختیار کړې ده چه دَدې قائل حضرت شعبه رحمہ اللہ دی کوم چه داحدیث دَ حضرت ابوالتیاح رحمہ اللہ نه روایت کوی.(۶) او دَ علامه عینی رحمہ اللہ په نیز په دې کښې دواړه احتمالات دی.(۷)

(۱) کشف الباری: ۶۷۸/۱.
(۲) کشف الباری: ۲۶۱/۳.
(۳) کشف الباری: ۴/۲.
(۴) کشف الباری کتاب الوضوء باب: أبوال الإبل والدواب والغنم ومرابضها، رقم الحدیث: ۲۳۴.
(۵) اللامع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ۱۸۹/۳.
(۶) فتح الباری: ۶۸۲/۱.
(۷) عمدة القاری: ۲۶۶/۴.

ددې اضافي مفهوم دادې چه ترکومې پورې مسجد نبوی نه وو جوړشوې ترهغه وخته پورې به نبی کریم ﷺ د ضرورت په وخت چه کله چرته بل ځائی نه ملاویدو نود چیلو په باره کښې به ئې هم مونځ ادا کولو. خو چه کله مسجد نبوی جوړ شو نوبیا دهغې نه پس حضورپاک داسې ځائی کښې مونځ نه دې ادا کړې. اګرچه په داسې ځائی کښې د ناپاکئ وغیره نه د سلامتیا په صورت کښې د مونځ ادا کولو جواز برقرار دې.(١)

**د حدیث شریف د ترجمة الباب سره مناسبت:** د حدیث شریف د ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په دواړو کښې د چیلو باړه کښې دمونځ د ادا کولو ذکر دې.(٢)

## ١٨ - بَابٌ: الصَّلَاةِ فِي مَوَاضِعِ الْإِبِلِ

داباب د اوښانو د اوسیدو ځائی کښې د مونځ د اداکولو په باره کښې دې.

**قوله: مواضع الإبل:** په دې ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله مواضع الإبل لفظ استعمال کړې دې حالانکه په احادیثو کښې دا لفظ نه دې استعمال شوې. بلکه د حضرت براء او جابر بن سبره رضي الله عنهما په حدیث کښې د "مبارك الإبل" الفاظ دی.(٣) د حضرت ابوهریره رضي الله عنه په روایت کښې د "أعطان الإبل" الفاظ دی.(٤). او د حضرت أسید بن حضیر رضي الله عنه په روایت کښې د "مناخ الإبل" الفاظ دی. (٥)او د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه په روایت کښې د "مرابد الإبل" الفاظ

---

(١) عربو به چیلې او اوښان ساتل هم دغه د هغوې معیشت وو. چرته چه به هغوی د شپې په وخت راوستل او تړل به ئې. په هغې کښې به ئې یو طرف ته د خپلې ناستې پاستې ځائی هم جوړولو دکوم د صفایئ خیال به چه ئې ساتلو. چونکه جماتونونه لا تر دغه وخته پورې آباد شوی نه وو اود مونځ کولو د باره په اسلام کښې څه د خاص ځائی قید نه وو. په دې وجه حضورپاك هم او صحابه کرامو هم د چیلو په دغه باړو کښې مونځ ادا کړې دې. بیا د دې ځائی څه تخصیص نه وو چرته چه به هم دمونځ وخت کیدلو هغوی به فوری ادا کولو. کله چه جمات جوړ شو نو اوس په عامو حالاتو کښې مونځ هم په جمات کښې کول بهتراوګرخولې شو.(انوارالباري: ٤٠/١٤).

(٢) عمدة القاري: ٢٦٥/٤.

(٣) عن البراء بن عازب، قال:سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الوضوء من لحوم الإبل. فقال: توضؤوا منها، وسئل عن لحوم الغنم، فقال: لا توضؤوا منها، وسئل عن الصلاة فى مبارك الإبل، فقال:لا تصلوا فى مبارك الإبل، فإنها من الشياطين، وسئل عن الصلاة فى مرابض الغنم، فقال: صلوا فيها فإنها بركة. (سنن أبي داؤد، كتاب الطهارة، باب: فى الضوء من لحوم الإبل، رقم الحديث:١٨٧). عن جابر بن سمرة أن رجلا سأل رسول الله صلى الله عليه وسلم أأتوضأ من لحوم الغنم؟ قال: إن شئت فتوضأ، وإن شئت فلا توضأ. قال أتوضأ من لحوم الإبل؟ قال: نعم فتوضأ من لحوم الإبل، قال: أصلي فى مرابض الغنم؟ قال: نعم. قال: أصلى فى مبارك الإبل؟ قال: لا. (صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الوضوء من لحوم الإبل، رقم الحديث:٩٧).

(٤)عن أبي هريرة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:صلوا فى مرابض الغنم،ولا تصلوا فى أعطان الإبل.(سنن الترمذي، كتاب الصلاة، باب ماجاء فى الصلاة فى مرابض الغنم وأعطان الإبل، رقم الحديث: ٣٤٨)

(٥) فتح الباري: ٦٨٢/١

نقل دی.[1] لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا ټول الفاظ ترك کولو سره دَ "مواضع الإبل" لفظ استعمال کړې دې ځکه چه دا لفظ سابقه ټولو معانیو ته شامل دې.[2] دَدې ټولو الفاظو معنی دَ لږ شان فرق سره تقریبًا هم یو ده.

**قوله:** "مَبارِك" دَدې معنی ده په زنګونونو باندې دکیناستو. کوم وخت چه اوبښ په زنګونونو باندې په زمکه کینی نودَ هغه دَ ناستې ځائی ته مَبرَك اودَدې جمع ته مَبارِك وائی.[3]

**قوله:** "معاطن" جمع ده دَ "معطِن"، دَدې معنی ده دَ تالاب نه ګیرچاپیره دَ اوبښ دَ کیناستو ځائی. داسې په عام توګه هغه وخت کیږی کله چه اوبښ یا چیلئ وغیره اوبه څکلو سره نبه خروب شی. دې نه پس هغوی دَ تالاب نه ګیر چاپیره کینولې شی دې دَ پاره چه څه وخت پس هغه بیا اوبه اوڅکی. ځکه چه هغه دَ ټولې هفتې دَ پاره په خپله خیټه کښې اوبه ذخیره اوجمع کوی، نودې ځائی ته معاطن وائی.[4]

**قوله:** "مرابِض" جمع ده دَ "مربِض"، دَدې معنی هم دَ اوبښ کینولو او تړلو دَ ځائی ده.[5]

**قوله:** "مناخ" دَدې معنی هم دغه ده.[6]

**دَترجمة الباب مقصد:** دامام بخاری رحمه الله مقصود دَدې باب نه دَاوبښانو دکیناستو ځایونو کښې دَمونځ دَ ادا کولو صحیح کیدل بیانول دی اودَ امام احمدبن حنبل رحمه الله رد کول دی. دَ هغوی په نیز دَ اوبښانو تړلو ځایونو کښې مونځ کول جائز نه دی.[7]

---

[1]) عن عبدالله بن عمرو: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يصلى فى مرابد الغنم، ولا يصلى فى مرابدالإبل والبقر. (مسندأحمد بن الحنبل، مسندعبدالله بن عمرو بن العاص، رقم الحديث:۶۶۵۸، ۱۱/۲۳۹)

[2]) فتح البارى: ۶۸۲/۱.

[3]) الصحاح تاج اللغة، برک: ۱۵۷٤/٤. المعجم الوسيط: باب الباء: ۵۲/۱.

[4]) النهاية فى غريب الحديث والأثر، عطن: ۲۵۸/۳. لسان العرب، فصل العين المهملة: ۲۸۶/۱۳.

[5]) الصحاح تاج اللغة: ٤۷۱/۲. المعجم الوسيط: باب الباء: ۵۲/۱. لسان العرب، فصل الراء: ۱۷۰/۳. المعجم الوسيط: باب الراء: ۳۲۲/۱.

[6]) المغرب فى ترتيب المعرب، العين مع الطاء: ۳۱۹/۱.

[7]) علامه بجنوری رحمه الله لیکی چه په دې باب اوحدیث سره امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه دَ اوبښانو په طبیله کښې د مونځ کولو ممانعت چه په کومو احادیثوکښې موجود دې هغه په نورو وجوهاتو سره دې چه بعضې اوبښان شریر وی ورانیږی نو مونځ په تسلئ سره کول مشکل وی وغیره. ګنی که اموخته کړې شوی وی اود سورلئ وی چه اکثر دیر زیات شریف مزاج وی نوکه دَ هغوی په نیزدیکت کښې فی نفسه څه خرابی په مونځ کښې راتلې شوه نوحضورپاك به پخپله ولې مونځ کولو؟ لیکن امام احمد رحمه الله دلته دَ فقهی نظر نه د کار نه اخستو په وجه د حدیث دَ ظاهرې د ممانعت د وجې دَ اوبښانو په طبیله کښې مونځ کول صحیح ګرځولی دی او هم ددې رد امام بخاری رحمه الله کړې دې. حافظ صاحب رحمه الله دلته لیکلی دی چه د ممانعت والا احادیث به دَ امام بخاری رحمه الله په شرط باندې نه وو په دې وجه ئې هغه ذکر نه کړل. مګر زه وایم چه امام بخاری رحمه الله دَ نورو مسلکونو والا دَ احادیثو د روایت کولو التزام کله کوی چه مذکوره تاویل اوکړې شی. والله اعلم. (انوارالبارى: ۴۱/۱۲).

**دَ علامه سندهي رحمه الله رائې:** دَ علامه سندهي رحمه الله رائې داده چه امام بخاري رحمه الله "مواضع ابل" او "معاطن ابل" كښې فرق بيانوى چه معاطن بل شئ دې او مواضع بل شئ. معاطن هغه ځائى ته وائى چرته چه اوښ دَ اوبو څكلو وخت كښې اودريږى. او نهى مذكورخاص ده دَ معاطن ابل سره. لهذا دَ اوښ دَ ناستې پاستې نور ځايونه به په دې باندې قياس كولې نه شى. چنانچه په دغه ځايونو كښې به مونځ جائز وى.(۱)

**دَ حضرت ګنګوهي رحمه الله رائې:** حضرت مولانا رشيداحمد ګنګوهي رحمه الله فرمائى چه دَدې باب په قائمولو سره امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړى چه هغه ممانعت كوم چه دَ اوښانو په باړه كښې دَمونځ كولو متعلق دې هغه په خپل عموم باندې نه دې او نه هغه ممانعت دَ يو داسې علت په وجه دې كوم چه دَ اوښ په ذات كښې موجود وى. بلكه دَدې ممانعت وجه داده چه داسې ځايونو كښې مونځ ادا كولو سره يكسوئى او توجه باقى نه پاتې كيږى. په زړه كښې دَ اوښ دَ طرف نه دَ نقصان، شرارت او دَ نجاست وسوسې راوڅيږى لهذا كه دَدغه امورو نه تحفظ ممكن وى اودَ زړه تسلى حاصله وى نو بيا په داسې ځايونو كښې دَ مونځ دَ صحيح كيدو نه هيڅ منع كونكې څيز نشته دې. څنګه چه دَ كجاوې دَ لركې وغيره طرف ته مخ كولو سره مونځ ادا كول صحيح دى لكه څنګه چه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ اثر نه دَدې طرف ته اشاره ملاويږى لهذا دَ امام بخاري رحمه الله دَ ابن عمر رضي الله عنهما دَ اثر نه استدلال كولو سره دَ اوښانو په باړه كښې دَ مونځ دَ كولو جواز اختيارول صحيح دى.(۲)

**دَ علامه كاندهلوى رحمه الله رائې:** علامه محمد ادريس صاحب كاندهلوى رحمه الله فرمائى لكه چه امام بخاري دَدې ترجمې په ذريعه دَ هغه احاديثو طرف ته اشاره كول چه دَ اوښانو په باړه كښې دَ مونځ ادا كولو نه دَمنع باره كښې راغلى دى او هغه دَ امام بخاري رحمه الله په شرط باندې نه پوره كيږى. يعنى دَدې باب دَ قائمولو په ذريعه امام بخاري رحمه الله دَ اوښانو په باړه كښې دَ مونځ جواز ښائى.(۳)

**دَ اوښانو باړه كښې دَ مونځ كولو حكم:** ائمه ثلاثه (امام مالك رحمه الله، امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله) په نيزدَ اوښانودَ تړلو په ځائى كښې كوم وخت چه هلته اوښان تړلې وى هلته مونځ ادا كول مكروه دى. اودَ كراهت وجه داده چه اوښ شرير ځناور دې دَ هغه دَ شرارت اودَ هغه دَ تيختې او چقنړى كولو دَ ويرې دَ وجې په مانځه كښې دَ خلل انديښنه ده اودا وجه هم كيدې شى چه دَ اوښانو په باړه كښې نجاست زيات وى په خلاف دَ چيلو په باړه كښې. اوكه چرې داسې ځايونو كښې ځائې پاك صفا وى يا څه پاكه كپړا خوررولو سره مونځ اوكړې شى نو بيا كراهت هم نشته دې.(۴)

---

(۱) حاشية السندهي، كتاب الصلاة، باب: الصلاة فى مواضع الإبل: ۱/۱۲۶،الطاف سنز.

(۲) اللامع الدرارى: ۱/۱۶۶.

(۳) تحفة القارى: ۲/۴۸۸.

(۴) بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل شرائط أركان الصلاة:۱/۱۱۵. حاشية ابن عابدين.......

دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز داسې ځایونو کښې مونځ نه کیږي. دَ هغوی دلیل دَ سنن ابی داؤد هغه حدیث دې په کوم کښې چه نبی کریم ﷺ دَ اوښانو باره کښې دَ مونځ ادا کولو باره کښې فرمائیلي دی چه دَ دې باره کښې مونځ کوئی ځکه چه دَ دوی خلقت دَ شیطانانو نه دی.(۱) البته دَ هغوی په نیز دَ اوښانو دَ تګ راتګ په ځایونو کښې، عارضي دَ ساتلو ځائی (لکه په لاره باندې دَ څه وخت دَ پاره حصار یدل او کیناستل یا دَ ګیا خوړلو دَ پاره ناست وی وغیره وغیره) کښې مونځ ادا کول جائز دی.(۲)

**دَ حنابله دَ دلیل جواب:** علامه سهارنپوری رحمه الله فرمائی دَ حدیث جملې "فإنها من الشياطين" کښې دَ "ه" ضمیر مرجع ماقبل جمله کښې لفظ "مبارك" جوړیږي یا بیا لفظ "ابل"، دواړه احتماله موجود دی. که چرې اول احتمال مراد وی نو په دغه صورت کښې به "الشياطين" نه مخکښې مضاف الیه محذوف وی یعنی "مأوى الشياطين" دَ اوښانو باړې دَ شیطانانو ځایونه دی. اوکه چرې دویم احتمال مراد وی یعنی ضمیر راجع وی دَ "ابل" طرف ته نو په دې سره به لا زم راځی چه اوښ دَ شیطانانو دَ نسل نه دې. دا احتمال مخې ته کولو سره دَ بعضو وینا ده چه دا جمله په خپل حقیقت باندې محمول ده. دَ کوم مطلب چه به داشی چه اوښان هم دَ شیطانانو دَ اوبو نه راپیدا کړې شوې دی. او بعضې دا وئیلي دی چه دلته حقیقي معنی مراد نه ده بلکه مجازی معنی مراد ده. یعنی اوښانو له دَ شیطانانو سره په شیطانت کښې تشبیه ورکړې شوې ده لکه څنګه چه شیطانان شریر وی هم دغه شان اوښان هم شریر وی.

اوډ بعضې علماؤ دا هم وینا ده چه شیطانان هم دوه قسمه دی یو هغه چه دَ جناتو دَ نسل نه دې او مشهور اومعروف دی او دویم هر سرکش او شریر باندې هم دَ شیطان اطلاق کیږي. لهذا دَ اوښانو باره کښې "فإنها من الشياطين" وئیلو کښې هم دغه دویم قسم مراد دې.

بیا ممانعت "لاتصلوا في مبارك الإبل" علت دَ جمهورو په نیز دا نه دې چه هغه دَ شیطان دَ نسل نه دی ګنی په دې صورت کښې خو به هغوی ته نیزدې کیدو اوډ هغوی طرف ته مخ کولو

---

........ کتاب الصلاة: ۳۸۰/۱. حاشية الطحطاوی علی مراقی الفلاح: ۳۵۷/۱. شرح التلقين للمازری المالکی، کتاب الصلاة، فصل : الأماكن التی تكره فيها الصلاة: ۸۲۰/۱. المدونة، کتاب الصلاة، الصلاة فی المواضع التی تكره فيهاالصلاة: ۱۸۳/۱. مواهب الجليل فی شرحم مختصر الخليل، کتاب الصلاة، فائدة: تكره الصلاة فی أربعة عشر موضعا: ۴۱۹/۱. البيان فی مذهب الإمام الشافعی، کتاب الصلاة، مسألة: الصلاة فی أعطان الإبل: ۱۱۱/۲. التهذيب فی فقه الإمام الشافعی، کتاب الصلاة: ۲۰۵/۲. النجم الوهاج فی شرح المنهاج، کتاب الصلاة، فصل: ۲۴۳/۲.

(۱) عن البراء بن عازب، قال: سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الوضوء من لحوم الإبل، فقال توضؤوا منها، وسئل عن لحوم الغنم، فقال: لا توضؤوا منها، وسئل عن الصلاة فی مبارك الإبل، فقال: لا تصلوا فی مبارك الإبل، فإنها من الشياطين، وسئل عن الصلاة فی مرابض الغنم، فقال: صلوا فيها فإنها بركة. (سنن أبی داؤد، كتاب الطهارة، باب: فی الوضوء فی لحوم الإبل، رقم الحديث: ۱۸۷).

(۲) المغنی لابن قدامة، کتاب الصلاة، مسألة: الصلاة فی المقبرة: ۵۳/۲.

سره يا په هغې باندې سوريدو سره هم مونځ جائز نه وي خو ددې تولو جواز نقل دې بلکه د ممانعت په علت کښې څو احتماله دي. مثلاً:

بعضې وئيلي دي چه د اوښانو والو دا عادت وي چه هغوی د اوښ پناه کيناستو سره متيازې او د کې متيازې او استنجاء کوي، په دې وجه منع کړې شو. بعضې وائي د اوښانو مالك اوښان پاك صفا او ستهرا نه ساتي. بعضې وائي اوښ ډير شرير وي، دانگی او ټوپونه وهي د کوم په وجه چه په مونځ کښې نقصان او ضرر رسيدو خطره وي. بعضې وئيلي دي چه د اوښانو نه ډير کرکژن بوائی راځي د کوم په وجه چه منع کړې شو. او د امام شافعي رحمه الله يو قول دې چه د کراهت وجه د شيطان نيزديوالي دې ځکه چه په حديث کښې اوښ ته "من جنس الشياطين" وئيلي شوي دي.(۱)

**د غواګانو باړه کښې د مونځ ادا کولو حکم:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله ليکلي دي چه د غواګانو باړه کښې د مونځ ادا کول د چيلو باړې والا حکم سره يو ځائي کړئي نه چه د اوښانو باړه کښې د مونځ حکم سره. يعنی د غواګانو په باړه کښې مونځ ادا کول بغير د کراهت جائز دي.

بيا علامه صاحب رحمه الله داهم ذکر کړي دي چه که چرته څوك اووائي چه مسند احمد کښې يو حديث موجود دې په کوم کښې چه د غواګانو باړه کښې د مونځ حکم د اوښانو باړه کښې د مونځ کولو د حکم سره يو ځائي کړې شوي دې نو ددې جواب دادې چه هغه حديث ضعيف دې په هغې باندې عمل نه شي کيدلې.(۲)

حديث باب [حديث نمبر ۴۲۰]

۴۲۰- حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَيَّانَ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ قَالَ (۳) رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يُصَلِّي إِلَى بَعِيرِهِ وَقَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَفْعَلُهُ.

**د حديث ترجمه:** حضرت نافع رحمه الله فرمائي چه ما حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د خپل اوښ طرف ته مخ کولو سره په مونځ ادا کولو ليدلې دې. او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او فرمائيل چه ما

---

(۱) بذل المجهود، كتاب الطهارة، باب: في الوضوء من لحوم الإبل، رقم الحديث: ۱۸۷، ۹۸/۲. الكنز المتواري: ۱۳۳-۱۳۴/٤. أوجز المسالك، كتاب الطهارة، باب: سترة المصلى في السفر، رقم الحديث: ۳۵۸، ۲۸۸-۲۸۹/۳. شرح الكرماني: ۹۲/٤.

(۲) فتح الباري: ۶۸۳/۱. عمدة القاري: ۳۶۹/٤.

(۳) أخرجه البخاري أيضا في سترة المصلي، باب: الصلاة إلى الراحلة والبعير والشجر والرحل، رقم الحديث: ۵۰۷. ومسلم في صحيحه، في الصلاة، باب: سترة المصلي، رقم الحديث: ۵۰۲. وأبوداؤد في سننه، في الصلاة، باب: الصلاة إلى الراحلة، رقم الحديث: ۶۹۲. والترمذي في جامعه، في الصلاة، في باب: ماجاء في الصلاة إلى الراحلة، رقم الحديث: ۳۵۲. وفي جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: في الصلاة، القسم الأول: في الفرائض وأحكامها، الباب الأول: في الصلاة وأحكامها، الفصل السادس: في شرائط الصلاة، الفرع السابع: في قبلة المصلي، النوع الثاني: في سترة المصلي، رقم الحديث: ۳۷٤٤، ۵۲۱/۵.

نبی کریم ﷺ داسې په مونځ کولو لیدلې دی.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حدیث په سند کښې ټول پنځه رجال دی:

① **صدقه بن الفضل رحمه الله:** دا ابو الفضل صدقه بن الفضل مروزی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: العلم والعظة باللیل لاندې تیر شوی دی. [1]

② **سلیمان بن حیان رحمه الله:** دَدوی نوم حافظ سلیمان بن حیان الازدی الکوفی دې. او کنیت ئې ابوخالد الاحمردې. دَ دوی دَ پیدائش ځائې جرجان او دَ پیدائش کال ۱۱۴هجری دې.

دَ دوی په استاذانو کښې عبیدالله بن عمر، حمید الطویل، داؤد بن ابی هند، ابن عون، یحی بن سعید انصاری، ابن عجلان، هشام بن عروه، ابن جریج، هشام بن حسان، یزید بن کیسان. عاصم لاأحول، حاتم بن ابی صغیره رحمهم الله شامل دی. اودَ دوی په شاګردانو کښې صدقه بن الفضل، آدم بن ابی ایاس، اسد بن موسیٰ، ابوکریب، ابوسعید الاشج، یوسف بن موسٰ القطان، عمرو الناقد، محمد بن عبدالله بن نمیر او حمید بن الربیع رحمهم الله شامل دی.

ابن معین رحمه الله او ابن المدینی رحمه الله دَدوی باره کښې وائی: ثقة. عثمان الدارمی دَ ابن معین رحمه الله نه نقل کوی: لیس به بأس. امام نسائ رحمه الله هم دغه شان فرمائی. عباس الدوری دَ ابن معین رحمه الله نه نقل کوی: صدوق ولیس بحجة. ابو هشام الرفاعی رحمه الله وائی: الثقة الأمین. ابوحاتم رحمه الله وائی: صدوق. خطیب رحمه الله وائی دَ حدیث په معامله کښې په دوی باندې هیڅ طعن نشته دې. دَ ابن عدی رحمه الله وینا ده: له أحادیث صالحة. ابن حبان رحمه الله دَ دوی ذکر په ثقاتو کښې کړې دې. دَعجلی رحمه الله وینا ده: ثقة ثبت صاحب سنة. دې اصلاً شامې وو لیکن په کوفه کښې لوئی شوې دې. دَ دوی وفات ۱۸۹هجری کښې شوې دې. [2]

③ **عبیدالله رحمه الله:** دا عبیدالله بن عمر بن حفص بن عبدالله بن عمر بن خطاب رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: التبرز فی البیوت لاندې تیر شوی دی. [3]

④ **نافع رحمه الله:** دا مولی دَ عبدالله بن عمر القرشی رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: ذکر العلم والفتیا فی المسجد لاندې تیر شوی دی. [4]

⑤ **ابن عمر رضی الله عنهما:** دا حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. دَدوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: الإیمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الإسلام علی خمس لاندې تیر شوی دی. [5]

---

[1]) کشف الباری: ۳۸۸/٤.

[2]) تاریخ الإسلام ووفیات المشاهیر، والأعلام للذهبی: ۸۵۹/٤. تهذیب التهذیب: ۱۸۱/٤. إکمال تهذیب الکمال: ۵۰/۶. سیر أعلام النبلاء: ۱۹/۹. لسان المیزان: ۳۱۷/۹. الطبقات الکبری لابن سعد: ۳۹۱/۶.

[3]) کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: التبرز فی البیوت، ص: ۳۶۰.

[4]) کشف الباری: ۶۵۱/٤

[5]) کشف الباری: ۶۳۷/۱

**د حديث شرح:**

**قوله:** رأيت النبي صلى الله عليه وسلم يفعله: كښې د "يفعله" مطلب "يصلي والبعير في طرف قبلته" دې. دا علامه عيني رحمه الله بيان کړې دې. په دې تشريح کښې د دې خبرې بيان دې چه صرف د قبلې طرف ته ئې مخ نه وو بلکه هغه اوښ هم د قبلې طرف ته وو، ځکه خو به مونځ صحيح شي ګني نه دې صحيح.(١)

داخبره وړاندې هم تيره شوې ده چه د علامه سندهي رحمه الله رائې داده چه امام بخاري رحمه الله "مواضع الإبل" او "معاطن الإبل" کښې فرق بيانوي چه معاطن بل شئ دې او مواضع بل شئ دې. معاطن هغه ځائي ته وئيلى شي چرته چه اوښ د اوبو څکلو وخت کښې اودريږي. او نهي مذکور خاص ده د معاطن ابل سره. لهذا د اوښ د ناستې پاستې ځائي به په نورو ځايونو باندې نه شي قياس کولې. چنانچه په هغه ځايونو کښې به مونځ جائز وي.(٢) په نورو روايتونو کښې د دې خبرې تصريح ده چه نبي اکرم ﷺ د خپل اوښ طرف ته مخ کولو سره مونځ ادا کړې دې.(٣)

حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه د اوښانو په ځائي کښې مونځ کول جائز دى. خوچه د اوښ د اودريدو نه او د تکليف رسولو نه په امن کښې وي. دلته په حديث کښې د بعير نه مراد سورلى ده ځکه چه د بعير نسبت، اضافت د نبي عليه السلام طرف ته دې او داخبره بالکل واضحه ده چه د هغې د پاسه به سامان نه اوړلې کيدو ګني هغې ته حامله وائي. او نه به د هغې نه کار روزګار اخستې شو ګني هغې ته راحله وئيلى شي او نه به په هغې باندې پټي اوبه کولې شو ګني هغې ته به سانيه وئيلې شو.

دلته اوښ ستره جوړولو سره د مونځ کولو وجه دا وه چه د هغه د شرارت او فتنې نه حفاظت وو. ځکه چه بعضې سورلو کښې ډيرداسې صفات وي کوم چه په نورو کښې نه وي. لهذا په دې باندې به هغه صورت هم قياس کولې شي چرته چه د ځناور د تکليف نه انسان محفوظ او په امن کښې وي ځکه چه د نهي د علت په نه موجوديدلو يا په نه موجوديدلو باندې د حکم مدار وي. بل د ځناور طرف ته مخ کولو سره د مونځ کولو سبب داهم دې چه ځناور يو د ساه والا شئ دې ليکن په دې کښې د بت پرستئ مشابهت نشته دې ځکه چه د اهل باطلو نه چا هم د اوښانو عبادت نه دې کړې.(٤)

---

(١) شرح الكرماني: ٩٢/٤، عمدالقاري: ٢٨١/٤.

(٢) حاشية السندهي، كتاب الصلاة، باب: الصلاة في مواضع الإبل: ١/١٢٦ الطاف سنز.

(٣) عن ابن عمر رضي الله عنهما أن النبي صلى الله عليه وسلم صلى إلى بعيره، أو راحلته، وكان يصلي على راحلته حيث توجهت به (جامع الترمذي، كتاب الصلاة، باب: ماجاء في الصلاة إلى راحلة، رقم الحديث: ٣٥٢).

(٤) الكوكب الدري، كتاب الصلاة، باب: ماجاء في الصلاة إلى الراحلة، رقم الحديث: ٣٥٢، ١/٣٣٨.

**د حديث شريف د ترجمة الباب سره مناسبت:** په ظاهري توگه خو په ترجمة الباب او حديث کښې مناسبت نشته دې ځکه چه په ترجمة الباب کښې نې "مواضع الإبل" کښې د مونځ جواز خودلې دې او حديث باب کښې "صلوة إلى البعير" ذکر دې. ليکن مناسبت او مطابقت به په دې اعتبار سره وی چه د امام بخاری په تراجمو او مطالبو کښې توسع ډيره زياته وی نو دلته هم "صلوة إلى البعير" په "مواضع الإبل" شامل کړې شوې دې.

علامه ادريس کاندهلوی رحمه الله فرمائی مطابقت دادې چه (د اوښانو باره کښې چه دا کوم وئيلې شوی دی چه دا د شيطانانو نه دی) که چرې د اوښانو د شيطانانو کيدل د مونځ د صحت نه مانع وی نو بيا د مونځ گذار په مخکښې د اوښ موجوديدل، يا په اوښ باندې سوريدلو سره مونځ ادا کول هم نه وو صحيح کيدل پکار. حالانکه نبی کريم ﷺ په اوښ باندې د سورلۍ په حالت کښې نفل مونځ ادا کړې دې.(۱)

**د حديث مبارک نه مستنبط فوائد او احکام:** د حديث شريف نه يو څو خبرې واضح کيږی کومې چه دلته ذکر کولې شی:

① د مذکوره حديث نه دا خبره ثابتيږی چه کله څناور قبلې طرف ته ناست وی نو د دغه څناور طرف ته مخ کولو سره مونځ کول صحيح دی.(۲)

② دا هم معلومه شوه چه اوښ سره نيزدې مونځ ادا کول جائز دی په خلاف د هغې د معاطنو چه په هغې کښې مونځ ادا کول مکروه دی.(۳)

③ او د اوښ کجاوه وغيره ستره جوړولو سره هم مونځ ادا کيدې شی.(۴)

---

(۱) تحفة القاري: ۴۸۹/۲.
(۲) التوضيح لابن الملقن: ۴۸۳/۵ عمدة القاري: ۲۷۱/۴.
(۳) التوضيح لابن الملقن: ۴۸۳/۵ عمدة القاري: ۲۷۱/۴.
(۴) عمدة القاري: ۲۷۱/۴.

## ۱۹ - بَابٌ: مَنْ صَلَّى وَقُدَّامَهُ تَنُّورٌ أَوْنَارٌ أَوْشَيْءٌ مِمَّا يُعْبَدُ، فَأَرَادَبِهِ اللّٰهَ

داباب دَ هغه سړي باره کښې دې چا چه مونځ په داسې حال کښې اوکړو چه دَ هغه مخې ته تنور، اور یا څه داسې څیز وی دَ کوم چه عبادت کیدې شی، لیکن دَ دغه مونځ په ذریعه هغه دَ الله تعالی دَ رضامندئی اراده اوکړه.

**دَ ترجمة الباب تشريح:**

**قوله:وَقُدَّامَهُ تَنُّورٌ:** داجمله اسمیه خبریه ده چه حال به واقع کیږی. او "قدامه" خبر مقدم دې او "تنور"مبتداء مؤخر ده. دَ لفظ قدّام معنی ده مخې ته. یعنی دَ خلف ضد.(۱)

**قوله: تَنُّورٌ:** معنی دا هغه کنده ده په کوم کښې چه اور بلیږی اودَې نه مراد هغه مخصوص اومعروف کنده هم ده په کومه کښې چه روټئ پخولې شی. اوکله په کښې ترکاری هم پخولې شی. کله دا کنده دَ خاورې نه جوړولې شی اوکله دَ اوسپنې نه جوړولې شی.(۲)

**قوله: أَوْنَارٌ:** دَدې عطف په تنور باندې دې. په دې باندې دا سوال کولی شی چه که صرف هم دا لفظ ذکر کړې شوې دې نوهم کافی وو. دتنور دَ ذکرکولو ضرورت نه وو. دَدې جواب دادې چه دادَ عطف العام علی الخاص دَ قبیل نه دې دې لره دَ مستقل ذکرکولو فائده دا ده چه په مجوسیانو کښې ډیر دَ اور عبادت کونکی هغه دی چه صرف هم دَ هغه اور عبادت کوی کوم چه ښکاری. حالانکه کله کله تنور دَ خپل ژوروالی دَ وجې نه یا دَ اوردَ کمیدو دَ وجې نه خپل اور نه ښکاره کوی. بلکه دَ هغې اور هم دَ تنور په هغه کنده کښې پټ پروت وی. په دې وجه دَ تنور اودَ اور دواړو ذکر جدا اوکړې شو.(۳)

**قوله: أَوْشَيْءٌ مِمَّا يُعْبَدُ:** دَدې جملې عطف هم په ماقبل باندې دې اودَدې تقدیری عبارت به داسې وی "من صلی وقدامه شیئ ممایعبد کالأوثان والأصنام والتماثیل والصور ونحو ذلك ممایعبده أهل الضلال والكفر". مطلب دا چه کوم سړې په داسې حال کښې مونځ اوکړی چه دَ هغه مخې ته څه داسې څیز وی دَ کوم چه عبادت کیږی لکه بت او تصویر وغیره او هرهغه څیز دَ کوم عبادت چه کافران کوی. دَ ترجمة الباب دا حصه دَماقبل دواړو الفاظو نه هم زیاته عام ده.(۴)

**قوله: فَأَرَادَبِهِ اللّٰهَ:** دَترجمة الباب دَدې حصې نه مقصود دا دې چه دَمونځ گذار مخې ته داسې څیزونو کښې چه څه هم مخې ته وی لیکن دَهغه مقصود دا څیزونه نه وی بلکه دَ الله تعالی رضامندئ ئې مقصود وی نو په دې وجه داسې ادا شوې مونځ به مکروه نه وی.(۵)

---

(۱) المحكم والمحيط الأعظم: ۳۲۲/۱ مختارا لصحاح: ۲٤۹/۱.
(۲) النهاية في غريب الحديث والأثر: ۱۹۹/۱. المخصص لابن سيده: ۱٦۹/۳.
(۳) عمدة القاري: ۲۷۳/٤.
(٤) عمدة القاري: ۲۷۳/۲-۲۷۲.
(۵) عمدة القاري: ۲۷۳/٤.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** رومبې خبره خو دا ده چه دَ امام بخاري رحمه الله په نیز مسئله داده چه که څوك خالص دَ الله تعالی دَ رضا دَ پاره مونځ ادا کولو دَ پاره ولاړ وي او دَ هغه مخې ته تنور، اور یا څه بل داسې څیز راشي دَ کوم چه عبادت کولې شي لکه ونه، نمر، سپوږمۍ، غوا وغیره نودَ دې په وجه دَ هغه مونځ گذار په مونځ کښې هیڅ خرابي یا کراهت نه پیدا کیږي بلکه دَ هغه مونځ صحیح دې.

په دې باندې یو سوال پیدا کیږي چه امام بخاري رحمه الله خو په ترجمة الباب کښې دَ کراهت یا عدم کراهت څه ذکر نه دې کړې بلکه حکم ئې مجهول یا مبهم ساتلې دې نو بیا دَ کراهت جهت دَ متعین کولو څه وجه ده؟ نودَ دې جواب دادې چه امام بخاري رحمه الله دا باب قائمولو سره چه کوم دوه احادیث ذکر کړي دي یو تعلیقًا او دویم موصولاً، نو دَ دې نه په عدم کراهت باندې دلالت کیږي. اګرچه دَ ډیرو زیاتو وجوهاتو نه ددې احادیثو نه په عدم کراهت باندې استدلال تام نه دې. (۱)(وضاحت وړاندې راځي). خودَ دې مقابل دَ ډیرو زیاتو تابعینو (۲) حنابله (۳) او دَ احنافو (۴) په نیز په داسې صورت کښې مونځ ادا کول مکروه تنزیهي دې.

چنانچه دَ خپلې خبرې دَ ثابتولو او دَ کراهت قائلینو باندې د رد کولو دَ پاره امام بخاري رحمه الله دا باب قائم کړې دې او دَ دلیل په توګه باندې ئې دوه احادیث پیش کړي دي یو تعلیقًا او بل موصولاً.

**تعلیق:** وَقَالَ الزُّهْرِيُّ: أَخْبَرَنِيْ أَنَسٌ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: (عُرِضَتْ عَلَيَّ النَّارُ وَأَنَا أُصَلِّي) [ر: ۹۳]

**دَ تعلیق ترجمه:** حضرت زهري رحمه الله فرمائي چه ماته حضرت انس رضي الله عنه اوفرمائیل چه ماته نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي: زما مخې ته اور راوړلې شو په داسې حال کښې چه ما مونځ ادا کولو.

---

(۱) فتح الباري لابن رجب: ۲۲۸/۳ عمدة القاري: ۲۸۱/٤.

(۲) علامه ابن رجب حنبلي رحمه الله، حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عیني رحمه الله وغیره خپلو کتابونو کښې دَ حضرت ابن سیرین رحمه الله باره کښې دا نقل کړي دي چه هغوي به دَ تنور طرف ته مخ کولو سره مونځ ادا کول مکروه گڼړل او تنور ته به ئې بیت النار وئیلو. دَ ابن سیرین رحمه الله او حضرت سفیان رحمه الله نه هم کراهت نقل دې. اوګورئی: فتح الباري لابن رجب: ۲۲۹/۳ فتح الباري لابن حجر: ۶۸٤/۱ عمدة القاري: ۲۷۳/٤.

(۳) کشف القناع عن متن الإقناع، کتاب الصلاة، باب صفة الصلاة، فصل: ما یکره وما یباح وما یستحب في الصلاة: ۳۷۰/۱. المغني لابن قدامة، کتاب الصلاة، باب: الأمامة وصلاة الجامعة، فصل الصلاة مستقبلا وجه الإنسان: ۱۷۸/۲. المبدع في شرح المقنع، کتاب الصلاة، باب: مکروهات الصلاة: ٤۲۸/۱.

(٤) دررالحکام شرح غرر الأحکام، کتاب الصلاة، مکروهات الصلاة: ۱۰۹/۱. حاشیة الطحطاوي على مراقي الفلاح شرح نورالإیضاح، کتاب الصلاة، فصل في مکروهات: ۱۳۲/۱. المحیط البرهاني، کتاب الاستحسان والکراهة. الفصل الراب في الصلاة، والتسبیح، وقراءة القرآن والذکر، والدعاء، ورفع الصوت عند قراءة القرآن والذکر والدعاء: ۳۰۸/۵.

**دَ تعلیق تخریج:** امام بخاري رحمه الله دا تعلیق موصولاً کتاب الصلاة کښې [۱] باب: "وقت الظهر عند الزوال" کښې بیان کړې دې. مکمل تخریج به په متعلقه مقام باندې راشي. ان شاء الله العزیز.

**تعلیق او ترجمة الباب کښې مطابقت:** په دې تعلیق او ترجمة الباب کښې مناسبت په دې اعتبار سره دې چه نبی کریم ﷺ دَ مونځ دوران کښې خپلې مخې ته دَ اور مشاهده اوکړه او په ترجمة الباب کښې هم دغه دی چه دَ مونځ ګذار مخې ته اور وی او هغه مونځ اداکوی. لیکن په دې مطابقت او په غرض دَ استدلال دا تعلیق دَ ترجمة الباب لاندې راوړلو کښې اشکالات دی، چه په تفصیل سره وړاندې راځی. [۲]

**دَ تعلیق نه طریق دَ استدلال:** امام بخاري رحمه الله فرمائی چه ګورئی نبی کریم ﷺ دَ مونځ په حالت کښې وو په دې حالت کښې دَ حضورپاک مخې ته دَ دوزخ اور پیش کړې شو یعنی اور دَ حضورپاک مخکښې ته وو او حضورپاک مسلسل په مونځ کښې وو. که دَ کراهت قول اختیار کړې شي نولا محاله به دا لازم شي چه دَ حضورپاک مونځ په دې صورت کښې دَ کراهت سره ادا شو نودا صحیح نه ده. لهذا چه کله داسې صورت پیښ شي نو مونځ بغیر دَ کراهت نه صحیح دې.

**دَ احنافو مسلک او دَ امام بخاري رحمه الله دَ استدلال جواب:** دَ احنافو مسلک په دې باره کښې دادې چه که دَ مونځ ګذار مخې ته اور یا تنور وغیره وی یعنی داسې څیز وی دَ کوم چه عبادت کیږی نو دَ مجوسیانو سره دَ مشابهت دَ وجې به دَ هغه په مونځ کښې هم کراهت راځی لیکن دَ دغه مونځ ګذار دَ عبادت دَ ارادې دَ نه کیدو دَ وجې به هغه کراهت تنزیهي وی تحریمي به نه وی. پاتې شوه خبره دَ امام بخاري رحمه الله دَ استدلال، نو هغه دَ تام نه کیدو دَ وجې مونږ هغه نه منو. دَدې استدلال ناقص یا دَ تام نه کیدو اول وجه دا ده چه دَ دوزخ اور کوم چه حضورپاک ته دَ مونځ په حالت کښې خودلې شوې وو هغه دَ حضورپاک دَ اختیار نه بغیر وو یعنی داسې نه وو چه اور دَ مخکښې نه بکیدو او حضورپاک دَ هغې مخې ته اودریدو سره مونځ اداکول شروع کړل. بلکه داسې اوشو چه حضورپاک علیه السلام مونځ شروع کړو او په دې حالت کښې دَ حضورپاک مخې ته دَ حضورپاک دَ ارادې، خوښې او اختیار نه بغیر جنت او دوزخ مخې ته راوړلې شو. حالانکه زمونږ کلام او بحث خود هغه صورت باره کښې دې چه یو څائی کښې اور بلیږی او یو سړې دَ هغې مخې ته اودریږی او مونځ اداکول شروع کړی.

---

[۱] حدثنا أبواليمان، قال: أخبرنا شعيب، عن الزهري، قال: أخبرني أنس بن مالك. أن رسول الله صلى الله عليه وسلم خرج حين زاغت الشمس. فصلى الظهر. فقام على المنبر. فذكر الساعة. فذكر أن فيها أمورا عظاما. ثم قال: من أحب أن يسأل عن شيئ فليسأل. فلا تسألوني عن شيئ إلا أخبرتكم. مادمت في مقامي هذا فأكثر الناس في البكاء. وأكثر أن يقول: سلوني. فقام عبدالله بن حذافة السهمي. فقال: من أبي؟ قال: أبوك حذافة. ثم أكثر أن يقول: سلوني. فبرك عمر على ركبتيه. فقال: رضينا بالله ربا، وبالإسلام دينا، وبمحمد نبيا. فسكت. ثم قال: عرضت على الجنة والنار آنفا في عرض هذا الحائط. فلم أر كالخير والشر. (صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب: وقت الظهر عند الزوال، رقم الحديث: ٥٤٠)

[۲] عمدة القاري: ٢٧٣/٤.

لهذا دا حديث يا واقعه دليل جوړول صحيح نه دی.[1]

دويمه وجه داده چه دَ دوزخ خودل په توګه دَ کشف شوی وو. دليل دا دې چه حضورپاك سره شريك په جمات کښې صحابه کرامو ﷺ ته دا کشف نه دې شوې يعنې دَ دوزخ دغه اور ښکاره نه شو حالانکه زمونږ بحث خو په عالم حسی کښې دَ مونځ ګذار مخې ته دَ اور کيدو په صورت کښې دې، لهذا په دې وجه هم استدلال تام نه دې.[2]

دريمه وجه دا ده چه زمونږ بحث دَدې دنيا دَ اور باره کښې دې اوهغه اور کوم چه حضورپاك ته دَ مونځ دوران کښې خودلې شوې وو هغه دَ آخرت اور وو.[3]

ابن رجب حنبلی رحمه الله دَدې خبرې دَ دليل په توګه يو قول نقل کړې دې چه کله حضرت جبرائيل عليه السلام دَ حضورپاك قلب اطهر څيرلې وو او دَ جنت په اوبو سره ئې هغې ته غسل ورکړې وو نودا تول عمل دَ سرو زرو په رکيبئ کښې اوکړې شو کومه چه حضرت جبرائيل عليه السلام خپل څان سره راوړې وو. نودَ هغې سرو زرو دَ رکيبئ استعمال باندې دَ حرمت حُکم اونه لګيدو څکه چه هغه لوښې دَدې دنيا نه وو بلکه دَ جنت نه راوړلې شوې لوښې وو اودَ حرمت تعلق په دنيا کښې دَ سرو زرو دَ لوښی په استعمالولو سره دې. چنانچه په دې باب کښې ذکرکړې شوې تعليق کښې خودلی شوی اخزوی اور باندې به هم دَ دنياوی اور حکم نه شی لګولې. نو چه کله دا دواړه قسمه اور جدا شو نودَ يو اور نه دَ بل اور حکم نه شی مستنبط کيدلې.[4]

څلورمه وجه داده چه زمونږ بحث په هغه اور کښې دې کوم چه دَ مونځ ګذار مخې ته وی. حالانکه هغه اور کوم چه حضورپاك ته خودلې شوې وو هغه ضروری نه ده چه مخې ته وی بلکه ممکن ده چه هغه ښې يا ګس طرف ته وو.[5]

علامه محمد ادريس کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه دې احتمالاتو ته کتو سره صفا محسوسيږی چه امام بخاری رحمه الله جزئی مسائل بيانول غواړی اودَ هغې دَ حکم بيانولو دَ پاره دَ احاديثو نه دَحکم مستنبط کولو کوشش کښې دې. خو چه کله هغه دَ شرائطو مطابق واضح حديث نه مومی نو بيا په ډيرو تاوولو او راښکلو سره داسې دَ لرې استدلالات کوی.[6]

علامه کاندهلوی رحمه الله يو توجيه بله پيش کړې ده چه که چرې دا په خيال کښې اوساتلې شی نوونيلی کيدې شی چه دَ امام بخاری رحمه الله کلام دَ نورو فقهاؤ مقابل او مخالف نه دې. هغه دا چه کله دَمونځ ګذار مخې ته داسې اور وی چه دَ نورو مونځ کونکو مخې ته نه وی يعنې دَ هغوی دَ نظر نه غيب وی او هغه په داسې حيثيت سره وی چه دَ هغه اور دَ مونځ ګذار مخې

---

[1] فتح الباری لابن رجب: ۲۲۹/۳ عمدة القاری: ۲۷۲/٤ تحفة القاری: ٤٩٠/۲.

[2] عمدة القاری: ۲۷۲/٤ تحفة القاری: ٤٩٠/۲.

[3] عمدة القاری: ۲۷۲/٤ تحفة القاری: ٤٩٠/۲.

[4] فتح الباری لابن رجب: ۲۲۹/۳.

[5] عمدة القاری: ۲۷۲/٤.

[6] تحفة القاری: ٤٩٠/۲.

ته په كيدو. سره دَ مجوسيانو سره مشابهت لا زم نه راځي نو په داسې حالت كښې په مونځ ادا كولو كښې هيڅ كراهت نشته دې.[1]

**دَ امام بخاري رحمه الله په مسلك باندې يو اعتراض:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله دَ امام بخاري رحمه الله په اختيار كړې شوې مسئله باندې دَ معترضينو دَ طرف نه كيدونكې يو اعتراض نقل كړې دې دَ هغې جواب وركولو سره فرمائي چه دَ امام بخاري رحمه الله رائې داده چه كله دَ مونځ گذار مخې ته اور وى نو دَ هغې طرف ته مخ كولو سره مونځ كول مكروه نه دى. په دې باندې دا اشكال راځي چه امام بخاري رحمه الله په وړاندې صفحه ۶۲ باندې "باب: الصلاة فى ثوب مصلب أو تصاوير" تړلو سره تصوير يا صليب والا كپړا كښې مونځ كول مكروه گرځولى دى او دَ هغې دَ مكروه كيدو علت دَ دې نه سوا هيڅ نه دى چه په دې كښې تشبيه بعبادت الغير لا زميږى كوم چه شرعاً منع دى او دا علت دلته موندلې شى په دې وجه دلته هم مونځ مكروه كيدل پكار دى؟

دَ دې په جواب كښې علامه كرمانى رحمه الله فرمائي چه دَ تماثيل حكم دَ نورو ټولو معبودانو دَ حكم نه جدا دې. ځكه چه تصوير خو په خپله يو منكرشئ دې كه دَ هغې عبادت اوكړې شى او كه اونه كړې شى. په خلاف دَ اور وغيره چه هغه پخپله قبيح نه دې البته دَ دې عبادت حرام دې. بل مذهب دادې چه تصويرونه په مونځ كښې په مكمل توگه مصروف كيدو نه غافل كونكى دى په دې وجه دَ تصوير والا كپړا كښې مونځ مكروه دې.[2]

حديث باب [حديث نمبر ۴۲۱]

۴۲۱ - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ[3] قَالَ انْخَسَفَتِ الشَّمْسُ، فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ قَالَ «أُرِيتُ النَّارَ، فَلَمْ أَرَ مَنْظَرًا كَالْيَوْمِ قَطُّ أَفْظَعَ».

**دَ حديث ترجمه:** حضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنهما اوفرمائيل چه نمر تندر اونيولو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ ادا كړو. بيائى اوفرمائيل ماته جهنم اوخودلې شو. ما دَ نن په شان ويرونكې منظر كله نه دې ليدلې.

**تراجم رجال:** دَ دې حديث شريف په سند كښې ټول پنځه راويان دى:

① **عبد الله بن مسلمه رحمه الله:** دا ابوعبد الرحمن عبد الله بن مسلمه بن قعنب حارثى بصرى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تير شوى دى.[4]

[1] تحفة القارى: ۴۹۰/۲.
[2] الأبواب والراجيم: ۲۱۵/۲ الكنز المتوارى: ۱۳۶/۴ سراج القارى: ۹۳/۳.
[3] مر تخريجه فى كشف البارى تحت كتاب الإيمان، باب: كفران العشير وكفر بعد كفر، رقم الحديث: ۲۹، ۲۰۶/۲
[4] كشف البارى: ۸۰/۲.

③ مالك رحمه الله: دا ابوعبدالله امام مالك بن انس بن مالك رحمه الله دي. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الدین الفرار من الفتن لاندې تیر شوی دی.(۱)

④ زید بن اسلم رحمه الله: دا ابواسامه زید بن اسلم قرشی عدوی مدنی رحمه الله دي. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: کفران العشیر وکفر بعد کفر، رقم الحدیث ۲۹، لاندې تیر شوی دی.(۲)

⑤ عطاء بن یسار رحمه الله: دا ابومحمد عطاء بن یسار هلالی مدنی رحمه الله دي. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: کفران العشیر وکفر بعد کفر، رقم الحدیث ۲۹، لاندې تیر شوی دی (۳)

⑤ عبدالله بن عباس رضی الله عنهما: دا مشهور صحابی رسول حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دي. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دَ څلورم حدیث لاندې تیر شوی دی.(۴)

**دَ حدیث شرح:**

**قوله:** "الخسفت": دا دَ "انکسفت" په معنی دي.(۵)

**دَ صلاة کسوف اوخسوف مصداق:** دَ نمر یا دَ سپوږمۍ پوره رڼړا یا څه رڼړا ختمیدو اودَ سپوږمۍ او نمر توریدو ته کسف وائی. کسفت الشمس او خسفت الشمس دواړه شان استعمالیږی. اودغه شان کسف القمر او کسف القمر دواړه شان استعمالیږی.

یو قول دادې چه کسوف دَ نمر دَ پاره او خسوف دَ سپوږمئی دَ پاره استعمالیږی. او هم دغه لغت ډیر مشهور دې. او یو قول داهم دې چه دَ تندر نیولو دَ شروع وختونو ته کسوف او آخری وختونو ته خسوف وائی لیکن زیات واضحه تعبیر او تعریف او قول هم هغه دې کوم چه پورته ذکر شو.

خلاصه داده چه هغه مونځ کوم چه دَ نمر یا سپوږمئ نه دَ یو په مکمله توګه یا بعضې حصې توریدو په وخت په مخصوص طریقه باندې ادا کړې شی هغې ته صلاة کسوف وائی.(۶)

**قوله:** "فصلی": دَدې فعل مفعول محذوف دې کوم چه الکسوف دې. یعنی حضورپاك دکسوف مونځ ادا کړو.(۷)

---

(۱) کشف الباري: ۸۰/۲.
(۲) کشف الباري: ۲۰۳/۲.
(۳) کشف الباري: ۲۰٤/۲.
(۴) کشف الباري: ٤۳۵/۱.
(۵) شرح الکرماني: ۹۳/٤.
(۶) تاج العروس، ک س ف: ۳۰۹/۲٤. لسان العرب، فصل الکاف: ۲۹۹/۹.
(۷) شرح الکرماني: ۹۳/۴ عمدة القاري: ۲۷۳/۴. صلاة کسوف او صلاة خسوف دَ جمهور ........

**قوله:** "أريت": دا د ماضي مجهول صيغه ده. مرادي معنی داده چه ما د مونځ ادا کولو وخت کښې اور اوليدلو.([1])

**قوله:** "وكاليوم": دا لفظ به د مصدر محذوف صفت جوړشي. يعنې "رؤية مثل رؤية اليوم" د نن د ليدو په شان ليدل ما چرته نه دي ليدلي. "كاليوم" کښې كاف د تشبيه د پاره دې د مثل په معنی.([2])

**قوله:** "أفظع": دا لفظ د ډيرزيات قباحت معنی بيانوی.([3])

**قوله:** "قط": دا د زمانهٔ ماضي منفي د استغراق معنی پيدا کوی. مراد دادې چه د کله نه زه پيدا شوې يم نو د هغه وخت نه ما چرته داسې قبيح منظر نه دې ليدلې.([4])

**د ترجمة الباب سره مطابقت:** د ترجمة الباب مناسب د حديث شريف "أريت النار" د جملې په وجه په داسې توګه چه چرې د مونځ ګذار مخې ته اورموجود يدل ناخوښه او مقصد صلوة وې نو الله تعالى به دا د خپل حبيب ﷺ مخې ته نه پيش کولو.([5])

**د حديث مبارک نه مستفاد امور:** د مذكوره حديث شريف نه چه کوم فوائد او احكام مستنبط کيږي په هغې کښې څه دلته نقل کولې شي:

① د کسوف د مونځ د مستحب کيدو علم اوشو.([6])

② د اهل سنت والجماعت په نيز جنت او جهنم پيدا کړې شوی دی په خلاف د معتزلؤ.([7])

③ د نبي کريم ﷺ په معجزاتو کښې يو معجزه دلته ذکر شوه چه الله تعالى د حضورپاك د سترګو د وړاندې نه پردې اخوا کړې او د دوزخ اور ئې د حضورپاك سترګو ته مخامخ کړو. حضورپاك دغه اور په خپلو سترګو باندې هم داسې اوليدلو لکه څنګه چه د معراج نه په واپسئ باندې ئې مسجد اقصی ليدلې وو. د ابن الملقن رحمه الله بيان دې چه دلته يو احتمال دا هم دې چه د حضورپاك دا رؤيت، رؤيت علمی وی د کوم خبر چه د وحی په ذريعه

---

...... ائمه کرامو په نيز سنت مؤکده دی. د دې مونځونو وخت د تندر نيولو د وخت نه شروع کيږی او د تندر نيولو د ختميدو پورې باقي وی. ځکه چه د نبي کريم ﷺ ارشاد دې: "إذا رأيتموها فادعوا الله وصلوا حتى ينجلي" يعنې کله چه تاسو دا اووينئ نو د الله تعالى نه دعا غواړئ. او مونځ کوئ تردې چه هغه تندر نيول ختم شي. حضورپاك د تندر ختميدل د مونځ انتهاء اوخودله بل دا چه د دې مشروعيت د الله تعالى نه د دې خواهش د څرګندونې د پاره دې چه هغه د رڼا نعمت دوباره رانصيب کړی اوکله چه دا مقصود حاصل شو نو د مونځ مقصود حاصل شو. (الموسوعة الكويتية الفقهية: ۲۷/۲۸۰).

[1]) شرح الكرماني: ۹۳/٤ عمدة القاري: ۲۷٤/٤.

[2]) شرح الكرماني: ۹۳/٤ عمدة القاري: ۲۷٤/٤.

[3]) شرح الكرماني: ۹۳/٤ عمدة القاري: ۲۷٤/٤.

[4]) عمدة القاري: ۲۷٥/٤-۲۷٤.

[5]) عمدة القاري: ۲۷۳/٤ الأبواب والتراجم: ۲۱٥/۲ سراج القاري: ۱۹/۳.

[6]) شرح الكرماني: ۹۳/٤ عمدة القاري: ۲۷٥/٤.

[7]) شرح الكرماني: ۹۳/٤ التوضيح لابن الملقن: ٤۸۸/٥ عمدة القاري: ۲۷٥/٤.

حضور پاك نه او كړى شو.[1]

⑨ دَ امام بخارى رحمه الله دَ ترجمة الباب مطابق چه كله دَ مونځ گذار مخې ته اور وى ليكن دَ دغه مونځ گذار مقصود دَ دغه اور عبادت كول نه وى بلكه د الله تعالى رضامندى ئى مخې ته وى نو په داسې مونځ كښې هيڅ كراهت نشته دې.[2]

**دَ جماتونو دَ قبلې والا ديوال كښې هيټر يا گيس يا ليمپ وغيره دَ لگولو حكم:** موجوده وخت كښې بعضې داسې علاقې چرته چه ډيره زياته يخنى وى. هلته په جماتونو كښې چه كومې هيټرې دَ قبلې طرف ته لگولې شى دې دپاره چه مونځ گذار حضرات دَدې په تاؤ سره دَ يخنئى نه بچ شى اودَ جمات ماحول په دې سره گرم وى يا دَ رڼا په خاطر دَ گيس ليمپ، موم بتئ يا ډيوه وغيره دَ قبلې ديوال كښې لگولې شى نودَ ضرورت په وجه دَدې شرعاً گنجائش شته. خو بياهم په ظاهرى توگه دَ مجوسيانو دَ مشابهت نه دَ بچ كيدو په خاطر انتظاميه له پكار دى چه داسې هيټرې يا نوردَ اور والا څيزونه دې مخامخ دَ قبلې والا ديوال كښې نه لگوى. بلكه ښى طرف ته او گس طرف ته اودَ مونځ گذارو شاه طرف ته دې لگوى. يا كه هم دَ قبلې طرف ته لگول وى نو دَ مونځ گذارو دَ سرونو نه پورته دې په ديوال كښې لگوى.[3]

## ۲۰ - بَابٌ: كَرَاهِيَةِ الصَّلَاةِ فِي الْمَقَابِرِ

دا باب دې په قبرستان كښې دَمونځ كولو دَ مكروه كيدو په بيان كښې

**قوله: كَرَاهِيَةِ:** بعضې نسخو كښې "كراهة الصلاة" دې نه چه "كراهية الصلاة"، په معنوى اعتبارسره هيڅ حرج نشته، ځكه چه كراهة او كراهية دواړه مصادر دى.[4]

**قبرستان كښې دَ مونځ حكم:** قبرستان كښې دَمونځ دَ جواز يا عدم جواز په باره كښې دَ ائمه

---

[1] التوضيح لابن الملقن: ٤٨٨/٥ عمدة القارى: ٢٧٥/٤.

[2] عمدة القارى: ٢٧٥/٤.

[3] (و)لا [يكره] إلى(مصحف أو سيف مطلقًا أو شمع أو سراج) أو نار توقد، لأن المجوس إنما تعبدالجمر، لا النار الموقدة، قنية. (الدرالمختار، كتاب الصلاة، باب: ما يفسد الصلاة وما يكره فيها: ٨٩/١دارالكتب العلمية).ومن توجه فى صلاته إلى تنور فيه نار تتوقد أو كانون فيه نار يكره، ولو توجه إلى قنديل أو إلى سراج لم يكره، كذا فى محيط السرخسى وهو الأصح، كذا فى خزانة الفتاوى. (الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة، الباب السابع: فيما يفسد الصلاة وما يكره فيها وما لا يكره، الفصل الثانى: فيما يكره فى الصلاة وما لا يكره: ١٠٨/١). (نجم الفتاوى، كتاب الصلاة، مسجد ميں نمازيوں كے سامنے ہيٹر لگانے كا حكم: ٥٦٥/٢) (خير الفتاوى، احكام المساجد، مسجد ميں گيس كے ہيٹر دائيں بائيں لگائے جائيں، یا انسانی قد سے اوپر لگائے جائیں: ٥٥٠/٦) بعضې علاقې ډيرې زياتې يخې وى په هغې كښې دَ يخنئ نه دَ بچ كيدو دَپاره مختلف څيزونه استعماليږى. په هغې كښې يو دَ گيس هيټر هم دې چه په مكان، دوكان او جماتونو كښې لگولې شى. دَدې گيس دَ هيټر په پليټونو باندې دَ سروټكو شكل جوړشوې وى كله چه دا هيټر لگى نو هغه دَ سروټكو په شان برقيږى. داسې هيټرې مخې ته كيخودو سره مونځ جائز خودې مگر دَ آتش پرستو دَ مشابهت نه دَ بچ كيدو دپاره دا دَ جمات په اطرافو كښې يا دَ سجدې دَ ځائى نه اوچت لگول پكار دى.(المسائل المهمة فيما ابتليت العامة، كتاب الصلاة، نماز كے مكروہات ومفسدات: ١١٣/٥).

[4] عمدة القارى: ٢٧٥/٤.

اربعه دَ مذاهبو تفصيل درې ابوابه وړاندې باب "هل تنبش قبور مشركي الجاهلية ويتخذ مكانها مساجد" كښې تير شوې دې.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** ددې ترجمة الباب نه مقصود مطلقًا دَ قبرونو په مينځ كښې دَمونځ مكروه كيدو بيان دې. او ماقبل كښې چه كوم باب: "هل تنبش قبور مشركي الجاهلية ويتخذ مكانها مساجد" تير شو په هغې كښې خاص دَ قبرمخې ته اودريدو سره دَمونځ اداكولو دَ كراهت بيان وو په داسې توګه چه دَ مونځ ګذار مخې ته قبر وى. نو دا خبرې مخې ته كيخودو سره دَ تكرار قائلينو باندې رد كيږي. (١)

حديث باب [حديث نمبر ٤٢٢]

- ٤٢٢ - حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللهِ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ (٢) عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ مِنْ صَلَاتِكُمْ، وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا».

**د حديث توجمه:** حضرت عبد الله بن عمر ﷠ فرمائى چه نبى كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو په خپلو كورونو كښې هم مونځ كوئى دا قبرستان مه جوړوئى.

**تراجم رجال:** دَمذكوره حديث شريف په سند كښې ټول پنځه راويان دى:

① **مسدد** رحمه الله: دا مسدد بن مسرهد الاسدى البصرى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر حالات كشف

---

(١) تحفة القاري للكاندهلوي: ٤٩٠/٢. حضرت مولانا فخر الدين احمدصاحب نورالله مرقده فرمائى چه يوځو صفحې وړاندې "هل تنبش قبور مشركى الجاهلية" اودې سره "مايكره من الصلاة في القبور" تير شوې دې. اوهلته تفصيل بيان شوى دې چه په قبرستان كښې دَ مونځ كولو په مسئله كښې دَ فقهاؤ كرامو څه اختلاف دې. دلته امام بخارى رحمه الله مستقلاً ددې مسئلې وضاحت كول غواړى چه په قبرستان كښې مونځ كول مكروه دى. ددې وضاحت وجه داده چه دَ زمكې په هره حصه باندې مونځ كول جائز دى. دَ حضورپاك ارشاد دې "جعلت لى الأرض مسجدا وطهورا" اومقابر هم دَ زمكې يوه حصه ده. امام بخارى رحمه الله بيانول غواړى چه دَ اصل په اعتبارسره دَ زمكې هره يوه حصه دَ مونځ قابله وه ليكن دَ عوارضو دَ وجې نه په خاص خاص حصو كښې دَ مونځ كولو نه منع كړې شوې ده. دا عوارض كله په زمكه كښې وى اوكله په ماحول كښې وى هم ددې عوارضو په بنياد قبرستان كښې مونځ كول مكروه دى. ځكه چه په قبرستان كښې دَ مونځ كولو عمل دَ بت پرستو يا قبر پرستو سره تشبه پيداكوى. په دې وجه فقهاء اربعه په دې باندې متفق دى چه قبرستان كښې مونځ كول مكره دى. (ايضاح البخاري: ١٨٠/٣).

(٢) أخرجه البخاري ايضا فى التطوع، باب: التطوع فى البيت، رقم الحديث: ١١٨٧. ومسلم فى صحيحه، فى صلاة المسافرين وقصرها، باب: استحباب صلاة النافلة، رقم الحديث: ٧٧٢. وأبوداؤد فى سننه، كتاب الصلاة، باب: فى فضل التطوع فى البيت، رقم الحديث: ١٤٤٨. والترمذى فى جامعه، كتاب الصلاة، باب: ماجاء فى فضل صلاة التطوع فى البيت، رقم الحديث: ٤٥١. والنسائى فى سننه، كتاب فى صلاة الليل، باب: الحث على الصلاة فى البيوت والفضل فى ذلك، رقم الحديث: ١٥٩٨. وابن ماجة فى سننه، كتاب الصلاة باب: ماجاء فى التطوع فى البيت، رقم الحديث: ١٣٧٧. وفى جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة القسم الأول: فى الفرائض وأحكامها، الباب الأول: فى الصلاة وأحكامها، الفصل السادس: فى شرائط الصلاة، الفرع الرابع: فى أمكنة الصلاة، النوع الرابع: فى أحاديث متفرقة، رقم الحديث: ٣٦٨٣، ٤٨٣/٥.

الباری، کتاب الإیمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه، لاندې او تفصیلي حالات کتاب العلم، باب: من خص بالعلم قوما دون قوم کراهیة أن لا یفهموا لاندې تیر شوی دی.([1])

② یحیی رحمه الله: دا یحیی بن سعید بن فروخ القطان تمیمی رحمه الله دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه لاندې تیر شوی دی.([2])

③ عبیدالله رحمه الله: دا عبیدالله بن عمر بن حفص بن عبدالله بن عمر بن خطاب رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: التبرز فی البیوت ص: ۳۶۰ لاندې تیر شوی دی.([3])

④ نافع رحمه الله: دا مولی دَ عبدالله بن عمر القرشی رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: ذکر العلم والفتیا فی المسجد لاندې تیر شوی دی.([4])

⑤ ابن عمر رضی الله عنهما: دا حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. دَدوی تفصیلي احوال کشف الباری، کتاب الإیمان، باب: الإیمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الإسلام علی خمس لاندې تیر شوی دی.([5]):

**دَ حدیث شرح:**

**قوله: "اجعلوا فی بیوتکم من صلاتکم":** یعنی تاسو نوافل په خپلو کورونو کښې ادا کوئی.

**په کورونو کښې دَنوافل کولو باره کښې دَ علامه قرطبی رحمه الله موقف:** په دې عبارت کښې "من صلاتکم" کښې چه کوم "من" دې، دَدې باره کښې علامه قرطبی رحمه الله فرمائی ([6]) چه دا دَ تبعیض دَپاره دې او په دې صورت کښې به دَ "صلاتکم" نه مراد نوافل مونځونه وی او په دې باندې دلیل دَ صحیح مسلم هغه روایت دې په کوم کښې چه راغلی دی: «إذا قضی أحدکم الصلاة فی مسجده، فلیجعل لبیته نصیبا من صلاته» ([7]) چه کله څوک په تاسو کښې په جمات کښې فرض مونځ اداکړی نو دَ خپل مونځ څه حصه یعنی نوافل دې په کور کښې اداکوی.

**دَ قاضی عیاض رحمه الله موقف:** او قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دَدې مونځ نه مراد فرض مونځ دې نفل نه، مراد دادې چه تاسو کله کله فرض مونځ په کور کښې هم ادا کوئی دې دپاره چه

---

[1]) کشف الباری: ۲/۲، ۵۸۸/۴.

[2]) کشف الباری: ۲/۲.

[3]) کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: التبرز فی البیوت، ص: ۳۶۰.

[4]) کشف الباری: ۶۵۱/٤.

[5]) کشف الباری: ۶۳۷/۱.

[6]) المفهم لما اشکل من تلخیص کتاب مسلم، کتاب الصلاة، ومن باب: فضل النوافل، رقم الحدیث: ۶۵۳، ٤۱۱/۲.

[7]) وحدثنا أبوبکربن أبی شیبة، وأبوکریب، قالا: حدثنا أبومعاویة، عن الأعمش، عن أبی سفیان، عن جابر، قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: إذا قضی أحدکم الصلاة فی مسجده، فلیجعل لبیته نصیبا من صلاته، فإن الله جاعل فی بیته من صلاته خیرا. (صحیح مسلم، کتاب الصلاة، ومن باب: فضل النوافل، رقم الحدیث: ۶۵۳).

هغه کسان کوم چه جمات ته نه شي راتلې لکه ښځې، غلام، مریض وغیره، هغوی ته په کور کښې په جمع سره مونځ ورکوئی.([1])

**دَ جمهورو مؤقف:** دَ جمهورو په نیز داحکم دَ نوافلو په باره کښې دې نه چه دَ فرائضو باره کښې، ځکه چه دَ نوافل خو پټ او ځان له دَ ادا کولو حکم ورکړې شوې دې. دَ کوم چه بهترین طریقه هم دغه ده چه فرائض په جمات کښې دَ ادا کولو نه پس نوافل کورته په راتلو سره ادا کوئی. او یو بل دلیل هم دې په کوم کښې چه فرمائیلې شوی دی چه دَ فرض مونځ نه علاوه غوره مونځ هغه دې کوم چه په کور کښې اداکړې شي.([2])

علامه نووی رحمه الله فرمائی چه زیاته صحیح خبره داده چه دَدې مونځ نه دې مراد هم نفل مونځ وی نه چه فرائض ځکه چه دَدې باب ټول احادیث هم دَدې امر تقاضا کوی. لهذا په دې حدیث کښې ذکر شوې دَ مونځ امر په فرائضو باندې محمول کول صحیح نه دی.([3]) لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله په خپله شرحه فتح الباری کښې دَ قاضی صاحب رحمه الله کلام نقل کولونه پس فرمائی چه مذکوره حدیث خودَدې خبرې احتمال لری لیکن رومبې احتمال راجح دې.([4])

دَدې پوره تفصیل نه پس واورئی چه زمونږ په نیز دَ علامه نووی رحمه الله خبره راجح ده او کومه خبره چه حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث نه هغه احتمال هم راوځی کوم چه قاضی صاحب رحمه الله بیان کړې دې دغه ډیره لرې خبره ده. دَ سوچ خبره ده چه کله دَ نبی اکرم ﷺ حدیث موجود دې چه دَ فرض مونځ نه علاوه دَ سړی افضل مونځ هغه دې کوم چه په کور کښې اداکړې شی، نو بیا دااحتمال څنګه ممکن دې؟([5])

**په کورونوکښې دَ نوافل کولو فائدې:** په احادیثوکښې ترغیب ورکړې شوې دې چه دَ نوافلو ادا کول دې په کورونوکښې اوکړې شی ځکه چه دا پټ مونځ دې، کوم چه دَ ریاکارئی نه لرې وی. دَدې په وجه په کورونوکښې برکت راځی، دَدې عمل په وجه په کورونوکښې رحمت رانازلیږی. دَرحمت فرښتې کورته راځی او شیطانان دَ کورونونه تختی.([6])

**قوله: "ولاتتخذوهاقبورا":** دا کورونه قبرستان مه جوړوئی، دَدې جملې نه امام بخاری رحمه الله دا مسئله اخذ کړې ده چه قبرونه دَ عبادت ځایونه نه دی، لهذا په داسې ځایونوکښې مونځ اداکول مکروه دی.

**ګ. ونه قبرستان نه جوړولو سره متعلق دَ حضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** حضرت شیخ

---

[1] ) إكمال المعلم بفوائدمسلم، كتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة النافلة فى بيته، رقم الحديث: ٧٧٧، ١٤٤/٣.

[2] ) عمدة القارى: ٢٧٦/٤.

[3] ) شرح النووى على مسلم، كتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة النافلة فى بيته، رقم الحديث: ٧٧٧، ٦٧/٦.

[4] ) فتح البارى: ٦٨٥/١.

[5] ) فتح الملهم، كتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة النافلة فى بيته، رقم الحديث: ٧٧٧، ١٤٣/٥.وكذا فى ذخيرة العقبى، كتاب الصلاة، باب: الحث على الصلاة فى البيوت، رقم الحديث: ١٥٩٨، ٢٦٠/١٧.

[6] ) شرح النووى على مسلم، كتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة النافلة فى بيته، رقم الحديث: ٧٧٧، ٦٧/٦ ذخيرة العقبى، كتاب الصلاة، باب: الحث على الصلاة فى البيوت، رقم الحديث: ١٥٩٨، ٢٦٠/١٧.

الحديث رحمه الله فرمائی چه د حدیث پاك د دې جملې په معنی کښې مختلف اقوال دی:
يو مطلب خو دا دې چه په کورونو کښې مونځونه کوئی، په کورونو کښې مونځ نه کول د کورنه قبرستان جوړول دی ځکه چه په مقبره کښې مونځ نه شي کولې. لهذا کورونه د قبرستان په شان مه جوړوئی. د دې مطلب نه د امام بخاری رحمه الله تائید کیږی او د امام بخاری رحمه الله مقصد هم دغه دې او هم د دې نه ترجمه ثابتیږی.
دویم مطلب دا دې چه په کورونو کښې مونځونه کوئی او په کورونو کښې قبرونه مه جوړوئی ځکه چه بیا به دغه مقبره جوړه شی او په مقبره کښې مونځ جائز نه دی.
دریم مطلب دا دې چه په قبرستان کښې کور مه جوړوئی ځکه چه کله کله مقبروته تلو سره عبرت حاصلیږی. که چرې انسان هم هلته کور جوړ کړی نو بیا به د عبرت حاصلولو موقع پاتې نه شی بلکه عادت به شی.
څلورم مطلب دا دې چه کله چرته څوك راشی نو خوراك څائی اوبو وغیره سره د هغه میلمستیا او کړئی څه خوراك څښاك پرې او کړئی کورونه د مقبرو په شان مه جوړوئی.(۱)
دې جملې ته په کتو سره د یو جماعت رائې دا ده چه په کورونو کښې مونځ ادا کول مستحب دی ځکه چه مړی خو مونځ نه کوی، لکه چه نبی اکرم ﷺ ارشاد او فرمائیلو چه تاسو د هغه مړو په شان مه کیږئی چه په کورونو کښې په مونځ ادا کولو باندې قادر نه دی.
بعضې فقهاؤ د دې نه دا مستنبط کړی دی چه قبرستان د عبادت کولو ځائی نه دې، چنانچه په قبرستان کښې مونځ ادا کول مکروه دی. د دې خبرې دلیل دا دې چه نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلې دې: په پوره زمکه کښې مونځ ادا کیدې شی سوا د قبرستان او حمام نه دې دوو ځایونو کښې مونځ ادا کول جائز نه دی.(۲)
**د علامه خطابی رحمه الله رائې:** علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه یوه معنی دا هم ده چه تاسو خپل کورونه صرف د اوده کیدو د پاره مه استعمالوئی چه کله خو په کور کښې د مونځ ادا کولو نوبت هم رانه شی. چونکه خوب د مرګ خور ده او مړی خو مونځ نه کوی.(۳)
**د علامه توربشتی رحمه الله رائې:** علامه توربشتی رحمه الله فرمائی چه یو احتمال دا هم دې چه هغه سړې کوم چه ذکر کوی او څوك چه ذکر نه کوی، د دوی مثال د ژوندی او د مړی په شان دې. او ژوندی خلق په کورونو کښې اوسیږی او مړه خلق په قبرونو کښې اوسیږی. نو هغه سړې څوك چه په کور کښې مونځ نه کوی هغه خپل کور ځان له د قبر قائمقام جوړوی لکه چه هغه پخپله د مړ سړی په شان وی.

(۱) الكنز المتوارى: ١٤١/٤ سراج القارى: ٢١/٣.
(۲) عن أبي سعيد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: الأرض كلها مسجد إلا الحمام والمقبرة. (سنن أبي داؤد، كتاب الصلاة، في المواضع التي لا تجوز فيها الصلاة، رقم الحديث: ٤٩٢).
(۳) أعلام الحديث في شرح صحيح البخاري: ٣٩٣/١. فتح الملهم، كتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة النافلة في بيته، رقم الحديث: ٧٧٧، ١٤٣/٥.

دویم احتمال دادې چه قبرستان هغه ځائی دې چرته چه مونځ نه شی ادا کیدې ځکه چه هغه د هغه خلقو یعنی دَ (مړو) دَ اوسیدو ځائی دې چه په احکاماتو باندې دَ عمل کولو مکلف نه دی. دَ عمل دروازه دَ هغوی دَ طرف نه بنده شوې ده. لیکن په کورونو کښې تاسو مونځونه کوئی ځکه چه تاسو ژوندی یئی مکلف یئ دَ عمل کولو طاقت په تاسو کښې موجود دې.
دریم احتمال دادې چه بیشکه تاسو په قبرستان کښې دَ مونځ کولو نه منع کړې شوې یئ. نو تاسو په خپلو کورونو کښې مونځونه کول مه پریږدئ. که چرې تاسو داسې اوکړل نو په داسې صورت کښې به تاسو په خپلو کورونولره دَ قبرستان سره تشبیه ورکونکې جوړ شئ.([1])
**دَ ملاعلی قاری رحمه الله رائې:** ملاعلی قاری رحمه الله یوه معنی دا ذکرکړې ده چه تاسو په قبرستان کښې خپل دَ استوګنې ځائی مه جوړوئی دې دَ پاره چه تاسو نه دَ زړه نرمی، دَ نصیحت حاصلول اودَ رحمت حاصلول زائل نه شی (دا په دې وجه چه کله بنده په یوځائی کښې اوسیدل شروع کړی نو هغه دَ هغه ځائی عادت شی، نوچه کوم سړې په قبرستان کښې دَ اوسیدو عادت شی نو قبرستان ته تلو کښې کوم مقصود دې هغه به فوت شی) بلکه تاسو قبرستان ته دَ قبرونو دَ زیارت دَپاره ځئ او بیا خپلو کورونو ته واپس راځئ.
او نور اقوال ذکرکولو نه پس ئې یو بل قول ذکر کړې دې چه دَ ارباب لطائف نه دَ بعضو قول دادې چه ددې معنی داده چه تاسو خپل کورونو ته راتلونکی میلمنو دَپاره دَ کورنه دَ قبرستان په شان مه جوړوئی چه په هغوی نه خوراك کوئی او نه پرې اوبه څکوئی او نه دَ هغوی نور څه اکرام اوکړئی. (چونکه په قبرستان کښې داسې څه کار نه کیږی په دې وجه کورونه ئې دَ میلمنو دَپاره داسې جوړولو نه منع اوکړه).([2])
**دَ علامه خطابی رحمه الله یو اشکال اودَ هغې جواب:** علامه خطابی رحمه الله دَ یو قول تردید کړې دې چه چا دا تاویل بیان کړې دې چه دَ حدیث شریف په دې جمله کښې په کورونو کښې مړی خښولو نه منع کړې شوې ده. نودَ هغوی دا تاویل صحیح نه دې. ځکه چه حضورپاك هم په هغه کوټه کښې دفن کړې شو په کومه کښې چه حضورپاك اوسیدلو.([3])
علامه کرمانی رحمه الله ددې داجواب ورکړې دې چه مذکوره تاویل صحیح دې ځکه چه دا خبره عین ممکن ده چه په کورونو کښې دَ خښولو جائز کیدل دَ نبی کریم ﷺ سره خاص وی لکه چه په احادیثو کښې ذکر دی چه دَ انبیاء کرامو وفات کوم ځائی کښې اوشی هغوی هم په هغه ځائی کښې خښولې شی.([4])

[1] المیسرفی شرح مصابیح السنة للتوربشتی،کتاب الصلاة،باب:المساجد ومواضع الصلاة،رقم الحدیث:٤٧٩، ١/٢٠٥.
[2] مرقاة المفاتیح، کتاب الصلاة، باب: الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم، رقم الحدیث: ٩٢٦، ٢/٧٤٤.
[3] أعلام الحدیث فی شرح صحیح البخاری: ١/٣٩٣.
[4] قال الکرمانی: أقول: هوشیئ، ودفن الرسول صلی الله علیه وسلم فیه لعله من خصائصه سیما، وقد روی: الأنبیاء یدفنون حیث یموتون". (شرح الکرمانی: ٤/٩٤) وقال ابن حجر العسقلانی رحمه الله: قلت: هذا الحدیث ........

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ ترجمة الباب "كراهية الصلاة في المقابر" مطابقت دَ حديث شريف دَدې جملې "ولاتتخذوها قبورا" سره دې. په دې معنی کښې چه کورونو نه قبرستان مه جوړوئی په دې کښې تشبیه په عدم صلاة کښې ده. مطلب دا چه څنګه په قبرستان کښې مونځ نه ادا کیږی نو تاسو خپل کورونه هم داسې مه جوړوئی چه په کورونو کښې هډو مونځ نه کوئی، هم دا دَ امام بخاری رحمه الله مقصد دې او هم په دې سره ترجمة الباب ثابتیږی.(١)

**دَ علامه کورانی رحمه الله رائې:** علامه کورانی رحمه الله دَ حدیث شریف جمله "ولاتتخذوها قبورا" ذکرکولو نه پس فرمائی چه دا هغه مقام دې چه ترجمة الباب ثابتوی. وړاندې فرمائی چه په دې باندې اشکال راځی چه دا جمله خو په ترجمة الباب باندې دلالت نه کوی ځکه چه دَ حدیث مبارك معنی داده چه تاسو نوافل په خپلو کورونو کښې ادا کوئی. نودَ دې جواب دادې چه په دې جمله کښې دَ دوو معنو احتمال دې. یوخو هم دغه چه اعتراض کونکی ذکرکړې ده او دویمه معنی داده چه په قبرستان کښې مونځ اداکول جائز نه دی. په دې معنی باندې ترجمة الباب او حدیث شریف کښې مناسبت او مطابقت ښکاره دې (٢)

........ رواه بن ماجه مع حديث ابن عباس عن أبى بكر مرفوعا: "ما قبض نبى إلا دفن حيث يقبض" وفى إسناده حسين بن عبدالله الهاشمى، وهو ضعيف. وله طريق أخرى مرسلة ذكرها البيهقى فى الدلائل. وروى الترمذى فى الشمائل، والنسائى فى الكبرى، من طريق سالم بن عبيدالأشجعى الصحابى، عن أبى بكر الصديق، "أنه قيل له: فأين يدفنون رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ قال: فى المكان الذى قبض الله فيه روحه، فإنه لم يقبض روحه إلا فى مكان طيب". إسناده صحيح، لكنه موقوف. والذى قبله أصرح فى المقصود. وإذا حمل دفنه فى بيته على الاختصاص لم يبعد نهى غيره عن ذلک، بل هومتجه، لأن استمرار الدفن فى البيوت ربما صيرها مقابر، فتصير الصلاة فيها مكروهة. ولفظ حديث أبى هريرة عند مسلم أصرح من حديث الباب، وهو قوله: "لا تجعلوا بيوتكم مقابر". فإن ظاهره يقتضى النهى عن الدفن فى البيوت مطلقا، والله أعلم. (فتح البارى: ٦٨٦/١-٦٨٥).

(١) مستفاد از تقرير بخارى شريف: ١٦٢/٢. قال العلامة الدمامينى فى شرحه: "حمله البخارى على منع الصلاة فى المقابر، وتعقب بأن القصد الحث على الصلاة فى البيت، فإن الموتى لا يصلون فى قبورهم، وكأنه قال: لا تكونوا كالموتى، وليس فيه تعرض لجواز الصلاة فى المقابر، ولا منعها" (مصابيح الجامع اللدمامينى: ١٣٨/٢).

(٢) الكوثرالجارى: ١٢٢/٢-١٢١.

# ۲۱- بَاب: الصَّلَاةِ فِي مَوَاضِعِ الْخَسْفِ وَالْعَذَابِ

## دا باب دي خسف (په زمکه کښې د خښيدلو) او د عذاب په ځايونو کښې د مونځ اداکولو مکروه کيدو باره کښې

**د ترجمة الباب تشريح:**

**قوله:** "خسف": د يو مکان د هغې د دروازو سره په زمکه کښې خښيدلو ته خسف وائي.[۱] هم دې سره متعلق د قرآن پاك آيت: ﴿فَخَسَفْنَا بِهِ وَبِدَارِهِ﴾ سورت قصص کښې دی، بيا مونږ ورخښ کړل هغوی او د هغوی کورونه.[۲]

**قوله:** "والعذاب": د دې ذکر د "الخسف" نه پس د ذکر العام بعد الخاص د قبيل نه دې. ځکه چه خسف هم عذاب دې، ليکن د مخصوص نوعيت عذاب، چه په زمکه کښې ورخښول، او د دې نه پس عام قسم عذاب ذکر دې. مراد دا دې چه کوم ځائی کښې عذاب نازل شوې وی که هغه خصوصی وی چه په زمکه کښې ورخښ کړې شوې وی، يا څه بل قسم عذاب نازل وی، هلته مونځ اداکول ناخوښه، دی مکروه دی.[۳]

**د خسف نه مراد کومه واقعه ده؟:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه خسف نه مراد هغه واقعه ده کومه چه الله تعالی آيت مبارك: ﴿فَأَتَى اللَّهُ بُنْيَانَهُم مِّنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ﴾ کښې بيان کړې ده.[۴]

د دې په تشريح کښې علامه بغوی رحمه الله معالم التنزيل کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې دی چه نمرود بن کنعان په بابل ښار کښې يو محل جوړ کړې وو. د کوم اوچتوالې چه پنځه زره لاسه او پلنوالې ئې درې زره لاسه وو. د دې مقصد دا وو چه آسمان ته اوخيژی او د هغه ځائی حالات معلوم کړی او د آسمان والو سره جنګ اوکړی. الله تعالی يوه هوا راؤليږله کومې چه دغه محل راغوزار کړو او د هغې چت په نمرود باندې او د هغه په متبعينو باندې راپريوتلو په کوم سره چه هغوی هلاك شو.[۵]

---

[۱]) مختار الصحاح، خ س ف: ۹۰/۱. المصباح المنير في غريب الشرح الكبير، خ س ف: ۱۶۹/۱. القاموس المحيط، فصل الخاء: ۸۰۴/۱. لسان العرب، فصل الخاء المعجمة: ۶۷/۹.

[۲]) القصص: ۸۱.

[۳]) عمدة القاري: ۲۷۹/۲: حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي چه په دې ترجمه کښې امام بخاری رحمه الله د تعميم بعد التخصيص په توګه عذاب ذکرکړې، ځکه چه خسف هم د عذاب نه دې. لکه چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه سره اشاره اوکړه چه دا حکم صرف د خسف سره خاص نه دې، بلکه هرعذاب په دې کښې داخل دې ځکه چه د حضورپاك قول: "لا تدخلوا على هؤلاء المعذبين" په دې باندې دلالت کوی. لکه چه امام بخاری رحمه الله په دې لفظ سره عموم ثابت کړې دې. (الکنزالمتواری: ۱۴۱/۴، سراج القاري: ۳۰/۳).

[۴]) فتح الباري: ۶۸۶/۱.

[۵]) معالم التنزيل للبغوي، سورة النحل، الآية: ۲۶، ۱۶/۵.

صاحب روح المعاني يو قول دا هم ليکلي دي چه پخپله نمرود هغه وخت هلاك شوي نه وو بلکه د محل د بربادئي نه پس ژوندي پاتې شو او الله تعالى هغه د يو ماشي په ذريعه هلاك کړو، کوم چه د هغه دماغو ته رسيدلې وو. [1]

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې ترجمة الباب سره امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړي چه د عذاب په ځايونو کښې مونځ اداکول مکروه دي. د احاديثو نه دا خبره معلومه شوې ده چه د زحمت او د عذاب والا ځائې د رحمت والا ځائې مه جوړوئې. لهذا د خسف او عذاب په ځائې کښې مونځ مه کوئې. بل د عذاب والا د ځايونو نه د تختيدو حکم دې. لهذا په داسې ځايونو کښې مونځونه اداکولو سره دا د قرار ځائې مه جوړوئې. د دې نه علاوه د حديث مفهوم دې چه په داسې ځايونو کښې په ژړا سره تيريدل پکار دي. حالانکه په مونځ کښې هرچا ته ژړا نه ورځي.

**يو اشکال او د هغې جواب:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي چه په دې باندې اشکال دا دې چه مونځ د رحمت سبب دې نو د خسف په ځائې کښې خو نور هم زيات مونځونه کول پکار دي. دې د پاره چه د عذاب اثر کم شي. د دې جواب دا دې چه مونځ اګرچه رحمت دې ليکن دعا هم ده او مواضع خسف کښې که چرته زيات اخلاص نه وي نو د دعا د رد کيدو انديښنه ده. دا ياد ساتئ چه امام بخاري رحمه الله د جواز صلاة في مواضع الخسف قائل دی. [2]

**تعليق:** وَيُذْكَرُ أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَرِهَ الصَّلَاةَ بِخَسْفِ بَابِلَ.

**د تعليق تخريج:** د دې تخريج اصل [3] هغه اثر دې کوم چه المصنف لابن ابی شيبه کښې موجود دې. [4] چه حجر بن عنبس الحضرمی فرمائي چه مونږ د حضرت على رضي الله عنه سره د نهروان طرف ته لاړو. تردې چه مونږ د بابل ښار ته اورسيدو نو د مازيګر وخت داخل شو. مونږ حضرت على رضي الله عنه ته عرض اوکړو چه مونځ اداکړو؟ هغه چپ پاتې شو مونږ بيا (لږ ساعت پس) اووئيل چه مونځ ادا کړو؟ نو هغه بيا خاموش پاتې شو (څه جواب ئې ورنه کړو) بيا چه کله مونږ د بابل ښار نه اووتلو نو بيا هغوی رضي الله عنه د ماز يګر مونځ ادا کړو. بيائې اوفرمائيل چه زه داسې ځائې کښې مونځ نه اداکوم چرته چه يو قوم ته په زمکه کښې خښولو سره عذاب ورکړې شوې وي. حضرت على رضي الله عنه دا خبره درې ځل ارشاد اوفرمائيله.

---

[1] ) تفسير روح المعاني، سورة النحل، الآية، ۲۶، ۳۶۷/۷-۳۶۶.

[2] ) تقرير بخاری شريف: ۱۶۲/۲.

[3] ) تغليق التعليق: ۲۳۱/۲.

[4] ) عن حُجر بن عنبس الحضرمي، قال: خرجنا مع على إلى النهروان، حتى إذا كنا ببابل حضرت صلاة العصر، قلنا: الصلاة، فسكت، ثم قلنا: الصلاة، فسكت، فلما خرج منها صلى، ثم قال: "ما كنت أصلي بأرض خسف بها ثلاث مرات". (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب: في الموضع الذى خسف به، رقم الحديث: ۷۵۵۶، ۱۵۱/۲). حدثنا وكيع عن سفيان عن عبدالله بن أبي المحل عن على أنه كره الصلاة في الخسوف. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب: في الموع الذى خسف به، رقم الحديث: ۷۵۵۷، ۱۵۱/۲) وحدثنا ابن عيينة عن عبدالله بن شريك عن أبي المحل أن عليا مر بجانب من بابل فلم يصل بها (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب: في الموضع الذى خسف به، رقم الحديث: ۷۵۵۸، ۱۵۲/۲).

هم دغه شان هم د حضرت علي ﷛ يو اثر سنن ابي داؤد كښې دې. (١)

**د تعليق ترجمه:** ذكر كړې شوې دې چه حضرت علي ﷛ به په بابل ښار كښې د خسف عذاب د نازليدو د وجې نه مونځ ادا كول ناخوښه ګڼړل.

**د تعليق د ترجمة الباب سره مناسبت:** يوه خبره خو داده چه دا تعليق د ترجمة الباب جز دې. او كه چرې جدا هم دې نو بياهم ترجمة الباب او په دې تعليق كښې مشترك امر هم دغه دې چه په داسې ځايونو كښې مونځ ادا كول مكروه دې. (٢)

**بابل ښار:** بابل د يو عظيم الشان ښار نوم دې. چه پخوانئ زمانه كښې د فرات درياب په دواړو طرفونو كښې واقع وو. او د فرات درياب به د دغه ښارونو په مينځ كښې تيريدلو. نن هم د دغه ښار كنډرې د فرات درياب دواړو طرفو ته موجود دې. د يوې اوږدې مودې پورې دا ښار د عراق د حكومت دار الخلافه وه. او د بخت نصر د زمانې پورې د لوئى شان او شوكت والا ښار وو. ٥٢٨ قبل مسيح نه پس په دې ښار باندې داسې تباهي راغله چه د هميشه د پاره د دغه ښار خاتمه اوشوه. بابل ښار كښې چه په هغه دور كښې د جادو او سحر كومه غلبه وه د هغې مثال چرته نه وو. دا لفظ د مشهور نحوى د اخفش د بيان مطابق غير منصرف دې. په عربي كښې د هر مؤنث شي نوم كله چه هغه علم وي او د دريو حروفو نه زيات وي غير منصرف وي. (٣)

**د بابل د تسميه وجه:** په اسرائيلياتو كښې دي چه كله د نمرود بن كنعان جوړ كړې شوې محل د الله تعالى په حكم سره په زمكه كښې ورخښ شو نود ويرې او دهشت د وجې نه د خلقو

---

(١) حدثنا سليمان بن داؤد، أنا ابن وهيب، حدثنى ابن لهيعة، وحيى بن أزهر، عن عمار بن سعد المرادى، عن أبي صالح الغفارى، أن عليا مر ببابل وهو يسير، فجاءه المؤذن يؤذنه بصلاة العصر. فلما برز منها أمر المؤذن، فأقام الصلاة، فلما فرغ، قال: إن حبى عليه الصلاة والسلام نهانى أن أصلى فى المقبرة، ونهانى أن أصلى فى أرض بابل، فإنها ملعونة. (سنن أبى داؤد، كتاب الصلاة، باب: فى امواضع التى لا تجوز فيها الصلاة، رقم الحديث: ٤٩٠). د دې حديث آخرى جمله كښې حضرت علي ﷛ اوفرمائيل چه زما محبوب نبي ﷺ زه بابل ښار كښې د مونځ اداكولو نه منع كړې يم ځكه چه دغه زمكه داسې ده چرته چه د الله تعالى لعنت نازل شوې دې. علامه خطابى ﷫ د دې حديث په شرح كښې ليكى چه د دې حديث په سند كښې كلام دى. زما په علم كښې يو عالم هم د بابل په زمكه باندې مونځ كولو ته حرام نه دى وئيلى. علاوه د دې نه چه "جُعِلَت لى الأرض مسجداً وطهوراً" (زما د پاره ټوله زمكه د سجدې قابله او پاكه كړې شوې ده)، كوم چه د دې نه زيات صحيح دې، د دې معارض دى. (زه فرض كړه چه) دا حديث ثبوت ته اورسى نو د دې معنى به داشى چه حضور پاك د بابل زمكه وطن جوړول او هلته د اقامت اختيارولو نه منع كړې ده ځكه چه كله هلته اقامت اختيار كړې شى نو لا محاله هلته به مونځ هم كولې كيږى. بيا چه په دې باره كښې كومه نهى راغلې ده هغه هم مخصوص ده. د "نهانى" په الفاظو باندې غور اوكړئى (د كوم معنى چه ده زه منع كړې شوم) غالبًا د هغه محنت او مشقت نه ويرول مقصود وو كوم چه حضرت علي ﷛ په كوفه كښې اوچتولو. د كوفې ښير هم د بابل په زمكه كښې دې. د حضرت علي ﷛ نه مخكښې خلفاء راشدينو ﷡ نه څوك هم د مدينې نه نه دې منتقل شوې. (معالم السنن للخطابى، كتاب الصلاة، باب: المواضع التى لا تجوز فيها الصلاة: ١٤٨/١).

(٢) عمدة القارى: ٢٧٩/٤.

(٣) معجم البلدان: ١٨/٢، ط: مصر. لغاب القرآن للنعمانى: ١١/٢.

ژبې ګونګې شوې. په يو بل کښې ګډوډ شو. هغوی قسم قسم خبرې کول شروع کړې نو په ۷۲ ژبو کښې تقسيم شو. دا په عربۍ ژبه کښې تَبَلْبَلَتْ اَلسنُ الناسِ من الفزع سره تعبير کړې شو. هم ددې نه د بابل ښار نوم مشهور شو. دې نه مخکښې د اهل بابل ژبه سرياني وه.[1]

حديث باب [حديث نمبر ۴۲۳]

۴۲۳- حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ -رضي الله عنهما[2]- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لاَ تَدْخُلُوا عَلَى هَؤُلاَءِ الْمُعَذَّبِينَ إِلاَّ أَنْ تَكُونُوا بَاكِينَ، فَإِنْ لَمْ تَكُونُوا بَاكِينَ فَلاَ تَدْخُلُوا عَلَيْهِمْ، لاَ يُصِيبُكُمْ مَا أَصَابَهُمْ».

**د حديث ترجمه:** حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه نبي کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چه د هغه خلقو علاقو ته مه ځئ چاته چه عذاب ورکړې شوې دې، مګر په ژړا سره. که چرې تاسو اونه ژړلې شئ نو د هغوی علاقو ته مه ځئ، داسې نه وی چه په تاسو باندې هم هغه عذاب راشي کوم چه هغوی په ګيره کښې اخستی وو.

**تراجم رجال:** د مذکوره حديث شريف په سند کښې ټول څلور راويان دی:

① اسماعيل بن عبدالله رحمه الله: دا ابوعبدالله اسماعيل بن ابی اويس عبدالله بن عبدالله بن اويس بن مالک اصبحی مدنی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: تفاضل أهل الإيمان فی الأعمال لاندې تير شوی دی.[3]

② مالک رحمه الله: دا ابوعبدالله امام مالک بن انس بن مالک رحمه الله دې د دوی احوال کتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تير شوی دی.[4]

③ عبدالله بن دينار رحمه الله: دا ابوعبدالرحمن عبدالله بن دينار ورشی عدوی مدنی رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: أمور الإيمان او تفصيلی حالات کتاب العلم، باب: قول المحدث: حدثنا وأخبرنا وأنبأنا لاندې تير شوی دی.[5]

---

[1] روح المعاني، النحل: ۲۶، ۳۶۷/۷-۳۶۶. معالم التنزيل للبغوي، النحل، الآية: ۲۶، ۱۶/۵.

[2] أخرجه البخاري أيضا في الأنبياء، باب: قول الله تعالى: ﴿ وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ﴾ رقم الحديث: ۳۳۸۰. وفي المغازي، باب: نزول النبي صلى الله عليه وسلم الحجر، رقم الحديث: ۴۴۲۰-۴۴۱۹، وفي تفسير سورة الحجر، باب: ﴿ وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ ﴾ رقم الحديث: ۴۷۰۲. ومسلم في صحيحه، في الزهد والرقايق، باب: لا تدخلوا مساكن اللذين ظلموا أنفسهم إلاأن تكونوا باكين، رقم الحديث: ۲۹۸۰. وفي جامع الأصول، حرف الذال، الكتاب الثالث: في ذم الدنيا، وذم أماكن من الأرض، الفصل الثاني، في ذم أما كن من الأرض، رقم الحديث: ۲۶۱۱، ۵۱۲/۴.

[3] كشف الباري: ۱۱۳/۲.

[4] كشف الباري: ۸۰/۲.

[5] كشف الباري: ۶۵۸/۱، ۱۲۵/۳.

④ عبدالله بن عمر رضي الله عنهما: دا حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دي. دَ دوی احوال كشف الباري، كتاب الإيمان، باب الإيمان وقول النبي صلى الله عليه وسلم: بني الإسلام على خمس كښې تير شوی دی.[1]

**دَ حديث شرح:**

**قوله:** عن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "لاتدخلوا على هؤلاء المعذبين":

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه نبي كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه دَ هغه خلقو علاقو ته مه ورځئ چاته چه عذاب وركړې شوې دې.

**قوله:** لاتدخلوا: دا نهی دَ حضورپاك دَ طرف نه هغه وخت شوې وه كوم وخت چه رسول الله ﷺ دَ تبوك طرف ته تللو. هغه وخت په حجر مقام كښې دَ قوم ثمود تباه شوی مكاناتو باندې تيريدل اوشو نو هغه وخت حضورپاك دا حكم اوفرمائيلو.[2]

**حجر كوم يو مقام دې؟:** هغه مكان دَ كوم احاطه چه دَ كانړو نه جوړه كړې شی هغې ته حجر وائی. چونكه دَ ثموديانو آبادئي دَ كانړو په تراشلو سره جوړې كړې شوې وې ځكه ورته حجر وئيل شی. ارشاد دې: ﴿كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِينَ﴾ دَ حجر والو رسولان دروغژن اوګڼړل. په ۹ھ كښې حضورپاك تبوك ته دَ تللو په وخت په دغه ښار تير شوې وو. دَ عثمانيه دولت په زمانه كښې دا دَ حجاز ريلوې سټيشن وو اودَ كانړو راتاوولو مقصود حفاظت او منع كول وی او عقل هم دَ انسان حفاظت كوی اودې منع كوی په دې وجه دې ته هم حجر وئيلې شی. ارشاد دې: ﴿هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ﴾ آيا په دې كښې دَ عقل والو دَپاره قسم دې.[3]

دَ حجر نور تفصيل كه چرته څوك كتل غواړي نو "اردو دائره معارف اسلاميه" كوم چه دَ اردو لغت دَ ټولو نه لوئې كتاب دې، كښې دې اوګوری.[4]

---

[1] كشف الباري: ۱/۶۳۷.

[2] فتح الباري: ۱/۶۸۷.

[3] لغات القرآن للنعماني، الحجر: ۲/۲۷۳.

[4] "الحجر" دَ جنوبی عرب يو ښاردې كوم چه دَ "تيما" جنوب كښې دَ وادی القری نه دَ يوې ورځې په مسافت باندې واقع وو. دا دَ پخوانئ زمانې هم هغه تجارتی ښار وو كوم چه بطليموس او پلينی دَ (Egra) په نوم سره ذكر كړې دې. دا ښار اوس موجود نه دې موجوده زمانه كښې دَ دې اطلاق بدوی په هغه سپاټ زمكه باندې كوی كوم چه دَ مبرک الناقة او بير الغنم په مينځ كښې دَ خوميلو پورې خوره شوې ده. دَدې په آباده زمكه كښې ډير كوهيان دی چرته چه بدوی په ډير زيات تعداد كښې خپلو مالونو سره راځی او خيمه زن كيږی. دَ الحجر نه دوه سركونه دَ مكې طرف ته ځی. يو دَ نجد سړك په كوم چه نن صبا حاجيان تيريږی او بل شاهراه مرو. په كوم باندې چه به په پخوانئ زمانه كښې زائرين مكې مكرمې ته تلل. دَ الحجر په مغرب كښې يو غر دې چه دَ شكې كانړو په پنځو منفرد چټانونو باندې مشتمل دې. كوم ته چه اثالث وائی او په دې باندې ډير ښكلې يادګارونه تراشلې جوړكړې شوی دی. په دې كښې قصرالبنت، بيت الشيخ، بيت اخريمات، محل المجلس او ديوان شامل دی، چه دَ مرغو .......

**قوله: هؤلاء المعذبين:** هغه خلق چاته چه عذاب ورکړې شوې دې د هغوی علاقو ته مه ورځئ. د صحيح بخاری په نورو رواياتو کښې دی چه کله حضورپاك مقام حجر سره تيريدو نوارشاد ئې اوفرمائيلو: "لاتدخلوا مساكن الذين ظلموا أنفسهم" چه کومو خلقو په خپلو ځانونو باندې (د الله تعالى نافرمانه جوړيدو سره) ظلم اوکړو د هغوی کورونوته مه ورځئ.(۱)

**قوله: إلا أن تكونوا باكين، فإن لم تكونوا باكين، فلاتدخلوا عليهم:** مګر په ژړا سره، که چرې تاسو اونه ژړلې شئ نود هغوی علاقې ته مه ورځئ.

---

........ او ځناورو ډير زيات تراشلې شوی شکلونه او په ډيرو تختو سره ښائسته کړې شوی دی).
"چارلس ډاؤتی"، د يورپ د ټولو نه اولنې اوسيدونکې وو چاچه په کال ۱۸۷۶ء او ۱۸۷۷ء کښې د الحجر سيل کړې وو. اود دغه کاڼړو او په هغې باندې تراشلې شوی عمارتونو ئې په غور سره مشاهده اوکړه. هغه پسه اولګوله چه دا عمارتونه (په استثناء د ديوان) مقبرې (يعنی خاندانی د ښخولوځايونه) دی. په کوم کښې چه طاخونه اود جسمانی اجسامو باقيات موجود دی. مکې ته تلونکی زائرين يو ورځ د پاره د اثاث په غرونو باندې قيام کوې او مونځ ادا کوی. پخوانئ زمانه کښې څه بې دين او متکبر خلق چه په ثمود باندې ياديدل آباد وو. د چا متعلق چه په قرآن پاك کښې وئيلې شوې دی چه هغوی به غرونه برې کول او هلته به ئې کورونه جوړول. دغه خلق په نيغه لار باندې د راوستلو دپاره هم د دوی د قوم نه الله تعالى صالح عليه السلام پيغمبر جوړولوسره دوی له راؤليږلو (او اوښه ئې د نشانئ په توګه پيش کړه که چرې دې ته نقصان اورسولې شو نو عذاب به نازليږی) ليکن کله چه هغه خلقو خپله بت پرستی جاری اوساتله اوهغه اوښه ئې مړه کړه. حالانکه حضرت صالح عليه السلام به هغوی ددې اوښې ته د ضرر نه رسولو وينا کوله نو الله تعالى په هغوی باندې يوه زلزله نازل کړه په کوم سره چه هغوی نيست او نابود شو. د الحجر د شګلنو کاڼړوته سره د هغه يادګارونو چه په هغې کښې دننه تراشلو سره جوړکړې شوی دی د حضرت صالح عليه السلام په نوم باندې مدائن صالح يعنی د صالح ښار هم وئيلې شی.
د عربو د روايت مطابق حضرت ابراهيم د خپل پروردګار په حکم سره حضرت هاجره او د هغې ځوئ حضرت اسماعيل په الحجر کښې پريخودوسره تلې وو. دا هم وئيلې شی چه حضرت اسماعيل عليه السلام د خپلې مور په اړخ کښې دفن دې. په سيرت نبوی کښې هم د الحجر ذکر راغلې. کله چه ۹هجری/۶۳۱ء کښې رسول الله ﷺ د تبوك طرف ته تشريف اوړلو نو په الحجر د حضورپاك تيريدل اوشو. صحابه کرامو غوښتل چه دلته آرام اوکړی او ددې ځائی د کوهيانو نه اوبه اوڅکی او ځانونه تازه کړی ليکن رسول الله ﷺ هغوی ته ددې اجازت ورنه کړو چه هغوی دې داسې ځائی کښې دمه اوکړی چرته چه د الله تعالى قهر نازل شوې وو.
د حال په زمانه کښې د سعودی امير دلته يو ښار آبادول غوښتل ليکن په يو داسې مقام باندې چه د الله تعالى د طرف نه پرې لعنت او عذاب راغلې وو د نوی سره نه يو ښار آبادولو باندې د دين د علماؤ د سختو اعتراضاتو د وجې دغه منصوبه پوره نه شوه.
د ډاؤتی نه پس ملك الساتيا (Alsatia) يو سيلانی "C, Huber" دوباره د الحجر سيل اوکړو. يو ځل ۱۸۷۹ء کښې او په دويم ځل (Euting) سره ۱۸۸۴ء کښې. (اردو دائرة معارف اسلاميه، الحجر، ۷/۶۵۷-۶۴۵ دانشګاه پنجاب لاهور).

(۱) حدثنا عبدالله بن محمد الجعفي، حدثنا عبدالرزاق، أخبرنا معمر، عن الزهري، عن سالم، عن ابن عمر رضى الله عنهما، قال: لما مر النبى صلى الله عليه وسلم بالحجر قال: لا تدخلوا مساكن الذين ظلموا أنفسهم، أن يصيبكم ما أصابهم، إلا أن تكونوا باكين، ثم قنع رأسه وأسرع السير حتى أجاز الوادي. (صحيح البخاري، المغازي، باب: نزول النبي صلى الله عليه وسلم الحجر، رقم الحديث: ۴۴۱۹-۴۴۲۰).

**قوله:** إلا أن تكونوا باكين: دَدې جملې په ذريعه په هغه ځايونو کښې په ژړا سره او دَ عبرت حاصلولو سره دَ داخليدو اجازت ورکړې شو چه که چرې داسې داخل شئ نو مباح دی. او دا جمله په دې خبره باندې هم دلالت کوی چه په دغه ځائی کښې اذا شوې مونځ فاسديږی نه.(١)

**قوله:** باکين: دا ژړل په هغوی باندې دَ شفقت دَ وجې نه وی، يا دَ دې ويرې نه چه چرته دَ الله تعالى عذاب په مونږ باندې هم نازل نه شی.(٢)

حضرت مولانا شبير احمد صاحب رحمه الله فرمائی چه "بکاء" نه مراد بکاء قلب دې. خو که ورسره بکاء عين هم وی نو نوره هم بهتر ده.(٣)

**قوله:** لا يصيبكم ما اصابهم: داسې نه وی چه په تاسو باندې هم هغه عذاب راشی، کوم چه هغوی راګير کړی وو.

علامه خطابی رحمه الله چه فرمائی دَدې حديث معنى داده چه هغه سرى چه دَ يو داسې قوم په علاقو کښې داخل شی په کوم چه دَ الله تعالى عذاب نازل شوې وی او په هغه باندې هلته دَ داخليدو په وخت دَ عبرت، ويرې او دَ ژړا آثار ښکاره نه شی نو هغه ډير سخت زړه والا دې. او دَ خشوع په اعتبار سره ډير دَ کمی والا دې. دَ ويرې او دهشت اثر نه قبلوی، نو په داسې حالت کښې ويره ده چه داسې سړې هم هغه عذاب راګير کړی کوم چه په هغه کلی والو باندې راغلې وو.(٤)

**قوله: لا يصيبكم ما اصابهم، باندې يوشبه او دَ هغې جواب:** حضرت مولانا شبير احمد رحمه الله فرمائی چه که چرې شبه اوکړې شی چه په امت محمديه باندې دَ داسې قسم عذاب دَ نه راتلو وعده کړې شوې ده. نو اوس خو دَ دغه طرف نه امن او تسلى ده نو بيا حضور پاک عليه السلام دا ځنګه فرمائيلى دی چه "لايصيبکم ما أصابهم"؟

نو ياد لرئ چه اولاً خو دغه وعده وغيره هم هغه چا ته هر وخت مستحضر وی دَ چا په زړه باندې چه دَ الله تعالى دَ ويرې تسلط نه وی ګنی دَ ويرې دَ غلبې په وخت دا ټولې وعدې يادې نه وی (او ښکاره خبره ده چه دَ نبی پاک عليه السلام په زړه باندې هروخت مکمل غلبه وه). دې نه علاوه وعده دَدې خبرې ده چه عام عذاب داسې راشی چه ټول امت هلاك شی داسې به نه کيږی. باقی په يو خاص خطه يا جماعت باندې راتلې شی. چنانچه هم پخپله په حديث کښې دی چه په دې امت کښې به خسف هم وی او مسخ هم.(٥)

---

(١) عمدة القاري: ٢٨٢/٤.

(٢) إرشاد الساري: ٤٣٤/١.

(٣) فضل الباري: ١٤٧/٣.

(٤) أعلام الحديث للخطابي: ٣٩٤/١.

(٥) فضل الباري: ١٤٨/٣-١٤٧.

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه حضور پاك هغه عذاب نازليدو والا ځائى كښې راكوز نه شو، دَ كوم چه لا زمى خاصه ده چه كله ئى هلته حصاريدل مناسب اونه ګڼړل نو هلته مونځ كول خو ډيره لرې خبره ده. يعنى عدم نزول مستلزم دې عدم صلاة ته، او عدم صلاة په وجه دَ كراهت دې. او دا باب هم دَ كراهت دَ بيانولو دَپاره قائم كړې شوې دې.(۱)

**دَ حديث شريف نه مستنبط شوى احكام او اداب:** دَدې حديث شريف نه چه كوم احكام مستنبط كيږى دَ هغې نه بعضې دلته نقل كولې شى:

① په كومو علاقو كښې چه دَ الله تعالى عذاب نازل شوې وى هغه ځايونه خپل وطن نه دى جوړول پكار.(۲)

② داسې علاقونه ډير په تيزئى سره بغيردَ ايساريدو تيريدل پكاردى.(۳)

③ كه چرته تلل وى نو دَ عبرت حاصلولو سره په ژړا سره، اودَ زړه په ويرې سره تلل پكار دى.(۴)

④ په دې حديث شريف كښې انسان له دَ مراقبې طرف ته رغبت وركړې شوې دې.(۵)

## ۲۲ - بَابٌ: الصَّلَاةِ فِي الْبِيْعَةِ

### داباب دې په ګرجاګهر كښې دَمونځ كولو باره كښې

**دَ ترجمة الباب تشريح: قوله:** الْبِيْعَةِ، دَ عيسايانو دَ عبادت ځايى ته ګرجاګهر وائى. اودې ته په عربى كښې "الْبِيْعَةِ" وائى دَ باء په كسرې سره.(۶)

**"بيعة" او "كنيسه" كښې فرق:** "الْبِيْعَةِ" دَ نصارىٰ عبادت خانې ته وائى اودَدې جمع "البيع" راځى. او "كنيسة" دَ يهودو عبادت خانې ته وائى اودَدې جمع "الكنائس" ده. بله دا چه اهل لغت دَ عيسايانو او يهوديانو دواړو عبادت خانودَ پاره دَ "البيعة" لفظ هم استعمالوى.(۷)

په دې تشريح سره دَدې اشكال هم جواب اوشو چه په ترجمة الباب كښې خو "الْبِيْعَةِ" ذكر دې او په حديث كښې دَ "كنيسة" ذكر دې ځكه چه دَ البيعة والكنيسة استعمال دَ يهودو او

---

(۱) عمدة القاري: ۲۸۱/٤.
(۲) فتح الباري: ۶۸۷/۱ عمدة القاري: ۲۸۳/٤.
(۳) فتح الباري: ۶۸۷/۱ عمدة القاري: ۲۸۳/٤.
(۴) فتح الباري: ۶۸۷/۱ عمدة القاري: ۲۸۳/٤.
(۵) التوضيح لابن الملقن: ۵۰۲/۵ فتح الباري: ۶۸۷/۱.
(۶) مختار الصحاح، ب ى ع: ۴۳/۱. القاموس الفقهى، حرف الباء: ٤۶/۱.
(۷) طلبة الطلبة في الاصطلاحات الفقهية، كتاب اللقطة: ۹۳/۱. المخصص لابن سيده، الأصنام: ۶۷/٤. تاج العروس، ب ى ع: ۳۶۹/۲۰.

نصاري دواړو عبادت خانو باندې کيږي.
**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاري رحمه الله مذکوره باب قائمولو سره دا خودل غواړي چه که دَ نصاري په معبد کښې تصويرونه وغيره وي نو هلته مونځ ادا کول مکروه دي او که چرته هلته داسې څه نه وي نو څه حرج نشته دې.[1]
**دَ حضرت ګنګوهي رحمه الله رائې:** حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه کيدې شي چه دَ امام بخاري رحمه الله مراد دَدې باب نه دا وي چه که په دغه (معبد نصارى) کښې معصيت لکه شرك بالله، تصويرونه او قبرونه وغيره نه وي نو بغير دَ کراهتَ په دې کښې مونځ کول جائز دي او که په دې کښې دَ مذکوره څيزونو نه څه وي نو مونځ به مکروه وي. آثار او روايات کوم چه په دې باب کښې راغلی دی دَ هغې سره دَدې معنې مطابقت واضح دې، ځکه چه دَ دغه تصويرونو وجود اودَ تصويرونو ساتل دَ هغوی دَ پاره دَ لعنت سبب جوړ شو. بيا به دغه څيز دَ هغه خلقو دَ پاره هم دَ لعنت سبب جوړيږي چه هلته هغوی سره په عبادت کښې شريك وي. اګرچه لعنت به دَدې څيزونو په جوړونکو او ساتونکو باندې زيات سخت وي په مقابله دَ هغه مسلمانانو څوك چه هلته مونځ وغيره کوي.[2]
**سابقه يو باب سره تعارض اودَ هغې حل:** اشکال دادې چه دې باب او وړاندې تيرشوی باب کښې تعارض دې. داسې ځان پوهه کړئ چه وړاندې تيرشوی يو باب "من صلى وقدامه نار أو تنور" کښې بيان شو چه که دَ مونځ ګذار مخې ته اور وغيره وي ليکن دَ دَغه مونځ ګذار دَ دغه مونځ نه مقصود صرف دَ الله تعالى رضا وي نو په داسې صورت کښې مونځ ادا کولو کښې څه حرج نشته دې. خو په دې باب کښې دَ غير مسلمو عبادت خانه کښې صرف دَ تصوير دَ وجې نه مونځ ادا کول دَ مکروه کيدو بيان دې؟
دَدې تعارض دا جواب ورکړې شوې دې چه دغه وړاندې تير شوی باب کښې دَ مونځ مکروه کيدو وجه دا وه چه هلته دَ مونځ ګذار مخې ته دَ اور وغيره کيدو تعلق دَ هغه په اختيار سره نه وو يعني دَ مونځ ګذار دَ اختيار نه بغير دَ اور وغيره دَ مخې ته کيدو په صورت کښې دَ هغه مونځ ګذار په مونځ کښې څه کراهت رانغلو ځکه چه دَ هغه نيت دَ الله تعالى دَ پاره دَ مونځ کولو وو. او په دې باب کښې دَ قصد او ارادې دخل دې لکه چه حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل مونږ به ستاسو عبادت خانو ته نه داخليږو، لهذا اوس هيڅ تعارض باقي پاتې نه شو.[3]
**ړومبې تعليق:** وَقَالَ: عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: إِنَّا لَا نَدْخُلُ كَنَائِسَكُمْ، مِنْ أَجْلِ التَّمَاثِيلِ الَّتِي فِيهَا الصُّوَرِ.
**دَ تعليق ترجمه:** اوحضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه مونږ به ستاسو ګرجاګهرو کښې هغه دَ

---

[1]) عمدة القاري: ٢٨٣/٤.
[2]) لامع الدراري: ١٧١/١-١٧٠. الأبواب والتراجم: ٢١٦/٢.
[3]) فتح الباري: ٦٨٨/١ عمدة القاري: ٢٨٣/٤.

تماثیلو یعنی تصویرونو د وجې نه نه داخلیږو کوم چه هلته وی.

**د تعلیق تخریج:** دا تعلیق موصولاً المصنف لبعد الرزاق کښې نقل کړې شوې دې چه کله حضرت عمر رضی الله عنه د ملك شام ته راغلو نو یو نصرانی سړی د هغه د پاره خوراك تیار کړو او هغوی ته ئې دعوت ورکولو سره اووئیل اې عمره زه غواړم چه تاسو ماسره تشریف راوړنې او تاسو سره د خپلو ملګرو ماله راشئ او ماته عزت راکړئ. هغه سړې د نصاری لوئی پادری وو. حضرت عمر رضی الله عنه جواب ورکړو چه مونږ ستاسو ګرجو ته د دغه تصویرونو د وجې هم نه داخلیږو کوم چه هلته موجود دی. [۱] د عیسایانو د دغه لوئی پادری نوم قسطنطین وو. کوم چه حضرت مسلمه بن عبدالله الجهني رحمه الله کیخودې وو. [۲]

**د تعلیق تشریح:**

**قوله:** کنائسکم: په دې حدیث شریف کښې "کنائسکم" په خطاب سره دې خو د اصیلی په روایت کښې "کنائسهم" د غائب په ضمیر سره دې. [۳]

حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه مونږ ستاسو په کنیساؤ کښې نه داخلیږو. د کنیسه معنی پورته واضحه کړې شوې ده چه د یهودو د عبادت خانود پاره استعمالیږی. او د نصاری په عبادت خانو باندې هم د دې اطلاق کیږی.

**قوله:** التی فیها: دا جمله د التماثیل صفت جوړیږی. او الصور به مکسور وئیلې شی کوم چه به د التماثیل د پاره بدل شی. او یا به عطف بیان. پورته د تعلیق چه کومه ترجمه کړې شوې ده دغه ترکیب په خیال کښې ساتلو سره کړې شوې ده. [۴] خو د دې جملې په ترکیب کښې نور احتمالات هم موجود دی. [۵]

**د تعلیق د ترجمة الباب سره مطابقت:** د دې اثر د ترجمة الباب سره مطابقت په دې اعتبار سره دې چه د حضرت عمر رضی الله عنه د نصاری په کنیسه کښې نه داخلیدل د هغه تصویرونو د وجې وو کوم چه په هغې کښې موجود وو. که چرې هلته تصویرونه نه وې نو د هغه په دغه کنیسه د

---

[۱] عبدالرزاق عن معمر عن أیوب عن نافع عن أسلم أن عمر حین قدم الشام، صنع له رجل من النصاری طعاما، وقال لعمر: إنی أحب أن تجیئنی، وتکرمنی أنت وأصحابک، وهو رجل من عظماء النصاری، فقال عمر: إنا لا ندخل کنائسکم من أجل الصور التی فیها یعنی: التماثیل. (المصنف لعبدالرزاق، کتاب الصلاة، باب: الصلاة فی البیعة، رقم الحدیث: ۱۶۱۱، ۱/۴۱۲-۴۱۱).

[۲] فتح الباری: ۱/۶۸۸.

[۳] فتح الباری: ۱/۶۸۸، عمدة القاری: ۴/۲۸۴.

[۴] فتح الباری: ۱/۶۸۸، عمدة القاری: ۴/۲۸۴.

[۵] هغه دا دی چه "التی فیها الصور" جمله اسمیه ده. داسې چه "الصور" به مبتداء مؤخروی او "فیها" خبر مقدم دې. د ها ضمیر مرجع به "الکنائس" وی. دا پوره جمله به د موصول د پاره صله شی. او موصول به د خپلې صلې سره د "الکنائس" د پاره صفت شی نه چه د "التماثیل" د پاره، ځکه چه په دې سره په معنی کښې فساد راځی. (فتح الباری: ۱/۶۸۸، عمدة القاری: ۴/۲۸۴).

داخليدو نه هيڅ څيز مانع نه وو. چنانچه په دې صورت کښې به هغه هلته مونځ هم ادا کولې څکه چه څه مانع نه وو. او په دې صورت کښې به هلته د هغه په مونځ اداکولو کښې څه کراهت هم نه وو. (۱)

دَدې خبرې تائيد دهغه اثر نه کيږي کوم چه ابن ابی شيبه رحمه الله په المصنف کښې ذکرکړې دې چه کله اهل نجران مسلمانان شو نوهغوی حضرت عمر رضي الله عنه ته خط اوليکلو چه مونږ دلته د ګرجاګهر نه زيات صفا اوښکلې زمکه نه بياموموِ (نو آيا مونږ دلته مونځ ادا کړو؟) حضرت عمر رضي الله عنه هغوی ته اوليکل چه هلته (صفائی کولو سره) اوبه چنړکاؤ کړئی او مونځ اداکړئی. (۲)

**دويم تعليق:** وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُصَلِّي فِي الْبِيْعَةِ، إِلَّا بِيْعَةً فِيهَا تَمَاثِيلُ.

**دَتعليق ترجمه:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما به په ګرجاګهر کښې مونځ ادا کولو سوا د هغه ګرجې چرته چه به صورتونه يعنی تصويران وو.

**د تعليق تخريج:** حافظ ابن حجر رحمه الله تغليق التعليق کښې ليکلی دی چه ابوالقاسم البغوی رحمه الله دا اثر موصولاً نقل کړې دې. وئی ګورئی: «حبيدالله العيشی ثنا العيشی ثنا عبدالواحد بن زياد ثنا خصيف عن مقسم مولی ابن عباس قال كان ابن عباس إذا دخل الكنايس التی فيها الصور والتماثيل لم يصل فيها وخرج» دارنګ دا تعليق امام بغوی رحمه الله په الجعديات کښې هم موصولاً نقل کړې دې. او په هغې کښې دا اضافه هم ده: "فإن كان فيها تماثيل خرج فصلى فی المطر". وئی ګورئی: «ثنا علی بن الجعد ثنا شريك عن خصيف عن مقسم عن ابن عباس أنه كان يصلی فی البيع مالم يكن فيها تماثيل، فإن كان فيها تماثيل خرج فصلى فی المطر». (۳)

**دَ تعليق دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَتعليق دَ ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې چه په داسې ځايونو کښې دَ مونځ دَ کراهت اثبات کيږي.

حديث باب ړومبی حديث [حديث نمبر ۴۲۴]

۴۲۴ - حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ (۴) ذَكَرَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَنِيسَةً رَأَتْهَا بِأَرْضِ الْحَبَشَةِ يُقَالُ لَهَا مَارِيَةُ، فَذَكَرَتْ لَهُ مَا رَأَتْ فِيهَا مِنَ الصُّوَرِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أُولَئِكَ قَوْمٌ إِذَا مَاتَ فِيهِمُ الْعَبْدُ الصَّالِحُ - أَوِ الرَّجُلُ الصَّالِحُ - بَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ مَسْجِدًا، وَصَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الصُّوَرَ، أُولَئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللَّهِ».

---

(۱) عمدة القاري: ۲۸٤/٤.

(۲) حدثنا أبوبكر قال: حدثنا سهل بن يوسف، عن حميد، عن أبي بكر، قال: "كتبتُ إلى عمر من نجران: لم يجدوا مكانا أنظف ولا أجود من بيعة، فكتب: انضحوها بماء وسدر وصلوا فيها. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، الصلاة فی الكنائس والبيعة، رقم الحديث: ٤٨٦١، ٤٢٣/١)".

(۳) تغليق التعليق، كتاب الصلاة، باب: الصلاة فی البيعة: ۲۳۳/۲ فتح الباری: ۶۸۸/۱ عمدة القاري: ۲۸٤/٤.

(۴) مرتخريجه تحت باب: هل تنبش قبور مشركی الجاهلية ويتخذ مكانها مساجد، رقم الحديث: ٤١٧.

**د حديث ترجمه** : د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دي چه حضرت ام سلمه رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته د يوې ګرجي ذکرا وکړو کومه چه هغې په حبشه کښې ليدلې وه. کومې ته چه به ماريه وئيلې کيدل. بيا هغوی (حضرت ام سلمه رضي الله عنها) رسول الله ﷺ ته د هغه تصويرانو ذکر اوکړو چه په هغه ګرجه کښې ئې ليدلي وو. نورسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه په هغه خلقو کښې چه به يو نيک بنده (يائې داسې اوفرمائيل چه) يو بنده به مړ شو نو دغه خلقو به د هغه په قبر باندې جمات جوړولو او په هغې کښې به ئې دغه تصويرونه جوړول. دا خلق د الله تعالى په نيز بدترين خلق دی.

**تراجم رجال**: د دې حديث شريف په سند کښې ټول پنځه راويان دي:

① **محمد** رحمه الله: دا ابو عبدالله محمدبن سلام بن الفرج البيکندی رحمه الله دې. په دې سند کښې د دې خبرې تصريح نشته دی چه دا راوی چه د ټولونه وړاندې دې "محمد" دا کوم يو دې؟ چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن سکين رحمه الله په نسبت سره دا نقل کړې دی چه دا محمدبن سلام دې.[1] د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: قول النبي صلى الله عليه وسلم: "أنا أعلمکم بالله"، وأن المعرفة فعل القلب لاندې تيرشوی دی.[2]

② **عبدة** رحمه الله: دا عبدة بن سليمان بن حاجب بن زراره کلابی کوفی رحمه الله دې. بعضې خلقو وئيلی دی چه د دوی نوم عبدالرحمن دې او عبده د دوی لقب دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الإيمان، باب: قول النبي صلى الله عليه وسلم: "أنا أعلمکم بالله"، وأن المعرفة فعل القلب لاندې تيرشوی دی.[3]

③ **هشام بن عروة** رحمه الله: دا هشام بن عروه بن زبيربن العوام قرشی اسدی مدنی رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی په دويم حديث او تفصيلی احوال کتاب الإيمان، باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوی دی.[4]

④ **ابيه** رحمه الله: دا عروه بن زبير بن عوام قرشی اسدی مدنی رحمه الله دې. د دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، دويم حديث لاندې او تفصيلی احوال کتاب الإيمان باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تير شوی دی.[5]

⑤ **حضرت عائشه** رضي الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابی بکر صديق رضي الله عنهما ده. د دوی احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی، دويم حديث لاندی تير شوی دی.[6]

---

[1]) فتح الباري: ۶۸۸/۱.
[2]) كشف الباري: ۹۳/۲.
[3]) كشف الباري: ۹٤/۲.
[4]) كشف الباري: ۲۹۱/۱، ٤۳۲/۲.
[5]) كشف الباري: ۱/۲۹۱، ٤۳۶/۲.
[6]) كشف الباري: ۱/۲۹۱.

**دَ حديث شرح:** دَمذكوره حديث مكمل تشريح وړاندې پنځه ابوابه مخكښې باب: هل تنبش قبور مشركي الجاهلية ويتخذ مكانها مساجد، رقم الحديث: ٤٢٨ تيره شوې ده.

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَمذكوره حديث شريف دَترجمة الباب سره مطابقت دَ حديث دَدې جملې: "بنوا على قبره مسجدا وصوروا فيه تلك الصور" په وجه دې ځكه چه ترجمة الباب دې "الصلاة في البيعة" اودا خبره تيره شوې ده چه په گرجه كښې دَ مونځ كراهت په هغه صورت كښې دې كله چه په هغې كښې تصويرونه وى.(١)

**حديث باب (دويم حديث):**

**دَ نسخو فرق:** دَ كشف البارى دَمتن دَ پاره چه كومه نسخه بنياد جوړه كړې شوې ده هغه دَ الدكتور المصطفى ديب البغا نسخه ده. په دې نسخه كښې دَدې حديث شريف نه مخكښې دَ"باب" عنوان نشته دې. خودَ صحيح بخارى په نورو نسخوكښې او زمونږ په هندى نسخوكښې هم په دې مقام باندې يعنى دَدې حديث نه وړاندې لفظ باب موجود دې. اگرچه دَدې باب هيڅ عنوان نه دې قائم كړې شوې ليكن دا باب بغيرَدَ ترجمې موجود دې.

دَدې باب فى الجمله دَ ماقبل باب سره تعلق دَ قائم مقام فصل دې. دَ دواړو ابوابو دَ اشتراك وجه دا ده چه دَ انبياء كرامو عليهم السلام قبرونه جماتونه جوړولو نه منع كړې شوې ده. لكه چه امام بخارى رحمه الله په دې باب سره دا بيانول غواړى چه "صلاة في البيعة" مطلقًا مذموم دى كه په هغې كښې تصوير وى اوكه نه وى.(٢)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه دويم غرض دادې چه دَ باب سابق نه نفى صلاة في معابد النصارى ثابت كړې وو او دې باب سره صلاة في معابد اليهود ثابتوى او هم دغه زما رائې ده. په باب سابق كښې دَ تصويرونو ذكر دې او په دې باب كښې دَ تصويرونو ذكرنشته دې. بل دا چه په مخكښني باب كښې دَ نصارىٰ دَ عبادت خانې ذكر وو په كومه كښې چه تصويرونه وى او دلته دَ يهوديانو دَ عبادت خانې ذكر دې په كوم كښې چه تصويرونه نه وى. لكه چه امام بخارى رحمه الله په دې باب سره دَ عموم طرف ته اشاره كړې ده. په دې معنى چه دَ يهودو او نصارىٰ دَ عبادت په ځايونو كښې كه تصويرونه وى اوكه نه وى په هرصورت په دې كښې مونځ مكروه دې. دَ باب سابق نه دَ امام مالك رحمه الله دَ مذهب تائيد كيږى اودَدې باب نه دَ جمهورو دمسلك تائيد كيږى.(٣)

---

(١) عمدة القارى: ٢٨٤/٤.

(٢) فتح البارى: ٦٨٩/١ عمدة القارى: ٢٨٥/٤-٢٨٤.

(٣) الأبواب والتراجم: ٢١٧/٢. سراج القارى: ٢٥/٢. علامه فخرالدين احمد صاحب رحمه الله فرمائى: زمونږ خيال دادې چه امام بخارى رحمه الله په سابقه باب كښې دا بيان كړې دې چه دَ يهوديانو او نصارىٰ په عبادت خانو كښې دَ مونځ كولو دَ كراهت وجه داده چه هلته مجسمې او تصويرونه لگيدلې وى. گنې دَ أصل په اعتبار سره هرځائى كښې مونځ جائز دې. "جعلت لى الأرض مسجدا" په دې وجه دَ أصل په اعتبار سره ........

[حديث باب: حديث نمبر ٤٢٥]

٤٢٥-٤٢٦- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ عَائِشَةَ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ [١] قَالَا لَمَّا نَزَلَ بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيصَةً لَهُ عَلَى وَجْهِهِ، فَإِذَا اغْتَمَّ بِهَا كَشَفَهَا عَنْ وَجْهِهِ، فَقَالَ وَهُوَ كَذَلِكَ «لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ.» يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوا.

**د حديث ترجمه**: حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه كله د نبى كريم ﷺ آخرى وخت راغلو نو حضورپاك به بار بار خپل څادر مبارك په خپل مخ مبارك باندې اچولو. بيا چه به ئې كله د دې د وجې ګرمى محسوسوله نو دا به ئې د خپل مخ مبارك نه اخوا كولو. حضورپاك هم د دې اضطراب په حالت كښې وو چه ارشاد ئې اوفرمائيلو: په يهودو او نصارىٰ دې د الله تعالىٰ لعنت وى هغوى د خپلو انبياء كرامو قبرونه جماتونه جوړ كړل (راوي وائي چه) حضورپاك د هغوى د دې عمل نه ويرول كول

**تراجم رجال**: د مذكوره حديث شريف په سند كښې ټول شپږ راويان دى:

........ خو مونځ صحيح كيدل ېكاردى. ليكن د تصويرونو په بنياد باندې په دغه عبادت خانو كښې د مونځ نه منع كړې شوې ده. اوس امام بخارى رحمه الله ترقى كولو سره خودل غواړى چه د منكراتو د موجودګۍ د وجې د مونځ منع والې صرف د يهوديانو او د نصارىٰ د عبادت ځايونو سره خاص نه دې بلكه كه د مسلمانانو په جمات كښې هم څه داسې صورت پيدا كړې شى مثلاً دا چه په جماتونو كښې قبرونه په ښكاره توګه اوساتلې شى نو چونكه په جمات كښې د قبر ساتل يو د لعنت قابل فعل دې په دې وجه كه چرته داسې صورت پيدا شى نو په دغه جماتونو كښې به مونځ كول هم د كراهت نه خالى نه وى. لكه چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دا بيان كړل چه په جماتونو كښې قبرونه ساتل هم داسې دى لكه د يهوديانو او نصارىٰ په عبادت خانو كښې چه تصويرونه وى ځكه چه د جمات باره كښې صفا ارشاد فرمائيلې شوې دى: ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا﴾ [سورت الجن: ١٨] او دا جماتونه د الله تعالىٰ د ذكر د پاره دى نو الله تعالىٰ سره بل څوك مه رابلئ. په دې وجه په جماتونو كښې د ځاخاص يا د عام قبر د باقى ساتلو جواز نشته دې. البته كه د قبرونونه څه راتاؤ كړې شى او هغه د جمات نه جدا كړې شى نو ګنجائش شته دې.

بهر حال امام بخارى رحمه الله باب بغير د ترجمې قائمولو سره واضحه كړه چه كه په جماتونو كښې قبرونه باقى اوساتلې شو نو په دې كښې هم مونځ مكروه دې. دغه شان دلته ترجمهٔ جديده داسې منعقد كيدې شى، باب: كراهية الصلاة في المساجد التي فيها قبور. (ايضاح البخاري: ٣/١٨٦-١٨٥).

[١] أخرجه البخاري أيضا في الجنائز، باب: ما يكره من اتخاذ المساجد على القبور، رقم الحديث: ١٣٣٠، وفي أحاديث الأنبياء، باب: ما ذكر عن بني إسرائيل، رقم الحديث: ٣٤٥٤-٣٤٥٣ وفي المغازي، باب: مرض النبي صلى الله عليه وسلم ووفاته، رقم الحديث: ٤٤٤٣، ٤٤٤١ وفي اللباس، باب: الأكسية والخمائص، رقم الحديث: ٥٨١٥، ٥٨١٦. ومسلم في صحيحه، في المساجد، باب: النهي عن بناء المساجد على القبور واتخاذ الصور فيها، رقم الحديث: ٥٣١. والنسائي في سننه، في المساجد، باب: النهي عن اتخاذ القبور مساجد، رقم الحديث: ٧٠٣. وفي جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: في الصلاة، القسم الأول: في الفرائض وأحكامها، الباب الأول: في وجوبها أداء وقضاء، الفصل السادس: في شرائط الصلاة، الفرع الرابع: في أمكنة الصلاة، النوع الثاني: الأمكنة المكروهة، رقم الحديث: ٣٦٧٠، ٥/٤٧٣.

① ابو اليمان رحمه الله: دا ابو اليمان حكم بن نافع بهرانی حمصی رحمه الله دې. دَ دوی احوال كشف الباری: كتاب بدء الوحی، الحديث السادس لاندې تير شوی دی. [1]

② شعيب رحمه الله: دا ابو بشر شعيب بن ابی حمزه القرشی الاموی رحمه الله دې. دَ دوی احوال كشف الباری: كتاب بدء الوحی، الحديث السادس لاندې تير شوی دی. [2]

③ زهری رحمه الله: دا محمدبن مسلم، بن شهاب الزهری رحمه الله دې. دَ دوی احوال كشف الباری، كتاب بدء الوحی دَ دريم حديث لاندې تير شوی دی. [3]

④ عبيدالله بن عبدالله بن عتبه رحمه الله: دا عبيد الله بن عبد الله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دې. دَ دوی احوال كشف البارى: كتاب بدء الوحی، الحديث الخامس او تفصيلی احوال كتاب العلم، باب: متى يصح سماع الصغير لاندې تير شوی دی. [4]

⑤ عائشه رضي الله عنها: دا ام المؤمنين زوجهٔ رسول، بنت ابی بكر صديق حضرت عائشه رضي الله عنها ده. دَ دوی تفصيلی احوال كشف الباری، كتاب بدء الوحیِ دَ دويم حديث لاندې تيرشوی دی. [5]

⑥ عبدالله بن عباس رضي الله عنهما: دا حضرت عبد الله بن عباس بن عبد المطلب رضي الله عنهما دې. دَدوی مختصراحوال كشف الباری، كتاب بدء الوحی څلورم حديث لاندې او تفصيلی حالات كتاب الإيمان، باب: كفران العشير، وكفر دون كفر لاندې تيرشوی دی. [6]

دَ حديث شرح:

**قوله**: أن عائشة وعبدالله بن عباس قالا: لما نَزَل برسول الله صلى الله عليه وسلم، طفِقَ يطرَح خَمِيصَةً له على وجهه:

يعنی حضرت عائشه رضي الله عنها او ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل كله چه دَ نبی كريم صلى الله عليه وسلم آخری وخت راغلو نو حضورپاك به بار بار خپل څادر په خپل مخ مبارك باندې اچولو.

**قوله**: لما نَزَل: دَ ابی ذر دَ روايت مطابق دادَ معروف صيغه ده او فاعل ئې محذوف دې كوم چه "الموت" دې. اودَ ابی ذر دَ نسخې نه علاوه نسخوكښې دا دَ مجهول صيغه ده. نائب فاعل به په دې صورت كښې هم الموت محذوف وی. [7]

---

[1]) كشف الباري: ٩٧٤/١.

[2]) كشف الباري: ٤٨٠/١.

[3]) كشف الباري: ١/٣٢٦.

[4]) كشف الباري: ٣٧٩/٣، ٤٦٦/١.

[5]) كشف الباري: ٢٩١/١.

[6]) كشف الباري: ٤٣٥/١، ٢٠٥/٢

[7]) التوضيح لابن الملقن: ٥٠٧/٥. فتح الباري: ٦٨٩/١، عمدة القاري: ٢٨٥/٤.

قوله: طفِقَ: دا دَ جعَل په معنی دې. (۱)

قوله: الخَمِیصَةُ: داسې څادر په کوم باندې چه نقش ونګار شوې وی. هغې ته "الخمیصة" وائی. (۲)

قوله: غتم بها کشفها عن وجهه، فقال: وهوکذلك: بیا چه به ئې دَدې دَ وجې ګرمی محسوسوله نودا به ئې دَ خپل مخ مبارك نه اخوا کولو. حضورپاك هم دَدې اضطراب په حالت کښې وو چه ارشاد ئې اوفرمائیلو.

قوله: اغتم: مراد دادې چه کله به ئې ګرمی او ویره محسوسوله. (۳)

قوله: وهوکذلك: مراد دادې چه دَ ویرې او اضطراب هم په هغه حالت کښې وو. لکه څنګه چه دَ ویرې په حالت کښې یو سړې کله دَ خپل ځان نه کمبل او څادر وغیره اخوا کوی اوکله ئې اغوندی. هم دغه کیفیت دَ رسول الله ﷺ وو.

احتمال دادې چه دَ نبی پاك علیه السلام دا کیفیت شروع کیدو په وخت حضرت ام سلمه رضی الله عنها او ام حبیبه رضی الله عنها دَ حبشې په زمکه باندې دَ لیدونکې ګرجې ذکرکړې وو او لکه چه نبی پاك علیه السلام ته معلومه شوې وه چه دَ هغوی دا مرض به مرض الموت ثابتیږی اودا هم ویره پیدا شوه لکه څنګه چه په تیره زمانه کښې دَ نورو انبیاؤ قبرونو سره شوی دې داسې دَ هغوی قبر سره هم اونه کړې شی. په دې وجه حضورپاك دَ یهودو او نصاریٰ دَدې قبیح فعل دَ وجې لعنت کولوسره دَدې فعل قباحت او شناعت طرف ته اشاره اوکړه. (۴)

قوله: لعنة الله علی الیهود والنصاری، اتخذوا قبور أنبیائهم مساجد: یعنی یهودیانو او نصاریٰ باندې دې دَ الله تعالیٰ لعنت وی، هغوی دَ خپلو انبیاؤ قبرونو جماتونه جوړکړل.

قوله: اتخذوا: دا جمله جملهٔ مستانفه ده چه دَ ماقبل جملې سبب نه جوړیږی. یعنې دَ لعنت دَ نازلیدلو سبب. لکه چه دلته مکالمه اوشوه چه په یهودو او نصاریٰ باندې دې دَ الله لعنت ولې نازل شی؟ نو حضورپاك جواب ورکړو چه هغوی دَ خپلو انبیاؤ قبرونه جماتونه جوړکړل. (۵)

قوله: "اتخاذ": نه مراد عام دې چه هغوی په شروع کښې قبرونه دَ سجدو ځایونه جوړکړل. یا دَ یهودو اتباع کولوسره ئې قبرونه دَ سجدو ځائې جوړکړی وی، دواړه مراد دی. چنانچه دَدې بدکار شروع یهودیانو کړې وه اونصاریٰ دَ هغوی تابعداری اوکړه. او په دې کښې هیڅ شك نشته چه نصاریٰ به داسې دَ ډیرو انبیاؤ تعظیم کولو دَ چا تعظیم چه به یهودیانو کولو. (۶)

قوله: یُحَذِّرُ ما صَنَعُوا: (راوی وائی چه) حضورپاك دَ هغوی دَ هغه عمل نه ویرول کول.

---

(۱) التوضیح لابن الملقن: ۵۰۷/۵. فتح الباري: ۶۸۹/۱. عمدة القاري: ۲۸۵/۴.

(۲) التوضیح لابن الملقن: ۵۰۷/۵. فتح الباري: ۶۸۹/۱. عمدة القاري: ۲۸۵/۴.

(۳) عمدة القاري: ۲۸۶/۴.

(۴) فتح الباري: ۶۸۹/۱. عمدة القاري: ۲۸۶/۴.

(۵) فتح الباري: ۶۸۹/۱. عمدة القاري: ۲۸۶/۴.

(۶) فتح الباري: ۶۸۹/۱.

**قوله: يُحَذِّرُمَا صَنَعُوا:** دا هـ دَماقبل كلام نه جدا يو مستقل كلام دي. كوم چه دَ حديث دَ راوی نه صادر شوي دي. او دا هم لکه دَ يوسوال جواب دي چه کله په هغه نازك وخت کښې چه مرض الموت وو حضورپاك دَ يهودو او دَ نصارىٰ دَ كار مذمت اوکړو او په هغوى ئې لعنت اوکړو نو په دې کښې څه حکمت وو؟ يا دَدې څه وجه وه؟ نو راوى دَحديث جواب ورکړو چه دَ نبى كريم ﷺ دَدې قول وجه دا ده چه حضورپاك خپل امت خبرداره کولو چه تاسو دَ هغوى په نقش قدم باندې تلو سره داسې مه کوئى.[1]

**يواشكال اودَ هغې جواب:** پـه دې مقام باندې يـو اشكال پيدا كيږى چه حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه پـه يهودو او نصارىٰ دې دَ الله تعالى لعنت وى چه هغوى دَ خپلو انبياؤ قبرونه دَ سجدې ځائې جوړکړو. حالانکه دا خبره خو دَ يهودو باره کښې صحيح کيدې شى چه دَ هغوى ډير زيات انبياء دنيا ته راغله ليکن دَ نصارىٰ خو دَ عيسىٰ عليه السلام نه پس بل څوك نبى نه دى راغ[lllegible] ترديې چه رسول الله ﷺ مبارك مبعوث شو. نو بيا هغوى هم دَ يهوديانو سره دَ هغوى په قبيح فعل کښې شريك ګرځول او دَهغوى باره کښې داوينا څنګه صحيح کيږى چه هغوى هم دَ خپلو انبياؤ قبرونه دَ سجدو ځايونه جوړ کړى وو؟

دَدې څو جوابونه ورکړې شوى دى مثلا:

① انبياء دَ جمع صيغه مجموعه دَ يهودو اونصارىٰ په مقابله کښې ده دَ كوم نتيجه چه به دا راوځى چه ټول انبياء به دَ يهودو مقابل راشى اودَ نصارىٰ مقابل به صرف هم يو نبى لهٰذا اشكال به ختم شى.[2]

② نبى پاك عليه السلام چه كوم دَ انبياؤ ذكر كړې دې دَدې نه مراد صرف انبياء نه دى بلكه انبياء اودَ هغوى كبار متبعين كوم چه صالحين وو دواړه مراد دى.[3] دَدې قول تائيد دَ صحيح مسلم دَهغه حديث نه هم کيږى په كوم کښې چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه هغوى دَ خپلو انبياؤ او خپلو صالحانو خلقو قبرونه دَ سجدو ځايونه جوړكړى وو. البته نبى پاك عليه السلام صرف دَ انبياؤ ذكر اوكړو.[4]

③ أصالةً دا كار خو به هم يهوديانو کولو اوهم هغوى دَ دغه مشركانه بد عمل اصلى موجد دى. ليكن نصارىٰ دَ هغوى دا كار بد اونه ګڼړلو اوهغوى هم دَ يهوديانو سره ملاؤ شو او دَ هغوى اتباع ئې كوله په دې وجه پـه لعنت کښې دَ يهودو سره نصارى هم شريك كړې

---

[1]) فتح الباري: ۱/۶۸۹، عمدة القاري: ۴/۲۸۶.

[2]) فتح الباري: ۱/۶۸۹.

[3]) فتح الباري: ۱/۶۸۹.

[4]) عن عبدالله بن الحارث النجراني، قال: حدثني جندب، قال: سمعت النبي صلى الله عليه وسلم قبل أن يموت بخمس، وهو يقول: إني أبرا إلى الله أن يكون لي منكم خليل، فإن الله تعالى قد اتخذني خليلا، كما اتخذ إبراهيم خليلا، ولو كنت متخذا من أمتي خليلا لاتخذت أبابكر خليلا، ألا وإن من كان قبلكم كانوا يتخذون قبور أنبيائهم وصالحيهم مساجد، ألا فلا تتخذوا القبور مساجد، إني أنهاكم عن ذلك. (صحيح مسلم، كتاب المساجد، باب: النهي عن بناء المساجد على القبور واتخاذ الصور فيها والنهي عن اتخاذ القبور مساجد، رقم الحديث: ۵۳۲).

شو (١)

④ داخبره هم پوره نه ده منلې شوې چه دَ نبی کریم ﷺ او حضرت عیسی علیه السلام په مینځ کښې بل څوك نبی نه دې راغلې لکه چه سورت یاسین کښې دی: ﴿ وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ۝ إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ ۝ ﴾ [یس: ١٤ - ١٣] اودَ هغوی په وړاندې دَ اهل قریه مثال بیان کړنې چه کله هلته رسولان اورسیدو، کله چه مونږ دَ هغوی طرف ته دوه اولیږل نوهغوی دوی دروغ اوګڼړل بیا مونږ دریم لیږلو سره هغه ته تقویت ورکړو.

په دې آیت کښې دَ رسولانونه مراد دَ اهل انطاکیه دَ هدایت او لارخودنې دَپاره دَ حضرت عیسی علیه السلام دَ طرف نه لیږلې شوی قاصدان مراد اخستې شوی دی. دَ کومو دَنومونه چه دَ حضرت کعب رضي الله عنه طرف ته دَ روایت منسوب کیدو سره بعضې مفسرینو صادق، مصدوق او شلوم یا شمعون نیکلی دی. په دې دَ وجه په دې اعتبار سره په نصاری کښې هم دَ انبیاؤ وجود تسلیم کیدې شې. په دې صورت کښې دَلعنت مصداق دَ یهودو سره سره نیغ په نیغه نصاری هم جوړیږی. (٢)لیکن په دې تقریر باندې اشکال هم پیدا کیږی چه دا خود الله تعالی رسولان نه وو بلکه دَ حضرت عیسی علیه السلام رسولان وو یعنی دَ هغوی دَ طرف نه دَ دعوت پیغام ورکولو سره لیږلې شوی وو. (٣)

**ایا ښځه نبی کیدې شي؟:** دې نه علاوه حافظ ابن حجر رحمه الله حضرت مریم علیها السلام لره هم په دې مقام باندې جواب ورکولو سره نبیه شمیر کړې ده(٤)، خودَ جمهورو مسلك په دې باره کښې هم دا دې چه هغه نبیه نه وه. بلکه ولیه وه، ځکه چه نبوت دَ سړو سره مخصوص دې په ښځو کښې دَ نبوت سلسله نشته دې.(٥)

**دَ حدیث دَ شریف ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث شریف دَ ترجمة الباب سره مطابقت هم واضح دې دَ هیڅ قسم اشتباه نشته دې. هغه داسې چه کله یهود او نصاری دَ خپلو انبیاء کرامو قبرونه جماتونه جوړکړل نوهغوی به هلته عبادت کولو، مونځ به ئې کولو، اودَ دغه جماتونو نومونه هغوی ګرجې کیخودلې کوم ته چه "البِيَع" او "الكنائس" وائی. او بل طرف ته

---

(١) فتح الباري: ٦٨٩/١.

(٢) ﴿إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ﴾ ،قال وهب: اسمهما يوحنا وبولس. ﴿فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا﴾ يعنى فقوينا. ﴿بِثَالِثٍ﴾ ، برسول ثالث وهو شمعون، وقرأ أبوبكر عن عاصم: ﴿فَعَزَزْنَا﴾ بالتخفيف وهو بمعنى الأول كقولك: وشددنا، وشدّدنا، بالتخفيف والتثقيل، وقيل:أى: فغلبنا، من قولهم: من عزبز. وقال كعب الرسولان: صادق ومصدوق، والثالث شلوم، وإنما أضاف الله الإرسال إليه لأن عيسى عليه السلام إنما بعثهم بأمره تعالى، ﴿فَقَالُوا﴾، جميعا لأهل أنطاكية، ﴿إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ﴾. (تفسير البغوى، سورة يس، الآية: ١٤، ١٢/٧). (الكشف والبيان المعروف بتفسير الثعلبى، سورة يس، الآية: ١٤، ١٢٥/٨). (البحرالمحيط، سورة يس، الآية: ١٤، ٥٣/٩) .

(٣) عمدة القاري: ٢٨٧/٤.

(٤) فتح الباري: ٦٨٩/١.

(٥) عمدة القاري: ٢٨٧/٤.

باب هم "الصلاة في البيع" قائم کړې شوې دې. (۱)

حديث باب (دريم حديث) [حديث نمبر ۴۲۶]

۴۲۷- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (۲) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ».

**د حديث ترجمه:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه الله تعالى دې يهوديان هلاك کړي هغوى د انبياء کرامو قبرونه جماتونه جوړ کړل.

**تراجم رجال:** د مذکوره حديث شريف سند کښې ټول پنځه راويان دي:

① **عبدالله بن مسلمه رحمه الله:** دا عبدالله بن مسلمه بن قعنب حارثي بصري رحمه الله دې. د دوى احوال کشف البارى، کتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تير شوى دى. (۳)

② **مالك رحمه الله:** دا امام مالك بن انس رحمه الله دې. د دوى تذکره کشف البارى، کتاب بدء الوحى د دويم حديث او تفصيلي احوال کتاب الإيمان، باب: من الدين الفرار من الفتن لاندې تيرشوى دې. (۴)

③ **ابن شهاب رحمه الله:** دا محمدبن مسلم، بن عبيدالله، بن عبدالله بن شهاب الزهري رحمه الله دې. د دوى احوال کشف البارى، کتاب بدء الوحى، دريم حديث لاندې تير شوى دى. (۵)

④ **سعيد بن المسيب رحمه الله:** دا مشهور تابعي سعيد بن المسيب بن حزن بن ابى وهب قرشى مخزومى رحمه الله دې. د دوى احوال کشف البارى، کتاب الإيمان، باب: من قال إن الإيمان هو العمل لاندې تير شوى دى. (۶)

⑤ **ابوهريرة رضي الله عنه:** دا مشهور صحابئ رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. د دوى احوال کشف البارى، کتاب الإيمان، باب: امور الإيمان لاندې تير شوى دى. (۷)

---

(۱) عمدة القارى: ۲۸۵/۴.

(۲) أخرجه أبوداؤد فى سننه، فى الجنائز، باب: فى البناء على القبر، رقم الحديث: ۳۲۲۷. ومسلم فى صحيحه، فى المساجد، باب: النهى عن بناء المساجد على القبور، رقم الحديث: ۵۳۰. والنسائى فى سننه، فى الجنائز، باب: اتخاذ القبور مساجد، رقم الحديث: ۲۰۴۷. وفى جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة، القسم الأول: فى الفرائض وأحكامها، الباب الأول: فى وجوبها أداء وقضاء، الفصل السادس: فى شرائط الصلاة، الفرع الرابع: فى أمكنة الصلاة، النوع الثانى: الأمكنة المكروهة، رقم الحديث: ۳۶۷۰، ۴۷۲/۵.

(۳) كشف البارى: ۸۰/۲.

(۴) كشف البارى: ۲۹۰/۱،۸۰/۲.

(۵) كشف البارى: ۳۲۶/۱.

(۶) كشف البارى: ۸۰/۲.

(۷) كشف البارى: ۱۵۹/۲.

دَ حديث شرح:

**قوله: قاتل الله:** په دې جمله کښې قاتل دَ باب مفاعله نه دَ فعل ماضی صیغه ده. لیکن په معنی دَ ثلاثی مجرد دې. یعنی دَ "قَتَلَ" په معنی دې او داسې کیږی. او معنی دا ده چه الله تعالی دې په هغوی باندې لعنت اوکړی، هغوې دې هلاك کړی. دَ قتال نه مراد په دې مقام کښې لعنت دې یعنی دَ رحمت نه لرې کیدل.(١) (باقی تشریح خو وړاندې تیره شوې ده)

## ٢٣-بَابٌ: قَوْلِ النَّبِيِّ ﷺ (جُعِلَتْ لِيَ الأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا)

دا باب دې دَ نبی اکرم ﷺ دَ قول: زما دَ پاره ټوله زمکه جمات او پاکونکې جوړه کړې شوې، باره کښې دې.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** په مخکینو ابوابو کښې چه په کومو ځایونو کښې دَ مونځ دَ ادا کولو دَ کراهت بیان اوشو دَ هغې دَ جواز دَ پاره په توکه دَ دلیل دا باب قائم کړې شوې دې. چه کله حضور پاك "جعلت لي الأرض مسجدا وطهورا" فرمائیلی دی نو دَدې عموم لاندې ټول ځایونه راغلی دی چه په هر ځائی کښې مونځ جائز دې البته دَ بعضې عوارضو دَ وجې کوم چه وړاندې بیان کړی شوی، کراهت راځی.

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه په تیر شوو ابوابو کښې چه کومه دَ کراهت خبره تیره شوې ده هغه دَ تحریم دَپاره نه وه بلکه په خلاف اولی باندې محمول ده ځکه چه دې امت ته په مخ دَ زمکه په هره یوه حصه باندې دَ مونځ کولو اجازت ورکړې شوې دې. او دَ دې باب مقصد دادې چه که چرې یو سړې په مذکوره ځایونو کښې مونځ کوی نو دَ هغه مونځ به مکروه وی لیکن مونځ به ئې کیږی. دلیل دَ "جعلت لي الأرض مسجدا وطهورا" عموم دې. (٢)

حدیث باب [حدیث نمبر ٤٢٧]

-٤٢٨- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ قَالَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ قَالَ حَدَّثَنَا سَيَّارٌ -هُوَ أَبُو الْحَكَمِ- قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ الْفَقِيرُ قَالَ حَدَّثَنَا جَابِرُ (٣) بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أُعْطِيتُ خَمْسًا لَمْ يُعْطَهُنَّ أَحَدٌ مِنَ الأَنْبِيَاءِ قَبْلِي ، نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيرَةَ شَهْرٍ، وَجُعِلَتْ لِيَ الأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا، وَأَيُّمَا رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَدْرَكَتْهُ الصَّلاَةُ فَلْيُصَلِّ ، وَأُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ، وَكَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلَى قَوْمِهِ خَاصَّةً، وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ كَافَّةً، وَأُعْطِيتُ الشَّفَاعَةَ ».

**دَ حدیث ترجمه:** حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه بیان کړې دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې دې چه ماته پنځه څیزونه داسې راکړې شوی دی چه مانه مخکښې یو نبی ته هم نه دی ورکړې شوی. ① دَ یوې میاشتې په مسافت باندې زما رعب اچولو سره زما امداد اوکړې

---

(١) عمدة القاري: ٢٨٦/٤.

(٢) الأبواب والتراجم: ٢١٧/٢ سراج القاري: ٢٧/٣.

(٣) مرتخریجه تحت کتاب التیمم، الباب الأول، رقم الحدیث: ٣٢٨ رقم الصفحة: ٨٣.

شو. ② زما دَ پاره ټوله زمکه جمات او پاکونکې جوړه کړې شوه. زما دَ امت چه څوك دَ مونځ وخت رالاندې کړي نو هغه له پکاردي چه هم هلته مونځ اوکړي. ③ او زما دَپاره دَ غنيمت مال حلال کړې شو. ④ (سابقه) انبياء به په خاص توګه باندې دَ خپل قوم طرف ته راليږلې شو او زه دَ ټولو خلقو طرف ته مبعوث کړې شوې يم ⑤ او ماته دَ شفاعت حق راکړې شوې دې.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حديث شريف په سند کښې ټول پنځه راويان دي.

① **محمدبن سنان** رحمه الله: دا محمدبن سنان عوقلي باهلي بصري رحمه الله دې. دَدوي احوال کشف الباري، کتاب العلم الحديث الأول لاندې تير شوي دي. [1]

② **هشيم** رحمه الله: دا ابومعاويه هشيم بن بشير بن قاسم واسطي رحمه الله دې. دَدوي احوال کشف الباري، کتاب التيمم، الباب الأول، رقم الحديث: ۳۲۸ لاندې تير شوي دي. [2]

③ **سيار** رحمه الله: دا ابوالحکم سيار بن ابي سيار واسطي رحمه الله دې. دَدوي احوال کشف الباري، کتاب التيمم، الباب الأول، رقم الحديث: ۳۲۸ لاندې تير شوي دي. [3]

④ **يزيد الفقير** رحمه الله: دا ابوعثمان يزيد بن صهيب کوفي الفقير رحمه الله دې. دَدوي احوال کشف الباري، کتاب التيمم، الباب الأول، رقم الحديث: ۳۲۸ لاندې تير شوي دي. [4]

⑤ **جابربن عبدالله** رضي الله عنه: دا مشهور صحابئ رسول حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه دې. دَدوي احوال کشف الباري، کتاب الوضوء، باب: من لم يرالوضوء إلا من المخرجين، من القبل والدبر لاندې تير شوي دي. [5]

**دَ حديث شرح:** دَ مذکوره حديث شريف مکمل اوتفصيلي شرح، دَ خصائص نبي ﷺ په تعداد کښې اختلاف اودَ هغې په مينځ کښې تطبيق کتاب التيمم کښې تيرشوې دې. هغه خاص دَ کتلو سره تعلق لري هغه دې اوکتلې شي. [6]

**دَ حديث مبارک دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف دَترجمة الباب سره مطابقت هم بالکل واضح دې چه په دواړو کښې "جعلت لي الأرض مسجدا وطهورا" دَ اشتراك وجه ده.

......

[1] کشف الباري: ۳/ ٥٤-٥٣.
[2] کشف الباري، کتاب التيمم، رقم الصفحة: ۸۳.
[3] کشف الباري، کتاب التيمم، رقم الصفحة: ۸۸.
[4] کشف الباري، کتاب التيمم، رقم الصفحة: ۸۹.
[5] کشف الباري، کتاب الوضوء، باب: من لم يرالوضوء إلا من المخرجين، من القبل والدبر
[6] کشف الباري، کتاب التيمم، الباب الأول، رقم الحديث: ۳۲۸، رقم الصفحة: ۸۸ — ۱۲۷.

## ۲۴ - بَابٌ: نَوْمِ الْمَرْأَةِ فِي الْمَسْجِدِ

دا باب دي دَ ښځې په جمات کښې دَ اوده کیدو باره کښې

**دَ ترجمة الباب مقصد:** شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا صاحب کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه امام بخاري رحمه الله دوه ابوابه ترلی دی. یو "نوم المرأة فی المسجد" او دویم "نوم الرجال فی المسجد".
په ظاهره دَ امام بخاری رحمه الله غرض دَ دواړو بابونو نه جواز بیانول دی ځکه چه کوم روایات ذکرکړې شوی دی هغه په جواز باندې دلالت کوی. مګر "نوم المرأة" ئې په "نوم الرجال" باندې دَ اهتمام دَ وجې مقدم کړو ځکه چه ښځه محل فتنه ده. په دې وجه ممکن دی چه دَ عدم جواز ویره وی نو امام بخاری رحمه الله دا مقدم کولو سره جواز واضح کړو او هم په دغه محل فتنه کښې دَ اخته کیدو دَ وجې دَ مالکیؤ مذهب دادې چه مطلقاً دَ ښځې په جمات کښې اوده کیدل جائز نه دی. وإن کانت عجوزة. اودَ ائمه ثلاثو په نیز جائز دی مګر خلاف اولی دی ځکه چه دَ فتنې محل دې اوپه نوم رجال کښې دَ امام مالک رحمه الله په نیز تفصیل دې فرمائی: که چرته دَ اوده کیدو ځائی دَ نائم نه وی نو په جمات کښې اوده کیدې شی اوکه بل ځائی وی نو اوده کیدل جائز نه دی. اودَ ائمه ثلاثو په نیز جائز دی مګر اولی دادی چه که چرته بل ځائی وی نو بهر دې اوده شی.[1]
په یوه خبره باندې په ښه شان سره پوهیدل پکاردی چه دَ امام بخاری رحمه الله چه کوم مقصد دې دَ هغې نه جواز خو ثابتیږی لیکن ددې دا مطلب هیڅ کله نه دې چه دَ امام صاحب رحمه الله دَ طرف نه دا ترغیب ورکولې شی چه دا کار کوئی، بلکه مطلب دادې چه دا امور دَ رخصت په درجه کښې دی که چرې داسې حالت جوړشی نودَ فتنې نه دَ امن په صورت کښې دَ داسې کولو ګنجائش شته.

حدیث باب [حدیث نمبر ۴۲۸]

٤٢٩- حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ[2] أَنَّ وَلِيدَةً كَانَتْ سَوْدَاءَ لِحَيٍّ مِنَ الْعَرَبِ، فَأَعْتَقُوهَا، فَكَانَتْ مَعَهُمْ قَالَتْ فَخَرَجَتْ صَبِيَّةٌ لَهُمْ عَلَيْهَا وِشَاحٌ أَحْمَرُ مِنْ سُيُورٍ قَالَتْ فَوَضَعَتْهُ أَوْ وَقَعَ مِنْهَا، فَمَرَّتْ بِهِ حُدَيَّاةٌ وَهُوَ مُلْقًى، فَحَسِبَتْهُ لَحْمًا فَخَطِفَتْهُ قَالَتْ فَالْتَمَسُوهُ فَلَمْ يَجِدُوهُ قَالَتْ فَاتَّهَمُونِي بِهِ قَالَتْ فَطَفِقُوا يُفَتِّشُونَ حَتَّى فَتَّشُوا قُبُلَهَا قَالَتْ

---

[1] تقریر بخاری شریف: ۱۴۳/۲. فرمائی په اعتباردَقیاس دَ ښځې په جمات کښې اوده کیدل ناجائز کیدل پکار وو ځکه چه په دې سره یو خوبې پردګی کیږی بل دا هم ممکن دی چه حیض وغیره راشی په کوم سره چه دَ جمات دَ ناپاکه کیدلو اندیښنه ده. دریم دا چه دَ فتنې سبب دې نودَ امام بخاری رحمه الله مقصد ددې فتنو نه دَ امن په صورت کښې جواز ثابتول دی چه نفس نوم مرأة فی المسجد کښې هیڅ حرج نشته دې. (الأبواب والتراجم: ۲۱۷/۲، سراج القاری: ۲۸/۲).

[2] أخرجه البخاری أیضا فی صحیحه، فی فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم، باب: أیام الجاهلیة، رقم الحدیث: ۳۷۳۵. وفی جامع الأصول، کتاب اللواحق، الفصل الرابع، فی أحادیث متفرقة من کل نوع لا یضمها معنی، ولا یحصرها فن، وهی عشرة أنواع، نوع عاشر: متفرق، رقم الحدیث: ۹۴۷۶، ۷۷۶/۱۱.

وَاللهِ إِنِّي لَقَائِمَةٌ مَعَهُمْ، إِذْ مَرَّتِ الْحُدَيَّاةُ فَأَلْقَتْهُ قَالَتْ فَوَقَعَ بَيْنَهُمْ قَالَتْ فَقُلْتُ هَذَا الَّذِي اتَّهَمْتُمُونِي بِهِ -زَعَمْتُمْ- وَأَنَا مِنْهُ بَرِيئَةٌ، وَهُوَ ذَا هُوَ قَالَتْ فَجَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَسْلَمَتْ. قَالَتْ عَائِشَةُ فَكَانَ لَهَا خِبَاءٌ فِي الْمَسْجِدِ أَوْ حِفْشٌ قَالَتْ فَكَانَتْ تَأْتِينِي فَتَحَدَّثُ عِنْدِي قَالَتْ فَلَا تَجْلِسُ عِنْدِي مَجْلِسًا إِلَّا قَالَتْ وَيَوْمَ الْوِشَاحِ مِنْ أَعَاجِيبِ رَبِّنَا أَلَا إِنَّهُ مِنْ بَلْدَةِ الْكُفْرِ أَنْجَانِي قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ لَهَا مَا شَأْنُكِ لَا تَقْعُدِينَ مَعِي مَقْعَدًا إِلَّا قُلْتِ هَذَا قَالَتْ فَحَدَّثَتْنِي بِهَذَا الْحَدِيثِ.

**د حديث ترجمه:** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د عربو د یوې قبیلې سره یوه حبشی وینځه وه. هغوی دا آزاده کړې وه مګر دا به هم د هغوی سره اوسیدله. هغه وائی چه یو ځل د هغوی جینئ بهر اووتله؛ د هغې په بدن باندې د تسمو سور هاروو. دغه جینئی هغه پخپله اوویستلو یا هغه د دې نه پریوتلو. هلته یو ټپوس تیریدو او دغه غورزیدلی هار ئی د غوښې ټکړه اوګڼله په هغې راپریوتلو او یویړه. هغه خلقو هغه اولټولو مګر بیائه موندلې شو. (دغه) وینځې اووئیل چه د قبیلې والو په ما باندې (د غلا) الزام اولګولو. بیائی زما تلاشی واخستله تردې چه زما د شرمګاه ئی هم تلاشی واخستله. زه هم هغه خلقو سره ووم چه هم هغه ټپوس هلته تیر شو نو هغه هغه هار هلته اوغورزولو. (دغه) وینځې اووئیل هغه هار زمونږ مخې ته راپریوتلو. (هغه) وینځې اووئیل چه ما هغه خلقو ته اووئیل چه دا هغه هار دې د کوم چه تاسو په ما باندې د غلام الزام لګولې وو حالانکه زه د دې نه بری ووم. هغه هار دادې (ستاسو مخې ته) پروت دې.

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه (د دې واقعې نه پس) هغه وینځه رسول الله صلی الله علیه وسلم له راغله او اسلام ئی قبول کړو نو هم په جمات کښې د هغې د پاره یوه خیمه یا جونګړه جوړه کړې شوه. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه هغه وینځه به ما له راتلله او ما سره به ئی خبرې کولې. خو چه هغه به کله هم راتلله نو په خبرو کښې به ئی دا شعر ضرور وئیلو (د کوم ترجمه چه دا ده) هار (د ورکیدو) ورځ زما د رب د عجائباتو نه ده، واورئی هم د دې (هار دې واقعې) ماله د کفرستان نه خلاصې راکړې دې. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما هغې ته اووئیل چه آخر څه خبره ده چه ته کله هم ماسره کینې نو دا خبره خامخا کوې؟ حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل چه بیا هغې ماته دا واقعه واوروله.

**تراجم رجال:** د مذکوره حدیث شریف په سند کښې ټول پنځه راویان دی.

**① عبیدالله بن اسماعیل رحمه الله:** دا عبید بن اسماعیل قرشی عبادی کوفی رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب الحیض باب: نقض المرأة شعرها عند غسل المحیض لاندې تیر شوی دی.[1]

**② ابواسامه رحمه الله:** دا ابواسامه حماد بن اسامه رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباری، کتاب العلم ، باب: فضل من علم وعلّم، لاندې تیر شوی دی.[2]

---

[1] کشف الباری، کتاب الحیض، ص: ۳۹۸.

[2] کشف الباری: ۴۱۴/۳.

④ هشام بن عروة رحمه الله: دا هشام بن عروه بن زبير بن عوام قرشي اسدي مدني رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال كشف الباري، كتاب بدء الوحي، دَ دويم حديث او تفصيلي احوال كتاب الإيمان، باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوی دی.[1]

④ ابيه رحمه الله: دا عروه بن زبير بن عوام قرشي اسدي مدني رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال كشف الباري، كتاب بدء الوحي، دويم حديث لاندې او تفصيلي احوال كتاب الإيمان باب: أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تير شوی دی.[2]

⑤ حضرت عائشه رضي الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابی بكر صديق رضي الله عنهما ده. دَ دوی احوال كشف الباري، كتاب بدء الوحي، دويم حديث لاندې تير شوی دی.[3]

دَ حديث شرح:

**قوله:** عن عائشة: أن وليدة كانت سوداء لحي من العرب: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه دَ عربو يو ې قبيلې سره حبشي وينځه وه.

**قوله:** وليدة: معنی وينځه ده. دَ وليده اصل استعمال دَ ماشومې دَپاره كيدلو، بيا دَدې استعمال دَ وينځې دَپاره شروع شو. عام خبره ده چه كه وينځه دَ كم عمر وی اوكه دَ ډير عمر وی، دَدې جمع الولائد ده.[4]

**قوله:** كانت سوداء: مراد دادې چه هغه غټه بنځه وه چه غنم رنګې وه. په كتابونو كښې دَ دغه وينځې دَ نوم، دَ هغې دَ قبيلې نوم اونه دَ هغه ماشومې نوم دَ چا هار چه ورك شوې وو هيڅ ذكر نشته.[5]

**قوله:** فكانت معهم، قالت: فخرجت صبية لهم، عليها وشاح أحمر من سيور: هغوی هغه آزاده كړې وه مګر هغه هم دَ هغوی سره اوسيدله. هغه وائی چه يو ځل دا ماشومه هغوی نه بهر اووتله دَ هغې په بدن باندې دَ تسمو سور هار وو.

**قوله:** قالت: فخرجت: په دې عبارت كښې دَ قالت فاعل حضرت عائشه رضي الله عنها ده او دَ فخرجت فاعل هغه "الوليدة" ده.[6]

[1] كشف الباري: ٢٩١/١، ٤٣٢/٢.
[2] كشف الباري: ٢٩١، ١/، ٤٣٦/٢.
[3] كشف الباري: ٢٩١/١.
[4] النهايه في غريب الحديث والأثر: ٢٣٥/٥، المكتبة الإسلامية، رياض. مختار الصحاح، و ل د: ٢٤٥/١. تاج العروس، و ل د: ٣٣٣/٩.
[5] فتح الباري: ٦٨١/١ عمدة القاري: ٢٨٨/٤.
[6] فتح الباري: ٦٩١/١.

**قوله:** صبية لهم: په دې جمله كښې هم ضمير دَ الحى طرف ته راګرځى. مراد دادې چه هغه جينئ هم دَدې قبيلې والو نه دَ يو كس وه. [1]

**قوله:** وِشاحٌ: (په كسرې دَ واؤ او په ضمې دَ واؤ) دَ څرمنې هغه پټئ يا هغه بلټ كوم چه ښځه دَ تشى نه تيرولو سره په اوګه باندې اچوى او په هغې باندې غمى او ملغلرې ټكوالې شوې وى. دا لفظ دَ واؤ په همزې سره بدلول إشاح لوستل هم جائز دى. [2]

**قوله:** سُيُور: هغه تسمه يا تار په كوم باندې چه څرمن ګنډلې شى. هغې ته سَيْر وائى دَدې جمع سُيُور استعماليږى. [3]

علامه عينى رحمه الله يو اشكال اودَ هغې جواب ذكر كړې دې چه دَدې لفظ "سيور" نه معلوميږى چه هغه پټئ دَ څرمنې وه په كوم چه ملغلرې ټكوالې شوې وې. نو بيا هغه ټپوس په دې باندې دَ غوښې ګمان څنګه اوكړو چه هغه ئې اوچت كړو او ويويړو؟ نو دَدې جواب دادې چه صفا خبره ده چه كله ئې په سره څرمن باندې پړقيدونكى ملغلرې اوليدلې نو ګمان ئې اوكړو چه چاقه تازه غوښه ده لهذا اوچت ئې كړو. [4]

**قوله:** قالت: فوضعته، أووَقَع منها، فمرت به حُدَيَّاةٌ وهو ملقى، فحسِبَته لحما فخطِفَته: دغې جينئ دا پخپله كوز كړو يا هغه دَدې نه پريوتلو، هلته يو ټپوس تيريدو، اودغه پريوتلې هار ئې دَ غوښې ټكړه ګنړلو سره په هغې حمله اوكړه او ويويړو.

**قوله:** أووَقَع، دادَ راوى دَ شك بيان دې. په دواړو كارونو كښې يو واقع شوې دې. [5]

**قوله:** حُدَيَّاةٌ: دا دَحُدَأةٌ تصغير دې كوم چه دَ عِنَبَةٌ په وزن باندې دې چه په اصل كښې "حُدَيْئَةٌ" وو دَ ياء ساكنه نه پس همزه ده. په دې وجه ئې همزه په ياء سره بدله كړه دَ ياء په ياء كښې ادغام اوكړې شو. بيا دَ ياء دَ فتحې اشباع كولو سره الف جوړ كړې شو نو حُدَيَّاةٌ شو. دا معروف مرغئ ده كوم چه دَ ټپوس په نوم سره پيژندلې شى. [6]

---

[1]) عمدة القارى: ٢٨٨/٤.

[2]) المحكم المحيط الأعظم لابن سيده، و ش ح: ٤٦٩/٣. النهاية فى غريب الحديث والأثر، و ش ح: ١٨٧/٥. المصباح المنير فى غريب الشرح الكبير، وشح: ٦٦٠/٢. شرح الكرمانى: ٩٨/٤. داسې هار كوم چه ښځې دَ ګردنئ په شكل كښې دَ اوګې او تشى په مينځ كښې ترى. (سراج القارى: ٣٠/٣).

[3]) مختار الصحاح، س ى ر: ١٥٩/١. المصابيح المنير فى غريب الشرح الكبير، س ى ر: ٢٩٩/١. تاج العروس، سير: ١١٧/١٢. شرح الكرمانى: ٩٨/٤

[4]) عمدةُ القارى: ٢٨٩/٤.

[5]) فتح البارى: ٦٩١/١. عمدة القارى: ٢٨٩/٤.

[6]) المخصص لابن سيده، الأدوات التى تعتمل فى القطع: ١٦٣/٣. النهاية فى غريب الحديث والأثر، حدأ: ٣٤٩/١. فتح البارى: ٦٩١/١. عمدة القارى: ٢٨٩/٤.

**قوله:** وهوملقًى: دا جمله حاليه ده يعنى هغه هار پرېوتلې پروت وو.(١)

**قوله:** فخطِفَته: دا صيغه دَ سمع يسمع نه هم مستعمل ده او دَ ضرب يضرب نه هم، ليكن مشهور دَ سمع يسمع نه مستعمل ده.(٢)

**قوله:** قالت: فالتمسوه فلم يجدوه، قالت: فاتّهموني به، قالت: فطفِقوا يفتّشون، حتى فتّشوا قُبُلها: هغه خلقو دغه اولټولو خو بيائى نه موندلو (دې) وينځې اووئيل چه دَ قبيلې والو په ما باندې (دَغلا) الزام اولګولو (دغه) وينځې اووئيل چه بيائى زما تلاشى واخستله تردې چه زما دَ شرمګاه ئې هم تلاشى واخستله.

**قوله:** فالتمسوه: معنى داده چه دَ قبيلې والو دغه هار اولټولو اودَ هغې باره کښې ئې دَ يو بل نه تپوس نه اوکړل.(٣)

**قوله:** يفتّشون: بعضې رواياتو کښې دا صيغه دَ يائې متکلم سره ده. يعنى يُفتّشونِ، دَ کوم چه اصل هم يُفتّشونَنى دې. يو نون تخفيفًا حذف کړې شوې دې.(٤)

**قوله:** حتى فتّشوا قُبُلها: ظاهره دا ده چه دا جمله دَ حضرت عائشه صديقه ﷺ ده کُنى که دغه کلام هم دَدې وينځې وي نو "قُبُلي" به وي نه چه "قُبُلها"، اوکه چرې داهم دَ وينځې کلام وى لکه چه بعضو ليکلى هم دى نو بيابه وئيلى شى چه دلته وينځې خبرې کولو کښې دَ خطاب نه دَ غيوبت طرف ته التفات کړې دې.(٥)

**قوله:** قالت: والله إني لقائمة معهم، إذ مرت الحُدَيّاة فألقته، قالت: فوقع بينهم، قالت: قلت: هذا الذي اتّهمتموني به، زعمتم وأنا منه بريئة، وهوذا هو،

زه هم هغه خلقو سره ووم چه هغه تپوس هلته تېرېدو نوهغه هغه هار هلته راغوزار کړو، (دې) وينځې اووئيل چه هغه هار زمونږ مخې ته راپرېوتلو، (دې) وينځې اووئيل چه ما هغه خلقو ته اووئيل چه دا دې هغه هار دَ کوم دَ غلا چه تاسو په ما باندې الزام لګولو حالانکه زه دَهغې نه برى ووم. هغه هار دا دې (ستاسو په وړاندې) پروت دې.

**قوله:** زعمتم: دَدې فعل مفعول محذوف دې. يعنى "زعمتم أنّي أخذته".(٦)

**قوله:** وأنا منه بريئة: دا جمله هم حاليه ده. دَ "منه" دَ "ه" ضمير مرجع "الزعم" جوړيږى په کوم چه "زعمتم" دلالت کوى. يا دَدې ضمير مرجع "وشاح" جوړيږى يعنى زه دَدې هار دَ اخستلو نه يا دَ

١) عمدة القاري: ٢٨٩/٤.
٢) التوضيح لابن الملقن: ٥١١/٥ عمدة القاري: ٢٨٩/٤.
٣) عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
٤) شرح الكرماني: ٩٩/٤، عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
٥) شرح الكرماني: ٩٩/٤. فتح الباري: ٦٩١/١ عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
٦) شرح الكرماني: ٤/٩٩ عمدة القاري: ٤/٢٩٠.

پټولو نه بری یم. (۱)

**قوله:** وهوذاهو: په دې جمله کښې چه کوم دویم "هو" دې هغه به دَ "ذا" خبر شی او "ذا" مبتداء به دَ خپل خبر سره دَ اول "هو" دَپاره خبر شی. یا به "هو" خبر ثانی شی دَ ړومبی هودَ پاره. دَدې دَپاره نور هم احتمالات ممکن دی. دَ ابونعیم په روایت کښې دا جمله "هاهوذا" ده. اودَ ابن حزیمه په روایت کښې دا جمله "وهوذا کما ترون" ده. (۲)

**قوله:** قالت: فجاءت إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فأسلمت، قالت عائشة: فكان لها خباء في المسجد أوحفش،

حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل چه (دَدې واقعې نه پس) هغه وینځه حضورپاك له راغله او اسلام ئې قبول کړو. نو هم په جمات کښې دَ هغې دَ پاره یوه خیمه یا وړه شان جونګړه جوړه کړې شوه.

**قوله:** الخباء: دَ وړئی یا وینښتو یا دې نه علاوه نه جوړې شوې خیمې ته وائی. چه په دوو یا دریو ستنو باندې لګولې شی. (۳)

**قوله:** حفش: بکسرة مهملة وسکون الفاء وبعدها شين معجمة داسې وړوکې کور دَ کوم چت چه دَ زمکې سره نیزدې وی یا دَ بدوانو وړې خیمې ته وایئ. (۴)

**قوله:** فكانت تأتيني فتحدث عندي، قالت: فلا تجلس عندي مجلسا، إلا قالت: حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل چه هغه وینځه به ماله راتلله اوما سره به ئې خبرې کولې، خوچه هغه به کله هم راتلله نو په خبرو کښې به هغې دا شعر خامخا وئیلو.

**قوله:** فكانت: دَدې فاعل هغه وینځه ده اودَ کشمیهنی په روایت کښې دَدې په ځائی "فكان" دې. (۵)

**قوله:** فتحدث: دادَ مضارع صیغه ده دَ یو تاء په حذف سره، یعنی په اصل کښې "فتتحدث" وو. (۶)

ويوم الوشاح من أعاجيب ربنا ألا إنه من بلدة الكفر أنجاني

(دَکوم ترجمه چه دا ده چه) دَ هار دَ (ورکیدو) ورځ زما دَ رب دَ عجائباتو نه ده. واورئی دَ هغه (هار واقعې) ماته دَ کفرستان نه خلاصې راکړې دې.

---

۱) عمدة القاري: ٤/٢٩٠.
۲) شرح الکرماني: ٤/٩٩ فتح الباري: ١/٦٩١ عمدة القاري: ٤/٢٩٠.
۳) شرح الکرماني: ٤/٩٩ فتح الباري: ١/٦٩١ عمدة القاري: ٤/٢٩٠.
٤) فتح الباري: ١/٦٩١ عمدة القاري: ٤/٢٩٠.
٥) فتح الباري: ١/٦٩١.
٦) شرح الکرماني: ٤/٩٩ فتح الباري: ١/٦٩١ عمدة القاري: ٤/٢٩٠.

**قوله:** أعاجيب: دَدې واحد "أعجوبة" دې. بعضې نسخوکښې "تعاجيب" دې. دکوم چه دَدې لفظ نه واحد نه راځي. ([1])

**قوله:** قالت عائشة: فقلت لها: ما شأنك، لاتقعدين معي مقعدًا إلا قلتِ هذا؟ قالت: فحدثني بهذا الحديث: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه ما هغې ته اووئيل چه آخر خبره څه ده چه کله هم ته ماسره کينې نو دا خبره خامخا کوې؟ حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه بيا هغې ماته دا واقعه واوروله.

**قوله:** قلتِ هذا: يعنى دا شعر ته وائې.([2])

**قوله:** بهذا الحديث: مراد دادې چه دا قصه.([3])

**دَ حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ مذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مطابقت په دې جملې "وكان لها خباء في المسجد" کښې دې ځکه چه خيمه دَ شپې تيرولو اودَ خوب کولو دَ پاره لګولې شي.([4])

**دَ حديث شريف نه مستفاد فوائد او احکام:** دَ مذکوره حديث شريف نه ډير احکامات مستنبط کيږي. په هغې کښې بعضې دلته ذکرکولې شي:

① په مسلمانانو کښې چه دَ چا څه ځائې نه وى دَ هغه دَپاره په جمات کښې شپه تيرول اوخبرې اترې کول جائز دى. دا حکم دَ سړى دَ پاره هم دې او دَ ښځې دَ پاره هم دې، شرط په کښې دا دې چه دَ فتنې نه محفوظ وى.([5])

② دَ پورته ذکرشوى مقصد دَ حاصلولو دَپاره په جمات کښې دَ سورى انتظام کول مثلاً خيمه وغيره لګول جائز دى.([6])

③ يو ښار وغيره دَ مصيبتونو اومشکلاتو دَ وجې پريخودل اودَ يو داسې ښار طرف ته سفر کول جائز دى چرته چه دَ هغه دَ پاره خير او ښيګړه متوقع وى.([7])

④ دارالکفر پريخودو سره دارالاسلام طرف ته هجرت کول هم معلوم شو.([8])

⑤ دَمظلوم سره امداد کول هم معلوميږى که هغه مظلوم کافر ولې نه وى. په حديث کښې

---

[1]) التوضيح لابن الملقن: ٥١١/٥ فتح الباري: ٦٩١/١ عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
[2]) شرح الكرماني: ٩٩/٤ عمدة القاري: ٢٩١/٤.
[3]) شرح الكرماني: ٩٩/٤ عمدة القاري: ٢٩١/٤.
[4]) عمدة القاري: ٢٨٨/٤.
[5]) شرح ابن بطال: ٩٠/٢، شرح الكرماني: ٩٩/٤، التوضيح لابن الملقن: ٥١١/٥، فتح الباري: ٦٩١/١، عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
[6]) شرح الكرماني: ٩٩/٤، فتح الباري: ٦٩١/١، عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
[7]) شرح ابن بطال: ٩٠/٢، شرح الكرماني: ٩٩/٤، التوضيح لابن الملقن: ٥١١/٥، فتح الباري: ٦٩١/١، عمدة القاري: ٢٩٠/٤.
[8]) فتح الباري: ٦٩١/١، عمدة القاري: ٢٩٠/٤.

دذکر شوي قصې سياق او سباق نه معلوميږي چه هغه وينځه کافره وه. حضورپاک له د راتلو نه پس هغه مسلمانه شوې وه.(١)

## ٢٥-بَابٌ: نَوْمِ الرِّجَالِ فِي الْمَسْجِدِ

دا باب په جمات کښې د سړو د اوده کيدو باره کښې دې

دَدې باب لاندې امام بخاري رحمه الله د خپلې مدعا د ثابتولو دپاره دوه تعليقاتونه او درې احاديث ذکر کړي دی.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَدې ترجمة الباب نه دَ امام بخاري رحمه الله مقصود هم هغه دې کوم چه دَ باب سابق نه وو، چه په جمات کښې اوده کيدل جائز دی. البته دَ سړې او ښځې په جمات کښې دَ اوده کيدو جواز بيانولو دپاره دَ جدا جدا باب قائمولو وجه داده چه دَ ښځې په جمات کښې په اوده کيدو باندې اشکال زيات وو په نسبت دَ سړو. نودَدې جواز ئې مستقلاً په يو باب کښې بيان کړو. دَ سابقه باب لاندې ذکرکړې شوی حديث کښې چونکه دَ يوې وينځې دَ اوده کيدو ذکر وو په دې وجه په سابقه باب کښې دَ واحد صيغه "نوم المرأة" ذکرکړې وو اودلته چونکه په څو روايتونوکښې دَ سړو دَ اوده کيدو ذکر ملاويږي په دې وجه په دې ترجمه کښې دَ جمع صيغه "نوم الرجال" ذکرکړې شوه. دې نه علاوه دَ صحيح بخاري بعضې نسخوکښې دَ "نوم الرجل" ترجمه هم موجود ده.(٢)

امام بخاري رحمه الله دَدې وجې نه هم داباب قائم کړې دې چه بعضې روايتونوکښې په جمات کښې دَ اوده کيدَو ممانعت هم نقل دې.(٣) په دې وجه امام صاحب رحمه الله دَ دغه رواياتو په مقابل کښې خپل رجحان دَ جواز والا روايات پيش کولو په ذريعه ښکاره کوی چه په جمات کښې اوده کيدل جائز دی.

---

(١) فتح الباري: ١/٦٩١، عمدة القاري: ٤/٢٩٠.

(٢) عمدة القاري: ٤/٢٩١.

(٣) عن عطاء قال قال رجل لابن عباس إني يمتُ في المسجد الحرام فاحتلمتُ، فقال: أما أن تتخذه مبيتا أو مقيلا لا، وأما ان تنامَ تستريحَ أو تنتظرَ حاجةً فلا بأس. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب في النوم في المسجد، رقم الحديث: ٤٩١٥، ١/٤٢٧). عن عطاء و طاؤس ومجاهد أنهم كرهوا النوم في المسجد. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب: في النوم في المسجد، رقم الحديث: ٤٩١٦، ١/٤٢٧). حدثنا وكيع عن أيمن بن نابل قال: رآني سعيد بن جبير وأنا نائم في الحجر، فأيقظني وقال:مثلُك ينامُ هاهنا. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب في النوم في المسجد، رقم الحديث:٤٩١٩، ١/٤٢٧). عن عمرو الشيباني قال: رأيتُ ابن مسعود نفّس في المسجد ليلا، فلا يدعُ سواداً في المسجد إلا أخرجَه إلا رجلا يصلي. (المصنف لابن أبي شيبة، كتاب الصلاة، باب في النوم في المسجد، رقم الحديث:٤٩٢٠، ١/٤٢٧). عبدالرزاق عن يحيى بن العلاء عن حرام بن عثمان عن ابني جابر عن جابر بن عبدالله قال: أتانا رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن مضطجعون في مسجده، فضربَنا بعَسيب كان في يده، وقال: قوموا! لا تر قُدوا في المسجد. (المصنف لعبدالرزاق، كتاب الطهارة، باب: الوضوء في المسجد، رقم الحديث: ١٦٥٥، ١/٤٢٢).

**دويم تعليق:** وَقَالَ أَبُو قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ: قَدِمَ رَهْطٌ مِنْ عُكْلٍ، عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فَكَانُوا فِي الصُّفَّةِ. [ر: ۶۴۱۹]

**دَ تعليق ترجمه:** حضرت ابوقلابه دَ حضرت انس رضی الله عنه نه نقل كولو سره بيان اوكړو چه دَ قبيله عكل څه خلق دَ رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او په صفه كښې ايسار شو.

**دَ تعليق تخريج:** دا تعليق دَ قصة العرنيين جز دې. دَ كوم واقعه چه كتاب الطهارة كښې تيره شوې ده. اوهم دا تعليق موصولاً امام بخارى رحمه الله كتاب الحدود، باب: لم يسق المرتدون المحاربون حتى ماتوا، رقم الحديث: ۶۸۰۴ كښې ذكر كړې دې.[1]

**دَ تعليق رجال:** دَدې تعليق په سند كښې دوه راويان دى:

① ابوقلابة رحمه الله: دا مشهور تابعى حضرت عبدالله بن زيد جرمى رحمه الله دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: حلاوة الإيمان لاندې تيرشوى دى.[2]

② انس رضی الله عنه: دا مشهور اومعروف صحابئ رسول حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تيرشوى دى.[3]

**دَ تعليق دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَمذكوره تعليق دَترجمة الباب سره مطابقت داسې دې چه دغه راتلونكې قبيله په صفه كښې ايساره كړې شوه نوچه كله دَ هغوى قيام هلته اوشو نو ښكاره خبره ده چه دَ هغوى اوده كيدل به هم هلته وو. اودا خبره متفق عليه ده چه صفه دَ جمات حصه وه. چه دَ تنبو (سائبان) لاندې جوړه كړې شوې وه. هم دغه خبره په ترجمة الباب كښې ده چه په جمات كښې دَ سړو اوده كيدل جائز دى.

**دويم تعليق:** وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ: كَانَ أَصْحَابُ الصُّفَّةِ الْفُقَرَاءَ. [ر: ۵۷۷]

**دَ تعليق ترجمه:** حضرت عبدالرحمن بن ابى بكر رضی الله عنه وائى چه صفه كښې اوسيدونكى صحابه فقيران وو.

**دَ تعليق تخريج:** مذكوره تعليق امام بخارى رحمه الله وراندې كتاب مواقيت الصلاة كښې اوكتاب ا

---

[1] حدثنا موسى بن إسماعيل، عن وهيب، عن أيوب، عن أبى قلابة، عن أنس رضى الله عنه. قال: قدم رهطٌ من عُكل على النبى صلى الله عليه وسلم، كانوا فى الصفة، فاجتروا المدينة، فقالوا: يارسول الله! أبغنا رسلاً. فقال: ما أجدلكم إلا أن تلحقوا بإبل رسول الله. فأتوها، فشربوا من ألبانها وأبوالها، حتى صحوا وسمنوا وقتلوا الراعى واستاقوا الزود، فأتى النبى صلى الله عليه وسلم الصريخُ، فبعث الطَّلَبَ فى آثارهم، فما ترجّل النهارُ حتى أُتِيَ بهم، فأمر بمسامير فأحميتْ، فكحلهم، وقطع أيديهم وأرجلهم وما حسمهم، ثم ألقوا فى الحرة.. يستسقون فما سُقُوا حتى ماتوا. قال أبوقلابة: سرقوا وقتلوا وحاربوا الله ورسوله. (صحيح البخارى، كتاب الحدود، باب: لم يسق المرتدون المحاربون حتى ماتوا، رقم الحديث: ۶۸۰۴).

[2] كشف البارى: ۲۶/۲.

[3] كشف البارى: ۴/۲.

لمناقب، باب المعاملات کښې موصولاً نقل کړې دې.([1])

**د تعلیق رجال:** دَدې تعلیق په سند کښې صرف یو راوی دې.

**عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه:** دا دَحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه خوئی حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه دې. دَ دوی احوال کشف الباری، کتاب الحیض، باب: امتشاط المرأة عند غسلها من المحیض، لاندې تیرشوی دی.([2]).

**صفه او اصحاب صفه:** حضرت مولانا محمد ادریس کاندهلوی رحمه الله دَ صفه باره کښې فرمائی چه دَ تحویل قبلې نه پس کله چه دَ مسجد نبوی مخ بیت الله شریف طرف ته شو نودَ قبلهٔ اول طرف دیوال اودې سره متصل چه کوم ځائی وو هغه دَ هغه فقیرانو او غریبانانو دَ اوسیدودپاره پریخودې شو دَ چاچه څه کور یا ځائی نه وو. دغه ځائی دَ صفه په نوم باندې مشهور وو.

صفه په اصل کښې تنبو او دَسوری والا ځائی ته وائی. هغه کمزوری مسلمانان او شکرکونکی فقیران چه په خپل فقر باندې نه یوازې دا چه صبر کونکی وو بلکه دَ امیرانو او غنیانونه زیات شاکر او خوشحال وو. کله چه به دَ احادیث قدسیه او کلمات نبویه دَ اوریدو په غرض دَ رسول الله ﷺ دربار ته حاضریدل نو هم دلته به پراته وو. خلقو به دغه حضرات دَ اصحاب صفه په نوم سره یادول. لکه چه دا دَ هغه بشیر او نذیر او فقیر نبی خانقاه وه چا چه په زرگونو رجاء او رغبت فقرته دَ دنیا په بادشاهئ باندې ترجیح ورکړه.

او اصحاب صفه دَ ارباب توکل او اصحاب تبتل یوه ډله وه چه شپه ورځ به دَ نفس دَ صفایئ اودَ کتاب او حکمت تعلیم حاصلولو دَپاره دَ حضورپاک په خدمت کښې حاضر وو. نه دَهغوی تجارت سره څه مطلب وو اونه ئی زمیندارئی وغیره سره څه کار وو. دې حضراتو

---

[1]) عن عبدالرحمن بن ابی بکر أن أصحاب الصفة کانوا أناسًا فقراء، وأن النبی صلی الله علیه وسلم قال: من کان عنده طعام اثنین فلیذهب بثالث، وإن أربع فخامسٌ أو سادسٌ، وأن أبابکر جاء بثلاثة. فانطلق النبی صلی الله علیه وسلم بعشرة: قال: فهو أنا وأبی وأمی، فلا أدری قال: وامرأتی، وخادم، بیننا وبین بیتُ أبی بکر. وإن أبابکر تعشیٰ عندالنبی صلی الله علیه وسلم، ثم لبث حیث صُلّیتِ العشاءُ، ثم رجع فلبث حتی تعشیٰ النبی صلی الله علیه وسلم، فجاء بعدما مضی من اللیل ما شاء الله.

قالت له امرأته: وما حبسک عن أضیافک؟ أو قالت ضیفک، قال: أوَ ما عشّیْتِیهم؟ قالت: أبَوا حتی تجی. قد عُرضوا فأبوا، قال: فذهبت أنا فاختبأتُ، فقال: یا غُنثَرُ! فجدّع وسبَّ، وقال: کلوا لا هَنیئًا، فقال: والله لا أطعَمُه أبدًا، وآیم الله، ما کنا نأخذ من لقمة إلا ربا من أسفلها أکثر منها، قال: یعنی حتی شبعوا، وصارت أکثرَ مما کانت قبل ذلک، فنظر إلیها أبوبکر فإذا هی کما هی أو أکثر منها، فقال لامرأته: یا أختَ بنی فراس ما هذا؟ قالت: لا وقرة عینی، لهیَ الآن أکثرُ منها قبل ذلک بثلاث مرات، فأکل منها أبوبکر وقال: إنما کان ذلک من الشیطان، یعنی یمینَه، ثمّ أکل منها لقمة، ثم حملها إلی النبی صلی الله علیه وسلم فأصبحت عنده، وکان بیننا وبین قوم عقدٌ، فمضی الأجل، ففرّقَنا اثناعشر رجلاً مع کل رجل منهم أناسٌ الله أعلم کم مع کل رجل، فأکلوا منها أجمعونَ، أو کما قال. (صحیح البخاری، کتاب: مواقیت الصلاة، باب السمر مع الضیف والأهل، رقم الحدیث: ۶۰۲).

[2]) کشف الباری، کتاب الحیض، باب: امتشاط المرأة عندغسلها من المحیض.

خبلې سترګې د حضورپاك د ديدار چه د نور نه ډك وو د پاره او غوږونه د حضورپاك د كلمات قدسيه د اوريدو د پاره او بدنونه د حضورپاك د صحبت او ملګرتيا د پاره وقف كړې وو.

وإن حدثوا عنها فكل مسامع وكل إذا حدثتهم ألسن تتلو

حضرت كاندهلوي رحمه الله نور هم ډير ښه تفصيل بيان كړې دې كوم چه كتلو سره تعلق لري.[1]

---

[1]) سيرت مصطفى للكاندهلوي:۱/۴۵۲-۴۴۴. د جامعه علوم اسلاميه علامه بنوري ټاؤن، كراچۍ نه جاري ماهنامه "بينات" كښې د دغه صفه او اصحاب صفه سره متعلق يو ښكلې تحرير د نظر نه تير شوې وو دهغې څه حصه د عام فائدې په غرض دلته نقل كولې شي: مدينه طيبه كښې د مسجد نبوي علي صاحبها الصلوٰة والسلام شمال مشرقي طرف ته يو د تنبو په شكل سوري كښې يو څوبزرګانو تعليم او تربيت حاصلولو. دغه بزرګانو خپل ژوند د علم د حاصلولو د پاره وقف كړې وو. په دوي كښې يو څو حضرات داسې وو چه كله به ئې د ورځې په څه حصه كښې د ځنګل نه لرګي راوړل او خرڅول به ئې او په هغې باندې به ئې وخت تيرولو. د هغوي د احوالو او تعداد باره كښې قدما و محدثينو مستقل كتابونه ليكلې دي. په كوم كښې چه امام حديث ابونعيم اصبهاني او امام حديث ابو عبدالله حاكم او ابن الاعرابي او سلمي وغيره رحمهم الله نومونه د ذكر قابل دي. د دوي تعداد په مختلفو اوقاتو كښې ټول يوځائې كولوسره څلور سوو ته رسيږي. هسې خود رسول الله صلى الله عليه وسلم ټول ژوند مبارك هم تعليمي وو او په امت محمديه كښې صحابه كرام رضي الله عنهم د ټولو نه رومبي متعلمين او شاګردان وو. ليكن هم د دغه علم د حصول سره د اكثر حضراتو د تجارت او د زراعت وغيره مشاغل هم وو. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه غوندې د اهم شخصيت يو زمانه داسې تيره شوې ده چه د مدينې نه بهر عوالي مدينه كښې د هغوي قيام وو او اود مسافت د لريوالي نه علاوه د معاشي مشغوليت د وجې روزانه د حضورپاك دربار كښې د حاضرئ نه معذور وو. ليكن هغوي خپل يو انصاري ګاونډي (غالبًا د هغه نوم اوس بن خولي دې) سره دا انتظام كړې وو او نمبر ئې مقرر كړې وو چه يوه ورځ دې هغه د نبي عليه السلام په دربار كښې حاضري كوي او كومه وحي د نبوت (د قرآن كريم آيت) چه نوې نازل شوې وي يا څه اهم حديث حضورپاك بيان كړې هغه د شپې عمر فاروق رضي الله عنه ته اوروي. او بله ورځ به حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا خدمت پوره كوي د كوم تفصيل چه صحيح بخاري كښې موجود دې.

الغرض هغه صحابه كرام رضي الله عنهم كوم چه روزانه حاضري نه شوه لګولې هغوي به هم د علم د حاصلولو د پاره پوره اهتمام او انتظام كولو ليكن څه حضرات داسې هم وو د چا چه شپه ورځ ژوند هم د دغه علم د حاصلولو د پاره وقف وو. د بال بچ نه ازاد، نه د تجارت سره غرض او نه د زراعت سره، مطلب چه نه ئې د خپل معاش څه فكر وو او نه د بال بچ. دا هم هغه د اصحاب صفه بزرګان دي د چا شمير چه به په يو يو وخت كښې اويا اويا پورې هم رسيدلو. هم د دغه بزرګانو نه اويا شهيدان د بيرمعونه دي كوم چه د كافرانو يو څو قبيلو بني لحيان، ورعل او ذكوان وغيره د دين د تعليم او د اسلام د تبليغ په غرض سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په توګه د معلم او مبلغ غوښتو د پاره راغلي وو او حضورپاك دغه قاريان د دې ديني خدمت د پاره ليږلي وو. دغه بدګمانه قبائلو هغوي بوتلل او شهيدان كړي ئې وو. د كوم د وجې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ډير زيات خفګان رسيدلې وو او د سحر په مونځ كښې حضورپاك دعاء قنوت نازله وئيل شروع كړي وو. هم د دغه بزرګانو نه د دې شهادت د واقعې نه پس اويا داسې صحابه كرام رضي الله عنهم هم وو د چا متعلق چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا بيان صحيح بخاري كښې د عبرت او بصيرت قابل دې: ((رأيت سبعين من أصحاب الصفه، ما منهم رجل عليه رداء، إما ازار وإما كساء، قد ربطوا في أعناقهم، فمنها ما يبلغ نصف الساقين، ومنها ما يبلغ الكعبين، فيجمعه بيده كراهية أن تري عورته)).(صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب: نوم الرجال في المسجد).

**ترجمه:** ما اويا داسې اصحاب صفه ليدلي دي په کوم کښې چه چا سره (ځان د پاسه د اغوستلو دپاره) څادر نه وو، يا هغوی سره صرف لنګ وو يا (دبدن پټولو دپاره) يو ه کمبله کومه چه په هغوی د سټ نه (لاندې) تړلې وه. څنې کمبله خو به د ګيټو پوري رسيدله او څنې به د پنډو پورې رسيدله (د رکوع سجدې په وخت) به ئې دا په لاس سره نيوله چه د (بدن) پټه حصه ښکاره نه شي.

هم د دغه بزرګانو نه پخپله حضرت ابوهريره ﷺ هم وو په چا به چه بعضې وخت د اولګې نه د بې هوشئ دورې راتلې او په مسجد نبوی کښې د منبر نبوی او د رسول الله ﷺ د کور په مينځ کښې روضه کښې به بې هوشه پروت وو او د عامو حضراتو به دا ګمان کيدو چه په ده باندې د مرګي دوره راغلي ده حالانکه د سختې اولږې او د فاقو د زياتوالي نه به په هغه د اقسم حالات راتلل. پخپله هم د هغوی د څلې نه په صحيح بخاری کښې دا تول تفصيل ذکر دې. آخر ددې دومره سختو او د طالبئ ددې انداز چه کوم حيرانونکې نتيجې کيدل ښکار وو هغه د امت مخې ته راغلې او پخپله هم د هغوی په ژبه صحيح بخاری کښې روايت دې: ((صحبت رسول الله صلی الله عليه وسلم ثلاث سنين فلم أکن فی سنی أحرص علی أن أعی الحديث منی)):

**ترجمه:** زه درې کاله (هروخت) رسول الله ﷺ سره پاتې شوم ما په خپل عمر کښې د خپل ځان نه زيات د احاديثو يادونکې حريص (ډيرشوقي) بل څوک نه دې ليدلې.

په دومره مختصر زمانه کښې چه کوم روايتونه د احاديثو د کتابونو مدونينو ته د هغوی نه رسيدلي دی د هغې شمير په زرګونو دې، نه ده معلومه چه نور به څومره روايتونه وی چه د مدونين کتب حديث پورې به د هغوی د معيار مطابق نه وی رسيدلې کوم چه يقينا د دغه پاك صحبت او په دې علم کښې د فناه کيدو د جذبې برکات دی. چنانچه پوره اته سوه صحابو او تابعينو ته د هغوی نه د شاګردئ شرف حاصل شو اوددين ډيره لويه حصه ځانله هم د دوی د روايتونو نه امت ته اورسيدله. هم دغه وجه ده چه د يورپ مستشرقين اود حديث منکرين مستغربين اود دوی نه علاوه د اسلام د دښمنانو تول زور په حضرت ابوهريره ﷺ باندې طعن تشنيع او عيبونه لګولو باندې خرچ کيږی. د وينا مطلب دادې چه آخر هغه څه اسباب وو د کوم د وجې چه دغه اصحاب صفه دا فقر او افلاس برداشت کړې شو؟ او هغوی ئې د معاش د فکر طرف ته ولې متوجه نه کړې شو؟ ولې هغوی د زراعت و صنعت او حرفت طرف ته رغبت ورنه کړې شو؟ او ولې د هغوی د خيټې د مړولو اود هغوی د وخت تيرولو دپاره د زکوة او صدقات انتظام کولې شو؟ اوکله چه به د ډيرې مجبورئ حالت راتلو او د اولګې د پاسه به اولګه لګيدله نو رسول الله ﷺ به يو يو صحابی ته د صفه والو نه يويو کس د خوراك ورکولو دپاره خپلو کورونو ته د بوتلو ارشاد فرمائيلو او پخپله به ئې هم لس لس کسان ځان سره بوتلل. ځکه چه د ازواج مطهرات تعداد ۹ وو او لسم حضورپاك وو. په دې لحاظ سره لکه چه طعام الواحد يکفی الاثنين په اصول باندې چه کوم حديث مرفوع ذکر دې پخپله د پيغمبر ﷺ په کورونو کښې په هغې عمل وو. نودا خو احاديث نبويه علی صاحبها الصلوة والسلام شواهد او بينات دی. اوس ل شان د قرآن کريم ارشاد هم واورئ: ﴿الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُم بِسِيمَاهُمْ لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾ (البقره).

**ترجمه:** هغه حاجت مند (ستاسو د امداد او تعاون مستحق دی) چه د الله په لار کښې (خوارئ اومحنت نه) منع کړې شوی دی. هغه (د رزق حاصلولو دپاره) په مخ د زمکه کښې (چرته) تلې نه شي. ناخبره سړې خود هغوی (سوال کولو نه) د بچ کيدو د وجې په هغوی باندې د مالدارو ګمان کوی (ليکن) تاسو د هغوی فقر اوافلاس د هغوی د مخ د څهرې نه پيژنلې شئ هغوی د خلقو نه سوال نه کوی (چه ورپسې اولګې او) اصرار اوکړی.

د مفسرينو اتفاق دې چه دا آيت مبارك هم د دغه بزرګانو متعلق نازل شوې دی د چا د ژوند مقصد چه صرف تعليم او جهاد وو. په يخو دماغو او زړه سره د غور کولو مقام دې چه الله تعالی اود هغه رسول ﷺ نه يوازې دا صورت حال قائم اوساتلو بلکه د هغوی تعريف اوصفت ئې په وحی متلو.........

**د تعلیق د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حضرت عبد الرحمن بن ابی بکر رضي الله عنهما د قول مطابق په صفه کښې اوسيدونکی صحابه فقيران وو يعنی هغوی سره خپل هيڅ د اوسيدو ځائی وغيره نه وو چه هلته هغوی شپه تيره کړی چنانچه هغوی به هم هلته (صفه) د شپې اوده کيدل. اوهم دغه په ترجمه کښې ذکر دی.

حدیث باب (رومبی حدیث) [حدیث نمبر ۴۲۹]

۴۲۰- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ [۱] أَنَّهُ كَانَ يَنَامُ وَهُوَ شَابٌّ أَعْزَبُ لَا أَهْلَ لَهُ فِي مَسْجِدِ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم-.

**د حدیث ترجمه:** د حضرت نافع رحمه الله بيان دی چه حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما ماته اووئيل چه هغه به په مسجد نبوی کښې اوده کيدلو په داسې حال کښې چه هغه ځوان وو، ځلمې وو کور وغيره ئې نه وو.

**تراجم رجال:** د مذکوره حديث مبارک په سند کښې ټول پنځه راويان دی:

① **مسدد رحمه الله:** دا مسدد بن مسرهد الاسدی البصری رحمه الله دی. د دوی مختصر احوال کشف الباری کتاب الإيمان باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه او تفصيلی احوال کتاب العلم، باب: من خص بالعلم قوما دون قوم کراهية أن لايفهموا کښې تيرشوی دی. [۲]

② **يحيی رحمه الله:** دا يحيی بن سعيد بن فروخ القطان تميمی رحمه الله دی. د دوی احوال کشف الباری کتاب الإيمان باب: من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې تير شوی دی. [۳]

---

...... کښې هم بيان کړو. آيا دا واضح او صفا دليل د دې خبرې نه دی چه په امت کښې څه کسان داسې کيدل پکار دی د چا پاک ژوند چه په مکمله توګه د دين د علم د پاره وقف شوی وی. د دې مقدس شغل نه علاوه د هغوی بل څه شغل نه وی. اوس پاتې شو دا سوال چه هغوی به خوراک څښاک د کوم ځائی نه کوی او د معاش ضرورتونه به څنګه پوره کوی؟ نود قرآن حکيم په تعليماتو او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په تعامل کښې د دې واضح جواب صرف هم دغه ملاويږی چه د دوی د ضرورت پوره والی او تپوس پښتنه په امت محمديه باندې فرض ده چه هغوی به په خپل صدقات، خيرات او زکوة سره د هغوی خدمت کوی. په دې وجه په علم دين کښې مهارت او خصوصيت فرض کفايه دی فرض عين نه دی اودا د هرسړی د وس کار نه دی. (ماخوز از ماهنامه بينات، ذوالحجه ۱۴۲۸ھ بمطابق جنوری ۲۰۰۸ء).

[۱] أخرجه البخاری أيضا فی التهجد، باب: فضل قيام الليل، رقم الحديث: ۱۱۲۱، وباب: من تعارض من الليل نصلی، رقم الحديث: ۱۱۵۶، وفی فضائل أصحاب النبی صلی الله عليه وسلم، باب: مناقب عبدالله بن عمر، رقم الحديث: ۳۷۳۸، ۳۷۴۰ وفی التعبير، باب: الاستبرق ودخول الجنة فی المنام، رقم الحديث: ۷۰۱۵ وباب: الأمن وذهاب الروح فی المنام، رقم الحديث: ۷۰۲۸، وباب: الأخذ علی اليمين فی النوم، رقم الحديث: ۷۰۳۰. ومسلم فی صحيحه فی فضائل الصحابة، باب: من فضائل عبدالله بن عمر رضی الله عنهما، رقم الحديث: ۲۴۷۹. والترمذی فی جامعه، فی الصلاة، باب: ماجاء فی النوم فی المسجد، رق الحديث: ۳۲۱. والنسائی فی سننه، فی المساجد، باب النوم فی المسجد، رقم الحديث: ۷۲۳. وفی جامع الأصول، حرف الميم، الكتاب الأول: فی المواعظ والرقائق، الكتاب السادس: فی المساجد ومايتعلق به أولا وآخرا، رقم الحديث: ۸۷۵۵ ۱۱/۲۰۶.

[۲] کشف الباری: ۲/۲، ۴/۵۸۸.

[۳] کشف الباری: ۲/۲.

③ عبيدالله رحمه الله: دا عبيدالله بن عمر بن حفص بن عبدالله بن عمر بن خطاب رحمه الله دې د دوی احوال كشف البارى كتاب الوضوء باب: التبرز فى البيوت لاندې تېرشوی دی. [1]

④ نافع رحمه الله: دا مولى د عبدالله بن عمر القرشى رحمه الله دې. د دوی احوال كشف البارى، كتاب العلم، باب: ذكر العلم والفتيا فى المسجد لاندې تېر شوی دی. [2]

⑤ ابن عمر رضى الله عنهما: دا حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما دې. د دوی احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: الإيمان وقول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الإسلام على خمس كښې تېر شوی دی. [3]

**د حديث شريف شرح:**

**قوله:** وهوشاب: دا جمله اسميه ده كومه چه د "ينام" فعل د ضمير نه حال واقع كيږي. "شاب" هغه سړی ته وائى د چاعمر چه د ديرشو نه ځلويښتو كالو پورې وى، د دې جمع "شُبان" استعماليږي. مؤنث شابة او د دې جمع شواب استعماليږي. [4]

**د انسانى عمر مختلف ارتقائى ادوار:** زمونږ د اردو ژبې سينه ډېره تنګه ده ليكن د عربئ ژبې سينه ډېره كولاؤ ده. د انسانى ژوندون څومره مراحل دى د هغې ټولو د پاره په عربئ ژبه كښې جداجدا نومونه متعين دى. مثلاً تركومې پورې چه بچې د مور په خيټه كښې وى هغې ته "جنين" وائى، كله چه پيدا شى هغې ته "وليد" وائى، كله چه د اووه ورځو شى هغې ته "صديغ" وائى، بيا چه تركومې پورې پئ څكى هغې ته "فطيم" وائى، بيا چه كله كلك خوراك كول شروع كړى نو هغې ته "جحوش" وائى. بيا دغه شان مخكښې تلو سره هغه "مترعرع، ناشئ، يافع، مراهق، حزور او غلام" سره يادېږي. بيا دې "فتى" او "شارخ" شى. بيا "مجتمع" شى. بيا "شاب" او دې نه پس په آخر كښې ورته "كهل" وئيلې كيږي.
ائمة اللغات د دې ټولو نومونو تفصيلات خپلو كتابونو كښې جمع كړى دى. [5]

---

[1]) كشف البارى كتاب الاصوء باب: التبرز فى البيوت، ص: ۳۶۰.
[2]) كشف البارى: ۵۶۱/۴.
[3]) كشف البارى: ۱/۶۳۷.
[4]) المحكم والمحيط الأعظم، الشين والباء: ۲۳۶/۷. مختار الصحاح، شبب: ۱۶۰/۱، المصباح المنير فى غريب الشرح الكبير، ش ب ب: ۳۰۲/۱.
[5]) الفصل الأول: "فى ترتيب سن الغلام. عن أبى عمرو عن أبى العباس عن ابن الأعرابى، يقال للصبى: إذا ولد "رضيع وطفل. ثم: "فطيم. ثم: "دارج. ثم: "حفر. ثم: "يافع. ثم: "شدخ. ثم: "مُطَبَّخ. ثم: "كوكب.
الفصل الثانى: "أشفى فنه فى ترتيب أحواله وتنقل السن به إلى أن يتناهى شبابه. "
عن الائمة المذكورين "ما دام فى الرحم فهو"جنين. فإذا ولد فهو"وليد. وما دام لم يستتم سبعة أيام فهو "صديغ. لأنه لا يَشْتَدُّ صُدْغُهُ إلى تمام السبعة. ثم ما دام يرضع فهو "رضيع. ثم إذا قطع عنه اللبن فهو "فطيم. ثم إذا غلظ وذهبت عنه ترَارَةُ الرَّضاع فهو "جَحُوَشٌ. .......

**قوله: أعزب:** دا صفت دې د شاب، د ابی ذر په روایت کښې دعزب لفظ دې، بغیر د الف د او رجل عزب داسې سړی ته وئیلی شی چه خلمې وی، د چا چه ښځه نه وی. نصر ینصر نه د دې استعمال کیږی. عازب اسم فاعل او د دې جمع عزّاب استعمالیږی. کوم سړې چه د نکاح ترک کونکې وی د هغه د پاره په عربی ژبه کښې د تعزب الرجل جمله استعمالیږی. او د چا د (ترک نکاح) زمانه چه ډیره اوږده شی تردې چه د هغه په نکاح کښې رغبت ختم شی هغه ته "العزابة" وائی. (١)

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چه ناواده کړی ځوان سړی ته د احتلام اندیښنه زیاته وی. ددې باوجود به حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په جمات کښې اوده کیدو او ظاهره خبره ده چه حضور پاك ته به د دې خبر هم وو. بیا هم حضور پاك هغه منع نه کړو نو په دې سره په جمات کښې د اوده کیدو جواز معلومیږی او هم دغه د ترجمة الباب مقصد دې. (٢)

**د "العلماء العزاب" تعارف:** علماء او فقهاء داسې ډیر تیر شوی دی چاچه د خپل علمی او فقہی مصروفیاتو د وجې واده نه دې کړې. د داسې علماؤ تفصیلات شیخ عبدالفتاح ابوغده رحمه الله په خپل کتاب کښې جمع کړی دی. د کوم نوم چه "العلماء العزّاب" دې هغه هم د

---

..... عن الأصمعي. وأنشد للهُذَليْ (من الوافر):

قَتَلْنَا مَخْلَداً وابْنَيْ حرَاقٍ  وآخَرَ جَحْوَشاً فَوْقَ الفَطِيْمِ

قال الأزهري: كأنه مأخوذ من "الجحش" الذي هو ولد الحمار. ثم هو إذا دب ونما فهو "دارج". فإذا بلغ طوله خمسة أشبار فهو "خماسي". فإذا سقطت رواضعه فهو "مثغور". عن أبي زيد. فإذا نبتت أسنانه بعدالسقوط فهو "متغر" بالثاء والتاء.

عن أبي عمرو. فإذا كاد يجاوز العشر السنين أو جاوزها فهو "مترعرع وناشئ". فإذا كاد يبلغُ الحلم أو بلغه فهو "يافع ومراهق". فإذا احتلم واجتمعت قوته فهو حَزَوَّر وَحَزْوَر. واسمه في جميع هذه الأحوال التي ذكرنا "غلام". فإذا خضر شاربُه وأخذ عِذَارُهُ يَسِيْلُ قيل: بَقَلَ وجهُه. فإذا سار ذاقتّاء فهو "فتىً وشارخ". فإذا اجتمعت لحيتُه وبلغ غاية شبابه فهو "مُجتَمِع". ثم مادام بين الثلاثين والأربعين فهو "شاب". ثم هو "كهل" إلى أن يستوفي الستين. (فقه اللغة للثعالبي، الباب الرابع عشر في أسنان الناس والدواب وتنقل الأحوال بهما وذكر ما يتصل بهما وينضاف إليهما: ٦٧/١). په اردو ژبه کښې د "صبی" ترجمه بچی سره کولې شی. په عربی ژبه کښې د عمر مختلف مرحلو د پاره جدا جدا الفاظ وئیلې کیږی. ماشوم چه ترکومې پورې د مور په خیټه کښې وی هغې ته "جنین" وائی. د پیدا کیدو نه تربلوغ پورې "صبی"، د بلوغ نه پس ١٩ کالو پورې "غلام"، دې نه پس ٣۴ کالو پورې "شاب" بیا د ٥١ کالو پورې "کهل" او دې نه پس آخری عمر پورې "شیخ". فقهاء کرامو په دې تعبیر کښې څه قدرې فرق کړی دی چه د پیدائش نه تربلوغ پورې صبی او غلام، د بالغ کیدو نه پس ٣٠ کالو پورې فتی او شاب، ٥٠ کالو پورې کهل او د ٥٠ کالونه اخوا باندې د شیخ اطلاق کیږی. (قاموس الفقه، صبی: ۲۱۲/۴).

(١) المحكم والمحيط الأعظم، ع زب: ٥٣٠/١. غريب الحديث للجوزي، باب العين مع الزاء: ٩١/٢. النهاية في غريب الحديث والأثر، عزب: ٢٢٨/٣. فتح الباري: ٦٩٣/١.

(٢) سراج القاري: ٣٢/٣.

---

کتلو څيز دې.(١)

**قوله: لا أهل له:** په دې جمله کښې دَ "له" ضمير مرجع دَ حضرت ابن عمر ﷺ ذات دې. دلته يو سوال پيدا کيږي چه عزب يا عازب هم هغه سړی ته وئيلی شی دَ کوم چه بچی نه وی، دَ چا چه ښځه نه وی. بيا چه کله دَ شاب صفت اعزب استعمال شوې وو نو بيا دَ لا أهل له دَ ذکرکولو څه وجه ده؟ په ظاهره خودَ دې څه فائده نشته دې.

نودَ دې جواب دادې چه دا جمله دَ تاکيد په توګه ذکرکړې شوې ده. يا دَ تعميم په توګه ذکرکړې شوې ده. ځکه چه دَ أهل لفظ دَ زوجه په نسبت عام دې. يعنی دَ "لا أهل له" مطلب دادې چه دَ چا ښځه نه وی اودغه شان دَ کومې ښځې چه خاوند نه وی دَ هغې دَ پاره هم "لا أهل لها" استعماليږی. (٢)

**قوله: في مسجد:** دا جار مجرور به ما قبل کښې دَ ينام سره متعلق وی.(٣)

**دَ حديث مبارک دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ مذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مطابقت بالکل ښکاره دې.

**دَ حديث شريف نه مستفاد امور او اداب:** دَمذکوره حديث شريف نه معلوميږی چه دَ مسافر نه علاوه دَ نور کسانو هم دَ ضرورت په وخت په جمات کښې اوده کيدل جائز دی. پاتې شوه دَ احتلام انديښنه نودَ دې دَ وجې هم دَ اوده کيدو ممانعت نشته دې. البته دَدې نه احتياطی تدابير اختيارول هم لازم دی.

**په جمات کښې دَ اوده کيدو باره کښې دَ ائمه کرامو مذهب:** جمات کښې دَ يوکس دَ اوده کيدو باره کښې دَ فقهاؤ کرامو مختلف اقوال دی. کوم چه دلته نقل کولې شی:

**دَ احنافو مسلک:** جمات کښې اوده کيدل دَ احنافو په نيز مکروه دې. البته مسافر او معتکف دَپاره څه حرج نشته دې.(٤)

**دَ مالکيؤ مسلک:** دَ صحراء په جمات کښې دَ يوميلمه قيام کول جائز دی. هم دغه حکم دَ وړوکی کلی دَ جمات حکم دې. دَ ښار په لوئی جمات کښې ميلمه ايسارول جائز نه دی. او داسې سړې دَ چا چه کور وغيره نه وی بال بچ ئی نه وی يا وی ليکن دَ شپې دَ څه دَ وجې هغې ته رسيدل ممکن نه وی نودَ داسې کسانودَپاره شپه په جمات کښې تيرول جائز دی. دارنګ دَ قيلولې دَ پاره دَ ورځې په جمات کښې سملاستل دَ هرچا دَ پاره صحيح دی. دې نه علاوه

---

(١) العلماء العزاب الذين آثروا العلم على الزواج، دَ شيخ عبدالفتاح ابوغده ﷫ دا کتاب دَ حلب مکتب المطبوعات الاسلاميه نه چهاپ شوې دې. ١٥۶ صفحاتو باندې مشتمل دې.

(٢) فتح الباري: ١/۶٩٣ عمدة القاري: ٤/٢٩٢.

(٣) فتح الباري: ١/۶٩٣ عمدة القاري: ٤/٢٩٢ - ٢٩٣.

(٤) المبسوط للسرخسي، ما يحدث في المسجد: ٢٧/٢٥. البحرالرائق، كتاب الصوم، باب الاعتكاف، اعتكاف المرأة: ٢/٣٢٧. فتح القدير، كتاب الصيام، باب الاعتكاف: ٢/٣٩٨.

دمعتکف دپاره خو په جمات کښې خوراك څښاك کول په وجه د ضرورت مطلقاً جائز دی.[1]
**دشوافعو اوحنابلوٌمسلک:** شوافعو[2] اوحنابله[3] په نیزجمات کښې اوده کیدل مطلقاً جائز دی.
**دَ تبلیغي جماعت والو په جمات کښې اوده کیدل:** په موجوده دور کښې دَ دین دَ محنت او تبلیغ دَ پاره دَمسلمانانو جماعتونه اوځی. دَدوی قیام په جماتونو کښې وی نوبغیردَ څه شك او شبهې نه دَدوی قیام او طعام په جمات کښې کول دې کښې هیڅ شك نشته چه صحیح دې. یو خو په دې وجه چه هغوی اکثر مسافر وی. دویم په دې وجه هم چه هغوی په جماتونو کښې دَ اعتکاف په نیت سره اوسیږی. دریمه خبره دا چه وتونکی جماعتونه په ډیر اهتمام سره په هدایاتو کښې په جماتونو کښې دَ قیام آداب خودلې کیږی دَ کوم په وجه چه په جماتونو کښې ایسارېدل اوکار کول بالکل صحیح دی.
او نن صبا خو یوه بله ښه فضا قائمیږی چه په جماتونو کښې دَ جماعت والو دَ انتظام اوطعام وغیره دَ پاره جدا کمره جوړولې شی. دا نور هم ښه دستور دې دا عام کول پکاردی اود داسې ځائی په موجودګئ کښې هم دغه استعمالول پکار دی. بغیرد ضرورت نه په جمات کښې دَ خوراك څښاك نه احتیاط کول پکاردې. اوکه داسې څه کوټه یا دَ جمات نه بهرځائې نه وی نو بیا دَ جمات دَ آدابو خیال ساتلوسره دَ اعتکاف په نیت سره دَ خوراك څښاك او دَ اوده کیدو اجازت دې.[4]
**دَ دیني مدارسو دَ طالبانو په جمات کښې اوده کیدل:** زمونږ په دینی مدارسو کښې هم په ډیرو ځایونو کښې کتلې شی چه بعضې وخت دَ طالبانو دَ اوسیدو بندوبست په جمات کښې کړې شوې وی. نودَدې حکم هم دغه دې چه که چرې دَ هغوی دَ پاره دَ جمات نه بهر دَ قیام بل څه

---

[1] التاج والإكليل لمختصر خليل، كتاب إحياء الموات، باب: المنافع المشتركة في البقاع كالشوارع والمساجد: ٦١٦/٧ الشرح الكبير للشيخ الدردير وحاشية الدسوقي، باب: موات الأرض وإحياءها: ٧٠/٤.

[2] الأم للشافعي، جماع التيمم للمقيم والمسافر، باب: ما يوصل بالرجل والمرأة: ٧١/١. المجموع شرح المهذب، باب: الإحداث التي تنقض الوضوء، فصل: في المساجد وأحكامها: ١٧٤/٢. إعلام الساجد بأحكام المساجد، الباب الرابع فيما يتعلق بسائر المساجد: ٣٠٦/١. حاشية الورقة السابقة.

[3] المسائل الفقهية من كتاب الروايتين والوجهين، كتاب الصلاة، مسائل في السهو والسجوده، اتخاذ المسجد مبيتا ومقيلا: ١٤٨/١.

[4] قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وأكل ونوم المعتكف وغريب إلخ. وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله: وأكل ونوم) وإذا أراد ذلك ينبغي أن ينوي الاعتكاف، فيدخل ويذكر الله تعالى بقدر مانوى، ويصلي، ثم يفعل ماشاء. فتاوى هندية. (الدرالمختار مع ردالمحتار، كتاب الصلاة، مطلب: في الغرس في المسجد: ٦٦١/١ سعيد). ويكره النوم والأكل فيه، أي: المسجد لغير المعتكف، وإذا أراد أن يفعل ذلك، ينبغي أن ينوي الاعتكاف، فيدخل فيه ويذكرالله تعالى بقدر مانوى. ولا بأس للغريب ولصاحب الدار أن ينام في المسجد في الصحيح في المذهب، والأحسن أن يتورع، فلا ينام. اهـ (الفتاوى الهندية، كتاب الصلاة، الباب الخامس في آداب المسجد: ٣٢١/٥ رشيديه). والنوم فيه لغير المعتكف مكروه، وقيل: لا بأس للغريب أن ينام فيه، والأولى أن ينوي الاعتكاف، ليخرج من الخلاف. (الحلبي الكبير، كتاب الصلاة، فصل: في أحكام المسجد، ص: ٦١٢، سهيل اكيدمی لاهور)

خائی نه وی نو د اعتکاف په نیت د جمات د آدابو خیال ساتلو سره او سیدې شی.(١)

(١) د احسن الفتاوي فتوى: سوال: دعلم د طالبانو په جمات کښې اوده کیدل جائز دی که نه؟ بینوا توجروا.
الجواب باسم ملهم الصواب: د جمات جوړیدل د ذکر او عبادت دپاره دی. ددې قسم کارونو د پاره نه دی. په دې وجه په عام حالاتو کښې خود چا دپاره هم په جمات کښې اوده کیدل جائز نه دی که هغه طالب وی او که نور څوك. او که د مجبورئی د وجې نه د طالبانو په جمات کښې اوده کیدل وی نو په دې شرطونو سره ددې گنجائش شته:
① دجمات نه علاوه بل څه عارضی یا مستقل د قیام خائی موجود نه وی، او نه متولی او نه منتظم ددې انتظام کولې شی.
② د جمات د آدابو پوره خیال دې ساتی چه شور غوغا، خنداګانې او توقې مسخرې او فضول خبرو نه پرهیز او کړی. د صفایئ پوره اهتمام او ساتی او د اعتکاف نیت دې او کړی.
③ مونځ گذارو ته چه د هغوی نه هیڅ قسم تکلیف او نه رسی، اذان کیدو سره دې پاسی او د مونځونو نه پس هم چه کله خلق سنت نوافل یا ذکر او تلاوت وغیره کښې مشغول وی نو د هغوی په عبادتونو کښې دې خلل نه اچوی.
④ طالبان د ډیرې والا یا کم نه کم د جمات د آداب نه واقف او شعور والا وی، کم عمر او بې شعوره ماشومان جمات کښې اوده کول جائز نه دی. الغرض د ممکن حده پورې دې ددې نه د بچ کیدو کوشش او کړې شی او د مجبورئی خبره خو جدا ده. والله اعلم. ٢٤/ ربیع آخر سنه ٨٧ھ.
(احسن الفتاوی، باب المساجد، سوال: مسجد میں سونا: ٤٤٨/٦، ٤٤٧، ط ایچ ایم سعید)
سوال مثل بالا: سوال: د یومقیم سړی د پاره په جمات کښې کټ اچولو سره یا بغیر د کټ نه سملاستل جائز دی که نه؟ بله دا چه نن صبا رواج دې چه تبلیغی جماعت حضرات هم په جمات کښې تسلی، هم په جمات کښې خوری څکی او نور معمولات پوره کوی. آیا شرعاً ددې گنجائش شته؟ بینوا توجروا.
الجواب باسم ملهم الصواب: د معتکف او مسافر دپاره په جمات کښې د خوراك څښاك او د اوده کیدو گنجائش شته. لهٰذا د تبلیغی جمات دغه دستور جائز دې ځکه چه تبلیغی حضرات هم عموماً مسافر وی. سره ددې دا بهتره ده چه د اعتکاف نیت دې او کړی او ددې دې هم خیال او ساتی چه که جمات سره نیزدې څه حجره وغیره وی په کومه کښې چه تول ملګرې راتلې شی نو جمات کښې دې نه اوده کیږی او خوراك دې هم بهر کوی، په جمات کښې کټ اچول د چا د پاره هم جائز نه دی.
قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وأكل ونوم المعتكف وغريب إلخ. وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله: وأكل و نوم) وإذا أراد ذلك ينبغي أن ينوى الاعتكاف، فيدخل ويذكرالله تعالى بقدر مانوى، ويصلى، ثم يفعل ما شاء. فتاوی هندية. (ردالمحتار، ٦١٩/١) والله تعالى اعلم. ٢٧/ ربیع الاول سنه:٨٩ھ
(احسن الفتاوی، باب المساجد، سوال: مسجد میں سونا: ٤٤٩/٦، ٤٤٨، ط ایچ ایم سعید)
د فتاوي مفتي محمود فتوى: سوال: څه فرمائی علماء دین په دې مسئله کښې چه په جمات کښې اوده کیدل جائز دی که نه؟که چرې جائز وی نو په کومو کومو صورتونو کښې اوده کیدې شی. مثلاً مسافر یا غیر مسافر یا صحیح سالم یا معتکف وغیره؟
وفی الدرالمختار: وأكل و نوم المعتكف وغريب إلخ. وفي ردالمحتار: (قوله: وأكل و نوم) وإذا أراد ذلك ينبغي أن ينوى الاعتكاف، فيدخل ويذكرالله تعالى بقدر مانوى، ويصلي، ثم يفعل ما شاء.(ص: ٤٨٩/١) دې نه معلومه شوه چه بغیر د معتکف او مسافر نه د نورو د پاره په جمات کښې اوده کیدل مکروه دی. لیکن که چاته سخت ضرورت وی نو د ا حیله دې او کړی چه په جمات کښې دې د لږ ساعت د پاره د اعتکاف نیت او کړی او بیا دې جمات کښې داخل شی او لږ وخت دې په عبادت او ذکر کښې تیر کړی بیا دې هلته اوده سی او سحردې پاسی مونځ دې او کړی او د جمات نه دې بهر راوځی. فقط والله تعالى اعلم. بنده محمد اسحاق غفرله، نائب مفتی مدرسه قاسم العلوم ملتان. ٢٣ رجب ١٤٠٠ھ..............

حديث باب: (دويم حديث) [حديث نمبر ٤٣٠]

-٤٢١- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ (١) جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بَيْتَ فَاطِمَةَ، فَلَمْ يَجِدْ عَلِيًّا فِي الْبَيْتِ

......... (فتاوى مفتى محمود، كتاب المساجد، مسجد ميں سونا، ٢٦١/١، جمعية پبليكيشنز، لاهور)

د فتاوى محموديه نه منتخب فتاوى: سوال: په جمات كښې اوده كيدل دعوامو يا خواصو په كښ باندې يا بغير د كښ، بوډا وى كه ځوان وى صحيح دى كه نه؟ سره د كتابونو د حوالې تشريح اوليكئ؟

الجواب حامداومصليا: د معتكف او داسې مسافر چه د هغه ځائى وغيره نه وى صحيح دى كه په كښ كښې وى او كه بغير د كښ نه وى، كه ځوان وى او كه بوډا، نورو له احتياط كول پكاردى ځكه چه په جمات كښې اوده كيدل مكروه دى.

"ويكره النوم والأكل فيه، أي: المسجد لغير المعتكف، وإذا أراد أن يفعل ذلك، ينبغي أن ينوي الاعتكاف، فيدخل فيه ويذكر الله تعالى بقدر مانوى. ولا بأس للغريب ولصاحب الدار أن ينام في المسجد في الصحيح ى المذهب. والأحسن أن يتورع، فلا ينام، ١هـ". عالمگيرى: ٣٢١/٥.

د بعضې صحابو نه بعضې وخت په جمات كښې اوده كيدل ثابت دى. لكه چه بخارى شريف كښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما متعلق نقل دى: «إنه كان ينام وهو شاب أعزب لا أهل له فى مسجد النبى صلى الله عليه وسلم» زمونږ علماؤ دا په ضرورت باندې محمول كړى دى كذافى فيض البارى. فقط والله اعلم.

دارنگ: الجواب حامد اومصليا: مستقل د جمات نه كور جوړول او هلته كښې اوسيدل نه دى پكار دا مكروه او د جمات د احترام خلاف دى. ليكن كه په چا باندې د خوب غلبه وى او د هغه جمع پاتې كيږى او په جمات كښې د اوده كيدو سره د جمع د مونځ پابندى نصيب كيږى يا د تهجدو توفيق ملاويږى. يا د جمات حفاظت مقصود وى يا بل څه دينى ضرورت وى چه بغير د جمات د اوده كيدو نه نه حاصليږى نو د هغه د پاره اجازت هم دې. بعضې صحابه به هم د دينى ضرورت د پاره په جمات كښې اوده كيدل. فقط والله سبحانه اعلم.

دارنگ: الجواب حامداومصليا: كله چه بل ځائى موجود وى نو بيا په جمات كښې اوده كيدل او هغه هم روزمره اوده كيدل مكروه دى. ددې نه بچ كيدل پكاردى فقط والله اعلم.

دارنگ: الجواب حامد اومصليا: جمات د مونځ ځائى دې د اوده كيدو او د آرام كولو ځائى نه دې. كوم مسافر چه پرديسى وى يا څوك اعتكاف كونكي وى د هغه د پاره گنجائش شته. تبليغى جماعتونه عموماً پرديسى وى يا په جمات كښې د شپې پاتې كيدو سره په تسبيح او نوافل كښې اكثر مشغول وى. څه وخته پورې آرام هم كوى. دغه شان كه هغوى سره مقامى خلق هم شپه روڼه كړى نو په نيت د اعتكاف دې كوى. فقط والله اعلم

دارنگ: الجواب حامداومصليا: (جمات كښې كښ خورول او اوده كيدل د جمات د احترام خلاف دى اود نورو خلقو د پاره د توحش موجب دى. نن صبا په جمات كښې كښ اچول د جمات بې ادبى گڼرلې شى په داسې مسائلو كښې د عرف لحاظ كول پكاردى. فقط والله اعلم؟

دارنگ: الجواب حامداومصليا: نفلى اعتكاف بغير د رمضان نه هم كيدې شى اوداسې معتكف هم په جمات كښې قيام كول صحيح دى. فقط والله اعلم (فتاوى محموديه، كتاب الوقف، باب: آداب المسجد، مسجد ميں سونے او ر ٹھہر نے کا بيان: ٢٣١-٢٢٨/١٥، ادارة الفاروق، كراچى).

(١) أخرجه البخارى أيضا، فى فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم، باب: مناقب على بن أبى طالب، رقم الحديث: ٣٧٠٣، وفى الأدب، باب: التكنى بأبى تراب، رقم الحديث: ٦٢٠٤، وفى الاستئذان، باب: القائلة فى المسجد، رقم الحديث: ٦٢٨٠، وأخرجه مسلم فى صحيحه، فى فضائل الصحابة، باب: من فضائل.........

فَقَالَ «أَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ.» قَالَتْ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ شَيْءٌ، فَغَاضَبَنِي فَخَرَجَ فَلَمْ يَقِلْ عِنْدِي. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لإِنْسَانٍ «انْظُرْ أَيْنَ هُوَ». فَجَاءَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، هُوَ فِي الْمَسْجِدِ رَاقِدٌ، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ مُضْطَجِعٌ، قَدْ سَقَطَ رِدَاؤُهُ عَنْ شِقِّهِ، وَأَصَابَهُ تُرَابٌ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَمْسَحُهُ عَنْهُ وَيَقُولُ «قُمْ أَبَا تُرَابٍ، قُمْ أَبَا تُرَابٍ.

**د حديث ترجمه:** حضرت سهل بن سعد ﷺ بيان اوکړو چه يو ځل رسول الله ﷺ د حضرت فاطمه ﷺ کور ته تشريف راوړو نو په کور کښې ئې حضرت علي ﷺ اونه ليدلو. نو تپوس ئې اوکړو ستا د تره ځوئې چرته دې؟ حضرت فاطمه ﷺ جواب ورکړو چه زما او د هغه په مينځ کښې څه خبرې اترې ترخې شوې دي نو هغه ماته غصه شو او د کور نه بهر لاړو او زما سره هغه قيلوله هم اونه کړه.

رسول الله ﷺ يو سړی ته اووئيل اوګوره چه هغه چرته دې؟ (څه ساعت پس) هغه سړې راغلو خبر ئې ورکړو يا رسول الله ﷺ! هغه خو په جمات کښې اوده دې. نو حضور پاک (جمات ته) تشريف راوړو نو هغه (حضرت علي ﷺ) ملاست وو. څادر د هغه د اړخ نه اخوا شوې وو او په بدن باندې ئې خاورې لګيدلې وې. رسول الله ﷺ د هغه د بدن نه خاوره صفا کوله او فرمائيل به ئې پاسه ابو تراب پاسه ابو تراب.

**تراجم رجال:** د مذکوره حديث شريف په سند کښې ټول څلور راويان دي.

① قتيبه بن سعيد رحمه الله: دا ابو رجاء قتيبه بن سعيد بن جميل ثقفي رحمه الله دې. د دوی احوال کشف الباري، کتاب الإيمان، باب: إفشاء السلام من الإسلام لاندې تيرشوی دی. (۱)

② عبدالعزيز بن ابي حازم رحمه الله: دا ابو تمام عبد العزيز بن ابی حازم سلمه بن دينار المدنی دې. د لبنی اشجع آزاد کړې شوې غلام دې. دې چه د کومو استاذانو نه د حديث روايت کوی په هغوی کښې د ده پلار، زيد بن اسلم، علاء بن عبد الرحمن، سهيل بن ابی صالح، يزيد بن عبد الله بن الهاد، هشام بن عروه، موسی بن عقبه وغيره رحمهم الله شامل دی. او د دوی نه روايت کونکو کښې حميدی، ابو مصعب، علي بن حجر، عمرو الناقد، يعقوب الدورقی، يحيی بن اکثم وغيره رحمهم الله شامل دی.

علامه ذهبی رحمه الله د دوی باره کښې ليکی: كان إماما كبير الشأن. فلاس رحمه الله وائی چه ما ابن مهدی د دوی نه به يو هم حديث روايت کولو سره هم نه دې ليدلې. ابن ابی خيثمه رحمه الله وائی چه ما ابن معين رحمه الله اوريدلی چه ابن ابی حازم رحمه الله د خپل پلار نه روايت کولو کښې ثقه نه دې. علامه ذهبی رحمه الله په دې باندې رد کولو سره وائی چه نه دې خو د خپل پلار او د هغه نه

........ علی بن أبی طالب رضی الله عنه، رقم الحديث: ۲۴۰۹. وفی جامع الأصول، حرف الهمزة، الكتاب الثامن: فی الأسماء والكنى، الفصل الثانی: فيمن سماه النبی صلی الله عليه وسلم ابتداء، رقم الحديث: ۱۵۴، ۳۶۳/۱.

(۱) کشف الباري: ۱۸۹/۲.

علاوه دَ نورو نه په روايت کولو کښې حجت دې. ابن معين رحمه الله دَ دوی باره کښې وائی: صدوق. دَ ابوحاتم رحمه الله وينا ده چه دې دَ دراوردي نه زيات فقيه دې. امام ابن حنبل رحمه الله دَ دوی باره کښې فرمائی چه دې دَ حديث په طلب کښې زيات مشهور اومعروف نه وو. البته دا خبره ده چه دَ امام مالك رحمه الله نه پس مدينه منوره کښې دَ دوی نه څوك لوئی فقيه نه وو. دَ دوی پيدائش ۱۰۷ هجری کښې شوې وو. او وفات ئې په ۱۱۴ هجری کښې دَ جمعې په ورځ په مسجد نبوی کښې دَ سجدې په حالت کښې شوې دې.[١]

③ ابي حازم رحمه الله: دا ابو حازم سلمه بن دينار الأعرج الزاهد المدني رحمه الله دې. دَدوی احوال كشف الباري، كتاب الوضوء باب: غسل المرأة أباها الدم عن وجهه لاندې تيرشوی دی.[٢]

④ سهل بن سعد رحمه الله: دا ابو العباس ابن سعد الساعدي الأنصاری الخزرجی رحمه الله دې. دَدوی احوال كشف الباري، كتاب الوضوء باب: غسل المرأة أباها الدم عن وجهه لاندې تيرشوی دی.[٣]

دَ حديث شرح:

**قوله: عن سهل بن سعد، قال: جاء رسول الله صلى الله عليه وسلم بيت فاطمة، فلم يجد عليا في البيت، فقال: أين ابن عمك؟**

حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه بيان اوکړو چه يو ځل رسول الله ﷺ دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها کور ته تشريف راوړو نو په کور کښې ئې حضرت علی رضي الله عنه اونه موندلو. نوتپوس ئې اوکړو ستا دَ تره ځوئې چرته دې؟

**قوله: أين ابن عمك؟**: دَدې جملې نه دَ نبی کريم ﷺ مراد دَ حضرت علی رضي الله عنه باره کښې معلومات کول وو. حضرت علی رضي الله عنه په حقيقت کښې دَ نبی اکرم ﷺ دَ تره ځوئې وو. ليکن چه کله حضورپاك دَ فاطمه رضي الله عنها کور ته تشريف راوړې وو نوحضورپاك محسوس کړې وه چه دَ لور او خوم په مينځ کښې څه خبره شوې ده. څه دَ برداشت نه بهر معامله شوې ده. نو حضورپاك دَماحول دَنرمولو دَا پته اونه لګوله چه اې فاطمې ستا خاوند، ستاسختن چرته دې؟ يا دَ هغه نوم اخستو سره ئې پته اونه لګوله چه اې فاطمې علی چرته دې؟ بلکه حضورپاك دغه خپلوی او رشته داری وربادولو سره سوال اوکړو کوم چه دَ هغه دواړو په مينځ کښې په نسلی اعتبارسره موجود وه چه اې فاطمه ستا هغه دَ تره ځوئې چرته لاړو؟[٤]

---

[١] الطبقات الكبرى لابن سعد: ٤٢٤/٥، الأعلام للزركالي: ١٨/٤، ميزان الاعتدال: ٦٢٦/٢، تاريخ اسلام للذهبي: ٩١٣/٤، سير أعلام النبلاء: ٣٦٣/٨، تهذيب الهذيب: ٣٣٤/٦.

[٢] كشف الباري، كتاب الوضوء باب: غسل المرأة أباها الدم عن وجهه

[٣] كشف الباري، كتاب الوضوء باب: غسل المرأة أباها الدم عن وجهه

[٤] فتح الباري: ٦٩٣/١ عمدة القاري: ٢٩٤/٤-٢٩٣. حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه مجازاً حضورپاك "ابن عمک" اووئيل يا دا چه دَدې مضاف محذوف دې. په اصل کښې "أين ابن عم أبيک" ځکه چه حضرت علی رضي الله عنه خو په اصل کښې دَ نبی کريم ﷺ دَ تره ابوطالب ځوئې دې. دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها دَ تره ځوئې نه دې. چونکه حضورپاك ته دَ هغوی په مينځ کښې دَ خفګان اندازه شوې وه په دې......

**قوله:** كان بيني وبينه شيء فغاضبني فخرج: حضرت فاطمه رضي الله عنها جواب ورکړو چه زما او دَ هغه په مینځ کښې څه خبره اتره شوې ده. نو هغه ماته غصه شو او بهر تلې دې.

**دَ ناخوښئ خبره دَ دواړو طرفونه شوې وه:**

**قوله:** فغاضبني: دا دَ باب مفاعله نه دې دَ کوم خاصه چه دَ اشتراك معنې بيانول دی. چنانچه مطلب به دا شی چه حضرت فاطمه رضي الله عنها وفرمائيل اې بابا جان! زما او دَ هغه په مینځ کښې په څه خبره باندې تکرار راغې هغه ماته غصه شو او زه هغه ته غصه شوم نو دَ خبرو تريخوالی دَ وجې هغه زمانه خفه شوې او دَ کوره تلې دې.(١)

**دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها صفا خبره:** سبحان الله دَ نبی اکرم ﷺ دَ زړه ټکړه دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها څومره رښتيا وئيل، صفا خبره او دَ انصاف بيان مخې ته راغلو حالانکه په عام توګه په داسې موقعو باندې دَ ښځو دا مزاج مخې ته راځی چه خپله خطا ورته مخې ته نه راځی او مقابل يعنی دَ خپل خاوند ټول قصور بيانوی چه هغه دا کړی، هغه دا کړی وغيره وغيره. ليکن حضرت فاطمه رضي الله عنها دَ دغه خفګان راتلو باوجود صرف دا اونه فرمائيل چه هغه ما ته غصه شوې دې، خفه شوې دې اوزه نی او رټلم او لا بيا خفه هم لاړو بلکه صفا ئی عرض اوکړو چه اې باباجان! هغه هم غصه شو او زه هم غصه شوم. سبحان الله.

**لوښی خو کړنګيږی:** اودا څه داسې خبره هم نه ده چه په کورنئ کښې دَ ښځې اوخاوند په مینځ کښې څه نا څه ترخه خبره يا وړه جګړه وغيره نه وی، انسانان دی فطرت او مزاج مختلف وی او بيا دَ بهر دَ حالاتو هم په دغه معاملاتو کښې لوئی عمل دخل وی. نو دا خبرې راتلل څه دومره لويه خبره نه وی. څکه چه يو ځائی کښې کله لوښی پراته وی نو هغه په خپل مینځ کښې کړنګيږی هم او شور هم پيدا کيږی.

ليکن دَ کتلو او غور کولو خبره داده چه په داسې حالاتو کښې هم دَ انصاف معامله دَ لاس نه خطا نه شی اودغه خفګان په سر باندې سور نه کړی شی بلکه دَ غصې يخيدو نه پس صلح هم کول پکاردی. اودَ مشرانو هم ذمه واری جوړيږی چه په طرفينو کښې دَ محبت اوشفقت، حکمت او بصيرت سره صلحه اوکړی. لکه چه دلته دَ نبی اکرم نمونه زمونږ مخې ته راغله.

**قوله:** فلم يقل عندي: او زما کور کښې هغه قيلوله هم اونه کړه.

**قوله:** فلم يقل: دا دَ باب ضرب يضرب (قال يقيل) نه دَ نفي جحد بلم صيغه ده دَ کوم معنې چه قيلوله کول دی يعنی دَ غرمې وخت کښې اوده کيدل.(٢) خو دَ اصيلی او ابن عساکر دَ روايت مطابق داصيغه دَ ياء په ضمې او قاف په کسرې سره ده.(٣)

---

(.........وجه حضور پاك دَ استعطاف په اراده داتعبير اختيار کړو او دَ هغه دواړو نسبی نيزديوالي ئی ذکر کړو. (سراج القاري: ٣/٣٤). حضرت علامه شبيراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه په دې تعبير کښې اشاره ده چه ستاسو دواړو په مينځ کښې، دَ ښځې او خاوند نه علاوه بله رشته هم ده لهٰذا په مينه اومحبت سره اوسيدل پکاردی. (فضل الباري: ٣/١٥٢).

١) عمدة القاري: ٤/٢٩٤.

٢) شرح الكرماني: ٤/١٠١ فتح الباري: ١/٦٩٣ عمدة القاري: ٤/٢٩٤ إرشادالساري: ١/٤٣٧.

٣) إرشادالساري: ١/٤٣٧.

**د قيلوله حكم:** د غرمې خوراك كولو نه پس لږ شان ارام كولو ته قيلوله وائي. ددې دپاره د خوب راتلل ضروري نه دى، صرف استراحت (آرام) باندې هم د قيلولې اطلاق كيږى.[1] ليكن كه د چا اراده د اوده كيدو هم وى نو د اوده كيدو په وخت دعا وغيره وئيلو سره په اودس كنبې اوده كيدل پكار دى. يعنى د شپې د وخت چه كوم سنت دى هغه د شپې اوده كيدو سره خاص نه دى بلكه د دغه سنتو تعلق صرف د اوده كيدو سره دې كه د ورځې اوده كيدل وى او كه د شپې، چنانچه د ورځې د اوده كيدو په وخت هم ددې اهتمام كول پكار دى. قيلوله كول سنت عمل دې په دې سره د شپې په عبادت كنبې امداد ملاويږى.[2] په يو حديث شريف كنبې دى چه قيلوله كوئى ځكه چه شيطان قيلوله نه كوى.[3]

**قوله:** فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لإنسان: "انظر أين هو"، فجاء فقال: يا رسول الله! هو في المسجد راقد:
رسول الله ﷺ يو سړى ته اوفرمائيل اوګوره چه هغه چرته دې؟ (لږ ساعت پس) هغه سړې راغلو خبر ئې وركړو يارسول الله! هغه په جمات كنبې اوده دې.

**قوله:** لإنسان: د طبرانى په روايت كنبې دى: "فأمر إنسانا معه".[4]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د دغه انسان نه مراد به هم سهل بن سعد رضي الله عنه وى ځكه چه په

---

[1]) قال الأزهرى: القيلولة والمقيلُ عندالعرب الاستراحة نصف النهار، وإن لم يكن مع ذلك يوم، بدليل قوله: ﴿وَأَحْسَنُ مَقِيلًا﴾ [الفرقان:٢٤] والجنةُ لا نوم فيها. (مرقاة المفاتيح، كتاب الجمعة، باب: الخطبة والصلاة، رقم الحديث: ١٤٠٢، ١٠٤/٣).

[2]) عن ابن عباس رضى الله عنهما عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "استعينوا بطعام السحر على صيام النهار والقيلولة على قيام الليل". (سنن ابن ماجة، كتاب الصيام، باب: ماجاء فى السحور، رقم الحديث: ١٦٩٣). عمل السلف والخلف على أن القيلولة مطلوبة لإعانتها على قيام الليل، قال حجة الإسلام: وإنما تطلب القيلولة لمن يقوم الليل ويسهر فى الخير، فإن فيها معونة على التهجد كما أن فى السحور معونة على صيام النهار، فالقيلولة من غير قيام الليل كالسحور من غير صيام النهار. (فيض القدير، حرف القاف، رقم الحديث: ٦١٦٨، ٥٣١/٤).

[3]) عن أنس بن مالک رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم: قيلوا، فإن الشيطان لا يقيل. (المعجم الأوسط، من اسمه أحمد، رقم الحديث: ٢٨، ١٣/١) عن مجاهد قال: بلغ عمر أن عاملاً له لم يقل، فكتب إليه عمر رضى الله عنه: قِل، فإنى حُدِّثتُ أن الشيطان لا يقيل. قال مجاهد: إن الشياطين لا يقيلون. (المصنف لابن أبى شيبة كتاب الأدب، باب: مايذكر فى القائلة نصف النهار، رقم الحديث: ٢٦٦٧٦، ٣٣٩/٥).

[4]) حدثنا الحسين بن إسحاق التسترى، ثنا يحيى الحمانى، ثنا سليمان بن بلال، عن أبى حازم، عن سهل بن سعد قال: سمعته يقول: إن كانت لأحب أسماء على رضى الله عنه إليه: أبوتراب، وإن كان ليفرح أن يدعوه بها، وما سماه أباتراب إلا رسول الله صلى الله عليه وسلم، غاضب يوما فاطمة رضى الله عنها، فخرج فاضطجع إلى الجدار، فجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم يطلبه، فلم يجده فى البيت، فقال لفاطمة: أين ابن عمک؟، قالت: خرج آنفا مغضبا، فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم إنسانا معه يطلبه، فقال: مضطجع فى الجدار، وقد زال رداؤه عن ظهره، وامتلأ ترابا، فجعل رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسح التراب عن ظهره، ويقول: اجلس يا أباتراب. (المعجم الكبير للطبرانى، سليمان بن بلال عن أبى حازم، رقم الحديث: ٥٨٠٨، ١٤٩/٦).

روايت کښې تردغه وخته د بل سړي د موجودګۍ ذکر نشته دې.([1])

**قوله: هوفي المسجد راقد:** په دې روايت کښې په جمات کښې د اوده کيدو ذکر دې. خو اوس د المعجم الکبير للطبراني په روايت کښې تير شو چه هغه د ديوال په سوري کښې ملاست وو.([2]) په دواړو کښې تطبيق ممکن دې چه د جمات د ديوال په سوري کښې اوده وو.

**قوله: سول الله صلى الله عليه وسلم وهو مضطجع، قد سقط رداؤه عن شقه، وأصابه تراب:**

نو رسول الله ﷺ جمات ته تشريف راوړو نو هغه (حضرت علي رضي الله عنه) پروت وو، څادر د هغه د اړخ نه اخوا شوې وو او په بدن باندې ئې خاورې لګيدلې وې.

**قوله: وهو مضطجع:** دا جمله اسميه ده چه حال به واقع کيږي. د جاء د فاعل رسول الله نه، يعنې کله چه رسول الله ﷺ جمات ته اورسيدو نو حضرت علي رضي الله عنه ئې په خپله ډډه باندې اوده اوليدلو. تقديري عبارت به داسې شي: "فجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى المسجد، ورآه وهو مضطجع".([3])

**قوله: قد سقط رداؤه:** دا جمله هم حاليه ده.([4])

**قوله: عن شقه:** نه مراد عن جانبه دې.([5])

**قوله: فجعل رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسحه عنه ويقول: "قم أباتراب، قم أباتراب:**

رسول الله ﷺ د هغه د بدن نه خاوره صفا کوله او فرمائيل ئې پاسه ابوتراب، پاسه ابوتراب.

**قوله: أباتراب:** دې نه مخکښې حرف نداء محذوف دې اصل کښې وو قم، يا أباتراب.([6])

**د حضرت علي رضي الله عنه کنيت د ابوتراب د تسميه وجه:** دا ړومبې موقعه وه چه نبي کريم ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ابوتراب وئيلو سره مخاطب کړو، دا د شفقت په وجه وو. دې نه مراد د خاورو پلار نه دې بلکه اې د خاورې والا مراد دې. ځکه چه هغه وخت د حضرت علي رضي الله عنه په اړخ باندې د کچه زمکې خاوره لګيدلې وه.

د حضرت علي رضي الله عنه دا کنيت ډير خوښ وو ځکه چه دا د هغه محبوب نبي عليه السلام د هغه د پاره خوښ کړې وو. حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه دا بيان کړې دې لکه چه څنګه د طبراني په روايت کښې دي: ((عن سهل بن سعد قال: سمعته يقول: إن كانت لأحب أسماء علي رضي الله عنه إليه: أبوتراب، وإن كان ليفرح أن يدعوه بها)).([7])

---

[1]) فتح الباري: ٦٩٣/١.
[2]) (المعجم الكبير للطبراني، سليمان بن بلال عن أبي حازم، رقم الحديث: ٥٨٠٨، ٦/١٤٩).
[3]) عمدة القاري: ٤/٢٩٤.
[4]) أيضا.
[5]) عمدة القاري: ٢٩٤/٤.
[6]) شرح الكرماني: ١٠١/٤ عمدة القاري: ٢٩٤/٤.
[7]) (المعجم الكبير للطبراني، سليمان بن بلال عن أبي حازم، رقم الحديث: ٥٨٠٨، ٦/١٤٩).

**دَ حدیث مبارک دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث شریف دَترجمة الباب سره مطابقت دَ حدیث په دې جملې "وهو راقد في المسجد" کښې دی.[1] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَدې باب رومبې حدیث دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په جمات کښې اوده کیدو والا روایت دَداسې سړی په جمات کښې په اوده کیدو باندې دلالت کوی دَ چا چه بال بچ نه وی، هغه ناواده کړې وی. او دا حدیث په کوم کښې چه دَ حضرت علی رضی الله عنه په جمات کښې دَ اوده کیدو ذکر دې په دې کښې تعمیم دې ځکه چه دې خو واده کړې وو او دَ بال بچ والا وو. نودَ دواړو قسم کسانو په جمات کښې اوده کیدل ثابت شو. هسې په دواړو احادیثو کښې لږ فرق کول هم ممکن دی. هغه داسې چه دَ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما سملاستل باقاعده اوده کیدل وو او دَ حضرت علی رضی الله عنه سملاستل خو اوده کیدل نه وو بلکه صرف قیلوله وه چه دَ پاره دَ هغې خوب لا زم نه دې. که وی نو هم او که نه وی نو هم دواړو صورتونو ته به قیلوله وئیلې شی.[2]

**دَ حدیث مبارک نه مستفاد امور و اداب:** دَ مذکوره حدیث شریف نه چه کوم امور او آداب وغیره مستنبط کیږی دَ هغې نه څه دلته نقل کولې شی:

① په جمات کښې دَ قیلولې په غرض سره دَ سملاستلو جواز هم معلوم شو.[3]

② کوم سړې چه په غصه کښې وی هغه سره داسې خبرې اترې کول په کوم سره چه هغه نور په غصه کښې نه راځی بلکه په هغه خبرو اترو سره انس حاصل کړی دا جائز دی.[4]

③ دَ اولاد نه علاوه دَ څه بل نوم طرف ته نسبت کولو سره کنیت کیخودل هم جائز دی.[5]

④ یو سړې په داسې کنیت سره رابلل په کوم سره چه هغه خفه کیږی نه، صحیح دی.[6]

⑤ پلار دَ خپلې لور کور ته دَ هغې دَ خاوند دَ اجازت نه بغیر هم تلې شی. په دې شرط چه خوم به نې په دې تګ راتګ باندې راضی وی.[7]

⑥ دَ سخر دَ خپل خوم خاطر مدارات کول او دَ هغه دَ زړه دَ ساتلو دَ پاره داسې خبره کول په کوم سره چه دَ هغه غصه یخه شی، بهتر دی.[8]

⑦ غیر مسافر او غیر فقیر دَ پاره هم په جمات کښې دَ اوده کیدلو جواز معلومیږی.[9]

⑧ دَ خپلولۍ الفاظ په خبرو اترو کښې ذکر کولو سره دَ چا مانوس کولو هم علم اوشو.[10]

---

[1]) عمدة القاری: ۲۹۳/۴.
[2]) فتح الباری: ۶۹۴/۱-۶۹۳.
[3]) التوضیح لابن الملقن: ۵۱۷/۵ فتح الباری: ۶۹۴/۱ عمدة القاری: ۲۹۳/۴.
[4]) فتح الباری: ۶۹۴/۱ عمدة القاری: ۲۹۳/۴.
[5]) شرح الکرمانی: ۱۰۱/۴ التوضیح لابن الملقن: ۵۱۷/۵ فتح الباری: ۶۹۴/۱ عمدة القاری: ۲۹۳/۴.
[6]) شرح الکرمانی: ۱۰۱/۴ التوضیح لابن الملقن: ۵۱۷/۵ فتح الباری: ۶۹۴/۱.
[7]) شرح الکرمانی: ۱۰۱/۴ فتح الباری: ۶۹۴/۱ عمدة القاری: ۲۹۳/۴.
[8]) شرح الکرمانی: ۱۰۱/۴ التوضیح لابن الملقن: ۵۱۷/۵ فتح الباری: ۶۹۴/۱ عمدة القاری: ۲۹۳/۴.
[9]) شرح الکرمانی: ۱۰۱/۴ التوضیح لابن الملقن: ۵۱۷/۵ عمدة القاری: ۲۹۳/۴
[10]) عمدة القاری: ۲۹۳/۴.

⑨ دَدي حديث شريف نه دَ حضرت علي رضي الله عنه فضيلت او منقبت هم په ښه شان سره ښكاره كيږي.([1]).

⑩ دَ كوم سړي ستر چه په لباس كښي پټ وي، هغه لباس اغوستونكي دي اګرچه دَ ستر نه علاوه دَبعضي اندام نه كيږي اخوا شوي هم وي.([2])

حديث باب (دريم حديث) [حديث نمبر ٤٣١]

- ٤٣٢ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ ([3]) رَأَيْتُ سَبْعِينَ مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ، مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ عَلَيْهِ رِدَاءٌ، إِمَّا إِزَارٌ وَإِمَّا كِسَاءٌ، قَدْ رَبَطُوا فِي أَعْنَاقِهِمْ، فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ نِصْفَ السَّاقَيْنِ، وَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ الْكَعْبَيْنِ، فَيَجْمَعُهُ بِيَدِهِ، كَرَاهِيَةَ أَنْ تُرَى عَوْرَتُهُ.

**د حديث ترجمه:** حضرت ابو هريره رضي الله عنه او فرمائيل چه ما د اصحاب صفه نه اويا كسان په داسې حال كښې ليدلي دي چه هغوى كښي چا سره (دَ پاسه اچولو دَپاره) څادر نه وو. يا هغوى سره صرف لنګ وو يا (دَ بدن پټولو دَپاره) يوه كمبله، كومه چه به هغوى دَ سټ نه (لاندې) تړلي وه، او دا به په هغوى كښې دَ چا دَ ګيټو پورې رسيدله او دَ چا دَ پنډو پورې رسيدله (دَ ركوع او سجدې په وخت كښې) به ئې هغه په لاس نيوله چه چرته دَ هغوى شرمګاه ښكاره نه شي.

**تراجم رجال:** دَدې حديث په سند كښې ټول پنځه راويان دي:

① يوسف بن عيسى رحمه الله: دا يوسف بن عيسى رحمه الله دي. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الغسل، باب: توضأ في الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد غسل مواضع الوضوء مرة أخرى لاندې تير شوى دى.([4])

② ابن فضيل رحمه الله: دا ابو عبد الرحمن محمد بن فضيل بن غزوان كوفي رحمه الله دي. دَ دوى احوال كشف البارى، كتاب الإيمان، باب: صوم رمضان احتسابا من الإيمان لاندې تير شوى دى.([5])

③ أبيه (فضيل بن غزوان رحمه الله): دا ابو محمد فضيل بن غزوان بن جرير الضبي الكوفي رحمه الله دي. دا دَ ابو الفضل الكوفي پلار دى. دې چه دَ كومو مشائخو او استاذانو نه دَ حديث روايت كوي په هغوى كښې ابو حازم الأشجعي، ابو زرعه البجلي، عكرمه، سالم بن عبد الله بن عمر، زبيد اليامي، طلحه بن عبيد الله بن كريز، عاصم بن بهدله، عبد الله بن واقد بن

---

[1]) التوضيح لابن الملقن: ٥١٩/٥، عمدة القاري: ٢٩٣/٤.

[2]) شرح الكرماني: ١٠١/٤ التوضيح لابن الملقن: ٥١٩/٥.

[3]) هذا الحديث من أفراد البخاري، وفي جامع الأصول، حرف الزاى، الكتاب الثاني: في الزهد والفقر، الفصل الثاني: فيما كان النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه عليه من الفقر، رقم الحديث: ٢٨١٣، ٧٠١/٤.

[4]) كشف الباري، كتاب الغسل، باب: توضأ في الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد غسل مواضع الوضوء مرة أخرى.

[5]) كشف الباري: ٣١٨/٢.

عبدالله بن عم، عبدالرحمن بن ابی نعم البجلی وغیرهم رحمهم الله شامل دی.
اودَ دوی نه روایت کونکوکښې دَ هغوی څوئی محمد بن فضیل، جریر بن عبدالحمید، عبدالله بن مبارك، اسحاق الا زرق، ابن نمیر، یحیی بن سعید القطان، حفص بن غیاث، ابواسامه حماد بن اسامه، سعید بن محمد الوراق، سفیان ثوری، سیف بن عمر التمیمی، عبدالله بن داؤد الخریبی، عبدالرحمن بن محمد المحاربی، عیسی بن یونس، مروان بن معاویه الفراری وغیرهم رحمهم الله شامل دی.
امام احمدبن حنبل رحمه الله وغیره دَدوی توثیق کړی دی. یحیی بن معین رحمه الله دَ دوی باره کښې وائی: ثقة. ابن حبان رحمه الله دَ دوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې. دَ دوی وفات ۱۴۰ هجری نه ۱۵۰ هجری په مینځ کښې یو کال کښې شوې دې.[1]

④ ابی حازم رحمه الله: دا ابوحازم سلمان الاشجعی الکوفی عزة الاشجعیه رحمه الله دی. واضحه دې وی چه په دې سند کښې کوم حازم دې دَدې نه مراد ابوحازم سلمان الاشجعی رحمه الله دې. نه چه ابوحازم سلمة بن دینار رحمه الله. دَدې تصریح علامه ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله وغیره کړې ده.[2]

فائده: دَ ابوحازم کنیت والا یو بل راوی سلمة بن دینار الاعرج رحمه الله دې. په دې دواړو راویانو کښې اشتباه راځی ځکه چه په کنیتونو کښې اشتراك دې. دواړه تابعیان دی. دواړه دَ صحابه کرامو نه روایت کوی اودواړه ثقه هم دی. البته په دواړو کښې دا فرق دې چه دَ ابوحازم سلمان الاشجعی انتقال دَ اولې صدئی په اختتام باندې یعنی دَ حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په دور خلافت کښې شوی دی اودَ ابوحازم سلمة بن دینار انتقال ۱۳۵ھ کښې شوې دې. دویم فرق دادې چه دَ ابوحازم سلمان الاشجعی روایتونه په صحیحین کښې صرف دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه دی او ابوحازم سلمة بن دینار سوا دَحضرت سهل بن سعد رضی الله عنه دَ بل یو صحابی نه روایت نه دې اخستې. والله اعلم.[3]
دَغه دواړو حضراتو دَ پیژندګلو یو طریقه داهم ده چه په کوم سند کښې دَ ابوحازم رحمه الله شیخ، حضرت ابوهریره رضی الله عنه وی نودَ هغه ابوحازم نه مراد سلمان الاشجعی رحمه الله دې. اوکه چرې دَ هغه شیخ، حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه وی نودَ هغه ابوحازم نه مراد سلمه بن دینار اعرج کوفی رحمه الله دې.[4] تفصیل کشف الباری، کتاب العلم، باب: هل یجعل للنساء یوم علی حدة فی العلم دَ لاندې اوګورئی.[5]

---

[1]) تهذیب الکمال: ۳۰۱/۲۳. سیر أعلام النبلاء: ۲۰۳/۶. التاریخ الکبیر لإمام البخاری: ۱۲۲/۷. الجرح والتعدیل: ۷٤/۷. تهذیب التهذیب: ۲۹۷/۷. تاریخ الإسلام: ۹۵۱/۳. الثقات لابن حبان: ۳۱۶/۷.
[2]) فتح الباری: ٦۹٤/۱. عمدة القاری: ۲۹٤/٤.
[3]) عمدة القاری: ۱۳۵/۲.
[4]) إرشادالساری: ٤۳۸/۱.
[5]) کشف الباری: ۱۰۱/٤.

⑤ **ابي هريرة رضي الله عنه**: دامشهور صحابئ رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. دَ دوی احوال كشف الباري، كتاب الإيمان، باب: أمور الإيمان لاندې تيرشوی دی.[1]

**دَ حديث شرح**: عن أبي هريرة، قال: لقد رأيت سبعين من أصحاب الصفة:
حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل چه ما دَ اصحاب صفه نه اويا كسان ليدلی دی.

**قوله**: لقد رأيت: دَ صحيح بخاری په نورونسخوكښې دَ "لقد" نه بغيرصرف دَ "رأيت" لفظ دې.[2]

**قوله**: سبعين من أصحاب الصفة: دا اويا اصحاب رسول ﷺ دَ هغه اوياؤ صحابه كرامو نه علاوه دی كوم چه په دهوكې سره دَ بير معونه په مقام باندې شهيدان كړې شوې وو. ځكه چه هغوی خود ابوهريره رضي الله عنه دَ اسلام قبلولو نه مخكښې شهيدان كړې شوې وو.[3]

**دَ اصحاب صفه تعداد**: دَ اصحاب صفه دَ تعداد باره كښې اختلاف دې. دَدې وجه داده چه داخلق به دَ علم زده كولو دَ پاره راتلل او په صفه كښې به ئې قيام فرمائيلو بيا به تلل. دَدې په وجه به دَ هغوی تعداد زياتيدو اوكميدو. كله كله خو به دَ هغوی تعداد دوو سوو پورې رسيدلو او په عام توګه به اوياؤ پورې دَ هغوی تعداد وو.

**دَ مدارسو او خانقاهونو اصل**: هم دغه صفه دَ مدرسې والو او خانقاه والو اصل دې. دَمدارسو اصل خو په دې وجه دې چه خلق به دَ علم دَ زدكړې دَپاره راتلل. اودَ خانقاه اصل په دې وجه دې چه دَدغه حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم اصل مقصد دَ حضورپاك نه روحانی فيض حاصلول وو. اودا اشكال دلته نه راځی چه بعضې علماؤ مدارس بدعت حسنه شمير كړی دی. ځكه چه دَ مدارسو خاص هيئت، دَ مدرسينو كيدل يا دَ ملازمينو كيدل، دَ وختونو پابندی وغيره دا هر څه هلته نه وو نولكه چه هيئت خاصه حادث دې. او اصل تعليم او متعلمين خودَ حضورپاك دَ زمانې نه دی. هم دغه شان دَ خانقاه حال دې چه دا هيئت خاصه نه وو.[4]

**قوله**: ما منهم رجل عليه رداء: چه په هغوی كښې چا سره هم (دَ پاسه دَ اچولو) څادر نه وو.

**قوله**: رداء: دَ راء په كسرې سره هغه څادر په كوم سره چه دَ بدن پورتنې حصه پټولې شی.[5]

---

[1] كشف الباري: ١/٦٥٩.
[2] إرشادالساري: ١/٤٣٨.
[3] عمدة القاري: ٤/٢٩٤. إرشادالساري: ١/٤٣٨.
[4] الكنزالتواري: ٤/١٥٦ سراج القاري: ٣/٣٥.
[5] فتح الباري: ١/٦٩٤ عمدة القاري: ٤/٢٩٤ إرشادالساري: ١/٤٣٨. علامه سيد فخرالدين احمد صاحب رحمه الله فرمائی چه يوه ترجمه خودادہ چه دَ بدن دَ پورتنې حصې دَ ستر دَپاره هيڅ څه مستقل كپړا نه وه بلكه يوه كمبله به وه. كومه چه به هغوی په ستې كښې غوټه وركولوسره تړله او دَ ټول بدن دَ ستر دَپاره به ئې استعمالوله. او يوه ترجمه شيخ الاسلام دهلوی رحمه الله كړې ده: "نبود از ايشان مردے كه بروے چادرے باشد بالائے ازار". (شيخ الاسلام، ١/٤١١)، په هغوی كښې يو سړې هم داسې نه وو چه هغه سره دَ لنګ سره دَ پاس اچولو دَ پاره څادر وی. دا ترجمه زياته صفا ده چه چا سره هم دَ بدن دَ دواړو حصو دَ پاره جدا جدا لباس نه وو. (ايضاح البخاري: ٣/١٩٤).

**قوله:** إما إزار وإما كساء، قد ربطوا في أعناقهم: يا دَ هغوی سره لنگ وو یا «دَ بدن دَ پټولو دَپاره» يوه کمبله، کومه چه هغوی دَ سټ نه «لاندې پورې» ترلې وه.

**قوله:** إما إزار: مطلب دا دې چه صرف ازار يعنی لنگ به وو دَ پورته حصې دَ پاره څادر وغيره نه وو. [1]

**قوله:** إما كساء: مطلب دا چه صرف څادر يا کمبل وغيره به وه لنگ او ازار به نه وو. [2]

**قوله:** قد ربطوا: دَدې فعل مفعول ضمير محذوف دې کوم چه "الكساء" طرف ته راگرځي. دا فعل جمع ځکه راوړلې شو چه "الرجل" جنس دې چه دَ واحد او جمع دواړو دَپاره استعماليږي. لهذا دَ جمع په اعتبار سره ئې اوويل: قد ربطوا الأكسية. [3]

**قوله:** فمنها ما يبلغ نصف الساقين، ومنها ما يبلغ الكعبين، فيجمعه بيده، كراهية أن ترى عورته:
اودا به په هغوی کښې دَ چا دَ گیټو پورې رسیدلو اودَ چا به دَ پنډو پورې رسیدلو «دَ رکوع سجدې په وخت به ئې» هغه په لاس باندې نیولو چه چرته دَ هغوی شرمگاه ښکاره نه شي.

**قوله:** فمنها: کښې دَ هاء ضمير مرجع "الأكسية" دې. جمع په دې اعتبار سره چه "الكساء" پخپله اسم جنس دې دَ کوم اطلاق چه په واحد او جمع هرو دوؤ باندې کيږي. [4]

**قوله:** فيجمعه: أي: الواحد منهم، يعنی په دغه فقيرانو صحابه کرامو کښې دَ چا چه به دغه پورته ذکر شوې حالت وو، هغه به په خپلو لاسونو دغه څادر راغونډولو. [5]

**قوله:** بيده: په دې مقام باندې دَ اصيلي په نسخه کښې څه اضافه ده او هغه دا ده: "حال كونهم في الصلاة" يعنی دَ هغوی په داسې شان سره په خپلو لاسونو خپل څادر راغونډول به په دې وجه وو چه چرته دَ څادر کولاویدو سره عورت راښکاره نه شي. [6]

**دَ حديث مبارک دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ مذکوره حديث شريف دَ ترجمة الباب سره مطابقت دَ حديث دَدې لفظ "اصحاب صفه" په وجه دې. هغه داسې چه کله دَ دغه صحابه کرامو ﷺ استوگنه او وخت تيرول هم په دغه صفه کښې وو چه دَ شرعی جمات حصه وه نو يقيناً دَ هغوی شپه تيرول به هم هلته وو او هم دغه خبره دَ ترجمة الباب ده.

خلاصه دا چه په دې باب کښې ذکر شوی دواړه تعليقاتو او دريواړو احاديثو نه دا ثابتيږي چه دَ سړو په جمات کښې اوده کيدل جائز دی. ليکن په دې باندې ځان په ښه شان سره پوهه

[1] فتح الباري: ۶۹۴/۱ عمدة القاري: ۲۹۵/۴ إرشاد الساري: ۴۳۸/۱.
[2] فتح الباري: ۶۹۴/۱ عمدة القاري: ۲۹۴/۴ إرشاد الساري: ۴۳۸/۱.
[3] فتح الباري: ۶۹۴/۱ عمدة القاري: ۲۹۴/۴ إرشاد الساري: ۴۳۸/۱.
[4] فتح الباري: ۶۹۴/۱ عمدة القاري: ۲۹۴/۴ إرشاد الساري: ۴۳۸/۱.
[5] فتح الباري: ۶۹۴/۱ عمدة القاري: ۲۹۴/۴ إرشاد الساري: ۴۳۸/۱.
[6] فتح الباري: ۶۹۴/۱ عمدة القاري: ۲۹۴/۴ إرشاد الساري: ۴۳۸/۱.

کول پکاردی چه په دې باب سره د امام بخاری رحمه الله مقصود ترغيب ورکول نه دی چه په جمات کښې اوده کيږئی بلکه مقصود ئی دادې چه د اوده کيدو دا اجازت صرف د ضرورت په وخت دې ځکه چه د جماتونو اصلی مقصد عبادت دې.

## ۲۶- بَابٌ: اَلصَّلَاةِ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ

دا باب د سفر نه په واپسئ باندې د مونځ کولو په بيان کښې دې.

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې ترجمة الباب نه مقصود د دې امر بيان دې چه کله انسان د سفر نه واپس راشی نو مستحب دادی چه کورته د تلو نه مخکښې جمات ته لاړ شي او دوه رکعته نفل د شکرانې په توګه باندې اداکړی او د دې نه پس کورته لاړ شی. هم د دې استحباب بيانولو په غرض باندې دا باب قائم کړې شوې دې. په دې موقع باندې اداکيدونکی مونځ د تحية القدوم من السفر په نوم سره پيژندلې شی.

علامه عينی رحمه الله فرمائی چه دا ابواب کوم چه شروع دی دا اکثر هم د جمات سره متعلق دی. لهذا د ابوابو په خپل مينځ کښې مناسبت هم يو دې يعنی جمات سره د تعلق. لهذا د دې مناسباتو په لټون کښې دې پسې د لګيدلو هيڅ ضرورت نشته دې.(۱)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه دې ته تحية القدوم من السفر وائی. دا د انمو په نيز هغه وخت دی چه کله انسان د سفر نه واپس راشی نو اول دې جمات ته لاړ شی دوه رکعته تحية السفر دې اوکړی دې د پاره چه شروع د مبارک مقام نه اوشی او برکت حاصل شی او په دې وجه هم چه خلق په عام توګه په جماتونو کښې راجمع کيږی نو هغوی سره ملاقات هم کيږی.(۲)

**تعليق:** وَقَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلَّى فِيهِ. [ر: ۴۱۵۶]

**د تعليق ترجمه:** حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه اوفرمائيل چه نبی کريم ﷺ به کله د سفر نه واپس تشريف راوړو نو د تللو نه مخکښې به ئی جمات ته تشريف اوړلو او هلته به ئی (دوه رکعته) مونځ اداکولو.

---

(۱) أي: هذا باب في بيان الصلاة إذا قدم الرجل من سفر، وغالب الأبواب في هذا الموضع فيما يتعلق بالمساجد فلا يحتاج إلى زيادة طلب وجوه المناسبات، فيها.(عمدة القاري: ۲۹۵/۴).

(۲) د تقرير بخاری شريف: ۱۶۵/۲-۱۶۴. تقرير بخاری شريف په حاشيه کښې د تقرير مولوی احسان په حواله سره دا تفصيل موجود دې: د آداب سفر نه دادی چه کله واپس راشی نو اول دې جمات ته لاړ شی تحية المسجد دې اوکړی او څه وخت دې هلته کينی چه دوستانو وغيره سره ملاويدو کښې څه تکليف نه وی. صرف مونځ کول خود هر يو د پاره مندوب دی او د مانځه نه پس کيناستل صرف د هغه چا د پاره دی د چا چه دوستان وغيره زيات وی. د دې باب په حديث کښې د قدوم من السفر ذکر نشته دې. ليکن د امام بخاری رحمه الله په اصولو کښې استدلال بالعموم هم دې. او هم دا حديث به وړاندې شی په کوم کښې چه د سفر ذکر دې. (حاشيه تقرير بخاری شريف: ۱۶۵/۲).

**د تعلیق تخریج:** دا تعلیق د سند سره پخپله امام بخاری رحمه الله په صحیح البخاری کښې هم د غزوه تبوک په بیان کښې ذکر کړې دې. په کوم کښې چه د حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه او د هغه دوؤ نورو ملګرو رضی الله عنهم په غزوه تبوک کښې د نه شریکید و قصه بیان کړې شوې ده. هم په دې کښې چه چرته حضرت کعب رضی الله عنه د خپلې توبې تفصیلي قصه نقل کړه هم هلته هغوی دا ذکر کړې دی چه د حضورپاك دا معمول وو چه کله به ئې د یو سفر نه واپس تشریف راوړلو نو د ټولو نه مخکښې به ئې جمات ته تشریف اوړلو او هلته به ئې دوه رکعته مونځ ادا کړو څه وخته پورې به ایسار شو. تلونکو راتلونکو سره به ئې ملاقات کولو او د دې نه پس به ئې خپل کورته تشریف اوړلو. (۱)

**د تعلیق راوی:** په دې تعلیق کښې هم یو راوی دې:

حضرت کعب بن مالك رضی الله عنه: دا صحابئ رسول دې. د دوی پوره نوم عمرو بن القین بن کعب بن سواد بن غنم بن کعب ابن سلمه الانصاری الخزرجی العقبی الاحدی دې.

د دوی نه روایت کونکو کښې د دوی خپل خامن، عبدالله، عبدالرحمن، عبیدالله، محمد، بنوکعب، جابر، ابن عباس، ابوامامه، عمر بن الحکم، عمر بن کثیر بن افلح، او د دوی نمسی عبدالرحمن بن عبدالله، وغیرهم رحمهم الله شامل دی.

عبدالله بن احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه په زمانه د جاهلیت کښې د دوی کنیت ابوالبشیر وو. د اسلام نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دوی کنیت ابوعبدالله کیخوذو. دې نه علاوه د دوی د کنیت باره کښې یو قول د ابوعبدالرحمن هم دې.

د ابن ابی حاتم رحمه الله بیان دې چه دې د اهل صفه نه وو د ډیر مشهور شاعر وو. د ابن سیرین رحمه الله بیان دې چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم درې لوئی مشهور شاعران وو: حسان بن ثابت، عبدالله بن رواحه او کعب بن مالك رضی الله عنهم. د دوی د پلار د دوی نه علاوه نو اولاد نه وو. دې د هغه اویاؤ کسانو نه وو چه په بیعت عقبه کښې شریك شو، په غزوه بدر کښې دوی نه وو شریك شوی. د هغې نه پس غزوه احد او نورو غزواتو کښې شریك شو. په غزوه احد کښې چه کله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د شهادت د دروغو خبره خوره شوه نو حضرت کعب رضی الله عنه فرمائي چه هغه وخت د ټولو نه رومبې سړې زه ووم چا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ژوندې او پیژندلو نو ما په اوچت آواز سره مؤمنانو ته د نبی پاك علیه السلام د ژوندی او صحیح سلامت کیدو زیرې ورکړو. هم په دې غزوه کښې هغوی رضی الله عنه ته د اویاؤ نه زیات زخمونه لګیدلی وو. بیا په غزوه تبوک کښې هم نه وو شریك شوې. بیا د اوردې مودې (۵۰ ورځو) نه پس الله تعالی د هغوی توبه قبوله کړه. د کومې تفصیلي قصه چه پخپله بیانوی کومه چه امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې نقل

(۱) هذا التعليق ذكره البخاري في صحيحه في غزوة تبوك، وهو حديث طويل، برويه عن يحيى بن بكير عن الليث عن عقيل عن ابن شهاب عن عبدالرحمن بن عبد ابن كعب بن مالك: أن عبدالله ابن كعب بن مالك، وكان قائد كعب من بنيه حين عمي، قال: سمعت كعب بن مالك يحدثني تخلف عن غزوة تبوك...... الحديث بطوله، يأتي إن شاء الله تعالى، وفيه. "وأصبح رسول الله قادما، وكان إذا قدم من سفر بدا بالمسجد فركع فيه ركعتين ثم جلس للناس". الحديث. (عمدة القاري: ۲۹۵/٤).

کړي ده.(۱)

---

(۱) د صحیح بخاري دغې اوږد ایمان تازه کونکی حدیث ترجمه په فوائد کثیره باندې دمشتمل کیدو د وجې نه دلته مکمل ذکر کولې شي.
عبدالرحمن بن عبدالله د خپل پلار عبدالله بن کعب نه چه خپل پلار به ئې د نابینا کیدو د وجې مخ نیولو او گرځولو به ئې روایت کوي چه ما د کعب بن مالك رضی الله عنه نه واورېدل چه هغوی اوونیل چه زه حضورپاك سره په ټولو جنګونو کښې حاضر ووم. مګر په تبوك او بدر کښې شاته پاتې شوم. مګر په بدر کښې شاته پاتې کیدونکو باندې د الله تعالی عتاب اونه شو. په جنګ بدر کښې د حضورپاك غرض دا وو چه د قریشو د قافلې تعاقب اوکړي شي. دښمنان الله تعالی ناڅاپې رامخامخ کړل او جنګ اوشو. زه په لیلة العقبه کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم. حضورپاك د ټولو نه په اسلام باندې د قائمیدو وعده واخستله او ما ته خو لیلة العقبه د جنګ بدر په مقابله کښې عزیز ده. اګرچه جنګ بدر ته په خلقو کښې زیات شهرت او فضیلت حاصل دی.
او په جنګ تبوك کښې د نه شریکیدو وجه دا ده چه د دې نه مخکښې چرته هم ما سره دوه سورلۍ نه وې جمع شوې. مګر په دغه غزوه کښې زه د دوو سورلو مالك جوړ شوم. د دې نه علاوه د حضورپاك دا دستور وو چه کله به ئې د جنګ خیال کولو نو صفا صفا پته او نښه او ځائې به ئې نه خودلو بلکه څه په ګول مول الفاظو کښې به ئې ښکاره کول دې دپاره چه نور خلق ئې بل مقام اوګڼي. غرض دا چه کله د جنګ وخت راغلو نو ګرمي ډیره سخته وه. لاره ډیره اوږده او بې اوبو او بې ګیا وه. د دښمن تعداد زیات وو. لهذا حضورپاك مسلمانانو ته په پوره توګه باندې خبر کړل چه مونږ تبوك ته خو دې دپاره چه تیاری اوکړي. هغه وخت حضورپاك سره په ګڼ شمیر کښې مسلمانان موجود وو مګر څه داسې کتاب وغیره نه وو چه په هغې کښې د ټولو نومونه لیکلی شوي وي. کعب رضی الله عنه وائي چه یو مسلمان داسې نه وو چه په دې جنګ کښې ئې شریکیدل نه غوښتل مګر دې سره به ئې دا خیال هم کولو چه د چا غیرحاضری حضورپاك ته تر هغه وخته پورې نه شي معلومیدې ترڅو مې پورې چه وحی رانه شي.
غرض دا چه حضورپاك د جنګ تیارې شروع کړو او دا هغه وخت وو چه میوه پخیدله او په سوری کښې کیناستل ښه لګیدل. ټولو تیارې کولو مګر ما به هر سحر دا سوچ کولو چه زه به تیارې اوکړم څه تادی ده؟ زه خو هروخت تیارې کولې شم. دغه شان ورځې تیریدلې. یوسحر حضورپاك روان شو. ما وئیل چه دوې ورځې پریږده چه څې زه به یو ورځ، دوؤ کښې تیارې اوکړم او په لار کښې به دوی سره شامل شم. غرض دا چه بل سحر ما تیارې کول غوښتل مګر اومې نه کړې شو او زه هم داسې پاتې شوم. په دریمه ورځ هم دغه شان اوشو او بیا زما هم دغه حال شو. اوس ټول خلق ډیر لرې وتلې وو. ما خو خل اراده اوکړه چه حضورپاك سره ملاؤ شم مګر په تقدیر کښې مې نه وه. افسوس چه دامې کړې وې.
چنانچه د حضورپاك د تللو نه پس چه به زه په مدینه کښې ګرځیدم نو ما ته به یا منافقان ښکاریدل او یا به هغه خلق ښکاریدل څوك چه کمزوري اوضعیفان او بیماران وو. ما ته به ډیر افسوس کیدلو. حضورپاك په لاره زه چرته هم یاد نه کړم. البته چه تبوك ته اورسیدو او ټولو خلقو کښې کیناستو نوحضورپاك اوفرمائیل کعب بن مالك چرته دې؟ د بني سلمه یو سړی عبدالله بن انیس رضی الله عنه اوونیل چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه خو په خپل حسن او جمال باندې ناز کولو د وجې پاتې شوې دې. نو معاذ رضی الله عنه اوونیل تا ښه خبره اونه کړه. په الله قسم! اې د الله رسوله! مونږ خو هغه ښه سړی ګڼړو. حضورپاك چه دا واوریده نو خاموش شو. د کعب بن مالك رضی الله عنه بیان دې چه کله ما ته دا معلومه شوه چه حضورپاك راروان دې نو ما سوچ کولو چه څه داسې حیله او بهانه په لاس راشي چه د حضورپاك د غصې نه ما بچ کړي شي. بیا ما د خپل کور هوښیارانو خلقو سره مشوره اوکړه چه تاسو هم په دې سلسله کښې څه سوچ اوکړئ. خو چه کله دا خبره معلومه شوه چه حضورپاك مدینې ته بالکل رانیزدې شوې دې نو زما د زړه نه دې حیلې دا خیال لرې شو او ما یقین اوکړو چه دروغ میږد نبی پاك صلی الله علیه وسلم د غصې نه بچ کولې نه شي.
سحر حضورپاك مدینې ته تشریف راوړو او د حضورپاك طریقه داوه چه د سفرنه به کله............

....... واپس شو نواول به جمات ته تلو او دوه رکعته مونځ به ئې کولو. اوس چه کوم خلق شاته پاتې شوي وو هغوي راتلل شروع شو اوخپل خپل عذرونه ئې بيانول اوقسمونه ئې خوړل. دا خلق اتيا کسان وو يا ددې نه څه زيات. حضورپاك د هغوی نه د دوي عذرونه قبول کړل اود هغوی نه ئې دوباره بيعت واخستو اودهغوی دپاره ئې د مغفرت دعا اوکړه او دهغوی د زړونو خيالات ئې الله تعالی ته حواله کړل.
كعب رضي الله عنه وائي چه زه هم راغلم السلام عليكم مې اوونيل. حضورپاك به داسې مسکا سره په کوم کښې چه غصه هم شامله وه جواب راکړو وئې فرمائيل راشه. زه مخې ته لاړم کيناستم. حضورپاك زمانه تپوس اوکړو کعب! ته ولې شاته پاتې شوې؟ حالانکه تاخود سورلئ هم انتظام کړې وو. ما عرض اوکړو ستاسو فرمائيل صحيح دی. زه که چرې د بل چا مخې ته ووم نوممکن وه چه هغه ته مې څه بهانه وغيره کولوسره دروغ ونيلې وې خکه چه زه بنه ونيلې هم شم مګر الله ګواه دې چه زه پوهيږم که ما دروغ ونيلوسره تاسو راضي کړئ نو صبا به الله تعالی تاسو زمانه ناراضه کړي په دې وجه به زه هم رښتيا وايم که تاسو په ما باندې غصه ولې اونه کړئ. راتلونکي وخت کښې خو به د الله تعالی نه مغفرت او د بخښش اميد پاتې وی. په الله قسم زه قصور وار يم حالانکه په مال اودولت کښې څوك هم زما برابر نه دی مګر ماسره ددې هرڅه موجوديدو باوجود زه شريك نه شوم.
حضورپاك دې اوريدوسره اوفرمائيل كعب صحيح خبره بيان کړه. بنه ده زه او د الله تعالی د حکم په خپل حق کښې انتظار کوه. غرض زه پاسيدم او لاړم نود بنی سلمه خلق هم ماسره شو او وئې ونيل چه مونږ خو تراوسه پورې ستا هيڅ ګناه نه ده ليدلې. تابه هم د نورو خلقو په شان دحضورپاك په مخکښې څه بهانه پيش کړې وه. نودحضورپاك دعا او مغفرت به ستا د پاره کافي شوی وې. هغوی يو شان ماته هم دغه ونيل تردې چه زما په خيال کښې راغله چه واپس حضورپاك له لاړشم او اولنې خبره غلطه ثابتولو دپاره څه بهانه پيش کړم. بيا ما د هغوی نه تپوس اوکړو چه ايا نور هم څوك شته؟ چا چه زما په شان د خپلې ګناه اعتراف کړې دې. هغوی ونيل چه او دوه کسان نور هم دی چاچه اقرار اوکړو اوحضورپاك هغوی ته هم دغه اوفرمائيل څه ئې چه تاته فرمائيلی دی. ما دهغوی د نومونو تپوس اوکړو نو وئې ونيل يو مرارة بن ربيع عمروی رضي الله عنه او دويم هلال بن اميه واقفي رضي الله عنه دې. دا دواړه نيکان وو او په جنګ بدر کښې شريك شوي وو. د هغوی سره ملاويدل په ما بنه لګيدل. غرض دا چه د دغه دوو کسانو نومونه اوريدو سره زما تسلي اوشوه او زه لاړم.
رسول الله ﷺ ټول خلق منع کړی وو چه دغه دريو کسانو سره به څوك خبرې نه کوی. مګر نور شاته پاتې کيدونکو او د دروغو بهانې پيش کونکودپاره داحکم نه وو. آخر خلقو زمونږ نه جدا اوسيدل شروع کړه او مونږ داسې شو چه مونږ هډو څوك پيژنی نه. لکه چه زمکه او آسمان بدل شوې وی. غرض ۵۰ شپې په دې کښې دغه شان تيرې شوې. زما دواړه ملګری خو په کورکښې کيناستل مګر زه د همت والا ووم راوتلم به. د جمع په مونځ کښې به شريکيدم، بازار وغيره ته به تلم مګر چا به راسره خبره نه کوله.
زه به نبی کريم ﷺ له هم راغلم هغوی به په خپله مصله باندې تشريف فرما وو. ما به سلام کولو او ماته به داسې شبه کيدله چه د حضورپاك شونډې مبارکې خوزيږی کيدې شی د سلام جواب راکوی. بيابه ما دحضورپاك سره نيزدې مونځ کول شروع کړه مګر د سترګې پټولوسره به مې حضورپاك ته هم کتل چه حضورپاك څه کوی. کله به چه زه په مانځه ووم نو حضورپاك به ماته کتل اوکله چه به زما نظر هغوی سره ملاويدو نو حضورپاك به مخ واړولو. په دې حال کښې موده تيره شوه او زه د خلقو د خاموشئ نه تنګ شوم. بيا د خپل تره ځونی حضرت ابو قتاده رضي الله عنه له باغ ته راغلم او سلام مې اوکړو. د هغه ماسره ډيره مينه وه مګر په الله قسم هغه زما د سلام جواب رانه کړو. ما هغه ته اوونيل اې ابوقتاده ته ما د الله اود هغه د رسول طرفدار ګڼړې اوکه نه؟ مګر هغه جواب رانه کړو. بيا ما قسم خوړلوسره هم دغه خبره اوکړه مګر جواب ملاؤ نه شو ما په دريم ځل هم دغه اوکړه نو ابوقتاده رضي الله عنه صرف دومره جواب راکړو الله اود هغه رسول ته بنه معلومه ده. بيا زه ټينګ نه شوم او اوښکې مې روانې شوې او واپس لاړم.
زه يوه ورځ بازار کښې روان ووم چه يو نصرانی زميندار چه د شام دملك اوسيدونکې وو. د غلې خرڅولو دپاره راغلې وو هغه زما پته د چانه معلومولو نوخلقو زما طرف ته اشاره اوکړه چه .........

...... دغه کعب بن مالك رضي الله عنه دي. هغه ماله راغلو او دَ غسان دَ نصراني بادشاه يو خط ئې ماته راکړو په کوم کښې چه ليکلي وو چه ماته معلومه شوې ده چه ستاسو رسول په تا باندې ډيرزياتي کوي حالانکه الله تعالى ته ذليل کړې نه يې. ته ډير دَ کار سړې ئې، ته ماله راشه، مونږ به تا ډير په آرام سره اوساتو. ما ونيل دا بل ازميښت دې او بيامې هغه خط دَ اور په تنورکښې واچولو.
اوس لا ۴۰ ورځې تيرې شوې وې او لس ورځې پاتې وې چه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم قاصد حزيمه بن ثابت رضي الله عنه راغلو ماته ئې اوونيل چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائي چه ته دَ خپلې بى بى نه لرې اوسيږه. ما ونيل څه مطلب دې؟ طلاق ورکړم يا څه بل څه اوکړم؟ حزيمه رضي الله عنه ونيل بس جدا اوسيږه او کوروالې وغيره مه کوه. هم دغه شان حکم زما نورو دوو ملګرو ته هم شوې وو. غرض دا چه ما خپلې بى بى ته اوونيل ته خپلو خپلوانو کره لاړه شه ترکومې چه الله تعالى زما فيصله اونه کړي.
کعب رضي الله عنه وائي چه بيا دَ هلال بن اميه رضي الله عنه بى بى دَ حضورپاك په خدمت کښې حاضره شوه وئې ونيل اې دَ الله رسول! هلال بن اميه رضي الله عنه زما خاوند ډير بوډا دې که زه دَ هغه کار خدمت کوم نو څه ګناه خو نشته دې؟ حضورپاك ونيل هيڅ هم نشته مګر هغه صحبت نه شي کولې. هغې عرض اوکړو حضورپه هغه کښې خوڅه داسې خواهش هم نشته دې. اودکله نه چه داخبره شوې ده ژاړي اودهغه وخت نه دهغه هم داحال دې.
کعب رضي الله عنه وائي چه ماته زما رشته دارو اوونيل چه ته هم حضورپاك له لاړشه دَ خپلې بى بى باره کښې هم داسې اجازت حاصل کړه دې دَ پاره چه هغه ستا خدمت کوي. لکه څنګه چه دَ هلال رضي الله عنه بى بى ته اجازت ملاؤ شو. ما ونيل په الله قسم زه چرې هم داسې نه شم کولې. معلومه نه ده چه حضورپاك به څه فرمائي. زه ځوان سړې يم دَ هلال رضي الله عنه په شان ضعيف نه يم. غرض دا چه دې نه پس هغه لس شپې هم تيرې شوې او زه دَ پنځوسمې شپې دَ سحرِ مونځ نه پس خپل کور سره ناست ووم اوداسې ښکاريدله چه ژوند مې سخت شوې دې او زمکه زما دَپاره باوجود دَ وسعت تنګه شوې ده چه په دې کښې دَ سلع غر نه يو آواز کونکي په چغه سره اوونيل چه اې کعب بن مالك رضي الله عنه تاته زيرې درکولې شي. ددې آواز په اوريدو سره زه دَ خوشحالئ نه په سجده راپريوتلم او يقين مې اوکړو چه اوس دا مشکل آسان شو. څکه چه حضورپاك دَ سحرِ دَمونځ نه پس خلقو ته اوفرمائيل چه الله تعالى ستاسو قصور معاف کړې دې. اوس خو خلق ما له او زما هغه ملګرو له دَ زيرې او مبارکبادئ دَپاره راتلل. او يو سړې زبير بن عوام رضي الله عنه خپل اس زغلولو سره ماله راغلو او يو بل سړې دَ بنى سلمه په سلع غر باندې اوختلو اود هغه آواز زر زما غوږونو ته اورسيدلو. دغه وخت زه دومره خوشحال شوم چه خپلې دوه کپړې مې اوويستلې او هغه ته مې ورکړې. ما سره ددغې نه علاود نورې څه کپړې نه وې. ما دَ ابوقتاده رضي الله عنه نه دوه کپړې واخستې او وامې غوستلې. بيا دَ حضورپاك په خدمت کښې حاضر شوم. په لاره کښې دَ خلقو پوه ګڼړه وه چه ما ته ئې مبارکي راکوله او ونيلې ئې چه دَ الله تعالى دغه انعام تاته مبارك شه. کعب رضي الله عنه وائي چه زه جمات ته لاړم حضورپاك هلته تشريف فرما وو او نور خلق هم ناست وو. طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه زما په ليدو رامنډې کړې ماسره ئې لاس ملاؤ کړو، بيائې مبارکي راکړه. په مهاجرينو کښې داکار صرف طلحه رضي الله عنه اوکړو. الله ګواه دې چه زه به دَ هغه دا احسان کله هم هير نه کړم. کعب رضي الله عنه وائي چه بيا ما حضورپاك ته سلام اوکړو اودَ حضورپاك مخ مبارك دَ خوشحالئ نه پړقيدو نو حضورپاك اوفرمائيل اې کعب دا نن ورځ دې تاته مبارك شي کومه چه دَ تولو نه ښه ده ستاد پيدا کيدو نه تر نن پورې. ما عرض اوکړو چه حضور دا معافي دَ الله تعالى دَ طرف نه شوې ده که ستاسو دَ طرف نه؟ وئې فرمائيل دَ الله تعالى دَ طرف نه معاف کړې شوې. او حضورپاك چه به کله خوشحاله وو نو مخ مبارك به ئې دَ سپوږمئ په شان پړقيدو. اومونږ به دَ حضورپاك خوشحالي پيژندله.
بيا ما دَ حضورپاك مخې ته کيناستو سره عرض اوکړو اې دَ الله تعالى رسوله! زه دَ خپل خلاصي او معافئ په شکريه کښې خپل ټول مال دَ الله اودَ هغه دَ رسول صلى الله عليه وسلم دَپاره خيرات نه کړم؟ حضورپاك اوفرمائيل لږ شان اوکړه او څه دَ خپل ځان دَ پاره هم اوساته څکه چه دا ستا دَپاره فائده مند دې. ما عرض اوکړو ټيك ده زه خپله دَ خيبر حصه پاتې کوم. ما بيا عرض اوکړو اې دَ الله رسوله! ما دَ رښتيا وئيلو په وجه خلاصي بياموندو. اوس به زه ټول ژوند کښې هم رښتيا وايم. په الله قسم زه نه شم وئيلې......

د ابن اسحاق رحمه الله بيان دي چه کله د مديني منورې طرف ته هجرت اوشو نو نبی کریم ﷺ د حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه او د هغه په مينځ کښې مؤاخات قائم کړې وو. خود حضرت عروه رحمه الله بيان دې چه د حضرت زبير رضي الله عنه او حضرت کعب رضي الله عنه په مينځ کښې مؤاخات قائم کړې شوی وو. د ابن سيرين رحمه الله بيان دې چه حضرت کعب رضي الله عنه دوه داسې شعرونه اوونيل چه د قبيلهٔ دوس د اسلام راوړلو سبب جوړ شو، هغه شعرونه دا دی

| | |
|---|---|
| قضينا من تهامة كل وتر | وخيبر ثمّ أغمدنا السيوفا |
| نخيّرها، ولو نطقت لقالت | قواطعهن: دوسًا أو ثقيفا |

يعنى مونږ د تهامه او خيبر نه هر طاق کار کولو سره تورې په تيکو کښې کړې که چرې د هغې ژبې وې نو مونږ ته به ئې ويلی وی، چه دوس او ثقيف والو لره به ددې تورو نه زياتې ېرې کونکې وې

کله چه قبيلهٔ دوس ته دا خبره معلومه شوه نو هغوی اوونيل چه د خپل بچاؤ سامان تيار کړئ داسې نه وی چه کوم آفت په ثقيف باندې راغلې دې هسې نه چه په تاسو باندې راشی کله چه حضرت علی بن ابی طالب رضي الله عنه شهيد کړې شو هغه وخت دوی وفات شو. د معاويه رضي الله عنه په خلافت کښې نابينا شوې وو. بخاری رحمه الله د دوی د وفات مختصر ذکر کړې دې چه هغوی د حضرت عثمان رضي الله عنه مرثيه کړې ده. مونږ ته د حضرت علی او معاويه رضي الله عنهما د جنګ باره کښې د هغوی هيڅ خبره معلومه نه شوه. د بغوی رحمه الله قول دې چه ماته دا خبره معلومه شوې ده چه هغه د حضرت معاويه رضي الله عنه په خلافت کښې په شام کښې وفات شوی دی.(١)

---

...... چه د رښتيا ويلو په وجه الله تعالى په چا باندې داسې مهربانی فرمائيلې وی لکه څنګه ئې چه په ما کړې ده. د هغه وخت نه کله نه چه ما رسول الله ﷺ ته رښتيا خبره کړې ده بيا د هغه وخت نه تردې وخته پورې ما دروغ نه دی ونيلی. او زه دا اميد کوم چه الله تعالى به ما د دروغو نه بچ کوی او الله تعالى په خپل رسول ﷺ باندې دا آيت نازل کړو. ﴿لَقَدْ تَابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ﴾ [التوبة: ١١٧] يعنى الله تعالى نبی، مهاجرين او انصار معاف کړل په الله قسم د اسلام قبلولو نه پس ما ددې نه لوئی څه انعام، احسان نه دی ليدلی چه الله تعالى د حضورپاک په مخکښې ماته د رښتيا ويلو توفيق راکړو او زه ئې د هلاکت نه بچ کړم کښې د نورو خلقو په شان به زه هم تباه او هلاک شوی ووم چا چه حضورپاک ته دروغ اوونيل. د دروغو قسم ئې اوخوړلو نو بيا دا آيت نازل شو ﴿سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انقَلَبْتُمْ﴾ [التوبة: ٩٥] يعنى دا خلق دروغژن دی.

کعب رضي الله عنه وائی مونږ دريواړه د دغه منافقانو نه جدا يو کومو چه نه ده معلومه چه خومره بهانې جوړې کړې او د دروغو قسمونه ئې اوخوړل او حضورپاک د هغوی خبره قبوله کړه او د هغوی نه ئې بيعت واخستلو او د مغفرت دعا ئې ورته اوکړه خو زمونږ معامله ئې پريخوده. تردې چه الله تعالى دا آيت نازل کړو: ﴿وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا﴾ [التوبة: ١١٨] يعنى دغه درې ئې معاف کړل کوم چه شاته پاتې شوی وو. ددې نه هغه خلق مراد نه دی چه په قصد سره پاتې شوې وو. بلکه مطلب دا دې چه مونږ د هغوی نه شاته پاتې شو چا چه قسمونه اوخوړل، عذر ئې بيان کړو، او رسول الله ﷺ د هغوی عذر قبول کړو. (صحيح البخاري، كتاب المغازي، غزوة تبوك، باب: حديث كعب بن مالك، وقول الله تعالى عزوجل: ﴿وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا﴾ رقم الحديث: ٤٤١٨)

(١) الإصابة: ٤٥٦/٥ دارالكتب العلميه. معرفة الصحابة لأبي نعيم: ٢٣٦٦/٥. أسد الغابة: ........



**د تعليق مقصد:** د مذكوره تعليق مقصد دادې چه د نبي اكرم ﷺ د عمل په ذريعه خپله مدعا يعني ترجمة الباب ثابت شي. چنانچه كعب بن مالك رضي الله عنه دَدې خبرې ذكراوكړو چه نبي كريم ﷺ به دَسفرنه واپس راتللو نوجمات ته به ئې تشريف اوړلواوهلته به ئې دوه ركعته مونځ كولو. دَدې تعليق نه پس چه امام بخاري رحمه الله كوم حديث راوړى دى په هغې كښې دَ نبي كريم ﷺ دَ قول نه دَ دغه دوو ركعتو دَ سفرثبوت دې. يعني تعليق سره خودا وهم كيدې شو چه دا دَ نبي ﷺ فعل دې په دې وجه به دادَ حضورپاك خصوصيت وى ليكن په حديث كښې دَ قولي حكم كيدو دَ وجې دا احتمال ختم شو.[1]

حديث باب [حديث نمبر ۴۳۲]

- ۴۳۳ـحَدَّثَنَا خَلاَّدُ بْنُ يَحْيَى قَالَ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ بْنُ دِثَارٍ عَنْ جَابِرِ[2] بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ -قَالَ مِسْعَرٌ أُرَاهُ قَالَ ضُحًى -فَقَالَ «صَلِّ رَكْعَتَيْنِ». وَكَانَ لِي عَلَيْهِ دَيْنٌ فَقَضَانِي وَزَادَنِي.

**د حديث ترجمه:** حضرت جابر رضي الله عنه اوفرمائيل چه زه د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم. حضورپاك په جمات كښې ناست وو. مسعر اووئيل چه زماخيال دې چه محارب

---

........ ۴۶۰/٤ – ۴۶۱. الاستيعاب فى معرفة الأصحاب: ۱۳۲۳/۳. مختصر تاريخ دمشق لابن عساكر: ۱۷۶/۵۰. سيرأعلام النبلاء: ۵۲۳/۲. التاريخ الكبير: ۲۱۹/۷. الجرح والتعديل: ۱۶۰/۷. تهذيب التهذيب: ٤٤٠/۸.

[1] فتح الباري: ۶۹۵/۱.

[2] أخرجه البخاري فى صحيحه فى كتاب العمرة، باب: لا يطرق أهله إذا بلغ المدينة، رقم الحديث: ۱۸۰۱. وفى البيوع، باب شراء الدواب والحمير، رقم الحديث: ۲۰۹۷. وفى الوكالة، باب إذا وكل رجل رجلاً أن يعطى شيئاً ولم يبين كم يعطى فأعطى على ما يتعارفه الناس، رقم الحديث: ۲۳۰۹. وفى الاستقراض، باب: من اشترى بالدين وليس عنده ثمنه، رقم الحديث: ۲۳۸۵. وباب: حسن القضاء، رقم الحديث: ۲۳۹٤. وباب: الشفاعة فى وضع الدين، رقم الحديث: ۲٤۰۶. وفى المظالم، باب: من عقل بعيره على البلاط أو باب المسجد، رقم الحديث: ۲٤۷۰. وفى الهبة، باب: الهبة المقبوضة وغير المقبوضة والمقسومة وغير المقسومة، رقم الحديث: ۲۶۰٤-۲۶۰۳. وفى الشروط، باب: إذا اشترط البائع ظهر الدابة إلى مكان، رقم الحديث: ۲۷۱۸. وفى الجهاد، باب: من ضرب دابة غيره فى الغزو، رقم الحديث: ۲۸۶۱. وباب: استئذان الرجل الإمام، رقم الحديث: ۲۹۶۷. وباب: الصلاة إذا قدم من سفر، رقم الحديث: ۳۹۸۷. وباب: الطعام عندالقدوم، رقم الحديث: ۳۰۸۹، ۳۰۹۰. وفى المغازى باب: ﴿إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ رقم الحديث: ٤۰۵۲. وفى النكاح، باب: تزويج الثيبات، رقم الحديث: ۵۰۸۰-۵۰۷۹. وباب لا يطرق أهل ليلهاإذا أطال الغيبةمخافة أن يخونهمأو يلتمس عثراتهم، رقم الحديث: ۵۲٤۳، ۵۲٤٤ وباب: طلب الولد، رقم الحديث: ۵۲٤۶-۵۲٤۵. وباب: تستحد المغيبة وتمتشط الشعثة، رقم الحديث: ۵۲٤۷. وفى النفقات، باب: عون المرأة زوجها فى ولده، رقم الحديث: ۵۳۶۷. وفى الدعوات، باب: الدعاء للمتزوج، رقم الحديث: ۶۳۸۷ و مسلم فى صحيحه، فى صلاة المسافرين، باب: استحباب تحية المسجد بركعتين وكراهة الجلوس قبل صلاتهما، وأنها مشروعة فى جميع الأوقات، رقم الحديث: ۷۱۵. وفى جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة، القسم الثاني: فى النوافل المقرونة بالأوقات، الفصل الرابع: فى صلوات متفرقة، تحية المسجد، رقم الحديث: ٤۲۵٤، ۲٤۹/۶.

اوونيل چه د چاشت په وخت نوحضورپاك (حضرت جابر رضي الله عنه ته) اوفرمائيل چه دوه رکعته مونځ اوکړه. (حضرت جابر رضي الله عنه اوفرمائيل چه) زما څه قرضه نبي کريم ﷺ پورې وه نوحضورپاك ماته هغه قرضه اداکړه (اودَ هغه مقدار نه) نې نور زيات هم راکړه.

**تراجم رجال:** دَ مذکوره حديث په سند کښې څلور راويان دي:

① **خلاد بن يحيى رحمه الله:** دا ابومحمد خلاد بن يحيى ابن صفوان الکوفي السلمي رحمه الله دې.

دَدوى تفصيلي احوال کشف الباري، کتاب الغسل، باب: من بدأ بشق رأسه الأيمن في الغسل کښې تيرشوى دى.([1])

② **مسعر رحمه الله:** دا ابومسلمه مسعر بن کدام بن ظهير بن عبيده بن الحارث الهلالي العامري الکوفي رحمه الله دې. دَدوى تفصيلي احوال کشف الباري، کتاب الوضوء باب: الوضوء بالمد کښې تيرشوى دى.([2])

③ **محارب بن دثار رحمه الله:** دَدوى پوره نوم مُحارب بن دثار بن کُردوس بن قرواش السدوسي الکوفي رحمه الله دې. دې دَ يو لوئى جماعت نه دَ حديث روايت کوى. په دغه جماعت کښې جابر بن عبدالله، ابن عمر، عبدالله بن يزيد الخطمي، اسود بن يزيد رضي الله عنهم شامل دى. اودَ دوى نه روايت کونکوکښې مسعر، زبيد اليامي، شعبه، ثوري، قيس بن ربيع رحمهم الله اويو لوئى جماعت شامل دى.

دې دَ کوفې يو لوئى نوموړې قاضى وو. سفيان ثوري رحمه الله فرمائى چه ما دَ محارب بن دثار نه افضل څوك نه دې ليدلې. احمد بن حنبل رحمه الله او يحيى بن معين رحمه الله دَدوى توثيق کړى دى. ابن عيينه رحمه الله وائى چه ما محارب بن دثار په جمات کښې کيناستو سره فيصله کونکې ليدلى دې.

عبدالله بن ادريس رحمه الله دَ خپل پلار نه روايت کوى چه هغه حکم رحمه الله اوحماد بن سليمان رحمه الله دَ محارب بن دثار رحمه الله دَ فيصلو والا مجلس کښې ناست ليدلى دى. يو دَ هغه نه يې طرف ته او بل کس طرف ته ناست وو. دَ محارب بن دثار رحمه الله وفات ١١٦ هجرى کښې شوې دې.([3])

④ **جابر بن عبدالله رضي الله عنه:** دا مشهور صحابئ رسول حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه دې. دَدوى احوال کشف الباري، کتاب الوضوء، باب: من لم يرالوضوء إلا من المخرجين، من القبل والدبر کښې تيرشوى دى.([4])

---

[1]) کشف الباري، کتاب الغسل، باب: من بدأ بشق رأسه الأيمن في الغسل

[2]) کشف الباري، کتاب لوضوء باب: الوضوء بالمد.

[3]) سير أعلام النبلاء: ٢١٧/٥. التاريخ الکبير للبخاري: ٢٨/٧. الجرح والتعديل: ٤١٦/٨. تاريخ الإسلام: ٢٩٧/٤. ميزان الاعتدال: ٤٤١/٣. تهذيب التهذيب: ٤٩/١٠. تاريخ دمشق لابن عساکر: ٥٤/٥٧. إکمال تهذيب الکمال: ٨٧/١١ الطبقات الکبرى لابن سعد: ٣٠٧/٦.

[4]) کشف الباري کتاب الوضوء، باب: من لم يرالوضوء إلا من المخرجين، من القبل والدبر.

**دَ حديث شرح:**

**قوله: "قال مسعر أراه قال: ضحی":** داکلام مدرج دې يعنی دادَ راوئ حديث خپل کلام دې دَ حديث حصه نه ده. "أراه" دَ همزې په ضمې سره دَ "أظن" په معنی دې او دَ "ه" ضمير مرجع محارب بن دثار رحمه الله دې.[1] مطلب به داشي چه محارب رحمه الله دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت کولو سره دا خبره اوکړه چه زه کله دَ نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نوهغه دَ چاشت وخت وو.[2]

**قوله: "وکان لی عليه دين":** دَ اکثرو نسّاخو په روايت کښې هم دغه الفاظ دی. البته دَ حموی په روايت کښې "وکان له" لفظ دې. په دې صورت کښې دَ "ه" ضمير مرجع جابر بن عبدالله رضي الله عنه دې. يعنی "وکان لجابر علی النبی صلی الله عليه وسلم دين". دا دَين دَ حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه دَ اُوښ قيمت وو کوم چه نبی کريم ﷺ دَ هغه نه اخستې وو.

اوداهم وئيلی شوی دی چه دَ حموی په دې روايت کښې دَمتکلم ضمير نه دَ غائب ضمير طرف ته التفات شوې دې. يعنی دَ اکثرو په روايت کښې "وکان لی" په ضميرِ متکلم سره وو او دَحموی په روايت کښې دَ ضميرِمتکلم نه ضميرغائب طرفته التفات اوشو يعنی "وکان له".[3]

علامه نووی رحمه الله فرمائی چه دا دوه رکعته دَ سفر نه واپس راتلونکی دَپاره دی کوم چه دَ تحية المسجد نه جدا دی.[4]

**دَ حديث دَ ترجمة الباب سره مناسبت:** په دې حديث شريف کښې دَ سفر نه دَ واپسئ ذکر نشته دې حالانکه په ترجمة الباب کښې داقيد دې چه دَ سفر نه په واپسئ باندې دې دوه رکعته مونځ اوکړې شی. ليکن هم په صحيح بخاری کښې تفصيلی روايت موجود دې په کوم کښې چه دَدې خبرې تصريح هم شته چه نبی کريم ﷺ حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه ته داحکم دَ هغه دَ سفر نه په واپس راتلو باندې ورکړې وو.[5]

---

[1]) فتح الباری: ٦٩٥/١ عمدة القاری: ٢٩٦/٤.

[2]) شرح الکرمانی: ١٠٣/٤.

[3]) فتح الباری: ٦٩٥/١، عمدة القاری: ٢٩٦/٤.

[4]) شرح النووی علی صحيح مسلم، کتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة الضحی وأن أقلها رکعتان، رقم الحديث: ٧١٧، ٢٢٧/٥.

[5]) حدثنا محمد بن بشار، حدثنا عبدالوهاب، حدثنا عبيدالله، عن وهب بن کيسان، عن جابر بن عبدالله رضی الله عنهما، قال: کنت مع النبی صلی الله عليه وسلم فی غزاة، فَأَبطَأَبی جَمَلی وأعيا، فأتی علی النبی صلی الله عليه وسلم، فقال: جابر؟ فقلت: نعم، قال: ما شأنُک؟ قلت: أبطأ علیّ جملی وأعيا، فتخلَّفْتُ، فنزل يَحْجُنُهُ بمِحجَنِه، ثم ال: إرکَب، فرکبتُ، فلقد رأيته أکُفُّه عن رسول الله صلی الله عليه وسلم، قال: تزوجتَ، قلت: نعم، قال: بکراً أم ثيباً؟ قلت: بل ثيبا، قال: أفلا جارية، تُلاعبها وتلاعبُک، قلت: إن لی أخوات، فأحببت أن أتزوّجَ امرأةً تَجْمَعُهُنّ، وتَمشُطُهُنّ، وتقومُ عليهن، قال: أما إنک قادم، فإذا قدمت، فالکيسَ الکيسَ، ثم قال: أتبيعُ جملَک؟ ..........

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه كه چرته څوك دا سوال اوكړى چه په دې حديث او ترجمة الباب كښې څه مناسبت دې؟ (په دې توګه چه په ترجمه كښې خود سفر نه په راتلو سره په جمات كښې د مونځ كولو بيان دې او په دې روايت كښې خود سفر نه د راتلو ذكر نشته دې. نو ددې جواب به دا وركوم چه دا حديث د هغه اوږد حديث يوه ټكړه ده كوم چه د صحيح بخارى په كتاب البيوع او نورو ډيرو ابوابو كښې موجود دې. او په هغه اوږد روايت كښې دا خبره موجود ده چه زه په يوه غزوه كښې نبى كريم ﷺ سره ووم. هم په دغه سفر كښې حضورپاك مانه د يوې اوقيه چاندئى بدله كښې زما اوښ واخستو. بيا رسول الله ﷺ د غزوې نه واپس راغلو او زه د سحر په وخت (د چاشت په وخت كښې) واپس راورسيدلم نو نبى كريم ﷺ مې د جمات په دروازه كښې اوليدلو. نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه هم دې وخت راورسيدې؟ نوما جواب وركړو آوجى. بيا نبى كريم ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه يوه اوقيه د چاندئى وزن اوكړه نوهغه وزن اوكړو. نود (نبى كريم ﷺ په وينا باندې) ئې په وزن كښې تيته يعنى درنه اوتلله (يعنى زما د قيمت نه ئې زيات ماله راكړو). (١)

**د حديث مبارك نه مستفاد امور او اداب:** ددې حديث نه ډير فوائد مستنبط كيږى، چونكه دا ټكړه ده د يو اوږد حديث، په دې وجه د ټولو فوائدو بيان خو به هم په متعلقه ځائې راځى. فورى به هم دهغه حصې د فوائدو بيان وى كوم چه د ترجمة الباب لاندې ذكرده. مثلاً

① د سفر نه راتلونكى سړى دپاره مستحب دى چه هغه واپس راشى نو اول دې دوه ركعته مونځ اوكړى بيا دې كور ته ځى.

② هم د سحر وخت كښې د سفر نه د واپس كيدو كوشش پكار دې.

③ كوم سړې چه مشر وى اود هغه په واپس راتللو باندې د خلقو خواهش وى چه هغه سره ملاقات اوكړى، زيارت اومصافحه وغيره اوكړى نوداسې سړى له پكاردى چه واپس راشى خلقو سره دې نيزدې په څه ځائې، بهتر داده چه په جمات كښې ايسار شى دې دپاره چه خلق د هغه سره ملاقات اوكړى بيا دې هغه خپل كورته ځى لكه چه په مذكوره معامله كښې نبى كريم ﷺ اوكړل.

④ چه د قرض د اداكولو بندوبست وى نو په دې كښې تاخير نه دى كول پكار فورى ادا كول پكاردى.

⑤ افضل دادى چه كله د چا د قرض ادا كړې شى نو څه دې زياتى وركړې شى چه د هغه د

---

......... قلتُ: نعم، فاشتراه منى بأوقية، ثم قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم قبلى، وقدمتُ بالغداة، فجئنا إلى المسجد، فوجدتُه على باب المسجد، قال: الآن قدمت؟ قلت: نعم، قال: فدع جملك، فادخُل، فصلّ ركعتين، فدخلتُ فصليتُ، فأمر بلالا أن يزن له أوقيةً، فوزن لى بلال، فأرجح لى فى الميزان، فانطلقتُ حتى ولّيتُ، فقال: ادعُ لى جابراً، قلت: الآن يردعلىّ الجمل، ولم يكن شيئ أبغض إلى منه، قال: خذ جملك ولك ثمنه. (صحيح البخارى، كتاب البيوع، باب: شراء الدواب والحمر، رقم الحديث: ٢٠٩٧).

(١) شرح الكرمانى: ١٠٣/٤ فتح البارى: ٦٩٥/١٢ عمدة القارى: ٢٩٥/٤.

احسان بدله شي. لیکن دا په هغه صورت کښې دی چه د مخکښې نه شرط نه وی ځکه چه که هغه زیاتوالې مشروط شو نودا به سود شي.[1]

## ٢٧-بَابٌ: إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ

دا باب دې چه کله تاسو کښې یو سړې جمات ته داخل شي نو هغه له پکار دی چه د کیناستو نه وړاندې دوه رکعته (تحیة المسجد) اوکړي.

دَدې ترجمة الباب باره کښې مختلفې نسخې دی. بعضو کښې هم داسې دی ځنګه چه پورته ذکر شو او بعضو کښې دی: "إذا دخل المسجد فليركع ركعتين" او بعضو کښې دی: إذا دخل المسجد فليركع قبل أن يجلس. "فليركع" کښې فاء کلمه دَ إذا شرطيه په جواب کښې ده.[2]

**دَترجمة الباب مقصد:** په دې ترجمة الباب سره امام بخاري رحمه الله دَ تحية المسجد استحباب بيانوی. چنانچه دَدې دپاره هغوی هم دَحديث الفاظ ترجمة الباب جوړولو سره پيش کړی دی.

دَدې ترجمې دَ الفاظو يا دَ حديث دَ الفاظو نه پنځه مسئلې ثابتيږی. دوه مسئلې دَ إذا دخل نه، يوه مسئله دَ فليركع نه او دوه مسئلې دَ ركعتين نه. دا ټولې مسئلې نمبر وار لاندې ذکرې کولې شی:

**ړومبۍ مسئله: په مکروه وختونو کښې دَ تحية المسجد حکم:** دَ ټولو نه اولنۍ مسئله کومه چه دَ "إذا دخل" نه ثابتيږی هغه داده چه "إذا" ظرفيه دې دَ کوم تقاضا چه مخې ته کولو سره ظاهری مطلب دا راوځی چه کوم وخت هم په جمات کښې داخل شی نو تحية المسجد دې اداکړی. که هغه مکروه او ممنوع وخت وی اوکه مباح وخت وی. چنانچه په دې مسئله کښې دَ ائمه کرامو اختلاف شوې. جمهور فقهاء مثلاً: امام ابوحنيفه رحمه الله [3] امام مالک رحمه الله [4] او امام

---

[1] شرح النووی علی صحیح مسلم، کتاب الصلاة، باب: استحباب صلاة الضحی وأن أقلها رکعتان، رقم الحدیث: ٧١٧، ٢٢٧/٥. شرح الکرمانی: ١٠٣/٤.

[2] مذکوره باب چونکه دَ کشف الباري دَ مذکوره جلد آخرې باب دی. په دې وجه په دې مقام باندې دَدې امر تجديد ضروری معلوميږی چه دَ کشف الباری دَ پاره منتخب کړې شوې دَ "الدکتور مصطفی ديب البغا" والا نسخې مطابق دَدې باب نمبر ٢٧ دې خو په نورو نسخو کښې کوم چه فتح الباري يا عمدة القاري کښې استعمال کړې شوی دی دَ هغې مطابق دَدې باب نمبر ٦٠ دې.
عمدة القاري: ٢٩٦/٤. إرشادالساری: ١٠٣/٢.

[3] المبسوط للسرخسی، کتاب الصلاة، باب: مواقيت الصلاة: ١٥٣/١. بدائع الصنائع، کتاب الصلاة، فصل: بيان مايکره من التطوع: ٢٩٦/١. شرح مختصر الطحاوی للجصاص، کتاب الصلاة، باب المواقيت: ٥٤٢/١.

[4] الکافی فی فقه أهل المدينة، کتاب الصلاة، باب: الأوقات التی تکره فيها عندنا النوافل: ١٩٦/١. التاج والإکليل لمختصر خليل، کتاب الصلاة، باب: فی صلاة التطوع: ٣٧٤/٢. الفواکه الدوانی علی رسالة ابن أبی زيد، کتاب الصلاة، باب: أقل الشفع: ٢٠٢/١. دَ دخول نه مراد کيناستو دپاره طهارت سره داخليدل، چه مکروه وخت نه وی نو دَ کيناستو نه مخکښې مستحب دی واجب نه دی، که چرې کيناستو نو بيا هم ..........

احمد بن حنبل رحمه الله (١) د دې خبرې قائل دی چه که د جمات د داخليدو په وخت د مکروه وختونونه يو وخت نه وی نو تحية المسجد اداکول مستحب دی او که چرې مکروه وخت وی نو هغه وخت تحية المسجد ادا کول ممنوع دی.

امام شافعی رحمه الله کلمه د "إذا" عموم مخې ته کيخودو سره دَدې خبرې قائل دې چه د جمات د داخليدو کوم يو وخت هم وی تحية المسجد اداکول جائز دی.(٢)

امام احمدبن حنبل رحمه الله په مکروه وختونو کښې د تحية المسجد په عدم جواز کښې د جمهورو سره دې ليکن د جمعې د خطبې په وخت جمات ته د داخليدو په صورت کښې د تحية المسجد په جواز کښې د امام شافعی رحمه الله سره دې، او د جمهورو په نيز هغه وخت هم تحية المسجد جائز نه دی.(٣)

**دويمه مسئله: تحية المسجد صرف په داخليدونکی باندې دې، او که تيريدونکی باندې هم؟:**

"إذادخل" نه دويمه مسئله دا پيدا کيږی چه په کوم قسم داخليدو سره د تحية المسجد حکم متوجه کيږی؟ ځکه چه داخليدل خو په عام توګه د عبادت دپاره وی او ددې نه علاوه کله صرف د مروز دپاره وی او کله د کيناستو دپاره. نو په دې باره کښې د جمهور فقهاؤ، امام ابوحنيفه رحمه الله (٤)

..........دا فوت نه دی. (تنبيه): علم من كلام المصنف أن المار أو الداخل على غير وضوء أو فى وقت نهى لا تستحب التحية فى حقه صلاة، وإنما يستحب له أن يقول أربع مرات: سبحان الله والحمدلله ولا إله إلا الله والله أكبر. قال سيدى أحمد زروق: ينبغى أن يقولها فى أوقات النهى، قال الحطاب: وهو حسن لمكان الخلاف، لأن التحية بمعنى الصلاة وإن سقطت لا يسقط بدلها. (الشرح الكبير للشيخ الدردير وحاشية الدسوقى، كتاب الصلاة، فى بيان حكم صلاة النافلة: ٣١٣/١).

(١) المغنى لابن قدامة، كتاب الصلاة، فصل: الإنصات من حين يأخذ الإمام فى الخطبة: ٢٣٧/٢. المحرر فى الفقه على مذهب الإمام أحمد بن حنبل، كتاب الصلاة، باب: صلاة الجمعة: ١٥٢/١. الشرح الكبير على متن المقنع، كتاب الصلاة، مسألة: ومتى سجد بعدالسلام جلس فتشهد: ٧٣٩/١. الحاوى الكبير، كتاب الصلاة، فصل: ٤٢٩/٢.

(٢) التنبيه فى الفقه الشافعى، كتاب الصلاة، باب: صلاة التطوع: ٣٥/١. الوسيط فى المذهب، كتاب الصلاة، الطرف الثالث فى السنن والآداب: ٢٨٣/٢. البيان فى مذهب الإمام الشافعى، كتاب الصلاة، مسألة: تحية المسجد: ٢٨٦/٢. المجموع شرح المهذب، كتاب الصلاة، باب: صفة الصلاة: ٢٥٥/٣. المجموع: مسائل مهمة تتعلق بصلاة الليل: ٥١/٤. أسنى المطالب فى شرح روض الطالب: ٤٨٦/١.

(٣) المغنى لابن قدامة، كتاب الصلاة، فصل: الإنصات من حين يأخذ الإمام فى الخطبة: ٢٣٧/٢. المحرر فى الفقه على مذهب الإمام أحمد بن حنبل، كتاب الصلاة، باب: صلاة الجمعة: ١٥٢/١. الشرح الكبير على متن المقنع، كتاب الصلاة، مسألة: ومتى سجد بعدالسلام جلس فتشهد: ٧٣٩/١.الإقناع فى فقه الإمام أحمدبن حنبل، فصل: يسن أن يغتسل للجمعة: ١٩٨/١.

(٤) المبسوط للسرخسى،كتاب الصلاة، باب: مواقيت الصلاة: ١٥٣/١. بدائع الصنائع، كتاب الصلاة، فصل: بيان مايكره من التطوع: ٢٩٦/١. شرح مختصر الطحاوى للجصاص، كتاب الصلاة، باب المواقيت: ٥٤٢/١.

امام شافعي رحمه الله [1] او د امام احمدبن حنبل رحمه الله [2] په نيزجمات ته داخليدل چه كوم مقصد د پاره هم وي نو تحية المسجدبه مستحب به وي.
اود امام مالك رحمه الله په نيزكوم سړي چه جمات ته د عبادت وغيره د پاره داخل شي د هغه د پاره تحية المسجد مستحب دي او هغه سړي چه جمات كښې صرف تيريدل غواړي، جمات كښې د كيناستو يا په عبادت وغيره كښې د مشغوليدو اراده ئې نه وي نو د هغه د پاره دا مستحب نه دي. [3]

دريمه مسئله: تحية المسجد واجب دي كه مستحب؟: دريمه مسئله د "فليركع" نه پيدا كيږي چه دا دوه ركعته مونځ واجب دي او كه مستحب؟ په دې باره كښې ظاهريه د وجوب قائل دي. [4]

---

[1] الحاوي الكبير، كتاب الصلاة، فصل: ٤٢٩/٢. التنبيه في الفقه الشافعي، كتاب الصلاة، باب: صلاة لتطوع: ٣٥/١. الوسيط في المذهب، كتاب الصلاة، الطرف الثالث في السنن والآداب: ٢٨٣/٢.

[2] الإقناع في فقه الإمام أحمدبن حنبل، فصل: يسن أن يغتسل للجمعة: ١٩٨/١. الشرح الكبير على متن المقنع، كتاب الصلاة، مسألة: وكتى سجد بعدالسلام جلس فتشهد: ٧٣٩/١. المغني لابن قدامة، كتاب الصلاة، فصل: الإنصات من حين يأخذ الإمام في الخطبة: ٢٣٧/٢.

[3] حاشية الصاوي على الشرح الصغير، كتاب الصلاة، النوافل المندوبة والرغائب: ٤٠٥/١. الكافي في فقه أهل المدينة، كتاب الصلاة، باب: الأوقات التي تكره فيها عندنا النوافل: ١٩٦/١. التاج والإكليل لمختصر خليل، كتاب الصلاة باب: في صلاة التطوع: ٣٧٤/٢. الفواكه الدواني على رسالة ابن أبي زيد، كتاب الصلاة، باب: أقل الشفع: ٢٠٢/١.

[4] اتفق جماعة أهل الفتوى على أن تأويل هذا الحديث محمول على الندب، والإرشاد مع استحبابهم الركوع لكل من دخل المسجد، وهو طاهر، في وقت تجوز فيه النافلة. قال مالك: ذلك حسن وليس بواجب. وأوجب ذلك أهل الظاهر فرضا على كل داخل في وقت تجوز فيه الصلاة. وقال بعضهم: ذلك واجب في كل وقت، لأن فعل الخير لا يمنع منه إلا بدليل لا معارض له.
قال الطحاوي: وحجة الجماعة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أمر سُلَيكًا حين جاء يوم الجمعة وهو يخطب أن يركع ركعتين، وأمر مرةً أخرى رجلاً رآه يتخطى رقاب الناس بالجلوس ولم يأمره بالركوع، حدثنا بحر بن نصر، حدثنا عبدالله بن وهب، عن معاوية بن صالح، عن أبي الزاهرية، عن عبدالله بن بسر قال: جاء رجل يتخطى رقاب الناس في يوم الجمعة، فقال له رسول الله: "اجلس فقد آذيت وآنيت"، فهذا يخالف حدث سليک، واستعمال الأحاديث هو على ما تأولها عليه جماعة الفقهاء.
قال الطحاوي: وأما قول من قال من أهل الظاهر أن عليه أن يركع في كل وقت دخل المسجد فهو خطأ، لنهيه عليه السلام عن الصلاة عند طلوع الشمس وعند غروبها وغير ذلك من الأوقات المنهي عنها، فمن دخل المسجد في هذه الأوقات، فليس بداخل في أمره بالركوع عند دخوله في المسجد، وإنما يدخل في أمره بذلك كل من لو كان في المسجد قبل ذلك، فأراد الصلاة، كان له ذلك، فأما من لوكان في المسجد قبل ذلك لم يكن له أن يصلي، فليس بداخل في ذلك.
وقدروي عن جماعة من السلف أنهم كانوا يمرون في المسجد ولا يركعون، فروى ابن أبي شيبة عن عبدالعزيز الدراوردي، عن زيد بن أسلم قال: كان كبار أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم يخرجون ..........

او جمهور فقهاء کرام د استحباب قائل دی.([1])

**شلورمه مسئله: دَنفل مونځ دَ کم نه کم څو رکعاته؟**: دَ "رکعتين" دَ لفظ نه دا مسئله ثابتيږی چه دَ نوافلو دَ کم نه کم دوه رکعتونه دی دَ دوو رکعتو نه کم نفل نه وی چنانچه دَ احنافو نه احناف ([2]) او دَ مالکيه ([3]) په نيز او دَ حنابلو په يو روايت کښې دَ يو رکعت مونځ نه وی خود شوافع ([4]) او حنابله په نيز په يو روايت کښې (کوم چه علامه مرداوی صالحی رحمه الله راجح

... ........ ولا يصلون. قال زيد: وقد رأيت ابن عمر يفعله ، وذكر ذلک مالک عن زيد بن ثابت. وسالم بن عبدالله. وكان القاسم بن محمد يدخل المسجد. فيجلس فيه ولا يصلى وفعله الشعبي. وقال جابر بن زيد: إذا دخلت مسجداً نصل فيه. فإن لم تصل فيه. فاذكرالله فكأنک قد صليت. (شرح ابن بطال: ١١٦/٢).

[1]) المبسوط للسرخسي، كتاب الصلاة، باب: مواقيت الصلاة: ١٥٣/١. بدائع الصنائع. كتاب الصلاة. فصل: بيان مايكره من التطوع: ٢٩٦/١. شرح مختصر الطحاوى للجصاص، كتاب الصلاة. باب المواقيت: ٥٤٢/١. الحاوی الكبير، كتاب الصلاة. فصل: ٤٢٩/٢. التنبيه فی الفقه الشافعی، كتاب الصلاة. باب: صلاة التطوع: ٣٥/١. الوسيط فی المذهب، كتاب الصلاة. الطرف الثالث فی السنن والآداب: ٢٨٣/٢. الإقناع فی فقه الإمام أحمد بن حنبل. فصل: يسن أن يغتسل للجمعة: ١٩٨/١. الشرح الكبير على متن المقنع، كتاب الصلاة. مسألة: ومتى سجدبعد السلام جلس فتشهد: ٧٣٩/١. المغنى لابن قدامة. كتاب الصلاة. فصل: الإنصات من حين يأخذ الإمام فی الخطبة: ٢٣٧/٢. الكافی فی فقه أهل المدينة. كتاب الصلاة. باب: الأوقات التی تكره فيها عندنا النوافل:١٩٦/١. التاج والإكليل لمختصر خليل، كتاب الصلاة. باب: فی صلاة التطوع: ٣٧٤/٢. الفواكه الدوانی على رسالة ابن أبی زيد. كتاب الصلاة. باب: أقل الشفع: ٢٠٢/١.

[2]) ومحمل حديث ابن عمر عندهم الحصر فی الأشفاع. يعنی: لا يجوز القعود على الأكثر أو الأقل من ركعتين. وعليه حمله صاحب الهداية إذ قال: ومعنى ما رواه شفعا لا وترا. (أوجز المسالک، كتاب الصلاة. كتاب صلاة الليل. رقم الحديث: ٢٥٣، ٥٧٠/٢). قال صاحب البدائع: التنفل بالركعة الواحدة غير مشروع. (بدائع الصنائع. كتاب الصلاة. فصل: فی التطوع، فصل: فی بيان مقدار مايلزم منه بالشروع فی صلاة التطوع: ٢٩٣/١). الهداية. كتاب الصلاة. باب: فی النوافل: ٦٧/١. ولوقال: عبده حر إن صلى اليوم صلاة. فصل ركعة قطعها. لا يحنث فی يمينه. لأن المنفی باليمين فعل الصلاة. وأن يكون المفعول صلاة. فمطلق الاسم ينصرف إلى الكامل. والركعة الواحدة ليست بصلاة كاملة. لأنها لا تفيد حكم الصلاة لأنها بتيراء. فإن النبی صلى الله عليه وسلم نهى عن البتيراء والبتيراء ركعة واحدة. (المحيط البرهانی، كتاب الصلاة، الفصل الثانی عشر: فی الحلف على الأفعال: ٢٧٣/٤ )

[3]) واستدل به أيضاً على عدم النقصان من ركعتين فی النافلة ما عدا الوتر، وقد اختلف العلماء فيه (اتفق أبوحنيفة وأبويوسف ومحمدعلى أفضلية الرباعية نهاراً كما فی "شرح المهذب: ٧٥/٥". والمغنی: ٧٦٥/١. واتفق الشافعی وأحمد وأبويوسف والثوری والليث على أفضلية الثنائية ليلاً. والشافعی وأحمد منهم على أفضليتها نهاراً أيضاً، وشذّ مالک فی القول بعدم جواز الرباعية ليلاً استدلالاً بإفادة التركيب القصر، كما حكاه ابن دقيق العيد فی العمدة): فذهبت طائفة إلى المنع وهومذهب أبی حنيفة ومالک. (التعليق الممجد على مؤطأ محمد. كتاب الصلاة. باب: صلاة الليل: ٥٠٧/١). وقال ابن رشد فی بداية المجتهد، والجمهور على أنه لا يتنفل بواحدة، وأحسب أن فيه خلافا شاذا. (بداية المجتهد ونهاية المقتصد، كتاب الصلاة، الباب الثالث: فی النوافل: ٢١٧/١). نيل الأوطار. كتاب الصلاة، باب الوتر بركعة وبثلاث: ٤١/٣.

[4]) النجم الوهاج فی شرح المنهاج، كتاب الصلاة، باب: ٣١٣/٢. الإقناع فی حل ألفاظ أبی شجاع، ..........

ګرځولې دي، نفل مونځ يو ركعت هم كيږي.(١) ليكن د تحية المسجد مونځ د دې حضراتو په نيز هم د دوو ركعتو نه كم نه دي.(٢)

**پنځمه مسئله: دَ تحية المسجد وخت:** دَ ترجمة الباب آخرى لفظ "قبل أن يجلس" يعنى جمات ته داخليدونكې دې دَ كيناستو نه وړاندې وړاندې دوه ركعته تحية المسجد اوكړى. اوس سوال

---

.......... كتاب الصلاة، فصل: القول فيمن تجب عليه الصلاة: ١١٩/١. فتح المعين بشرح قرة العين بمهمات الدين، كتاب الصلاة، فصل: فى صلاة النفل: ١٦٩/١.

(١) قوله (وهل يصح التطوع بركعة؟ على روايتين) وأطلقهما فى المذهب، والبلغة، وابن تميم، والنظم، ومسبوك الذهب، والمستوعب، والحاوى الصغير، والزركشى، إحداهما: يصح، وهوالمذهب صححهما فى التصحيح، وابن منجا فى شرحه، قال فى الخلاصة: يصح أن يتطوع بركعة على الأصح، قال فى التلخيص: ويصح التطوع بركعة فى أصح الروايتين ونصره فى مجمع البحرين، والمجد فى شرحه وقدمه فى الفروع، والمحرر، والهداية، والرعايتين، والحاوى الكبير، الفائق وغيرهم، وجزم به فى الإفادات، ونهاية ابن رزين، ونظمها وصححه أبوالخطاب فى رءوس المسائل، الرواية الثانية: لا يصح جزم به فى الوجيز، وهى ظاهر كلام الخرقى، ونصرها المصنف فى المغنى والشرح، وقال فيه ابن تميم، والشارح: أقل الصلاة ركعتان، على ظاهر المذهب.

**فائدة:** قال المجد فى شرحه، وابن تميم، والزركشى، وابن حمدان فى رعايته وصاحب الحاوى، ومجمع البحرين، وغيرهم: حكم التنفل بالثلاث والخمس حكم التنفل بركعة فيه الروايتان، ولا نعلم مخالفا قال فى الفروع: ويصح التطوع بفرد ركعة. (الإنصاف فى معرفة الراجح من الخلاف للمرداوى، كتاب الصلاة، باب: صلاة التطوع: ١٩٢/٢).

فصل: قال بعض أصحابنا: ولا يزاد فى الليل على اثنين، ولا فى النهار على أربع. ولا يصح التطوع بركعة ولا بثلاث. وهذا ظاهر كلام الخرقى. وقال القاضى: لوصلى ستا فى ليل أونهار، كره وصح. وقال أبوالخطاب: فى صحة التطوع بركعة روايتان. إحداهما، يجوز، لما روى سعيد، قال: حدثنا جرير، عن قابوس، عن أبيه، قال: دخل عمر المسجد فصلى ركعة، ثم خرج، فتبعه رجل، فقال: ياأميرالمؤمنين! إنما صليت ركعة،قال: هو تطوع، فمن شاء زاد، ومن شاء نقص. ولنا، أن هذا خلاف قول رسول الله صلى الله عليه وسلم: "صلاة الليل مثنى مثنى". ولأنه لم يرد الشرع بمثله، والأحكام إنما تتلقى من الشارع، إما من نصه، أو معنى نصه، وليس هاهنا شيئ من ذلك. (المغنى لابن قدامة، كتاب الصلاة نصل: التطوعات قسمان: ٩٢/٢).

(وهل يصح التطوع بركعة)أى: بفرد، (على روايتين) كذا فى (الهداية) إحداهما: تصح، قدمها فى المحرر و الفروع ونصرها أبوالخطاب، وابن الجوزى، وهوقول عمر. رواه سعيد: حدثنا جرير عن قابوس عن أبيه عنه. ولأن الوتر مشروع، وهوركعة، والثانية: لا، جزم بها فى الوجيز وهى ظاهر الخرقى، وقواها فى المغنى، لأنه خلاف قوله عليه السلام: صلاة الليل مثنى مثنى، ولأنه لا يجزء فى الفرض، فكذا فى النفل كالسجدة، ولم يرد أنه فعل فى غير الوتر. (المبدع فى شرح المقنع، كتاب الصلاة، التطوع بركعة: ٣٠/٢). نيل المآرب بشرح دليل الطالب، كتاب الصلاة، قيام الليل: ١٦٣/١.الروض المربع شرح زادالمستقنع، كتاب الصلاة، فصل: فى صلاة الليل: ١١٨/١.

(٢) الإقناع فى حل ألفاظ أبى شجاع، كتاب الصلاة، فى من تجب عليه الصلاة: ١١٧/١. التنبيه فى الفقه الشافعى، كتاب الصلاة، باب: صلاة التطوع: ٣٥/١. الوسيط فى المذهب، كتاب الصلاة، الطرف الثالث فى السنن والآداب: ٢٨٣/٢. الإقناع فى فقه الإمام أحمد بن حنبل، كتاب الصلاة، فصل يسن أن تغتسل للجمعة: ١٩٨/١. كشاف القناع عن متن الإقناع، كتاب الصلاة، فصل: يسن أن يغتسل للجمعة: ٤٦/٢. نيل المآرب بشرح دليل الطالب، كتاب الصلاة، سنة الوضوء وتطوعات أخرى: ١٦٤/١.

دادې چه که چرې يو سړی جمات ته داخليدو سره تحية المسجد ادا نه کړل بلکه کيناستو ، بيا پاسيدو او تحية المسجد ئې اوکړه. نو دَ ده تحية المسجد به فوت ګنړلې شي که ادا به ګنړلې شي؟ چنانچه په دې باره کښې هم دَ ائمو اختلاف دې، کوم چه دلته ذکرکولې شي:

دَ احنافو [١] او مالکيه [٢] په نيز که چرې يو سړې جمات کښې داخليدو سره کيناستو او څه وخت پس اودريدو او تحية المسجد ئې ادا کړل نو هيڅ حرج نشته، تحية المسجد به ئې صحيح شي. ليکن افضل هم دغه دی چه دَ کيناستو نه مخکښې تحية المسجد ادا کړي.

دَ شوافع په نيز که چرې په هيره سره لږ ساعت کيناستو بيا ياديدو سره ئې تحية المسجد اداکړل نو هيڅ حرج نشته. او که چرې هير شو ترې او ډير وخته پورې کيناستو يا په قصد سره کيناستو لږ ساعت يا ډير ساعت، نو په هرو دواړو صورتونو کښې به تحية المسجد فوت

---

[١] وفى حاشيته المسمى بحاشية الطحطاوى، قوله: سنن تحية المسجد، أي: تحية رب المسجد لأن التحية إنما تكون لصاحب المكان لا للمكان. ويستثنى المسجد الحرام، فإن تحيته الطواف، وصرح المنلا على: بأن من دخل المسجد الحرام لا يشتغل بتحية، لأن تحية هذا المسجد الشريف هوالطواف، لمن عليه طواف، أو أراده، بخلاف من لم يرده أو أراد أن يجلس، فلا يجلس حتى يصلى ركعتين تحية المسجد ١هـ قوله: بركعتين، وإن شاء بأربع والثنتان أفضل، قهستانى. قوله: "فى غير وقت مكروه، فى القهستانى: إذا دخل المسجد بعدالفجر أو العصر لا يأتى بالتحية، بل يسبح، ويهلل، ويصلى على النبى صلى الله عليه وسلم، فإنه حينئذ يؤدى حق المسجد، كما إذا دخل للمكتوبة فإنه غير مأمور بها كما فى التمرتاشى١هـ. وفى الدر عن الضياء عن القوت: من لم يتمكن منها لحدث أو غيره، يقول: كلمات التسبيح الأربع أربعا ١هـ. وهى: سبحان الله والحمدلله ولا إله إلا الله والله أكبر. قوله: قبل الجلوس، هذا بيان للأولى، كما يأتى، وهذا قول العامة وهوالصحيح. وقيل: يجلس أولا ثم يصلى. قوله: "وإن كان الأفضل فعلها قبله . هذا يدل على أنهم حملوا النهى فى حديث: "فلا يجلس حتى يركع ركعتين" على التنزيه. (حاشية الطحطاوى على مراقى الفلاح،كتاب الصلاة فصل فى تحية المسجد: ١/٣٩٥-٣٩٤). (حاشية ابن عابدين، كتاب الصلاة، باب: الوتر والنوافل: ١٨/٢دارالفكر،بيروت). (البحرالرائق، كتاب الصلاة، أعظم المساجد حرمة: ٣٨/٢،دارالكتاب الإسلامى). (مراقى الفلاح شرح نور الإيضاح، كتاب الصلاة، فصل: فى تحية المسجد: ١٤٨/١).

[٢] "ويكره جلوسه قبل التحية حيث طلبت ولا تسقط به، وذكر سيدى أحمد زروق عن الغزالى وغيره أن من قال: سبحان الله والحمدلله ولا إله إلا الله والله أكبر، أربع مرات، قامت مقام التحية" (شرح مختصر خليل للخرشى، كتاب الصلاة، فصل: فى بيان صلاة النافلة وحكمها: ٥/٢).

فالحاصل أن تحية المسجد لها ثلاثة شروط: أن يدخل على طهارة، وأن يكون مراده الجلوس فى المسجد، وأن يكون الوقت وقت جواز، والشرط الثانى يفهم من قوله فلايجلس، والأصل فى ذلك قوله صلى الله عليه وسلم: إذا دخل أحدكم المسجد فلا يجلس حتى يصلى ركعتين، رواه مسلم، وفى رواية: إذا دخل أحدكم المسجد فليركع ركعتين قبل أن يجلس، والنهى على الأولى للكراهة، والأمر فى الثانية على جهة الندب، وورد: أعطوا المساجد حقها، قالوا: وما حقها يارسول الله؟ قال: صلاة ركعتين قبل الجلوس، وكونهما قبل الجلوس على جهة الندب، فلوجلس لا يفوتان ولو طال زمان الجلوس. (الفواكه الدوانى على رسالة ابن أبى زيد، كتاب الصلاة، باب: أقل الشفع: ٢٠٢/١). (حاشية الصاوى على الشرح الصغير، كتاب الصلاة، النوافل المندوبة والرغائب: ٤٠٥/١).



شي.(١) دَ حنابلو په نيز كه لږ شان ساعت كيناستو په هيره سره يا په قصد سره نو تحية المسجد نه فوت كيږي. او كه زيات وخت كيناستو په هيره سره يا په قصد سره نو تحية المسجد به فوت شي.(٢)

حديث باب [حديث نمبر ٤٣٣] (٣)

٤٣٣ - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ السَّلَمِيِّ (٤) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ».

---

(١) لوجلس فى المسجد قبل التحية وطال الفصل، فاتت ولا يشرع قضاؤها بالاتفاق، كما سبق بيانه فإن لم يطل الفصل، فالذى قاله الأصحاب: إنها تفوت بالجلوس، فلا يفعلها بعده، وذكر الأصحاب هذه المسألة فى كتاب الحج فى مسألة الإحرام لدخول الحرم وقاسوا عليها أن من دخله بغيرإحرام لا يقضيه بل فاته بمجرد الدخول كما تفوت التحية بالجلوس، وذكر الإمام أبوالفضل ابن عبدان من أصحابنا فى كتابه المصنف فى العبادات: أنه لونسى التحية وجلس ثم ذكرها بعد ساعة صلاها، وهذا غريب، وقد ثبت عن جابر رضى الله عنه قال: جاء سليك الغطفانى يوم الجمعة ورسول الله صلى الله عليه وسلم قاعدا على المنبر فقعد سليك قبل أن يصلى، فقال له النبى صلى الله عليه وسلم: أركعت ركعتين؟ قال: لا، قال: قم اركعهما. رواه مسلم بهذااللفظ. ورواه البخارى أيضا بمعناه. فالذى يقتضيه هذا الحديث أنه إذا ترك التحية جهلا بها أو سهوا يشرع له فعلها ما لم يطل الفصل، وهذا هو المختار، وعليه يحمل قول ابن عبدان، ويحمل كلام الأصحاب على ما إذا طال الفصل لئلا يصادم الحديث الصحيح، وهذا الذى اختاره متعين لما فيه من موافقة الحديث والجمع بين كلام الأصحاب وابن عبدان والحديث. والله أعلم.(المجموع شرح المهذب، كتاب الصلاة، مسألة مهمة تتعلق بصلاة الليل: ٥١/٤). (أسنى المطالب فى شرح روض الطالب، كتاب الصلاة، الباب السابع: فى صلاة التطوع: ٢٠٥/١). (الغرر البهية فى شرح البهجة الوردية، كتاب الصلاة، فصل: فى بيان صلاة الليل: ٣٩٥/١).

(٢) مذكرة القول الراجح مع الدليل، كتاب الصلاة، إذا تكرر خروج الإنسان من المسجد، هل تشرع كلما خروج ورجع أم لا؟: ٩١/٣. (الفروع وتصحيح الفروع، كتاب الصلاة: من دخل المسجد فى الخطبة لم يمنع من التحية: ١٨١/٣). (الإقناع فى فقه الإمام أحمد بن حنبل، كتاب الصلاة، فصل: يسن أن يغتسل للجمعة: ١٩٨/١).

(٣) مذكوره حديث چونكه د كشف الباري دَ مذكوره جلد آخرى حديث دى په دې وجه په دې مقام باندې دَدې امر تجديد ضرورى معلوميږي چه دَ كشف الباري دَ پاره منتخب كړې شوى دَ الدكتور مصطفى ديب البغاء والا دَ نسخې مطابق دَدې حديث نمبر ٤٣٣ دې خو په نورو نسخوكښې كوم چه فتح الباري يا عمدة القاري كښې استعمال كړې شوى دى دَ هغې مطابق دَدې حديث نمبر ٤٤٤ دې.]

(٤) أخرجه البخارى فى صحيحه أيضا: فى التهجد، باب: ماجاء فى التطوع مثنى مثنى، رقم الحديث: ١١٦٣. ومسلم فى صحيحه: فى صلاة المسافرين، باب: استحباب تحية المسجد بركعتين وكراهة الجلوس قبل صلاتهما، وأنها، مشروعة فى جميع الأوقات،رقم الحديث: ٧١٤. وأبوداؤد فى سننه، فى الصلاة، باب: ماجاء فى الصلاة عند دخول المسجد، رقم الحديث: ٤٦٨-٤٦٧. والترمذى فى جامعه: فى الصلاة، باب: ماجاء إذا دخل أحدكم المسجد فليركع ركعتين، رقم الحديث: ٣١٦. والنسائى فى سننه: فى المساجد، باب: الأمر بالصلاة قبل الجلوس فى المسجد، رقم الحديث: ٧٣١. وفى جامع الأصول، حرف الصاد، الكتاب الأول: فى الصلاة، القسم الثانى: من كتاب الصلاة: فى النوافل، الفصل الرابع: فى صلوات متفرقة، تحية المسجد، رقم الحديث: ٢٤٥٣، ٢٤٨/٦.

دَ حدیث ترجمه: دَ حضرت ابوقتاده سلمي ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه کله په تاسو کښې یو سړې جمات ته داخل شی نو هغه له پکار دی چه دَ کیناستو نه مخکښې دوه رکعته مونځ (تحیة المسجد) اوکړی.

تراجم رجال: دَ مذکوره روایت په سند کښې پنځه رجال دی:

① عبدالله بن یوسف رحمه الله: دا عبد الله بن یوسف التنیسی دمشقی رحمه الله دې. دَ دوی مختصر احوال کشف الباری، کتاب بدء الوحی دویم حدیث او تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب العلم، باب: لیبلغ العلم الشاهد الغائب لاندې تیر شوی دی.[1]

② مالك رحمه الله: دا مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر المدنی رحمه الله دې دَ دوی تذکره کشف الباری، کتاب بدء الوحی دَ دویم حدیث او تفصیلی احوال کتاب الإیمان، باب: من الدین الفرار من الفتن لاندې تیرشوې دې.[2]

③ عامر بن عبدالله بن الزبیر رحمه الله: دا ابو الحارث عامر بن عبد الله بن زبیر بن العوام قرشی اسدی رحمه الله دې. دَ دوی تفصیلی احوال کتاب العلم، باب: إثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم دَ دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[3]

④ عمرو بن سلیم الزرقي رحمه الله: دَ دوی پوره نوم عمرو بن سُلیم بن خلده بن مَخلد بن عامر ابن زُریق الزُرَقي انصاری مدنی رحمه الله دې. دوی چه دَ کومو مشایخو نه دَ حدیث روایت کوی په هغوی کښې ابوقتاده، ابوسعید خدری، ابورهیره، عبدالله بن زبیر، عبدالله بن عمر بن خطاب، سعید بن مسیب، عاصم بن عمرو المدینی، عبدالرحمن بن ابی سعید خدری، ابوحمید ساعدی رضی الله عنهم وغیره شامل دی.

اودَ دوی نه روایت کونکو کښې عامر بن عبدالله بن زبیر، بکیر بن عبدالله بن الاشج، زید بن ابی عتاب، سعید بن ابی سعید المقبری، عبدالله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم، عبدالله بن ابی سلمه الماجشون، عبدالله بن عامرالاسلمی، عبیدالله ابن عالمگیره بن معیقیب، عثمان بن ابی سلیمان، ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم، ابوبکر بن المنکدر او پخپله دَ هغوی خوئی سعید بن عمرو بن سُلیم الزرقي وغیره رحمهم الله شامل دی.

محمدبن سعد رحمه الله دَ هغوی باره کښې فرمائی: کان ثقة، قلیل الحدیث. امام نسائی رحمه الله دَ

---

[1] کشف الباری: ٢٨٩/١، ١١٣/٤.
[2] کشف الباری: ١٨٠/٢، ٢٩٠/١.
[3] کشف الباری: ١٦٢/٤.

هغوی باره کښې فرمائی: ثقة. امام عجلی رحمه الله د هغوی باره کښې فرمائی: مدنی تابعی ثقة. ابن حبان رحمه الله د هغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې. علامه ذهبی رحمه الله د دوی باره کښې فرمائی: ماعلمت فیه شیئا یشینه. ابن حجر رحمه الله فرمائی: ثقة من کبار التابعین.[1]

⑤ ابی قتادة السلمی رضی الله عنه: دا صحابئ رسول حضرت ابوقتاده انصاری سلمی رضی الله عنه دې. د دوی تفصیلی احوال کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: النهی عن الاستنجاء بالیمین لاندې تیرشوی دی.[2]

**د حدیث شرح:** د مذکوره حدیث شریف ټول الفاظ چونکه هم د ترجمة الباب حصه وه، په دې وجه متعلقه مباحث د ترجمة الباب د تشریح لاندې بیان کړې شوی دی. علاوه د دې نه چه "إذا دخل أحدکم المسجد" په دې حکم کښې دا خبره شامل ده چه هغه دې په اودس کښې هم وی ګنی اول دې اودس اوکړی بیا دې تحیة المسجد ادا کړی.[3]

**قوله:** فلیرکع: معنی "فلیصل" ده. جزء وئیلو سره کل مراد اخستې شوې دې.[4]

**قوله:** رکعتین: دې نه مراد تحیة المسجد دې او د دې تثنیې په لفظ سره دا لازم نه راځی چه د دوؤ رکعتونه زیات کول جائز نه دی. البته د دوؤ رکعتو نه کم کولو باره کښې د فقهاؤ اختلاف دې او معتبر خبره داده چه تحیة المسجد د دوؤ رکعتو نه کم ادا کول جائز نه دی.[5]

**د حدیث مبارکه د ترجمة الباب سره مناسبت:** د مذکوره حدیث شریف د ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې د هیڅ قسم اخفاء نشته دې.

---

[1] تهذیب الکمال: ٥٥/٢٢. التاریخ الکبیر للبخاری:٦ / الترجمه: ٢٥٥٩. ثقات العجلی، ص: ٤٢. الثقات لابن حبان: ١٦٧/٥. الکاشف: ٢ / الورقه: ١٠٠. تاریخ الإسلام: ٤٠/٤. میزان الاعتدال: ٣ / الترجمة: ٦٣٨٠. تهذیب التهذیب: ٤٤-٤٥/٨. تقریب التهذیب: ٧١/٢.

[2] کشف الباری، کتاب الوضوء، باب: النهی عن الاستنجاء بالیمین، ص: ٤١١.

[3] إرشادالساری: ١٠٣/٢.

[4] تحفة الباری: ٤٨٩/٢.

[5] التوضیح لابن الملقن: ٤٨٣/٥ عمدة القاری: ٢٧١/٤.